# کشف الباری

## عما فی

# صحیح البخاری

تالیف ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان شیخ الحدیث

جامعه فاروقیه کراچئ

# کتاب احادیث الانبیاء

**جلد ۲۲**

**خصوصیات**

- ← داحادیثو تخریج
- ← د تعلیقات بخاری تخریج
- ← داسماء الرجال مختصر تعارف
- ← د گرانو لغاتو لغوی صرفی اونحوی حل
- ← ماقبل باب سره د ربط پوره تحقیق
- ← دشرحی دهرې خبرې لاندې په خاشیه کښې حواله
- ← د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې پوره تحقیق
- ← د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان اوبیا د مذهب حنفی ترجیح
- ← د بخاری د احادیثو اطراف خودل


خورونکی: ← فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

موبائل :- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

**دکتاب نوم:-** کشف الباری عما فی صحیح البخاری

**شارح:-** صدروفاق المدارس مولاناسلیم اللہ خان

شیخ الحدیث جامعہ فاروقیہ کراچی

د ملاویدو پتې: د فیصل کتب خانه پېښور څخه علاوه

- رحیمی کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۱۶۱۳۱۳
- اسلامی کتب خانه خوست --
- دیوبند کتب خانه خوست -- ۰۷۹۹۸۸۶۶۸۰
- روغانیول کتب خانه جلال آباد
- دعوت کتب خانه جلال آباد -- ۰۷۷۶۰۹۷۹۶۵
- رشیدیه جدید کتب خانه کابل
- انتشارات نعمانیه کابل
- انتشارات علامه تفتازانی کابل -- ۰۷۷۷۴۹۰۵۰۰
- قدرت کتب خانه کابل --
- واحدی کتب خانه خوست
- صداقت کتب خانه کابل -- ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷
- مکتبة القرآن والسنة کابل
- مکتبه صدیقیه غزنی
- مکتبه فریدیه خوست
- مسلم کتب خانه جلال اباد -- ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶
- غزنوی کتب خانه غزنی -- ۰۷۴۸۵۷۵۱۹۹

**خورونکی:** ⬅ فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵ ........ ۰۳۱۵۹۵۹۵۷۱۷

بسم الله الرحمن الرحيم

# حرف اول

الحمدلله الذي بنعمته تتم الصالحات. والصلاة والسلام على رسوله الكريم الذي ترجى شفاعته يوم القيامة. أما بعد!
د الله تعالى په فضل او کرم اودهغه په توفيق سره د شيخ الحديث حضرت مولانا سليم الله خان صاحب (أطال الله بقائه وأدام ظله على رؤوسنا بعافية وسلامة) متنوع حديثي خدماتو نه يو عظيم خدمت د صحيح بخاري شرح او توضيح په نوم د "كشف الباري عما في صحيح البخاري" تصنيف اوتاليف دې. په کوم کښې چه نه يوازې په احاديث مبارکو باندې په مختلف اړخونو باندې مدلل او محقق پوره بحث کړې شوې دې بلکه د احاديثو په اسانيدباندې محدثانه کلام او د حديث د رواة جامع تعريف هم جمله لوازماتو او مناسباتو سره اهتمام کړې شوې دې. تردغه وخته پورې د چهاپ شوو جلدونو شمير يويشت دې اودا دوه ويشتم جلد هم چهاپ کيدو سره د لوستونکو لاسونو ته رسيدونکې دې. والحمدلله على ذلك.
په دې کتاب کښې د انبياء کرامو حضراتو عليهم السلام د پاکو اومقدس نفوسو تاريخي حالات او واقعات، مواعظ اومواعيد په تاريخي حيثيت سره د بعض په بعضو باندې د تقديم اوتاخير په حواله سره کافي او ضروري بحث کړې شوې دې. دا جلد هم د نورو چهاپ کړې شوو جلدونو په شان هم دهغه اساليبو او خطوطو باندې د بنائسته کولو پوره کوشش کړې شوې دې. کوم چه د حضرت زيد مجده د طرف نه د کشف الباري د منهج (طريقې) دپاره مقرر کړې شوې دې. چنانچه په تراجم ابواب کښې د امام بخاري رحمه الله د نقطه نظر وضاحت، تراجم رجال، د احاديثو تخريج او تعليقات، د مشکل عربي عبارتونو ترجمه، د احاديثو نه مستنبط امورو د شارحين حديث د کلام په رڼا کښې تذکره اود اصل مآخذ ومراجع وغيره خاص اهتمام کړې شوې دې.
کتاب احاديث الانبياء ټول خلور پنځوس (۵۴) ابوابو باندې مشتمل دې. په کوم کښې چه ۲۰۹ دوه سوه نهه مرفوع احاديث دی. په دې کښې مکررات يوسل اوويشت (۱۲۷) اوغير مکرر روايات دوه اتيا (۸۲) دی. دې نه علاوه ديرش (۳۰) تعليقات او شپږ اتيا (۸۶) آثار د صحابه کرامو او تابعينو درج دی.
ددې کتاب په تکميل کښې مخې ته راتلونکې مشکلاتو د حل دپاره حضرت الاستاذ مولانا حبيب الله زکريا صاحب دامت برکاته امداد اوتعاون يوشان کړې دې، چرته هم چه د يو حوالې سره صعوبت مخ کيدل شوی نوهغوی بغيرڅه د وخت ضائع کولو خپل قيمتي وخت ورکولوسره زما لارخودنه کړې ده. د استاذ محترم نه علاوه نورو فقهاء شعبه تصنيف هم پوره تعاون حاصل شو. په کوم کښې چه مفتي عبدالرحيم او مفتي امان الله صاحب سلمهما الله کردار ډير ښکاره دې. استاذ الحديث ناظم اعلی حضرت مولانا عبيدالله خالد صاحب زيد مجده په حيثيت د مسؤل شعبه تصنيف اوتاليف، تحقيق اومراجعت په دې باريك اومحنت طلب کارکښې د امداد اوتعاون ټول اسباب او وسائل ورکړل او وخت په وخت ئې خپلې قيمتي مشورې هم وراندې کړې دی. په کوم باندې چه احقر د زړه د ژوروالی نه د حضرت الاستاذ ممنون اومشکوردې. په انتظامي امورو کښې ورور يوسف رانا صاحب تعاون حاصل وو. الله تعالى دې دې ټولو حضراتو ته د خپل شان مطابق بهترين د خير بدلې ورکړې. آمين.

والدين الله تعالى دې دهغوى سورې شفقت په صحت اوسلامتيا سره زما په سر باندې هميشه باقي اوساتى آمين، د كور ذمه وارو نه يوطرف ته په دې ژور علمى كاركښې پوره كوشش كړې دكوم دپاره چه هغوى د رسمى شكريې د الفاظو نه ډير اوچت دى.

په آخره كښې داحقر رومبې ګزارش د اهل علم حضراتو نه دې چه دا يوخاص علمى كاردې كوم چه په متنوع فنون كښې دمهارت متقاضى دى دهغه صلاحيتونو سره عين ممكن دى بلكه يقينى دى چه په ترتيب اوتحقيق كښې د نه غوښتلوباوجود څه كوتاهئى پاتې شوې وى. په دې وجه اهل علم حضراتوته ډير په ادب سره خواست دې چه هغوى دې هغه په ګوته كړى او ان شاء الله مونږ ته به په خپلو غلطوباندې د اصلاح ډيره خوشحالى وى. او مونږ به د دغه حضراتو ډيرزيات شكر ګذار يو.

بل خواست عوامو اوخواصو نه دادې چه دحضرت شيخ الحديث زيد مجده دپاره خصوصى دعا كوى چه الله تعالى هغوى ته د صحت اوعافيت سره ډير عمر ورنصيب كړى. حضرت شيخ الحديث حفظه الله ورعاه د ژوندهر باب زمونږ دټولو دپاره دډير فخر او اتباع لائق نمونه ده. الله تعالى دې دحضرت او دهغوى ماتحت تصنيف اوتاليف سره تعلق لرونكو ټولوملګروته دحضرت په ژوند مبارك كښې دډې عظيم خدمت پوره كولوتوفيق وركړى. والله ولي التوفيق.

دعا ده چه الله تعالى دې دا كار د راقم دپاره، د ده داستاذانو دپاره، د ده د والدينو اومتعلقينو او په دې كاركښې د څه قسم تعاون كونكو ټولو احبابو دپاره د آخرت ذخيره جوړه كړى. آمين!

مبارك على بن محمد رياض
استاذ ورفيق شعبهٔ تصنيف وتاليف جامعه فاروقيه كراچي
۱۳ جمادى الاولى ۱۴۳۷هجرى بمطابق ۲۲ فرورى ۲۰۱۶م.

بسم الله الرحمن الرحيم

## ۴۴-كتاب الأنبياء

دَحافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله په نسخو كښې (كتاب أحاديث الأنبياء، باب خلق آدم وذريته) وارد دي. (١) دَ علامه كرماني رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله په نسخو كښې صرف (باب خلق آدم وذريته) نقل دي. (٢) دَكريمه روايت (كتاب أحاديث الأنبياء عليهم الصلاة والسلام) الفاظو سره دى. خو بعض نسخو كښې صرف (باب خلق آدم صلى الله عليه وسلم) هم نقل دي. (٣)

ددې باب لاندې امام بخارى رحمه الله دا بيانول غوارى چه حضرت آدم عليه السلام او دَهغوى اولاد دَتخليق او تكوين دكومو كومو مرحلونه تيرشو. دَامام بخارى رحمه الله نظر ډير ژور او لرې رسيدونكې دې. هغه چه په كوم غرض سره باب تړى كه دهغه غرض په مناسبت سره يو مضمون په قرآن مجيد كښې بيان شوې وى نوامام بخارى رحمه الله دَهغې طرف ته ډيره ښكلې اشاره فرمائى. دلته هم امام بخارى رحمه الله هم دَدغه اصولو نه كار اخستې دې اودَ خپل عادت مطابق ئې دَ احاديثو نه وړاندې ﴿ صَلْصَالٍ﴾ ﴿حَمَإٍ﴾، ﴿آسِن﴾ او ﴿ مَّسْنُونٍ ﴾ غوندې الفاظ راوړلو سره دَ قرآن مجيد دَ هغه ټولو آياتونو طرف ته اشاره كړې ده په كوم كښې چه دَ آدم عليه السلام اودَهغه دَاولاد دَ تخليق دَ مراحلو بيان دې. په دې ضمن كښې ئې دَ نورو مضامينوطرف ته هم اشاره فرمائيلې ده. مثلاً دَ سورت بقره آيت ﴿ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً ﴾ سره دَ انسان دَ تخليق دَمقصد طرف ته اشاره ده چه دَ انسان تخليق دَ خلافت دَ بار پورته كولو دَپاره شوې دې. انسان دنيا ته راښكته كولو سره هغه ته يو عالمګير مشن حواله كړې شوې دې. بيا ﴿لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ﴾ اودَ (رياشا) غوندې الفاظ راوړلوسره ئې دَدې خبرې طرف ته اشاره كړې ده چه انسان په زمكه كښې آبادولو سره هغه ته دَ ستر پټولو اسباب وركړل اوبيا ئې دَمتمر شيطانانونه دَ بچ كولودَپاره فرښتې دَ ده په حفاظت باندې مقرر كړې. بيا دَ سورت تين آياتونه ﴿فِيٓ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ﴾ او ﴿أَسْفَلَ سَٰفِلِينَ﴾ راوړلوسره ئې اشاره اوكړه چه الله تعالى انسانان په ډيره ښكلې سانچه كښې اچولو سره پيدا كړل. خو كه يو سړې مؤمن نه وى نو هغه له دا نه دى هيرول پكار چه كه په دنيا كښې هر څومره ښائسته پاتې وى دَمرګ نه پس به هغه په ډيرزيات ښكته ځائى كښې غورزولې شى. دغه شان لفظ (خسر) راوړلو سره دَ سورت العصر آيت ﴿إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا...... ﴾ طرف ته اشاره كولوسره اوخودلې شو چه دَ ايمان نه بغير دَ دنيا ژوندون ټول دَ تاوان او نقصان ژوندون دې.

**قوله:-الأنبياء:** انبياء دَ نبى جمع ده. (٤)

نبى بعض حضراتو بغير دَهمزه او بعض دَ همزه سره "نبيء" دَ فعيل په وزن باندې لوستلې دې. ابن اثير جزرى رحمه الله فرمائى چه همزه سره دَ لوستلو په صورت كښې به دا لفظ دَ "النبأ" نه مشتق وى او وداسې به حضورپاك ﷺ ته دَ نبى ونيلو وجه دَ تسميه دا شى چه هغوى ﷺ خلقو ته دَالله تعالى دَ طرف نه نازل شوى خبرو خبردارې وركوى. علامه سيبويه رحمه الله فرمائى چه اهل عرب به دَ دې اسماء او افعال په آخره كښې همزه لوستله صرف يو څو نومونه

---

[١] فتح الباري: ٣٦١/٦، عمدة القاري: ٢٨١/١٥.

[٢] شرح الكرماني: ٢٢٣/١٣، إرشادالساري: ٣١٧/٥ المطبعة الكبرى الأميرية ببولاق مصر المحمية، سنة: ١٣٠٤هجري.

[٣] عمدة القاري: ٢٨١/١٥.

[٤] لسان العرب: ٩/١٤ دار إحياء التراث العربي.

داسې دی چه دهغې په آخره کښې به نی د همزه لوستل ترک کول اوهغه اسماء ، یعنی نوموته دا دی: "نبی،ذریة،بریة، خابیة". البته اهل مکه په مذکوره آخری دریواړه لفظونه همزه سره لوستلو کښې دباقی عربو مخالفت کوی. هم دغه وجه ده چه یوځل یو اعرابی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوهغوی ته نی اوونیل "یا نبیء الله" نو حضورپاك دا كلام ناخوښه كړو او وئې فرمائيل (لا تنبز باسمی) زما نوم همزه سره مه واينې ځكه چه لفظ نبی د قريشو په لغت كښې بغيرد همزه نه لوستلې كيږي.

د لفظ نبی باره کښې يوقول داهم دې چه دا لفظ "النباوة" يا "النبوة" نه مشتق دې د كوم معنی چه د اوچت او لوړ مقام راخې او په دې صورت کښې به وجهٔ تسمیه دا شی چه یقیناً الله تعالی حضورپاك ته د نبوت په شان لوړ او اوچت مقام سره سرفراز کړې دې. ابن اثیر جزری رحمه الله فرمائی چه دا لفظ د همزه او بغیرد همزه لوستل دواړه شان جائز دی. [1]

حافظ ابن حجر رحمه الله د قیل سره يو قول نقل کړې دې چه که چرې لفظ نبی همزه سره اولوستلې شی نو دا به "نبأ" نه مشتق وی اوکه چرې بغیرد همزه نه اولوستلې شی نودا به "نبرة" په معنی داوچت مقام نه ماخوذ ګڼرلې شی. [2]

حافظ ابن حجر رحمه الله د نبوت سره متعلق يو څو نکات بيان کړی دی. ① نبوت يوه داسې عظيمه مرتبه ده چه الله تعالی ئې چادپاره غواړی نو ورکوی. ② دا مرتبه يوسړې په خپل علمی استعداد ، ملکه کشف يا د خپل استعداد ولايت په وجه نه شی حاصلولې. ③ ځکه چه د نبی حقيقی شرعی معنی داده چه "چاته نبوت ورکړې شوې وی". ④ نبوت نه خود نبی د ذات سره متعلق وی، نه د نبی د عرض سره اونه د نبوت تعلق د نبی علم سره وی. بلکه نبوت د الله تعالی د اعلان او فيصلې سره متعلق وی. په دې معنی چه الله تعالی اعلان او فيصله کوی چه ما ته دامت دپاره نبی جوړکړې نی چه کله نبوت د الله تعالی د امر اوحکم سره دې نو نبوت د خوب یا غفلت په شان د مرګ راتلو سره هم نه باطل کيږي. [3]

**د انبياء كرامو عليهم السلام د تعداد سره متعلق د رواياتو اختلاف:** په دې سلسله کښې مختلف روايات نقل دی:

① د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه روايت دې چه هغوی د نبی کريم ﷺ نه د انبياء كرامو عليهم السلام د شمير باره کښې سوال اوکړونو حضورپاك اوفرمائيل (مائة ألف وأربعة وعشرون ألفا) يعنی د هغوی شمير يو لاکه څليرويشت زره دې. بيا ئې تپوس اوکړو چه په هغوی کښې رسولان څومره دی؟ حضورپاك جواب کښې اوفرمائيل (ثلاث مائة وثلاثة عشر) په دوی کښې درې سوه او ديارلس رسولان جوړولوسره مبعوث کړې شوی دی.

دا روايت علامه ابن جوزی رحمه الله په تفصيل سره نقل کړې دې. ابن حبان رحمه الله د دې روايت تصحيح کړې ده او ابن مردويه رحمه الله هم دا روايت په خپل تفسير کښې نقل کړې دې. [4]

هم د دې مضمون روايت د حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه هم نقل دې البته په دواړو کښې فرق دادې چه ابوامامه رضی الله عنه د هغوی تعداد د ۳۱۳ په ځائی ۳۱۵ نقل کړې دې لکه څنګه چه نيزدې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په روايت کښې

---

[1]) النهاية لابن الأثير: ٤/٥ المكتبة الإسلامية.

[2]) فتح الباری: ٣٦١/٦.

[3]) فتح الباری: ٣٦١/٦.

[4]) تلقيح فهوم أهل الأثر فی عيون التاريخ والسير لابن الجوزی، ذكر عدد الأنبياء والمرسلين. ص ٣. المكتبة النموذجية، صحيح ابن حبان، كتاب البر والإحسان، باب ماجاء فی الطاعات وتوابعها، ذكر الاستحباب للمرء أن يكون :5من كل خير حظ إلخ، رقم الحديث: ٣٦١، ٧٧/٢مؤسسة الرسالة، حلية الأولياء: ١٦٨/١-١٦٦ دارالكتب العلمية، فتح الباری: ٣٦١/٦عمدة القاری: ٢٨١/١٥.

راخی. (١) مګر علامه هیثمی رحمه الله د ابوامامه رضی الله عنه دا روایت تخریج کولوسره «مائة وثلاثة عشر» نقل کړې دې. ددې روایت د ذکرکولونه پس علامه هیثمی رحمه الله فرمائی «رواه الطبرانی ورجاله الصحیح غیر أحمد بن خلید وهو ثقة» (٢)

④ د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی «بعث الله ثمانیة آلاف نبی، أربعة آلاف إلی بنی إسرائیل وأربعة الآف إلی سائر الناس» یعنی الله تعالی اته زره انبیاء کرام مبعوث کړل په کوم کښې چه څلور زره نې صرف په بنی اسرائیلو کښې ولیږل او څلور زره نې باقی ټولو خلقو ته ولیږل. (٣)

د حضرت انس رضی الله عنه نه په یو بل روایت کښې نقل دی «بعث رسول الله صلی الله علیه وسلم بعد ثمانیة آلاف من الأنبیاء منهم أربعة آلاف من بنی إسرائیل» یعنی د حضور پاك بعثت د اتو زرو انبیاء کرامو نه پس شوې او په دغه اتو زرو انبیاء کرامو کښې څلور زره صرف د بنی اسرائیلو نه وو. (٤)

③ د وهب عن ابن عباس رضی الله عنهما په طریق سره نقل دی چه الله تعالی ۳۱۵ رسولان ولیږل په کومو کښې چه حضرت آدم، شیث، ادریس، نوح او ابراهیم علیهم السلام عبرانی او پنځه حضرت هود، صالح، اسماعیل، شعیب اوحضرت محمد ﷺ د عربو نه وو.

④ د عکرمه عن ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه ټول انبیاء کرام علیهم السلام د بنی اسرائیلو طرف ته رالیږلې شوی بغیر د لسو انبیاء کرامو د چا نومونه چه دادی: حضرت نوح، حضرت هود، حضرت لوط، حضرت صالح، حضرت شعیب، حضرت ابراهیم، حضرت اسماعیل، حضرت یعقوب او حضرت عیسی او حضرت محمد علیهم السلام. (٥)

**په پورته ذکر شوو روایاتو باندې د ائمه جرح وتعدیل کلام:** ① د حضرت ابوذر رضی الله عنه روایت ابن حبان رحمه الله او ابونعیم رحمه الله د ابراهیم بن هشام بن یحیی په طریق سره نقل کړې دې. ائمه د جرح اوتعدیل د دې حدیث سند ډیر ضعیف ګرځولې دې. څکه چه امام ابوحاتم رحمه الله علامه ذهبي او امام ابوزرعه رحمه الله وغیره د ابراهیم بن هشام تکذیب کړې دې او هغه نې متروك ګرځولې دې. البته ابن حبان رحمه الله دا راوی په ثقات کښې شمیرکړې دې او د دغه پورتنې روایت تصحیح نې کړې ده. (٦)

ابن کثیر رحمه الله فرمائی چه د حضرت ابوذر رضی الله عنه روایت ابن حبان رحمه الله په خپل کتاب کښې ذکرکړې دې اوددې تصحیح نې کړې ده. خو بل طرف ته ابن جوزی رحمه الله دا روایت په موضوعاتو کښې شمیرکړې دې او په دې کښې څه شك نشته دې چه ائمه د جرح والتعدیل په ابراهیم بن هشام باندې کلام کړې دې. (٧)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «والصواب: إبراهیم بن هشام أحد المتروکین الذین مشاهم ابن حبان ولم یصب» یعنی ابراهیم بن شام د هغه متروك راویانو نه دې د چاچه ابن حبان رحمه الله پیروی کړې ده په دې پیروی کولو کښې هغه په حق باندې نه دې. (٨)

---

(١) تفسیر ابن ابی حاتم: ١٨٢/١ مکتبة نزار مصطفی الباز، تفسیر ابن کثیر، سورة النساء، رقم الآیة: ١٦٣، ٣٧٢/٤ مؤسسة قرطبة، مسند الإمام أحمد بن حنبل: ٦١٨/٣٦ رقم الحدیث: ٢٢٢٨٨ مؤسسة الرسالة.

(٢) مجمع الزوائد، باب ذکر الأنبیاء: ٣٧٥/٨ رقم الحدیث: ١٣٨٠٧.

(٣) مسند أبی یعلی الموصلی: ٧/١٦٠-١٥٩ رقم الحدیث: ٤١٣٢ حلیة الأولیاء: ٥٣/٣.

(٤) المستدرک للحاکم: ٥٩٧/٢ الدر المنثور: ١٣٢/٥ حلیة الأولیاء: ١٦٢/٣ المعجم الأوسط: ٢٣٦/١ رقم الحدیث: ٧٧٤.

(٥) تلقیح فهوم أهل الأثر، ص: ٤، المطبعة النموذجیة.

(٦) الجرح والتعدیل: ١٤٢/٢ دار إحیاء التراث العربی، میزان الاعتدال: ٧٣/١، ٣٧٨/٤، دار المعرفة.

(٧) تفسیر ابن کثیر سورة النساء الآیة: ١٦٣، ٣٧٢/٤، مؤسسة قرطبة.

(٨) میزان الاعتدال: ٣٧٨/٤.

② د حضرت ابوامامه باهلی رضی الله عنه روایت ابن ابی حاتم رحمه الله او امام احمد بن حنبل "ابوالمغیرة عن معان بن رفاعه عن علی بن یزید عن قاسم ابی عبدالرحمن" په طریق سره نقل کړې دې اومعان بن رفاعه، علی بن یزید اوقاسم ابی عبدالرحمن دریواړه ضعیف راویان دی.(۱)

③ د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت کړې شوی د دواړو روایتونو سند هم ضعیف دې. دا ابویعلی موصلی رحمه الله د "مکی بن ابراهیم عن موسی بن عبیدة الربذی عن یزید الرقاشی عن انس" په طریق سره روایت کړې دې او موسی بن عبیدة ربذی ضعیف راوی دې. اود ده شیخ یزید الرقاشی د ده نه زیات ضعیف دې.(۲)

د حضرت انس رضی الله عنه روایت شوی دویم حدیث ابونعیم "زکریا بن عدی عن مسلم بن خالد" په طریق سره تخریج کړې دې. د ابونعیم رحمه الله تخریج کړې شوې دې روایت ټول رواة ثقه دی. البته مسلم بن خالد باره کښې راخی چه هغه کثیر الوهم وو. د ابونعیم رحمه الله نه علاوه امام حاکم رحمه الله او امام طبرانی رحمه الله هم ددې حدیث تخریج کړې دې. د کوم سند چه دادې: "ابراهیم بن المنذر الحزامي عن ابراهیم بن المهاجر بن مسمار عن محمد بن المنکدر روصفوان بن سلیم عن یزید الرقاشي عن انس". علامه هیثمی رحمه الله ددې روایت نقل کولو نه پس فرمائی: «رواه الطبراني في الأوسط، وفيه إبراهيم بن مهاجر بن مسمار، وهو ضعيف». بل حافظ ذهبی رحمه الله هم ددې حدیث تضعیف کړې دې. هغه فرمائی چه ابراهیم او یزید الرقاشی دواړه واهیان (اولنه اوصحیح احادیث بیانونکی) دی.(۳)

④ د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړې شوی دواړه احادیث صرف د علامه ابن جوزی رحمه الله کتاب «تلقیح فهوم أهل الأثر» کښې ملاؤشوې دی. د وهب بن منبه عن ابن عباس په طریق سره نقل روایت کښې صرف د رسُل د تعداد بیان دې. خو دعکرمه عن ابن عباس په روایت کښې جمیع انبیاء علیهم السلام بعثت بیان کړې شوې دې. د هغوی د تعداد څه تذکره نشته دې.(۴)

ملاعلی قاری رحمه الله د حضرت ابوذر رضی الله عنه د روایت تشریح کښې فرمائی: «العدد في هذا الحديث وإن كان مجزوما به لكنه ليس عقطوع، فيجب الإيمان بالأنبياء والرسل مجملا من غير حصر، لئلا يخرج أحد منهم، ولا يدخل أحد من غيرهم فيهم».(۵)

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله څنګه چه په فقهی مسائلو کښې اجتهاد کوی هم دغه شان په تاریخ کښې هم اجتهاد کوی، سره ددې چه د هغوی اجتهاد د مؤرخینو او فقهاؤ خلاف وی. چنانچه امام بخاری رحمه الله حضرات انبیاء کرام علیهم السلام په ترتیب سره ذکرکولو کښې د جمهور مؤرخینو نه اختلاف کړې دې اوحضرت ادریس علیه السلام ئې د حضرت نوح علیه السلام نه پس ذکر کړې دې خو د جمهور مؤرخینو موقف دادې چه حضرت ادریس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام په اجداد کښې دې.

د امام بخاری استدلال د حدیث معراج نه دې چه په دې موقع باندې حضرت ادریس علیه السلام د حضورپاک استقبال کولوسره فرمائیلې وو «مرحبا بالنبي الصالح والأخ الصالح» که چرې حضرت ادریس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام د اجداد نه

---

(۱) تفسیر ابن کثیر: ۳۷۲/٤. مؤسسة قرطبة. مجمع الزوائد: ۲۱۵/۱-۲۱٤ کتاب العلم، باب السوال للانتفاع وابن کثیر رقم: ۷۲۶ دارالکتب العلمیة.

(۲) تفسیر ابن کثیر: ۳۷۳/٤-۳۷۲ مؤسسة قرطبة. مجمع الزوائد: ۲۷۵/۸ رقم: ۱۳۸۰۸ المطالب العالیة: ۲۲۱/۱٤ رقم الحدیث: ۳٤٤۳ دارالعاصمة. الدرالمنثور: ۱۳۱/۵ سورة النساء الآیة: ۱۶۳، مرکز هجر.

(۳) حلیة الأولیاء: ۱۶۲/۳ تلخیص المستدرک للذهبي، کتاب التاریخ، باب بعثه رسول الله صلی الله علیه وسلم بعد ثمانیة آلاف من الأنبیاء: ۵۹۷/۲ دارالمعرفة. المعجم الأوسط: ۲۳۶/۱ رقم: ۷۷٤، دار الحرمین، مجمع الزوائد: ۲۷۶/۸ دارالکتب العلمیة.

(٤) تلقیح فهوم أهل الأثر، ص: ٤ المطبعة النموذجیة.

(۵) مرقاة المفاتیح، کتاب صفة القیامة، باب بدء الخلق: ۳۶۷۰، ۵۷۳۷/۹ دارالفکر.

وي نو دَ «الاخ الصالح» په خاني به ني «الابن صالح» فرمائيلو. هم دغه موقف دَ ابوبكر ابن العربي رحمه الله هم دي. شيخ الحديث حضرت زكريا رحمه الله فرمائي چه دا يو بنكلي استدلال دي خو دَ جمهورو وينا ده چه حضرت ادريس عليه السلام تواضعاً «الاخ الصالح» فرمائيلي وو او بيا «الاخ الصالح» وئيل په دي باره كښي نص نه دي چه حضرت ادريس عليه السلام دَ حضرت نوح عليه السلام نه پس وو. [1]

**دَحضرت ادم دَ تسميه وجه:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه هغوى ته دَ آدم وئيلو وجه داده چه هغوى دَ «اديم الأرض» يعنى مخ دَ زمكي «خاوري» نه پيدا كړې شوي دې. [2] اودَ خلقو په نسبت لفظ ادمة شديد السمرة يعنى دَ غنم رنګي كيدو په معنى كښي استعماليږي. [3] چنانچه دَحضرت سعيد بن جبير رضي الله عنه نه روايت دي چه حضرت آدم عليه السلام دَ مخ دَ زمكي نه پيدا كړې شوي دي. دَ مجاهد رحمه الله نه روايت دي چه لفظ آدم دَ ادمة نه مشتق دي ابواسحاق ثعلبى رحمه الله فرمائي چه خاورې ته په عبراني ژبه كښي آدام «بالالف بين الدال والميم» وئيلي شي اوچونكه دَ حضرت آدم عليه السلام تخليق دَخاورې نه شوي دي په دي وجه دَهغوى نوم آدم «په حذف دَ "الالف"» شو. [4]

يوقول دا هم نقل كړې شوي دي چه آدم دَ سرياني ژبي لفظ دي اوعلامه جوهري رحمه الله فرمائي چه آدم عربي لفظ دي عجمي نه دي. په المغرب كښي دي چه دَ ټولو انبياء كرامو عليهم السلام نومونه عجمي دي بغيردَ څلورو نه او هغه څلور نومونه دادي: حضرت آدم، حضرت صالح، حضرت شعيب او حضرت محمد عليه وعليهم السلام. [5]

. دَهغوى كنيت ابو البشر دي. ابن عباس رضي الله عنهما نه ابومحمد نقل كړې شوي دي. قتاده رحمه الله فرمائي چه په جنت كښي به صرف آدم عليه السلام په كنيت سره رابللې شي. [6] ابومحمد كنيت سره دَحضورپاك شرافت اوعظمت اظهار كول مقصود دي. [7]

لفظ آدم دَ وزن فعل اومعرفه دَ وجي نه غير منصرف دي. [8]

الله تعالى په قرآن كريم كښي ۲۷ ځل دَهغوى ذكر كړې دي. علامه آلوسى رحمه الله دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حواله سره نقل كړې دي چه حضرت آدم عليه السلام ته آدم ځكه وائي چه الله تعالى هغوى دَ زمكي دَتوروالي، سوروالي پاكي اوخيزني ټولو خاورو نه پيدا كړې دي. هم دغه وجه ده چه دَهغوى په اولاد كښي تور سور ښه اوبد هرقسم خلق موجود دي. او بي بي حواء ته حواء ځكه وائي چه هغه دَ آدم عليه السلام دَ پوښتئ نه پيدا كړې شوې وه يعنى دَ يو ژوندي بدن نه پيدا كړې شوه په دي وجه هغې ته په دي مناسبت سره حواء وئيلې شوي دي. [9]

دَ لفظ "ذرية" اشتقاق "ذرأ يذرأ ذرء نه دي" په معنى دَخلق «پيدا كولو». ټول كائنات ټول پيريان او انسانان اودَ ټولو

---

[1] الكنز المتوارى: ۱۳/۲۳۹.

[2] الكشف والبيان المعروف بتفسير الثعلبى لأبى إسحاق، سورة الفاتحة، القول فى حد الاسم وأقسامه: ۱/۱۸۰دار إحياء التراث العربى.

[3] النهاية لابن الأثير: ۱/۳۲مؤسسة التاريخ العربى. ابن الاثير جزرى رحمه الله آدم دَ"أدم" جمع ليكلې ده لكه چه أحمر مفرد دي او حمر دَدي جمع راځي.

[4] تفسير الثعلبى: ۱/۱۸۱-۱۸۰.

[5] تلقيح فهوم أهل الأثر، ص: ٤.

[6] تفسير الثعلبى: ۱/۱۸۱-۱۸۰ عمدة القارى: ۱۵/۲۰٤.

[7] عمدة القارى: ۱۵/۲۰٤إدارة الطباعة المنيرية.

[8] تفسير الثعلبى: ۱/۱۸۱-۱۸۰.

[9] روح المعانى: ۹/۱٦۷دالفكر.

جهانونو په نسل باندې د ذریت اطلاق کیږي. د دې جمع ذراري ده. د دې لفظ اصل همزه سره دې یعنې ذرئیة لیکن اهل عرب دا لفظ بغیر د همزه نه استعمالوي. یو قول دادې چه د لفظ ذریة اصل ذر په معنی د تفریق دې ځکه چه الله تعالی انساني نسل په زمکه کښې خور کړي دي.[1]

د آدم د ذریة نه مراد د هغه اولاد وي او دا لفظ مفرد او جمع دواړو د پاره استعمالیږي. چنانچه د الله تعالی ارشاد دې: ﴿قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِن لَّدُنكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً﴾ چه اې الله ماله د خپل طرف نه یو نیک خوئی راکړې. په دې آیت کښې لفظ ذریة د مفرد په معنی کښې دې.[2]

﴿صَلْصَالٍ﴾ /الحجر: ۲۶/: طِينٌ خُلِطَ بِرَمْلٍ، فَصَلْصَلَ كَمَا يُصَلْصِلُ الْفَخَّارُ. وَيُقَالُ: مُنْتِنٌ، يُرِيدُونَ بِهِ صَلَّ، كَمَا يُقَالُ: صَرَّ الْبَابُ وَصَرْصَرَ عِنْدَ الإِغْلَاقِ، مِثْلُ كَبْكَبْتُهُ يَعْنِي كَبَبْتُهُ. ﴿فَمَرَّتْ بِهِ﴾/الأعراف: ۱۸۹/: اِسْتَمَرَّ بِهَا الْحَمْلُ فَأَتَمَّتْهُ. ﴿أَلَّا تَسْجُدَ﴾/الأعراف: ۱۲/: أَنْ تَسْجُدَ.

﴿صَلْصَالٍ﴾: طِينٌ خُلِطَ بِرَمْلٍ، فَصَلْصَلَ كَمَا يُصَلْصِلُ الْفَخَّارُ: امام بخاری رحمه الله د فراء رحمه الله قول نقل کړې دې. امام فراء رحمه الله وائي چه صلصال هغه خاوره ده چه په ریګ کښې یو ځائې شوې وي او داسې کړنګیږي لکه څنګه چه ټیکرې (توکرکې) کړنګیږي.[3]

امام ابو عبیدة وائي (الصلصال: اليابس الذي لم تصبه نار، فإذا نقرته صل فسمعت له صلصلة، فإذا طبخ بالنار فهو فخار، وكل شيء له صوت فهو صلصال) مطلب دادې چه صلصال هغه خاورې ته وائي کوم ته چه اور رسیدلې وي که هغې له په ګوته باندې تنګړنی ورکړې نو هغه کړنګیږي او د هغې د کړنګاری آواز په غوږونو باندې اوریدې شي او کله چه هغه په اور باندې پخولې شي نو (فخار) یعنی ټیکرې ورته وئیلې شي او هر هغه څیز ته صلصال وئیلې شي د کوم نه چه د کړنګاری آواز راځي.[4] دا قول امام طبري رحمه الله د امام قتاده رحمه الله نه نقل کړې دې او د دې سند صحیح دې.[5]

**قوله: فخار:-** چه کله د مټینې خاورې نه (لوښي وغیره جوړولو سره) په اور باندې پاخه کړې شي (نو په ټنګولو سره ټنګیږي) نو هغې ته فخار وائي.[6]

**وَيُقَالُ: مُنْتِنٌ، يُرِيدُونَ بِهِ صَلَّ، كَمَا يُقَالُ: صَرَّ الْبَابُ إلخ:** د بعض حضراتو وینا ده چه صلصال معنی ده بدبوئي دار. د دې حضراتو د وینا مقصد دادې چه صلصال د صل نه وتلې دې په دې وجه صل په شان د صلصال معنی هم بدبودار شوې دې. لکه څنګه چه صر او صرصر هم یوه معنی دی یعنی هغه آواز ته وائي چه د دروازې بندولو په وخت پیدا کیږي او څنګه چه کبکب او کب یو معنی ده یعنی اړول راړول یو چالره پر مخې کول.

دلته امام بخاری رحمه الله لفظ منتن په صیغه د تمریض سره نقل کړې دې امام طبري رحمه الله د دې قول نسبت چاته کړلو نه بغیر صرف د یو توجیه په صورت کښې نقل کړې دې.[7] امام بغوی رحمه الله دا د امام مجاهد رحمه الله په حواله سره نقل کړې دې. او هم دا امام کسائي رحمه الله اختیار کړې دې.[8]

---

[1]) النهاية لابن الأثير: ۱۵۷/۲مؤسسة التاريخ العربي.

[2]) عمدة القاري: ۲۰٤/۱۵.

[3]) فتح الباري: ۲۶۵/۶. دار المعرفة.

[4]) فتح الباري: ۲۶۵/۶جامع البيان عن تأويل آي القرآن للطبري، سورة الرحمن ۱٤، ۱۹۳/۲۲،دار هجر.

[5]) جامع البيان عن تأويل آي القرآن للطبري، سورة الرحمن: ۱٤، ۱۹۳/۲۲دارهجر.

[6]) النهاية لابن الأثير: ۱۹/۳ ٤دار إحياء التراث العربي، عمدة القاري: ۲۸۱/۱۵.

[7]) جامع البيان: ۱۹٤/۲۲دارهجر.

[8]) معالم التنزيل: ۲۷۸/٤دارطيبة.

په قرآن مجید کښې د حضرت آدم علیه السلام د تخلیق باره کښې مختلف الفاظ او تعبیرات راغلي دي. چرته ئې فرمائیلي دي د اوبونه ئې پیدا اکړي، چرته فرمائي د خاورې نه، اوچرته ئې د سخا (بدبوداره) شوې متیني ختې حواله ورکړې ده اوچرته ئې د اوچې کړنګیدلې خاورې ذکر فرمائیلي دې. نو په دې الفاظو کښې هیڅ تناقض نشته بلکه مطلب ئې هم یو دې څکه چه الله تعالی آدم علیه السلام اول هم د خاورې نه پیدا کړو بیاني په دې کښې اوبه یوځائې کړې نو ﴿طِينٍ لَّازِبٍ﴾ شو یعنی په دې کښې متین والې پیدا شو. دې نه پس سخا کیدو سره توره شوه نو ﴿حَمَإٍ مَّسْنُونٍ﴾ (بدبوداره) وونیلې شو بیا چه کله اوچه شوه نو ﴿صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ﴾ ورته اوونیلې شو.[1]

﴿فَمَرَّتْ بِهِ﴾: د سورت اعراف د دې آیت طرف ته اشاره ده: ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا ۖ فَلَمَّا تَغَشَّاهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا فَمَرَّتْ بِهِ ۖ فَلَمَّا أَثْقَلَت دَّعَوَا اللَّهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ آتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ﴾ یعنی هم هغه دې چاچه تاسو د یوځان (آدم علیه السلام) نه پیدا اکړئي، بیائي هم د ده نه د ده جوړه پیدا اکړه. (مراد بي بي حواء ده) دې دپاره چه هغه دې سره آرام اوکړې شي، بیا چه کله هغه ښځه پټه کړه یعنی قربت اومباشرت ئې اوکړو نو د هغې معمولي شان حمل اوشو، نو هغې دا (په خیټه کښې) اچولې ګرځیدله، بیاچه کله هغه (د حمل په لونید لوسره) درنه شوه نو دواړو ښځې خاوند د الله تعالی نه دعا کوله چه د هغوې رب دې چه که چرې تا مونږ ته صحیح سالم بچې راکړو نو مونږ به د شکر کونکونه یو.[2]

**قوله: إِسْتَمَرَّ بِهَا الْحَمْلُ فَأَتَمَّتْهُ:** امام بخاری رحمه الله د امام ابوعبیده رحمه الله قول نقل کړې دې یعنی د حواء علیها السلام حمل پوره شو تردې چه هغې یو بچې راوړو.[3] په مرّت کښې موجود ضمیر د حضرت حواء علیها السلام طرف ته راجع دې.[4] دلته امام بخاری رحمه الله حضرت آدم او حواء علیهما السلام نه د نسل انساني د ترقئي طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله: ﴿أَلَّا تَسْجُدَ﴾: أَنْ تَسْجُدَ:** هم د سورت اعراف آیت دې: ﴿قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ ۖ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ﴾ [۱۲] الله تعالی اوفرمائیل کله چه ما تاته حکم درکړو نو کوم څیز ته د سجدې کولونه منع کړې؟ ابلیس اوونیل زه د ده نه بهتر یم، زه تا د اور نه پیدا اکړې یم اودې د ختې نه دا هم د امام ابوعبیده رحمه الله قول دې هغه فرمائي چه ﴿مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ﴾ د (ما منعك أن تسجد) په معنی کښې دې. څکه چه عرب د لا کلمه د مثبت په معنی کښې هم استعمالوي او په داسې موقعو باندې دا لازائده وي.[5] کله چه د آدم علیه السلام تخلیق اوشو نو ټولو فرښتو ته حکم اوشو چه هغوي دې آدم علیه السلام ته سجده د تعظیم اوکړي. فرښتو د حکم تعمیل اوکړو مګر ابلیس په بحث شروع شو چه زه د ده نه بهتر یم او غوره یم او غوره ته دا حکم ورکول چه هغه د دې د مفضول په وړاندې تعظیماً ټنډې اومږي خلاف اولی دي.

(أن تسجد) وئیلو سره امام بخاری رحمه الله په دې باندې تنبیه اوفرمائیله چه کلمه لا زائده ده. بعض حضراتو دا تاویل

---

[1] الباب التأويل للعلامة خازن البغدادي: ۳/۵٤دارالكتب العلمية بيروت.

[2] سورة الأعراف: ۱۸۹.

[3] مجاز القرآن لأبي عبيدة، سورة الأعراف: ۱/۲۳۶مكتبة الخانجي بالقاهرة. فتح الباري: ۶/۲۶٤دارالمعرفة. عمدة القاري: ۱۵/۲۰۵إدارة الطباعة المنيرية.

[4] عمدة القاري: ۱۵/۲۸۲ دارالكتب العلمية.

[5] مجاز القرآن لأبي عبيدة، سورة الأعراف: ۱/۲۱۱مكتبة الخانجي بالقاهرة.

هم كړې دي چه لا زائده نه دي بلكه دلته حذف دي. دَ كوم تقدير چه داسې دي: «مامنعك من السجود فحملك على أن لا تسجد»[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله دلته دَ باب اضافه نه ده كړې بلكه دَهغوى دَ نسخې مطابق دا قول «باب خلق آدم وذريته» لاندې داخل دي. [2] خوعلامه عينى رحمه الله دَ باب اضافه كولو سره دي ته دَ مستقل باب حيثيت وركړې دي. [3]

**قوله: "خليفة"** : «من يخلف غيره ويقوم مقامه»، يعنى خليفه هغه ته وائي چه پخپله دَ اولنى سړي نائب جوړيدو سره كارونه سر ته رسوى. دَمفسرينو په مينځ كښې اختلاف دې چه دلته دَ خليفه نه مراد څوك دي؟

① دَ بعض حضراتو وينا ده چه دَدې نه صرف حضرت آدم عليه السلام مراد دې. دَهغه خليفه كيدل خو يا په دې معنى باندې دى چه الله تعالى حضرت آدم عليه السلام دَ جنات نه پس زمكې ته راوليږلو اويا په دې معنى كښې دي چه حضرت آدم عليه السلام دَ الله تعالى خليفه دې چه دَخلقو په مينځ فيصله كولو كښې دَ الله تعالى دَ طرف نه نائب دې او ﴿ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ ﴾ كښې اولاد آدم مراد دي. [4]

② علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دَ اكثر مفسرينوحضراتو رائې داده چه دَ خليفه نه صرف حضرت آدم عليه السلام مراد نه دې بلكه دَهغوى اولاد هم مراد دي ځكه چه دَ روستوجملې ﴿ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا ﴾ نسبت دَحضرت آدم عليه السلام طرف ته په هيڅ شان سره مناسب نه دي. [5]

## ۲- باب: قول الله تعالى

## ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّى جَاعِلٌ فِى الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾/البقرة: ۳۰/.

دَ سورت بقره آيت دې: ﴿ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّى جَاعِلٌ فِى الْأَرْضِ خَلِيفَةً ۖ قَالُوٓا۟ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ۖ قَالَ إِنِّىٓ أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ يعني: چه كله ستاسو رب فرښتو ته اووئيل چه زه يقيناً په زمكه كښې خليفه پيدا كونكې يم نو فرښتو عرض اوكړو، آيا ته به په زمكه كښې هغه څوك پيدا كوې چه هلته به فسادونه كوى او وينې به توييوى. مونږ ستا دَ تحميد سره ستا تسبيح بيانوو اوستا پاكى بيانوو. الله تعالى اوفرمائيل حقيقت دا دې چه زه هغه څه پيژنم كوم چه تاسو نه پيژنئ.

مفسرين حضرات فرمائى چه دَ اصلاح عمل هلته وى چرته چه دَ فساد وجود وى. نوچه كله فرښتو ته داخبره اوخودلې شوه چه په زمكه كښې دَ الله تعالى دَ خليفه انتخاب شوې دې نو په دې سره هغوى پوهه شوې چه په دنيا كښې به دَ فساد خورونكې خامخا وى ځكه چه دَ خليفه انتخاب دَ اصلاح دَ پاره كولې شى اودَ اصلاحى عمل ضرورت هله وى كله چه فساد وى. يا بيا فرښتو دَ انسان دَ تخليقى عناصر نه دا ګڼرلې وو چه په دوى كښې به دَ فساد خورونكې هم وى او يا فرښتو په جناتو باندې قياس كولو سره اووئيل چه دَهغوى په شان به په دوى كښې هم فساد كونكې وى. په دې وجه هغوى دَ الله تعالى په حكمت باندې دَ پوهيدلو په غرض سره عرض اوكړو چه اې زمونږ معبود! دَداسې كسانو په پيدا كولو كښې څه حكمت دې په كومو كښې چه به دَ فساد خورونكې هم

---

[1] فتح البارى: ۳۶۵/۶ عمدة القارى: ۲۰۵/۱۵ دار الكتب العلمية.

[2] فتح البارى: ۳۷٤/۶ دار المعرفة.

[3] عمدة القارى: ۲۸۲/۱۵ دار الكتب العلمية.

[4] تفسير الإمام الرازى، سورة البقرة: ۱۸۱/۲-۱۸۰ دار الفكر، عمدة القارى: ۲۸۲/۱۵ دار الكتب العلمية.

[5] تفسير الإمام الرازى، سورة البقرة: ۱۸۱/۲-۱۸۰ دار الفكر، عمدة القارى: ۲۸۲/۱۵ دار الكتب العلمية.

وی؟ که مقصد عبادت وی نو دَ هغې دَ پوره کولو دَپاره هم مونږ موجود یو او مونږ تول په توله باندې مطیع او حکم منونکی یو هیڅ یو فساد کونکې نشته دې. بیا په مونږ باندې ولې کفایت اونه کړې شو؟ په جواب کښې الله تعالی ارشاد اوفرمائیلو چه دَ انسان په تخلیق کښې موجود حکمتونه او مصلحتونه زه پیژنم تاسو ئې نه پیژنئی.(١)

فرښتو ته الله تعالی خودلې وو چه په زمکه کښې به داسې مخلوق وی چه فساد به کوی اووینې به تویوی په دې وجه هغوی هغه خبره اوکړه کومه چه ﴿أَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا﴾ کښې ذکر فرمائیلې ده او داسې وینا کول دَ اعتراض په توګه سره نه وو ځکه چه په الله تعالی باندې اعتراض کول کفر دې او فرښتې دَ کفر او معصیت نه معصوم دی.

چنانچه ﴿لَا يَسْبِقُونَهُ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِأَمْرِهِ يَعْمَلُونَ﴾ (٢) او ﴿لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ﴾ (٣) کښې تصریح ده چه هغوی دَ الله تعالی دَ یو حکم نه یو ذره هم ډډه نه کوی او بغیر دَ څه بحث نه په هغې باندې عمل کوی.(٤)

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿لَمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ﴾/الطارق: ۴/: إِلَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ. ﴿فِي كَبَدٍ﴾/البلد: ۴/: فِي شِدَّةِ خَلْقٍ. ﴿وَرِيشًا﴾/الأعراف: ۲۶/: المَالُ. وَقَالَ غَيْرُهُ: الرِّيَاشُ وَالرِّيشُ وَاحِدٌ، وَهُوَ مَا ظَهَرَ مِنَ اللِّبَاسِ. ﴿مَا تُمْنُونَ﴾/الواقعة: ۵۸/: النُّطْفَةُ فِي أَرْحَامِ النِّسَاءِ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿إِنَّهُ عَلَى رَجْعِهِ لَقَادِرٌ﴾/الطارق: ۸/: النُّطْفَةُ فِي الإِحْلِيلِ.

**قوله: ﴿لَمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ﴾: إِلَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ:** دَ سورت طارق آیت دې: ﴿إِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ﴾ یعنی یو ځان داسې نه دې دَ کوم چه څوک خیال ساتونکې موجود نه وی. دا کلام دَ سابق دَپاره جواب قسم دې په کوم کښې چه دَ سماء او طارق قسم دې.(٥)

په لغت هذیل کښې (لَمَّا) حرف استثناء دَ (الا) معنی ورکوی او امام بخاری رحمه الله دَدې اعتراف کولو سره دَ آیت تفسیر کړې دې. ابن عامر رحمه الله حمزه رحمه الله او کسائی رحمه الله نه دَدې آیت قراءت (لَمَّا) دَ میم تشدید سره نقل دې کوم چه ابن ابی حاتم رحمه الله موصولاً نقل کړې دې.(٦) او په هغې کښې دَ لفظ (ملائکة) یعنی (الاعلیها حافظ من الملائکة) مطلب دادې چه دَ هر انسان دَ حفاظت او خیال ساتلو دَپاره فرښتې مقرر دی چه هغه دَ مشکلاتونه او دَ مصائبو نه بچ کوی.(٧) دویم قراءت (لَمَا) دَ میم تخفیف سره دې په دې صورت کښې به إن نافیه نه وی بلکه مخففه من المثقلة به وی او ما به موصوله ګرځولې شی. او اصل عبارت به داسې شی (ان کل نفس لعلیها حافظ) دا مضمون په صراحت سره په دې آیت کښې هم راغلې دې: ﴿لَهُ مُعَقِّبَاتٌ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ﴾ یعنی دَ انسان دَپاره وار په وار باندې راتلونکې فرښتې مقرر دی چه دَ الله تعالی په حکم باندې دَ هغه نه وړاندې روستو دَ هغه حفاظت کوی.(٨)

دَدې آیت لاندې امام قرطبی رحمه الله دَ حضرت ابوامامه رضی الله عنه یو روایت نقل کړې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی دَ هر مومن دَ حفاظت دَپاره الله تعالی درې سوه شپیته حفاظت کونکې فرښتې مقرر کړی دی چه دَ انسانانو دَ هر

---

(١) تفسیر ابن کثیر: ١٢٤/١ دارالکتب العلمیة الجامع لأحکام القرآن للقرطبی: ٤٠٩/١ مؤسسة الرسالة.
(٢) سورة الأنبياء: ٢٧.
(٣) سورة التحريم: ۶
(٤) تفسیر ابن کثیر: ١٢٤/١ دارالکتب العلمیة الجامع لأحکام القرآن للقرطبی: ٤٠٩/١ مؤسسة الرسالة.
(٥) الجامع لأحکام القرآن: ٢٠٤/٢٢ فتح الباری: ٤٩/٨ عمدة القاری: ٢٨٣/١٥ دارالکتب العلمیة.
(٦) تفسیر ابن أبی حاتم سورة الطارق: ٣٤١٥/١ رقم الحدیث: ١٩٢١، مکتبة نزار مصطفی الباز.
(٧) إرشاد الساری: ٢٣١/٧ عمدة القاری: ٢٨٣/١٥ دارالکتب العلمیة، فتح الباری: ٣٦٥/٦.
(٨) سورة الرعد: ١١.

يو اندام حفاظت کوي. په دوی کښې صرف اووه فرښتې د انسان د سترګو حفاظت باندې مامور دي. چنانچه کوم مصيبت د انسان د پاره مقررنه وي نو دا فرښتې هغه مصيبت د انسان نه داسې لرې کوي لکه په شاتو کښې کېخودې شوي لوښي باندې راتلونکی مچان چه د پنکهی وغيره په ذريعه سره لرې کولې شي. د روايت په آخر کښې دي که د چا په حفاظت باندې دا فرښتې مامور نه وې نو شيطانانو به دی اوچت کړې وي.[1]

**قوله: ﴿فِيْ كَبَدٍ﴾: فِيْ شِدَّةِ خَلْقٍ:** د سورة البلد آيت دې. ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ فِيْ كَبَدٍ﴾ [۴] حقيقت دا دې چه مونږ انسان په ډير لوئي مشقت کښې پيدا کړې دې. د کبد معنی ده مشکل سختی او مشقت.[2] امام بخاري رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کولو سره (فی کبد) تفسير (فی شدة خلق) سره کړې دې. د ابن عباس رضي الله عنهما روايت ابن عيينه رحمه الله په خپل تفسير کښې او حاکم رحمه الله په مستدرک کښې نقل کړې دې.[3] په دې روايت کښې د آيت تفسير کولو سره ابن عباس رضي الله عنهما د حمل د اول مودې نه واخله تر مرګه پورې او بيا د ميدان حشر پورې مشقتونو ذکر کړې دې چه څنګه انسان د مور په رحم کښې بند اوسيږي. بيا د وضع حمل په وخت تکليف برداشت کول، کله چه غاښونه راوځي نو بيا هم په مشقت کښې اخته وي. د عاقل بالغ کيدو نه پس د معاش او روزګار فکر کوي په بوډاوالي کښې د ضعف او وهن مشقتونه برداشت کوي. په آخره کښې د مرګ سختئ د قبر تيارې د ميدان حشر خطرې. الغرض ابن عباس رضي الله عنهما د مشقتونو او تکليفونو دغه ټولو مراحلو او ادوارو ذکر کړې دې د کوم نه چه نه غوښتلو سره به هم دانسان تيريدل کيږي. علامه کوراني رحمه الله هم د (فی کبد) توضيح کولو سره هم دا تفسير اختيار کړې دې چه انسان د خپل پيدائش نه واخله تر د جنت د داخليدو پورې بوشان د مشقتونو په سفر کښې وي.[4] او هم دغه د آيت تفسير دې.

**﴿وَرِيشًا﴾: الْمَالُ. وَقَالَ غَيْرُهُ: الرِّيَاشُ وَالرِّيشُ وَاحِدٌ، وَهُوَ مَا ظَهَرَ مِنَ اللِّبَاسِ:** د سورة اعراف آيت دې. ﴿يَا بَنِي آدَمَ قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَارِي سَوْآتِكُمْ وَرِيشًا﴾ [۲۶] اې د آدم اولاده مونږ ستاسو د پاره لباس پيدا کړو، چه ستاسو ستر هم پټوي او د زينت سبب هم دې. لفظ ريش اکثر قراؤ بغير د الف نه وئيلې دې البته حسن بصري رحمه الله په حواله سره نقل دی چه هغه رياش الف سره وئيلو. صحيح قراءت بغير د الف نه دې ځکه چه معتبر او مستند قراؤ هم په دې باندې اجماع ده.[5] دا لفظ ريش بغير د الف نه جمع او وئيلې شی لکه د ذنب جمع ذناب او بئر جمع بئار هم راځي دويم احتمال دا دې چه دې نه مصدر مراد دې چنانچه وئيلې کيږي (راشه الله يريشه ريشا ورياشا وريشا) لکه (لبسه يلبسه لباسا ولبسا) چه وئيلې شي.[6]

(رياش) جمع ده د (ريشة) او (ريشة) په اصل کښې د مرغو وزرو ته وائي. لکه څنګه چه د انسان د پاره لباس د ښکلا

---

[1] الجامع لأحكام القرآن للقرطبي، ۲۰۵/۲۲قال أبوأمامة: قال النبی صلی الله عليه وسلم: وكل بالمؤمن مأة وستون ملكايذبون عنه ما لم يقدر عليه، من ذلک البصر، سعة أملاک يذبون عنه، كما يذب عن قصعة العسل الذباب ولو وكل العبد إلى نفسه طرفة عين لا ختطفته الشياطين. رواه بهذا اللفظ الديلمی فی الفردوس بمأثور الخطاب، رقم الحديث: ۷۱۱۷، ۲۸۳/٤ دارالكتب العلمية.

[2] النهاية لابن الأثير: ۵۱۵/۲دارالمعرفة.

[3] المستدرک على الصحيحين للحاكم، كتاب التفسير سورة البلد: ۶۱۶/۲رقم الحديث: ۳۹۹۱، دارالحرمين، عمدة القاري: ۲۸۳/۱۵دارالكتب العلمية.

[4] غاية الأماني فی تفسير الكلام الرباني، ص: ۳۹۱ جامعة صاقريا كلية العلوم الاجتماعية تركيا.

[5] تفسير الطبري: ۱۲۲/۱۰دارهجر.

[6] جامع البيان عن تأويل أی القرآن المعروف بتفسير الطبري: ۱۲۲/۱۰دار هجر للطباعة.

سبب دي دغه شان دَ مرغانو وزرې اوو ښتنه دَهغوی دپاره رونق او ښائست دي. لکه چه دَ «ریشة» اطلاق په زیب اوزینت باندې علی سبیل المجاز شوی دي.[۱]

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي دي نه مال مراد دي.[۲]

امام بخاری رحمه الله هم ددوی قول نقل کړی دي. علامه طبری رحمه الله اوعلامه خازن رحمه الله فرمائی چه دَ لفظ ریش په معنی کښې اختلاف دي. دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په نیز دي نه مال مراد دي اوهم دغه رائي دَ مجاهد رحمه الله ضحاک رحمه الله او اسدی رحمه الله ده. ځکه چه مال هم دَ زینت په اسباب کښې داخل دي. چنانچه عرب دَ مالدار سړی باره کښې وائي «تریش الرجل» چه هغه مالدار جوړشو. ابن زید رحمه الله وائی دَ ریش نه حسن او جمال مراد دي دا تقریباً دَ زینت په شان معنی ده. دَ بعض حضراتو په نیز ریاش په عربی ژبه کښې اثاثه سامان او هغه کپړو ته وئیلی شی کومې چه اغوستلې یا خورولې شی. دَهغوی په نیز ریش هم مال اومتاع ته وائی. اکثر وختونوکښې عرب خلق دا لفظ صرف دلباس او کسوه په معنی کښې استعمالوی. چنانچه وئیلی شی «انه لحسن الریش» یعنی دَ ده کپړې ښکلې دی. بعض اهل لغت ریش او ریاش دَ فراخی او خوشحالئی په معنی کښې هم اخستې دي.[۳]

**قوله:- ﴿مَا تُمْنُونَ﴾: النُّطْفَةُ فِي أَرْحَامِ النِّسَاءِ:** دَ سورت واقعه آیت دي. ﴿أَفَرَءَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ۝ ءَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُونَ ۝﴾[۴] تاسو دا اوښایئی چه کومه منی تاسو (رحم کښې) رسوئی دَ دغه منی نه انسان تاسو جوړوئی یا مونږ ئې جوړوو. (منی الرجل وأمنی) معنی ده منی څڅول، معنی اچول.[۵] ددې تفسیر کولوسره امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل چه دا تاسو کوم دَمنی نطفه دَ ښځو په رحمونو کښې اچوئی. امام بخاری رحمه الله چه داکوم تفسیر نقل کړې دي دادَ امام فراء رحمه الله قول دي.[۶]

**وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿إِنَّهُۥ عَلَىٰ رَجْعِهِۦ لَقَادِرٌ﴾: النُّطْفَةُ فِي الْإِحْلِيلِ:** دَ سورت طارق آیت دي. ﴿إِنَّهُۥ عَلَىٰ رَجْعِهِۦ لَقَادِرٌ ۝﴾ بیشکه الله تعالی دَ نطفه په واپس راګرځولو باندې قادر دي. امام بخاری رحمه الله دَ مجاهد رحمه الله قول نقل کړی دي.[۷] اودَ آیت مطلب ئې دا بیان کړې دي چه نطفه دَ سړی دَ صلب نه اوځی که چرې الله تعالی اوغواړی نو دا به صلب (ملا) ته واپس راګرځوی.

ابن زید رحمه الله وائي «انه علی حبس ذلك الماء لقادر» یعنی دآیت مطلب دادې چه الله تعالی دَ دغه نطفې په بندولو باندې قادر دي.[۸] خود قتاده رحمه الله په نیز دَ آیت مطلب دادې چه الله تعالی دَ انسان دَ مرګ نه پس دوباره راګرځولو او ژوندی کولوباندې قادر دي.[۱] اوهم دغه تفسیر دَ سیاق کلام موافق دي. ځکه چه دي پسې آیت ﴿يَوْمَ تُبْلَى السَّرَآئِرُ ۝﴾

---

[۱] لباب التأويل في معاني التنزيل المعروف بتفسير الخازن سورة الأعراف: ۲۶، ۲/۱۹۰دارالكتب العلمية.

[۲] تفسير ابن عباس المسمى ب صحيفة عامر بن أبي طلحة، عن ابن عباس في تفسير القرآن العظيم، سورة الأعراف ص: ۲۲۴مؤسسة الكتب الثقافية، تفسير الطبري: ۱/۱۲۳دار هجر.

[۳] تفسير الطبري سورة الأعراف: ۱۰/۱۲۳-۱۲۲ دارالكتب العلمية، ولباب التأويل في معاني التنزيل، سورة الأعراف: ۲۶، ۲/۱۹۱ دارالكتب العلمية.

[۴] سورة واقعة: ۵۸

[۵] النهاية في غريب الحديث: ۴/۳۶۸دار إحياء التراث العربي، عمدةالقاري: ۱۵/۲۸۳.

[۶] معاني القرآن للفراء رحمه الله، سورة الواقعة: ۳/۱۲۸دار عالم الكتب، عمدةالقاري: ۱۵/۱۸۳دارالكتب العلمية.

[۷] أخرجه الطبري في جامع البيان: ۲۴/۲۹۷وتفسير البغوي: ۸/۳۹۴دارطيبة.

[۸] أيضاً: ۲۴/۲۹۹وتفسير الثعلبي: ۱۰/۱۸۰دارإحياء التراث العربي.

كښې دَ قيامت ذكر دې نو په دې قرينه سره (رجعه) ضمير دَانسان طرف ته راجع دې. او مراد دَ قيامت په ورځ راګرځول دي نو لكه چه دَمجاهد رحمه الله تفسير دَ سياق كلام خلاف دې. دا رائې دَامام طبرى رحمه الله امام بغوى رحمه الله علامه خازن رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله ده.[۱][۲] دَ بخاري دَ شراح نه حافظ ابن حجر رحمه الله په دې مقام باندې دَ قول اصح تصريح كړې ده.[۳] خو علامه عيني رحمه الله او قسطلاني رحمه الله دلته په خاموشئ سره تيرشوى دى.

وَكُلُّ شَيْءٍ خَلَقَهُ فَهُوَ شَفْعٌ، السَّمَاءُ شَفْعٌ، وَالْوِتْرُ اللهُ عَزَّوَجَلَّ.

يعنى څومره څيزونه چه هم الله تعالى پيدا كړى دى هغه ټول جوړه جوړه پيدا كړى. آسمان دَ زمكې جوړه ده، نمر دَ سپوږمئ جوړه ده جن دَ انسان جوړه ده او طاق صرف دَ الله تعالى ذات دې. (دَ چا چه هيڅ جوړ نشته). علامه عيني رحمه الله او فرمائيل چه امام بخارى رحمه الله دلته دَ سورت ذاريات آيت: ﴿وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ﴾[۴] طرف ته اشاره كړې ده، يعنى الله تعالى ټول مخلوقات شفع جوړه پيدا كړى دى. امام بخارى رحمه الله دَ امام مجاهد رحمه الله قول نقل كړې دې.[۵] دا قول فريابى رحمه الله او طبرى رحمه الله موصولاً روايت كړې دې. پوره روايت دا دې: (كل خلق الله شفع: السماء والأرض شفع، والبر والبحر، والجن والإنس، والشمس والقمر ونحو هذا شفع والوتر الله وحده)[۶] يعنى دَ الله تعالى ټول مخلوقات جوړه جوړه دى. زمكه آسمان برو بحر جن وانس، نمر سپوږمئ او دغه شان نور ټول مخلوقات جوړه جوړه دى او وتر يعنى يوازې دَ الله تعالى ذات دې.

امام طبرى رحمه الله دَمجاهد رحمه الله قول په بل طريق سره نقل كړې دې. دَهغې الفاظ دا دى: (عن مجاهد أنه قال فى قوله تعالى ﴿وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ﴾ الكفر والإيمان، والشقاوة والسعادة، والهدى والضلالة، والليل والنهار، والسماء والأرض، والجن والإنس والوتر الله)[۷] يعنى مجاهد رحمه الله دَ آيت تفسير كولو سره فرمائى چه كفر او ايمان، سعادت او شقاوت، هدايت او ګمراهى، شپه او ورځ، زمكه او آسمان، بر او بحر، نمر او سپوږمئ، جن او انس ټول جوړه جوړه دى او وتر خانله دَ الله تعالى ذات دې.

قوله: السَّمَاءُ شَفْعٌ، وَالْوِتْرُ اللهُ عَزَّوَجَلَّ: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَامام بخارى رحمه الله دَدې عبارت نه په ظاهره اشكال پيدا كيږى چه دَ آسمانونو شمير اووه دې خودَ اووه په عدد باندې دَ شفع اطلاق نشته نو بيا دا (السماء شفع) وئيل ټيك نه دى. دَدې جواب حافظ ابن حجر رحمه الله دا وركړې دې چه په حقيقت كښې دَ مجاهد رحمه الله دَ قول مطلب دا دې چه هر هغه څيز دَكوم چه ضد او مقابل وى نو هغه دَ خپل ضد او مقابل په نسبت كښې شفع ياديږى لكه دَ آسمان ضد زمكه او دَ انسان ضد جن دې.[۸]

دَ شفع او وتر په تفسير كښې مختلف اقوال نقل دى. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او فرمائيل چه دَ وتر نه يوم عرفه او دَ شفع نه ايام نحر مراد دى.[۱] عمران بن حصين رضي الله عنه وائى چه دې نه جفت او طاق مونځونه مراد دى. مقاتل بن

---

[۱] تفسير البغوى: ۳۹۴/۵.

[۲] جامع البيان: ۳۰/۳۰۰دارهجر، وتفسير البغوى: ۳۹۴/۵دارطيبة، ولباب التأويل للخازن: ۴۶۱/۴طبعه حسن جلبى الكتبى ومحمد حسن جيالى، وفتح البارى: ۴۵۰/۸.

[۳] معانى القرآن للفراء رحمه الله سورة الواقعة: ۱۲۸/۳عالم الكتب، عمدة القارى: ۲۸۳/۱۵دارالكتب العلمية

[۴] سورة الذاريات: ۴۹.

[۵] عمدة القارى: ۲۸۴/۱۵دارالكتب العلمية، جامع البيان فى تفسير القرآن:۵۴۷/۲۱، ۳۵۱/۲۴دارهجر.

[۶] جامع البيان فى تفسير القرآن: ۳۵۱/۲۴دارهجر.

[۷] جامع البيان فى تفسير القرآن: ۵۴۷/۲۴، ۳۵۱/۲۴دارهجر.

[۸] فتح البارى: ۳۶۵/۶دار المعرفة.

حیان رحمه الله فرمائی چه شپې او ورځې شفع دی او وتر به د قیامت ورځ وي. د کومې نه پس چه به شپه نه وي.(۲) د تفصیل د پاره تفسیر کبیر د تکمله طرف ته مراجعت اوکړئی په کوم کښې چه د شفع او وتر باره کښې شل اقوال نقل کړې شوي دي.(۳)

امام رازی رحمه الله فرمائی چه د آیات د ظاهر نه مستفاد کیږی چه شفع او وتر دواړه معزز شرف دی. کوم سره چه الله تعالی رب العزت قسم خوړلې دې اوپاتې شوه خبره د دغه پورتنو احتمالاتو (تفسیر رازی کښې) نو په شفع او وتر کښې جمله تاویلاتو احتمال دې څه یو تاویل متعین نه دې. نه د یو طرف ته څه اشاره په آیتونو کښې موجود ده. که په یو تاویل باندې څه حدیث د نبی کریم ﷺ نه متصل ثابت کیږی یا د اهل تاویل په یو تاویل باندې اجماع کیږی نو یقیناً هم په هغه تاویل مراد کیدلو به قطعی حکم ورکولې شی. په بل صورت به کلام په یو تاویل کښې قطعیت سره نه شی اخستې. بلکه کلام به د هر تاویل په جواز باندې ساتلې شی. بل دا هم کولې شی چه شفع او وتر په جمله تاویلاتو باندې محمول دې. ځکه چه شفع او وتر کښې د عموم فائده ورکولې کیږی.(۴)

حافظ ابن جریر طبری رحمه الله په دې اختلاف کښې تطبیق ورکولو سره فرمائیلی چه عقلاً یا روایتاً د شفع او وتر یو قسم متعین کولې نه شی. چونکه الله تعالی د هر شفع او وتر قسم خوړلې دې. په دې وجه مفسرینو د شفع او وتر کوم کوم مصداق خودلی دی هغه ټول به د دې قسم په عموم کښې داخل وي.(۵)

(فِيٓ أَحۡسَنِ تَقۡوِيمٖ)/التين: ۴: فی أحسن خلق. (أَسۡفَلَ سَٰفِلِينَ)/التين: ۵: إلا من آمن. (خُسۡرٍ)/العصر: ۲: ضلال، ثم استثنی إلا من آمن. (لَّازِبٖ)/الصافات: ۱۱: لازم. (نُنشِئَكُمۡ)/الواقعة: ۶۱: فی أی خلق نشاء. (نُسَبِّحُ بِحَمۡدِكَ)/البقرة: ۳۰: نعظمك.

(فِيٓ أَحۡسَنِ تَقۡوِيمٖ): فی أحسن خلق. (أَسۡفَلَ سَٰفِلِينَ): إلا من آمن: امام بخاری رحمه الله د سورت التین آیات نقل کولو سره د مجاهد رحمه الله په قول سره د دې تفسیر کړې دې. (لَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ فِيٓ أَحۡسَنِ تَقۡوِيمٖ) [۴] یعنی حقیقت دادې چه مونږ انسان د ټولو نه ښه سانچه کښې پیدا اکړو. مجاهد رحمه الله فرمائیلی (فی أحسن خلق) یعنی په شکل او صورت، د اندامونو اوقد اوقامت په لحاظ سره دې په ښکلې شکل سره تخلیق کړو.(۶) (ثُمَّ رَدَدۡنَٰهُ أَسۡفَلَ سَٰفِلِينَ) بیا مونږ دې د اسفل السافلین طرف ته راؤګرځولو. د دې نه روستو آیات کښې د اهل ایمان ذکر دې چه صالحین اهل ایمان به د اسفل سافلین نه محفوظ وي.

د اسفل السافلین نه څه مراد دې؟ د بعض مفسرینو حضراتو رائې داده چه دې نه بوډاوالې مراد دې. او مطلب دا دې چه مونږ د ځوانئی نه پس انسان د بوډاوالی اوهرم (ضعف) طرف ته راؤګرځوو. په کوم کښې چه هغه بدنی طاقت ختموی او د عمل قابل نه پاتې کیږی مګر اهل ایمان د دې نه مستثنی دی هغوی به د بوډاوالی خراب حالت ته رسیدو سره هم په ایمان او نیک عمل باندې قائم وي او د ځوانئی په زمانه کښې چه به ئې کوم نیک اعمال کول د هغې ثواب په بوډاوالی کښې هم هغوی ته برابر ملاویږی.

---

(۱) جامع البیان فی تفسیر القرآن: ۳۴۹/۲۴دارهجر، شعب الإیمان للبیهقی، الباب الثالث والعشرون، وهو باب فی الصیام، تخصیص أیام العشر من ذی الحجة إلخ: ۳۰۶/۵ رقم الحدیث: ۳۴۷۰، مکتبة الرشد.

(۲) جامع البیان فی تفسیر القرآن: ۳۵۴/۲۴-۳۵۳دار هجر.

(۳) مفاتیح الغیب المسمی بتفسیر الإمام الرازی: ۱۶۵/۳۱-۱۶۳دارالفکر.

(۴) تفسیر الإمام الرازی: ۱۶۵/۳۱دار الفکر.

(۵) جامع البیان للطبری: ۳۵۶/۲۴-۳۵۵دارهجر. قال: والصواب من القول فی ذلک أن یقال إن الله تعالی أقسم بالشفع والوتر لم یخصص نوع من الشفع ولا من الوتر دون نوعاً بخبر ولا عقل، وکل شفع ووتر فهو مما أقسم به مما قال أهل التاویل انه داخل فی قسمه هذا، لعموم قسمه بذلک.

(۶) تفسیر مجاهد، سورة التین، ص: ۳۴۴، دارالکتب العلمیة، جامع البیان: ۵۱۲/۲۴دارهجر.

بعض حضراتو فرمائيلي دى دې نه جهنم مراد دې او مطلب دا دې چه په آخرت كښې به بنكلې شكل صورت او قامت د ايمان اونيك عمل نه بغير هيڅ په كار نه راځي. كوم خلق چه دكفر په حالت كښې پاتې دى هغه به د دوزخ آخرى لاندې درجې ته ځي. كومو خلقو چه د دې نعمت شكر اداكړو او ايمان ئې راوړو هغوى د دوزخ نه محفوظ پاتې شو. دا قول د حسن رحمه الله قتاده رحمه الله او مجاهد رحمه الله دې.(١)

علامه طبرى رحمه الله فرمائي چه زما په نيز اوله توجيه ډيره راجح ده ځكه چه په خصم باندې حجت په داسې دليل سره قائم كيږي د كوم په دفاع باندې چه قادر نه وي. بل د خصم په نيز هغه دليل مسلم وي چه د هغې تعلق مشاهداتو سره وي يا محسوساتو د قبيل نه وي. داسې خبره د دليل په توګه نه پيش كولې چه د خصم په نيز د اول نه غير مسلم وي. په سورت التين كښې د هغه خلقو دلائل بيان كړې شوى دى څوك چه د بعث بعد الموت نه منكر وو. چنانچه هم د دې سورت په آخر كښې دى: ﴿فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّينِ﴾ د كوم نه چه معلوميږى چه مخاطبين د بعث بعد الموت انكاري وو. اوس كه چرته موږ دويم احتمال واخلو نو په دغه صورت كښې به هم داسې شى لكه چه د منكرين بعث بعد الموت مخې ته داسې دليل پيش كړې شى دكوم نه چه هغوى منكر دى. خو د اول احتمال په صورت كښې دا خرابى لازم نه راځي. ځكه چه د انسان د پيدائش نه واخله د هرم او ضعف پورې ټول مراحل د دغه خلقو په مشاهده كښې وو او دا خبره د بعث بعد الموت د پاره د دليل په توګه پيش كولې شى په دې معنى چه كوم الله تعالى انسان د تخليق د دې مراحلو نه تيره وى هغه د انسان د مرګ نه پس په دوباره راژوندى كولو باندې هم يقيناً قادر دې.(٢)

﴿خُسْرٍ﴾: ضَلَالٌ، ثُمَّ اسْتَثْنَى إِلَّا مَنْ آمَنَ: د سورت العصر آيت دې: ﴿وَالْعَصْرِ ۝ إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ ۝﴾ [١،٢] يعنى د زمانې قسم، انسان په حقيقت كښې په لوئى نقصان كښې دې. امام بخارى رحمه الله د خسر تفسير ضلال (ګمراهئ) سره كړې دې. امام بخارى رحمه الله وائي (ثم استثنى فقال إلا من آمن) يعنى بيانى د هغې نه ايمان والا مستثنى كړل. دا د مجاهد رحمه الله قول دې او فريابى رحمه الله دا موصولاً روايت كړې دې.(٣) دې نه مخكښې آيت كښې د مستثنى تصريح ده: ﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ نو (إلا من آمن) الفاظ د دې آيت تفسير بالمعنى دې.(٤)

﴿لَازِبٍ﴾: لَازِمٌ: د سورت صافات آيت دې: ﴿إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ مِنْ طِينٍ لَازِبٍ ۝﴾ [١١] يعنى موږ انسان د متينې خټې نه پيدا كړو. ابوعبيده رحمه الله د (لازب) معنى لازم كړې ده.(٥) (لازم) او (لازب) د يوې معنى الفاظ دى. د اكثر اهل لغت په نيز د (لازب) باء په حقيقت كښې ميم سره بدل كړې شوې ده. نو امام بخارى رحمه الله دلته د (لازب) تفسير بالمعنى كړې دې.(٦) د بعض حضراتو په نيز دا (منان) په معنى كښې دې يعنى بدبوئى داره.(٧)

﴿نُنْشِئَكُمْ﴾: فِي أَيِّ خَلْقٍ نَشَاءُ: د سورت واقعه آيت دې: ﴿وَنُنْشِئَكُمْ فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝﴾(٨) يعنى تاسو په داسې صورت كښې

---

(١) جامع البيان للطبرى: ٥١٣-٥١٥/٢٤دارهجر، روح المعانى: ٣٩٦/١٥دار الكتب العلمية.

(٢) جامع البيان، المعروف بتفسير الطبرى: ٥١٦/٢٤دارهجر.

(٣) إرشادالسارى: ٢٣٢/٧تفسير الإمام مجاهد، سورة العصر، ص: ٣٥٣رقم الحديث: ٢٠٦١دارالكتب العلمية، فتح البارى:٣٦٥/٦دارالمعرفة.

(٤) إرشادالسارى: ٢٣٢/٧ فتح البارى:٣٦٥/٦دارالمعرفة.

(٥) مجاز القرآن لابن ابوعبيدة: ١٦٧/٢مكتبة الخانجى بالقاهرة، فتح البارى: ٤٥١/٨ وإرشادالسارى:٢٣٢/٧.

(٦) فتح البارى: ٤٥١/٨ إرشادالسارى: ٢٣٢/٧.

(٧) إرشادالسارى: ٢٣٢/٧.

(٨) سورة الواقعة:٦١

پیدا اکوو کوم چه تاسو نه پیژنئی. حضرت حسن بصری رحمه الله د آیت مطلب دا بیان کړې دې چه مونږ په دې باندې قادر یو چه ستاسو صورتونه مسخ کړو بیزوګان او خنزیران درنه جوړ کړو. پخوانی امتونه هم په دې عذابونو سره عذاب کړې شوې وو. (۱) او دلته (فی أی خلق لشاء) تفسیر دې د (فیما لاتعلمون). (۲)

﴿نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ﴾: نُعَظِّمُكَ: سورت بقره کښې دی: ﴿وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ﴾ [۳۰] یعنی مونږ ستا تسبیح بیانوو کوم چه حمد سره یوځائې شوی دی او ستا پاکی بیانوو. مجاهد رحمه الله د دې تفسیر کړې دې (نعظمك ونكبرك) مطلب دا دې چه مونږ ستا تعظیم کوو او ستا لوئی بیانوو. دلته امام بخاری رحمه الله د مجاهد رحمه الله قول نقل کړې دې. (۳)

وَقَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ: ﴿فَتَلَقَّى آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ﴾/البقرة: ۳۷/: فَهُوَ قَوْلُهُ: ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا﴾/الأعراف: ۲۳/. ﴿فَأَزَلَّهُمَا﴾/البقرة: ۳۶/: فَاسْتَزَلَّهُمَا. ﴿يَتَسَنَّهْ﴾/البقرة: ۲۵۹/: يَتَغَيَّرْ. ﴿آسِنٍ﴾/محمد: ۱۵/: مُتَغَيِّرٍ. وَالْمَسْنُونُ الْمُتَغَيِّرُ. ﴿حَمَإٍ﴾/الحجر: ۲۶/: جَمْعُ حَمْأَةٍ وَهُوَ الطِّينُ الْمُتَغَيِّرُ. ﴿يَخْصِفَانِ﴾/الأعراف: ۲۲/: أَخْذُ الْخِصَافِ مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ، يُؤَلِّفَانِ الْوَرَقَ وَيَخْصِفَانِ بَعْضَهُ إِلَى بَعْضٍ. ﴿سَوْآتُهُمَا﴾/الأعراف: ۲۲/: كِنَايَةٌ عَنْ فَرْجِهِمَا. ﴿وَمَتَاعٌ إِلَى حِينٍ﴾/الأعراف: ۲۴/: هَاهُنَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، الْحِينُ عِنْدَ الْعَرَبِ مِنْ سَاعَةٍ إِلَى مَا لَا يُحْصَى عَدَدُهُ. ﴿قَبِيلُهُ﴾/الأعراف: ۲۷/: جِيلُهُ الَّذِي هُوَ مِنْهُمْ.

وَقَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ: ﴿فَتَلَقَّى آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ﴾: فَهُوَ قَوْلُهُ: ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا﴾: د سورت بقره آیت دې: ﴿فَتَلَقَّى آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾ (۴) د حضرت آدم او حضرت حواء علیهما السلام نه چه کومه خطا اوشوه په هغې باندې دواړه ډیر زیات خپیمانه او پریشانه وو. د توبې او مغفرت دپاره د الله تعالی د طرف نه هغوی ته بوڅو کلمات القاء کړې شو. د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه د دغه کلماتو نه مراد د الله تبارك وتعالی حضرت آدم علیه السلام ته د حج د طریقې تعلیم ورکول وو. نو چه کوم کلمات د حج دوران کښې د تکبیر تهلیل او تلبیه په صورت کښې ادا کولې شی د کلمات نه هم دغه مراد دی. (۵)

**د ابوالعالیة رفیع بن مهران تعارف:** دا مشهور تابعی ابوالعالیه رفیع بن مهران الریاحی رحمه الله دې. هغوی د حضور پاك د انتقال نه دوه کاله پس اسلام قبول کړې. هغوی د حضرت علی، ابن مسعود، ابوموسیٰ، ایوب، ابی بن کعب، ثوبان، حذیفه، ابن عباس، ابن عمر، رافع بن خدیج، ابوسعید، ابوهریرة، ابوبردة، حضرت عائشه، حضرت انس او حضرت ابوذر رضی الله عنهم نه حدیث روایت کړې دې. البته د حضرت علی رضی الله عنه نه د حدیث د سماع په حواله سره د بعض حضراتو وینا ده چه د ابوالعالیه رحمه الله حضرت علی رضی الله عنه سره ملاقات خو شته مګر سماع ثابته نه ده. د هغوی نه روایت کونکو کښې خالد الحذاء، ابن سیرین، یوسف بن عبدالله بن حارث، حفصه بنت سیرین، حمید بن هلال، قتادة او نور ډیر تابعین حضرات شامل دی. (۶)

ائمه جرح او تعدیل د هغوی توثیق کړې دې. (۷) ابن عدی رحمه الله فرمائی چه (حدیث الضحك فی الصلاة) نه علاوه د

---

(۱) إرشاد الساري: ۲۳۳/۷.

(۲) فتح الباري: ۳۶۶/۶ دار المعرفة.

(۳)

(۴) سورة البقرة: ۳۷.

(۵) تفسير الإمام الرازي: ۲۰/۳ دار الفكر، عمدة القاري: ۲۸۵/۱۵ دار الكتب العلمية، تفسير الخازن: ۴۰/۱ طبعة حسن حلبي كتبي ومحمد حسن جمال الحلبي.

(۶) تهذيب التهذيب: ۶۱۰/۱ تهذيب الكمال: ۲۱۸/۹-۲۱۵ مؤسسة الرسالة.

(۷) حواله بالا. والثقات لابن حبان: ۲۳۹/۴ دار الفكر، رقم الحديث: ۲۷۰۱ معرفة الثقات للعجلي: ۴۱۲/۲ مكتبة الدار، الجرح والتعديل: ۵۱۰/۳ رقم الترجمة: ۲۳۱۲ مطبعة مجلس دائرة المعارف العثمانية.

ابوالعالیه رفیع بن مهران ټول احادیث دَ اَستدلال قابل دی. صرف دَ یوحدیث په وجه په هغوی باندې کلام کړې شوې دی. ځکه چه دغه حدیث صرف هم دَهغوی نه مروی دې اوهم دَهغوی په حواله سره مشهور دې. دَهغوی نه علاوه چاهم چه هغه روایت کړې دې دَ ټولو دارومدار هم په هغوی دې.[1]

(حدیث الضحك فی الصلاة): دا حدیث به ابوالعالیه رحمه الله دَخپل طرف نه حکایت کولو چه حضورپاك مونځ کولو چه یو روند سړې راغلو په کوهی کښې پریوتلو په دې باندې صحابه کرامو حضراتو اوخندل. رسول الله ﷺ حکم اوکړو چه چاهم خندلی دی هغه دې خپل اودس او مونځ راؤګرځوی.[2]

دَ ابوالعالیه رفیع بن مهران رحمه الله په تعلیق کښې دی چه دَتوبې کوم الفاظ حضرت آدم علیه السلام ته ورکړې شو هغه دَ سورت اعراف په دې آیت کښې ذکر دی: ﴿قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ هم دغه تفسیر امام مجاهد، سعید بن جبیر، حسن بصری، ربیع بن انس، قتاده، محمد بن کعب قرظی، خالد بن معدان، علماء خراسان اوعبدالرحمن بن زید بن اسلم رحمهم الله نه هم نقل دې.[3]

**دَ آیت موضوعی تفسیر**: طبرانی رحمه الله حاکم رحمه الله او بیهقی رحمه الله دَحضرت عمر رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: (لما أذنب آدم الذي أذنبه رفع رأسه إلى العرش، فقال أسألك بحق محمد إلا غفرت لي فأوحى الله إليه وما محمد ومن محمد؟ فقال تبارك اسمك: لما خلقتني رفعت رأسي إلى عرشك فإذا فيه مكتوب لا إله إلا الله محمد رسول الله فعلمت أنه ليس أحد أعظم عندك قدرا ممن جعلت اسمه مع اسمك فأوحى الله إليه يا آدم إنه آخر النبيين من ذريتك، وإن أمته آخر الأمم من ذريتك، ولولا هو يا آدم ما خلقتك)[4]

یعنی چه کله دَ آدم علیه السلام نه خطا اوشوه نوهغه دَعرش طرف ته سر اوچت کړو عرض نی کړو چه زه تاته دَمحمد واسطه درکولوسره دَمغفرت سوال کوم. نوالله تعالی دَوحی په ذریعه دَهغه نه تپوس اوکړو محمد څوك دې؟ حضرت آدم علیه السلام عرض اوکړو چه کله تا زه پیداکړم ما ستادَ عرش طرف ته سر اوچت کړو اومې کتل، نو په هغې باندې لا اله الا الله محمد رسول الله کلمات لیکلې شوې وو. هغه وخت ماته معلومه شوه چه دَکوم سړي نوم تا خپل نوم سره ترلې دې دَدې نه لوئی دَ قدر اومنزلت خاوند بل څوك نه شی کیدې. الله تعالی دَحضرت آدم علیه السلام طرف ته وحی راؤلیږله چه دا به ستا په اولاد کښې آخری نبی وی اودَ ده امت به آخری امت وی. اې آدم! که چرې محمد نه وې نو ما به ته هم نه وې پیداکړې.

صاحب دَکنزالعمال دَ حافظ دیلمی رحمه الله نه هم دَدې مضمون یوروایت دَحضرت علی رضی الله عنه نه نقل کړې دې. دَدغه روایت په آخره کښې دی (هؤلاء الكلمات التي تلقى آدم)[5] یعنی هم دغه هغه کلمات دی کوم چه آدم علیه السلام حاصل کړی وو. په دې روایاتو کښې تصریح ده چه دَ سورت بقره آیت کښې دَ کومو کلماتو ذکر راغلې دې دَهغې نه (اللهم إني أسألك بحق محمد.....) مراد دې. حقیقت دادې چه سنداً دا روایت موضوعی دې اودَدې څه اصل نشته دې. صاحب د کنزالعمال دَحضرت علی رضی الله عنه نه نقل شوې روایت باره کښې فرمائیلی: (وسنده واه فيه حماد بن عمرو النصيبي عن السري بن

[1] الکامل لابن عدی: ۳/۱۷۰-۱۶۶، دارالفکر.

[2] حواله بالا، والثقات لابن حبان: ۴/۲۳۹دارالفکر، رقم الترجمة: ۲۷۰۱معرفة الثقات للعجلی: ۲/۴۱۲، مکتبة الدار، الجرح والتعدیل: ۳/۵۱۰رقم الترجمة: ۲۳۱۲مطبعة مجلس دائرة المعارف العثمانية.

[3] عمدة القاری: ۱۵/۲۸۵دارالکتب العلمية، وجامع البيان للطبری رحمه الله دارهجر.

[4] المعجم الأوسط للطبرانی: ۶/۳۱۳ رقم الحدیث: ۶۵۰۲دارالحرمین، المستدرک للحاکم: ۲/۶۱۵دارالمعرفة، دلائل النبوة للبیهقی: ۵/۴۸۹دارالکتب العلمية، کنزالعمال: ۱۱/۴۵۵رقم الحدیث: ۳۲۱۳۸مؤسسة الرسالة.

[5] کنزالعمال: ۲/۳۵۹-۳۵۸رقم الحدیث: ۴۲۳۷مؤسسة الرسالة، الفردوس بمأثور الخطاب للدیلمی: ۳/۱۵۱رقم الحدیث: ۴۴۰۹، دارالکتب العلمية.

خالدواهيان، (١)چه دَدې حديث سند ډير بيكاره دې او په دې كښې موجود حماد بن عمر او سرى دواړه واهى تباهى حديثونه روايت كونكى دى اود حضرت عمر رضي الله عنه دَ روايت باره كښې حافظ ذهبي رحمه الله فرمائى چه دا روايت موضوعى دى.(٢)

دَ آيات دَ ظاهرنه معلوميږى چه حضرت آدم عليه السلام ته دَدې كلماتو القاء په زمكه باندې راليږلونه وړاندې شوې وه خكه چه دَ القاء دَآيت نه پس دَ (اهبطوا) حكم ذكردې. جواب دادې چه په آيات كښې دَ واقعاتو دَ ترتيب خيال نه دې ساتلې شوې اونه په ترتيب باندې دلالت كونكې صيغه ذكركړې شوې ده. باقى دَ القاء كلمات واقعې مطابق روستو شوې اودَ زمكې طرف ته نزول وړاندې.(٣)

**قوله: ﴿فَأَزَلَّهُمَا﴾: فَاسْتَزَلَّهُمَا:** دَ سورت بقره آيت دې. ﴿فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ﴾[٣٦] يعنى حضرت آدم او حواء عليهما السلام شيطان دَ ممنوعه شجر باره كښې په دهوكه كښې واچولو او هغوى نى دَ هغه عيش اومزونه اخوا كړل په كوم كښې چه هغوى اوسيدل. حضرت آدم او حواء عليهما السلام دَ ممنوعه شجر خواته دَ تللونه منع كړې شوې وو خودَ شيطان دَ وسوسې اچولو او دهوكه كولو په نتيجه كښې دَ دواړو حضراتو نه خطاء اوشوه اودَ شجرهٔ ممنوعه ميوه ئې اوخكله. دَدې واقعه نه پس الله تعالى دواړه دَ جنت نه اوويستل. حقيقت دادې چه آدم عليه السلام په زمكه باندې راليګل او خليفه جوړول دَاول نه فيصله شوې وو. دَ ابليس لعين په فريب كښې دَ راتللو واقعه په تكوينى توګه باندې دَهغوى په زمكه باندې دَ اوسيدو او آباديدو دَ واقعې سبب شو. امام بخارى رحمه الله ﴿فَأَزَلَّهُمَا﴾ تفسير (فَاسْتَزَلَّهُمَا) سره كولوكښې دَ ابوعبيده رحمه الله قول نقل كړې دې. يعنى دواړو ته نى دَ خطاء كولو دعوت وركړو.(٤)

دَحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په قراءت كښې (فَأَزَلَّهُمَا الشيطان عنها) په ځاى (فوسوس لهما الشيطان) راغلې دې. په دې روايت كښې دَخطاء دَ كيفيت تصريح ده چه شيطان دَ وسوسې په ذريعه حضرت آدم اوبى بى حواء عليهما السلام دهوكه كړل.(٥)

**﴿يَتَسَنَّهْ﴾: يَتَغَيَّرْ ﴿آسِن﴾: مُتَغَيِّر وَالْمَسْنُونُ الْمُتَغَيِّرُ. ﴿حَمَإٍ﴾: جَمْعُ حَمْأَةٍ وَهُوَ الطِّينُ الْمُتَغَيِّرُ:** دَ سورت بقره آيت دې. ﴿فَانْظُرْ إِلٰى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ﴾ (٦)دَ خپل خوراك څښاك څيز ته اوګوره چه هغه سخا اوخراب شوى نه دى. په دې كښې دَعزير يا دَبعض دَ قول مطابق ارميا (٧)واقعه بيان كړې شوې ده. څير كوم يو شخصيت چه هم وى مقصد دَ مرګ نه پس دَ بيا راژوندى كولو مشاهده كول وو.

دويم لفظ (آسن) دې چه دَ سورت محمد آيت ﴿فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ﴾ (٨)كښې راغلې دې. يعنى په جنت كښې دَداسې اوبو نهرونه دى چه خرابيدونكى نه دى.

---

١) أيضاً.

٢) تعليقات الإمام الذهبي على المستدرك للحاكم، كتاب التاريخ، باب استغفار آدم عليه السلام بحق محمد صلى الله عليه وسلم: ٦١٥/٢دارالمعرفة.

٣) فتح البارى: ٣٦٦/٦دارالمعرفة.

٤) مجاز القرآن لأبى عبيدة: ٣٨/١مكتبة الخانجى بالقاهرة.

٥) تفسير الكشاف للزمخشرى: ٢٥٥/١مكتبة العبيكان.

٦) سورة بقرة: الآية: ٢٥٩.

٧) تفسير ابن كثير: ٥٢٧/١دارالكتب العلمية.

٨) سورت محمد آيت: ١٥.

(المسنون)سره دَ سورت حجر آیت ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ مِنْ حَمَإٍ مَسْنُونٍ ﴾ [۲۶] طرف ته اشاره ده. دَ آسن اومسنون دواړو تفسیر امام بخاری (متغیر) سره کړې دې. دَ سیاق کلام نه معلومیږی چه دا تفسیر هم دَ ابوالعالیه رحمه الله دې خو په حقیقت کښې داسې نه ده بلکه امام بخاری رحمه الله دَ دریواړو الفاظو تفسیر دَ ابوعبیده رحمه الله نه نقل کړې دې.([1]) شارحین حضرات وائی چه دَ (رَبَّنَا ظَلَمْنَا) نه پس اصل عبارت داسې کیدې شی (وقال غیره: فأزلهما: فاستزلهما)([2])

دَ یتسنه او آسن دواړو مناسبت دَ آدم علیه السلام قصې سره نشته. چونکه دَ سورت حجر آیت کښې دَتخلیق آدم ذکر دې او په هغې کښې لفظ مسنون راغلې دې نوهغوی علی سبیل التبعیة یتسنه او آسن ذکر کړل چه دَدې دریواړو الفاظو ماده یوه ده.

علامه عینی رحمه الله فرمانی چه دَدې سوال اوجواب ضرورت په دې وجه پیښ شو څکه چه امام بخاری رحمه الله دَ باب دَ شروع نه دَدې حدیث دَ شروع کیدو پورې ټول الفاظ دَحضرت آدم علیه السلام اودَهغوی دَحالاتو سره متعلق ذکر کړې دی. صرف دوه الفاظ ئې داسې ذکر کړې دی دکوم تعلق چه حضرت آدم علیه السلام سره یا دَهغوی دَ څه واقعې سره نه دې. یو لفظ یتسنه چه دَدې تعلق دَحضرت عزیر علیه السلام واقعې سره دې او دویم لفظ آسن چه دَدې تعلق دَ جنت اوبوسره دې.([3])

**دَامام بخاری رحمه الله په اسلوب باندې دَعلامه کرمانی رحمه الله اعتراض:** دلته حافظ کرمانی رحمه الله دَ امام بخاری رحمه الله په اسلوب باندې اعتراض کړې دې او په ظاهره دَ دې اعتراض منشا داده چه دَ صحیح بخاری دَ تالیف مقصد جمع اوترتیب دَاحادیثو دې نه چه دَ مفرداتو تفسیر اودَ مفرداتو په تفسیر کښې دَدې نه زیاته فائده نشته چه په دې سره دَ کتاب په حجم کښې زیاتوالې کیږی.([4])

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رد:** ابن حجر رحمه الله په سختئی سره په دې اعتراض باندې رد کړې دې اوفرمائیلی دی چه په صحیح بخاری باندې داسې اعتراض کول دَ علامه کرمانی رحمه الله شان سره نه ښائی. په صحیح بخاری کښې دَ قرآن پاك دَ مفرداتو دَ تفسیر اوتشریح چه کوم فوائد دی په دې کښې دَ شك گنجائش نشته دې. علامه کرمانی رحمه الله چه دَ دې طریقې دَغیر مفید کیدو کومه دعوی کړې ده دا دعوی قابل قبول نه ده. سره ددې چه دَ صحیح بخاری اصل موضوع دَ احادیث صحیحه جمع او تالیف دې مگر اکثر اهل علم په دې حقیقت باندې پوهیږی چه په دې کښې دَ صحابه کرامو تابعینو او فقهاؤ اقوال نقل کولو مقصد دادې چه دَ صحیح بخاری روایت او درایت دواړو جمع کونکې وی. دَغریب الحدیث شرح او تفسیر هم دَ روایت یوه حصه ده. دَ امام بخاری رحمه الله عادت دې چه په حدیث کښې راغلی لفظ اصل یا مثال که چرته په قرآن مجید کښې موجود وی نوهغه دَدَغه اصل او مثال هم تشریح کوی. دَغه شان دَ تفسیر قرآن اوحدیث دواړو فوائد ورسره ورسره وراندې کوی. دلته امام بخاری رحمه الله نه دَ خپلو شرائطو مطابق احادیث دَ انبیاء سره متعلق روایات نه دی ملاوشوی نودا خالی ځائی هغوی دَ مفردات قرآنیه په تفسیر سره ډك کړو. خلاصه دا چه دې اسلوب اوطریقې ته غیرمفید ونیل په هیڅ شان سره مناسب نه دی.([5])

---

[1]) مجاز القرآن لأبی عبیدة: ۱/۸۰، ۲/۲۱۵، ۱/۳۵۱-۳۵۰، مکتبة الخانجی بالقاهرة، فتح الباری: ۸/۴۵۱عمدة القاری:۱۵/۲۸۶-۲۸۵إرشادالساری: ۷/۲۳۳.

[2]) فتح الباری: ۸/۴۵۱عمدة القاری:۱۵/۲۸۶-۲۸۵ إرشادالساری: ۷/۲۳۳.

[3]) عمدة القاری: ۱۵/۲۸۶.

[4]) شرح الکرمانی: ۱۵/۲۲۳دار إحیاء التراث العربی.

[5]) فتح الباری: ۶/۳۶۶دار المعرفة.

﴿يَخْصِفٰنِ﴾: أَخَذَا الْخِصَافَ مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ، يُؤَلِّفَانِ الْوَرَقَ وَيَخْصِفَانِ بَعْضَهُ إِلَى بَعْضٍ: دَ سورت اعراف آيت دي: ﴿بَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ﴾ [٢٢]. دغه شان دَ سورت طه په آيت كښې دى: ﴿فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ﴾ [١٢١] نودَ دواړو ستر دَ يو بل په مخكښې ښكاره شو او دواړو په خپلو بدنونو باندې دَ جنت پاڼې اينخلولې.

امام بخارى رحمه الله دَ ابو عبيدة رحمه الله قول نقل كولو سره دَ آيت تفسير كړې دې چه حضرت آدم او حضرت حواء عليهما السلام دواړو دَ ستر پټولو دَپاره دَ جنت دَ ونو پاڼې راواخستې يوځائې كړې.[1] (خصاف) جمع دَ (خَصَفَة) خصفة هغه لباس ته وائى چه دكهجورو دَ پاڼو نه جوړ كړې شى. دَ خَصَفَةُ جمع خَصَفٌ هم راځى.[2] مجاهد رحمه الله دَ يخصفان تفسير كړې دې (أي: يرقعان كهيئة الثوب) يعنى حضرت آدم او بى بى حواء عليهما السلام پاڼې داسې يوځائې كولې لكه چه دَ لباس سيلائى كولې شى.[3] لكه (خصفت النعل) معنى ده څپلئى گنډل.[4]

﴿سَوْاٰتِهِمَا﴾: كِنَايَةٌ عَنْ فَرْجِهِمَا: هم دَ سورت اعراف او سورت طه دَ آيآتونو طرف ته اشاره ده. امام بخارى رحمه الله دلته اوخودل چه (سوأة) فرج يعنى شرمگاه نه كنايه ده. دا الفاظ هم دَ ابو عبيده دى. دلته امام بخارى رحمه الله لفظ فرج افراد سره ذكر كړې دې.[5] خو ابو عبيده رحمه الله لفظ فرج تثنيه سره ذكر كړې دې يعنى فرجهما.[6]

﴿وَمَتَاعٌ إِلٰى حِيْنٍ﴾: هَاهُنَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، الْحِيْنُ عِنْدَ الْعَرَبِ مِنْ سَاعَةٍ إِلَى: دَ سورت بقره او اعراف دې آيت طرف ته اشاره ده: ﴿وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ إِلٰى حِيْنٍ﴾ كله چه دَ شجرة ممنوعه نه دَ ميوې خوړلو واقعه پيښه شوه نو حضرت آدم او حضرت حواء عليهما السلام دواړو ته په زمكه باندې دَ كوزيدو حكم اوشو او وئې فرمائيل: په زمكه كښې ستاسو پاتې كيدل دى او دَ يوې زمانې پورې نفع حاصلول دى. امام بخارى رحمه الله لفظ (حين) تفسير كړې دې چه دلته دَ ذريت آدم په زمكه باندې دَ قيامت پورې اوسيدل مراد دى.

شراح حديث دَدې نسبت ابن عباس رضي الله عنهما طرف ته كړې دې او ليكلى دى چه امام طبرى رحمه الله دا په خپل سند سره موصولاً نقل كړې دې مگر دَ راقم خيال دې چه دا قول دَ امام مجاهد رحمه الله نه نقل دې او دا امام طبرى رحمه الله په خپل سند سره هم موصولاً نقل كړې دې. دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل شوې تفسير لفظ حياة سره دې يعنى ژوندون مراد دې چه تر كومې پورې دَ انسان ژوند دې دَ هغه وخته پورې نفع حاصلول دى.[7]

وَالْحِيْنُ عِنْدَ الْعَرَبِ مِنْ سَاعَةٍ إِلَى مَا لَا يُحْصَى عَدَدُهُ: دلته امام بخارى رحمه الله اوفرمائيل چه دَ لفظ حين اطلاق دَ عربو په نيز دَ يو ساعت نه واخله دَ بې انتهاء او بې حساب وخت باندې كيږى. علامه عينى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دَ خپل قول (والحين عند العرب: من ساعة إلى مالا يحصى عدده) په ذريعه دا خودل غواړى چه لفظ حين په ډيرو معانو كښې استعماليږى البته اصالة دَ وخت په معنى كښې استعماليږى.[8]

---

[1] مجاز القرآن لأبى عبيدة: ٢١٢/١ مكتبة الخانجى بالقاهرة، فتح البارى: ٣٦٦/٦ وإرشاد السارى: ٢٣٣/٧.
[2] النهاية لابن الأثير: ٣٨/٢-٣٧ دار إحياء التراث العربى: ٢٨٦/١٥.
[3] تفسير الإمام مجاهد سورة الأعراف، ص: ٨٢ دار الكتب العلمية، عمدة القارى ٢٨٦/١٥ دار الكتب العلمية.
[4] عمدة القارى: ٢٨٦/١٥ دار الكتب العلمية.
[5] عمدة القارى: ٢٨٦/١٥ دار الكتب العلمية، مجاز القرآن: ٢١٢/١ دار الكتب العلمية.
[6] مجاز القرآن لأبى عبيدة: ٢١٢/١ مكتبة الخانجى بالقاهرة.
[7] تفسير الطبرى، سورة البقرة: ٣٦، ٥٧٨/١-٥٧٧ دار هجر، تفسير ابن أبى حاتم: ٩٠/١ مكتبة نزار مصطفى الباز.
[8] عمدة القارى: ٢٨٦/١٥.

**دَ ابلیس نه دَ هوښیار اوسیدو هدایت:** ﴿قَبِيلُهُ﴾: جِيلُهُ الَّذِي هُوَ مِنْهُمْ. دَ سورت اعراف آیت ﴿إِنَّهُ يَرَاكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُ﴾ [۲۷] طرف ته اشاره ده یعنی حقیقت دادې چه ابلیس اودَهغه ډله تاسو ته په داسې توګه ګوري چه تاسو هغوی ته نه ګورئ. ابلیس دَ انسانانو دښمن دې اودَهغوی په نظرونو کښې راځی هم نه. کوم دښمن چه ښکاری نه دَهغه نه هوښیار اوسیدلو ضرورت وی اودَ هغه دَ وار نه بچ کیدل هم ګران وی. په دې وجه په آیت کښې تنبیه اوفرمائیلې شوه چه دَ ابلیس یا دَهغه په شان ستاسو دَ نظرونو نه غائب دی مګر تاسو دَ هغوی په نښه کښې یئ. لهذا دَهغوی دَ وسوسې اچولو نه هوښیار اوسیږئ. امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل چه دَ قبیل نه دَهغه هغه ډله مراد ده دکوم چه پخپله ابلیس یو فرد او رکن دې.[۱] امام مجاهد رحمه الله دَ قبیل تفسیر په (الجن والشیاطین) سره کولو.[۲]

## الحديث الاول

[۳۱۴۸] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَلَقَ اللَّهُ آدَمَ وَطُولُهُ سِتُّونَ ذِرَاعًا، ثُمَّ قَالَ: اذْهَبْ فَسَلِّمْ عَلَى أُولَئِكَ مِنَ المَلاَئِكَةِ، فَاسْتَمِعْ مَا يُحَيُّونَكَ، تَحِيَّتُكَ وَتَحِيَّةُ ذُرِّيَّتِكَ، فَقَالَ السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ، فَقَالُوا: السَّلاَمُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللَّهِ [ص:۱۳۲]، فَزَادُوهُ: وَرَحْمَةُ اللَّهِ، فَكُلُّ مَنْ يَدْخُلُ الجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ آدَمَ، فَلَمْ يَزَلِ الخَلْقُ يَنْقُصُ حَتَّى الآنَ" [ص ۷۴] [۵۸۷۳][۳]

**ترجمه:** دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی: الله تعالی آدم علیه السلام شپیته لاسه اوږد تخلیق کړو. بیائی اوفرمائیل، لاړ شه دَ فرښتو ډلې ته سلام اوکړه او واؤره چه هغوی په جواب کښې څه وائی. نویس هم دغه به ستا او ستا دَامت سلام وی. آدم علیه السلام (فرښتو ته) اووئیل السلام علیکم. هغوی جواب ورکړو وعلیکم السلام ورحمة الله. فرښتو دَ وعلیکم السلام لفظ زیات کړو. خیر چه کوم خلق دَ قیامت په ورځ په (جنت) کښې داخلیږی هغه به ټول دَ حضرت آدم علیه السلام په صورت کښې وی. دَحضرت آدم علیه السلام نه پس تراوسه پورې دَ امت قد کمیږی.

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله دې.[۴]

**عبدالرزاق:** دا ابوبکر عبدالرزاق بن همام الصنعانی رحمه الله دې.[۵]

**معمر:** دا ابوعروه معمر بن راشد بصری رحمه الله دې.[۱]

---

[۱]) عمدة القاري: ۲۸۷/۱۵-۲۸۶، دارالكتب العلمية.

[۲]) تفسير الإمام مجاهد: ص:۸۲ دارالكتب العلمية جامع البيان: ۱۳۶/۱۰دارهجر، عمدة القاري:۲۸۷/۱۵دارالكتب العلمية.

[۳]) والحديث أخرجه البخاري أيضاً في كتاب الاستئذان، باب بدء السلام، رقم الحديث:۶۲۲۷ومسلم في صحيحه في كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها، باب يدخل الجنة أقوام، أفئدتهم مثل أفئدة الطير، رقم الحديث ۷۱۶۳، وجامع الأصول في أحاديث الرسول: ۳۰/۴رقم الحديث: ۲۰۰۵.

[۴]) کشف الباري: ۶۵۷/۱

[۵]) کشف الباري: ۴۲۱/۲.

**همام:** دا همام بن منبه صنعانی رحمه الله دی. [٢]

**ابوهریره:** دا صحابی رسول حضرت ابوهریره رضي الله عنه دی. [٣]

**دَحدیث شرح**

**قوله: خَلَقَ اللّٰهُ آدَمَ:** دَ کتاب الاستیذان په روایت کښې "علی صورته" اضافه ده. یعنی الله تعالی حضرت آدم علیه السلام په خپل صورت باندې پیدا کړو. دَ صورته دَ ضمیر په مرجع کښې دَ اختلاف په بنیاد دَحضرات محدثینو رحمهم الله په مینځ کښې ددې جملې په تشریح کښې اختلاف واقع شوې دې. چنانچه ددې ضمیر په مرجع کښې څلور اقوال دی:

① توقف. ② صورته ضمیر مرجع حضرت آدم علیه السلام دې. ③ صورته ضمیر مرجع الله تبارك وتعالی دې. ④ صورته ضمیر مرجع رجل مضروب دې.

**اول قول:** جمهور سلف رحمهم الله دَدې اودَدې په شان نورو احادیثو دَ تشبیه مفهوم بیانولو کښې دَتوقف نه کار اخلی په کوم کښې چه دَالله تعالی دَ یار: دَ صورت او بدن یا نورو انسانی اعضا، ثبوت وی. هغوی فرمائی چه مونږ په دغه شان ټولو احادیثو حق کیدو باندې ایمان لرو اودا چه دَدې ظاهری معنی مراد نه وی بلکه دَهغې نه څه داسې معنی مراد وی چه دَالله تعالی دَ اوچت شان لائق وی او هم الله تعالی دغه معنی ښه پیژنی. لهذا دا حضرات په دې باره کښې توقف اختیاروی. [٤]

**دویم قول:** دویم قول دادې چه دَ اقرب المراجع کیدو دَ وجې نه دَ صورته ضمیر مرجع حضرت آدم علیه السلام دې. دا دَ ابوسلیمان الخطابی رحمه الله قول دې [٥]

په دې صورت کښې دَدې جملې مختلف مطالب او مفاهیم بیان کړې شوی دی: ① یو مطلب دا بیان کړې شوې دې چه الله تبارك وتعالی حضرت آدم علیه السلام دَ عام انسانانو په شان اول دَ نطفې، بیا مضغه (دَ وینې دبوټنې) اوبیا دَ علقه (غوښې دَ ټکړې) دَ مختلف مراحلو نه دَ تیرولوسره ماشوموالي وړوکوالي ځوانئي وغیره بهارونه اونه خودل بلکه حضرت آدم علیه السلام دَ شروع نه په اول خل کامل اومکمل صورت کښې پیدا کړې دې اودا چه کوم وخت په هغه کښې روح پوکوهلې شو نوهغه وخت هم دَهغه قد شپیته گزه وو. [٦]

---

[١] کشف الباری: ١/٤٦٥.

[٢] کشف الباری: ١/٤٦٥، ٤/٢٢١.

[٣] کشف الباری: ١/٦٥٧، ٤٥٩، ١/٦٦٣

[٤] کشف المشکل من حدیث الصحیحن، مسند أبی هریرة: ٣/٤٩٨ رقم الحدیث: ٢٤٤٤، الحدیث السابع والسبعون بعدالمأتین، دار الوطن، طرح التثریب، کتاب الحدود، باب اتقاء الوجه فی الحدود والتعزیرات: ٨/١٨ شرح النووی: ١٦/٦٦

[٥] غریب الحدیث للخطابی، حدیث علی بن أبی طالب: ٢/١٥٨، کشف المشکل: ٣/٤٩٨ رقم: ٢٤٤٤ أعلام الحدیث للخطابی: ٣/٢٢٢٨-٢٢٢٧.

[٦] غریب الحدیث للخطابی، حدیث علی بن أبی طالب: ٢/١٥٨ مرکز إحیاء التراث الإسلامی، مکة المکرمة. الکواکب الدراری المعروف بشرح الکرمانی، کتاب الاستیذان: ٢٢/٧٢ دار إحیاء التراث، شرح ابن بطال، کتاب الاستئذان: ٩/٦ دار الکتب العلمیة.

شارح بخاري ابن بطال رحمه الله فرمائي چه په دې حديث کښې د دهريه په عقيده باندې رد دې ځوك چه دا دې خبرې قائل دى چه د انسان پيدائش د اولې ورځې نه د نطفه او مضغه وغيره په ترتيب مراحل سره پوره شوې دې. انسان د نطفې او نطفه د انسان پيداوار دې. په دې حديث کښې صراحت راغلو چه د حضرت آدم عليه السلام خلقت د نطفې نه نه دې شوې بلکه هغه د هم د شروع نه د خاورې نه په خپل اصل صورت کښې پيدا کړې شوې وو.(۱)

② دويم مطلب دا دې چه الله تعالى کله حضرت آدم عليه السلام د جنت نه دنيا طرف ته وليږلو نو هم په هغه صورت ئې اوليګلو کوم چه د هغه په جنت کښې وو. او د دې حديث نه مقصد د حضرت آدم عليه السلام او نورو مخلوقاتو په مينځ کښې فرق بيانول دى. ځکه چه حضرت آدم عليه السلام سره د جنت نه مار او طاؤس هم راويستلې شوې وو او الله تعالى د هغوى د جرم په سزا کښې د مار صورت تور کړو هغه ئې د خپو نه محروم کړو او خاوره ئې د هغه رزق مقرر کړو. دغه شان ئې د طاؤس خپې بدرنګه کړې خو حضرت آدم عليه السلام ئې د هغه په خپل شکل باندې هم هغه شان اوساتلو کوم چه د هغه په جنت کښې وو. لهذا په دې حديث سره مقصد د حضرت آدم عليه السلام په نورو مخلوقاتو باندې فضيلت بيانول دى.(۲)

③ دريم مطلب دا بيان کړې شوې دې چه د دې حديث نه مقصود د قدريه د عقيدې ترديد دې هغوى وائي چه د حضرت آدم عليه السلام صفات دوه قسمه دى: الف: کوم چه الله تعالى پيدا کړي دى. ب: کوم چه حضرت آدم پخپله تخليق کړي دى. په دې حديث کښې د دغه باطل عقيدې ترديد اوشو او د دې خبرې وضاحت اوشو چه حضرت آدم عليه السلام الله تعالى په خپل صورت باندې د خپلو ټولو صفاتو په وصف سره پيدا کړو نه دا چه د هغه بعض صفات د پيدائش نه پس په هغه کښې پيدا شو.(۳)

يو ډله وائي چه په دې حديث سره د اهل الطبائعين (ځوك چه انسانى طبيعت مؤثر ګنړي) او په اهل النجوم باندې رد کيږي. هغه داسې چه دا حضرات وائي د حضرت آدم عليه السلام په شکل او صورت کښې د هغه د طبيعت، موسم، آب وهوا او د شپې ورځې د ګردش هم عمل دخل دې. په دې حديث سره د دغه باطل عقيدې ترديد اوشو او د دې امر وضاحت اوشو چه حضرت آدم عليه السلام الله تعالى په کامل صورت کښې پيدا کړې دې. په تخليق آدم عليه السلام کښې نه ځوك الله تعالى سره شريك کار دى او نه په هغې کښې د بل څه څيز عمل دخل دې.(۴)

④ يو مفهوم د دې حديث علامه ابن قتيبه الدينورى رحمه الله بيان کړې دې هغه دا چه د دې جملې تقديرى عبارت داسې دې: (ان الله خلق آدم (فى الجنة) على صورته (فى الدنيا)) او مقصد د دې حديث نه د دې خبرو ترديد دې چه په جنت کښې د حضرت آدم عليه السلام د قد وقامت، حليې نور او د خوشبو وغيره باره کښې مشهورې دى. د کوم نه چه دا ثابتيږي چه د حضرت آدم عليه السلام کوم شکل او صورت په جنت کښې وو هغه د هغه د دنيوى شکل او صورت نه مختلف وو. په دې حديث سره د هغه ګمان ترديد اوشو او اوفرمائيلې شو چه حضرت آدم عليه السلام په جنت کښې هم په دغه صورت باندې پيدا کړې شو کوم صورت چه د هغه په دنيا کښې وو.(۵)

---

(۱) شرح ابن بطال کتاب الاستيذان: ۹/۴، عمدة القارى، کتاب الاستئذان: ۲۲/۷۹ رقم: ۶۲۲۷ الکواکب الدرارى: ۲۲/۷۲.

(۲) التوضيح شرح الجامع الصحيح لابن الملقن، کتاب الاستئذان باب بدء السلام رقم: ۶۲۲۷، ۲۹/۱۱-۱۰.

(۳) شرح ابن بطال: ۹/۴ الکواکب الدرارى: ۲۲/۷۳ فتح البارى للحافظ ابن حجر: ۱۱/۳ عمدة القارى: ۲۲/۳۵۸.

(۴) فتح البارى لابن حجر: ۱۱/۳ التوضيح: ۲۹/۱۱.

(۵) تأويل مختلف الحديث، أحکام قد أجمع عليها يبطلها القرآن ويحتج بها الخوارج: ۱۸، حديث فى التشبيه، خلق آدم، ص: ۳۲۱، المکتب الإسلامى.

**دريم قول:** دريم قول دادي چه دَ صورته ضمير مرجع دَ الله تعالى ذات دې. دا دَ علامه ابن عقيل رحمه الله قول دې. (۱) دَدې قول په بنياد باندې دَ يو بل روايت الفاظ دادي کوم چه دَدې مجمل حديث تفسير بيانوي. چنانچه په روايت کښې راځي «إن الله خلق آدم على صورة الرحمن» يعني الله تعالى حضرت آدم عليه السلام دَ رحمن په صورت پيدا کړې دې. دې حديث ته علامه قرطبي رحمه الله او علامه مازري رحمه الله «ليس بثابت عند أهل الحديث» ونيلي دي. (۲) او بيا هم دَدې حضراتو دَ قول تائيد علامه زين الدين عراقي رحمه الله هم کړې دې. (۳) دا حضرات فرمائي چه کيدې شي دَدې روايت راوی دَ روايت بالمعنى په توګه سره حديث نقل کړې وی او هغوی دَ دې په معنى پوهيدلو کښې غلط شوې وی. هغه داسې چه راوی «إن الله خلق آدم على صورته» الفاظ اوريدو سره دَ «صورته» دَ ضمير مرجع لفظ الله ګڼړلې وی او بيائې دَ روايت بالمعنى په توګه سره دا حديث بيانولو سره خپل پوهې مطابق مرجع اسم ظاهر «الرحمن» په شکل کښې بيان کړو. يعني دَ دواړو روايتونو اصل هم يو دې ليکن دا حضرات دَ راوی دَ فهم کړې معنى سره اتفاق نه کوی.

ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي (۴) چه ابن ابی عاصم رحمه الله کتاب السنة کښې (۵) دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله دَ حرب الکرماني رحمه الله په حواله سره دَ اسحاق بن راهويه قول نقل کړې دې هغه فرمائي: «إن الله خلق آدم على صورة الرحمن» الفاظ په احاديثو کښې ثابت دی. (۶)

دغه شان اسحاق الکوسج رحمه الله فرمائي چه ما دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله نه اوريدلی دی چه دَدې حديث باره کښې هغوی اوفرمائيل: «حديث صحيح» (۱) بل علامه طبراني رحمه الله کتاب السنة کښې فرمائي چه مونږ ته دَ امام احمد بن

---

(۱) كشف المشكل مسند أبي هريرة: ۴۹۸/۳، رقم: ۲۴۴۴.

(۲) المنهاج شرح النووي على صحيح مسلم بن الحجاج كتاب البر والصلة والأداب، باب النهي عن ضرب الوجه: ۱۶، ۳۸۱، رقم: ۶۵۹۸ دار المعرفة، طرف التثريب، كتاب الحدود، باب اتقاء الوجه في الحدود والتعزيرات: ۱۷/۸، دار إحياء التراث، فتح الباري، كتاب العتق، باب إذا ضرب العبد فليجتنب الوجه: ۱۸۳/۵، رقم: ۲۵۵۹.

(۳) طرح التثريب كتاب الحدود باب اتقاء الوجه إلخ: ۱۸/۸.

(۴) فتح الباري كتاب العتق باب إذا ضرب العبد إلخ: ۱۸۳/۵.

(۵) عمرو بن أبي عاصل الضحاک رحمة الله عليه، المتوفى: ۲۸۷ هجری خپل کتاب کتاب السنة کښې باب ذکر الکلام والصوت والشخص وغيرذلک، لاندې باب نمبر ۱۰۹ کښې دا حديث (لا تقبحوا الوجوه، فإن ابن آدم خلق على صورت الرحمن) په الفاظوسره ذکر کړې دې رقم الحديث: ۵۱۷، ۲۲۹/۱ المکتب الإسلامي. او طبراني رحمه الله دَ ابن عمر رضي الله عنهما په طريق سره دَ ثقه راويانو په سندسره دَدې حديث تخريج کړې دې حدثنا علي بن عبدالعزيز، ثنا إسحاق بن إسماعيل الطالقاني، ثنا جرير عن الأعمش، عن حبيب بن أبي ثابت عن عطاء عن ابن عمر قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لا تقبحوا الوجه، فإن ابن آدم خلق على صورة الرحمن تعالى (المعجم الكبير للطبراني، عطاء ابن أبي رباح عن ابن عمر: ۴۳۰/۱۲ رقم الحديث: ۱۳۵۸۰ مكتبة ابن تيمية) دغه شان مذکوره الفاظ دَ حديث په دې کتابونو کښې هم راغلي دي: (۱) بغية الباحث عن زوائد مسند الحارث، كتاب الأدب، باب النهي عن تقبيح الوجه، رقم: ۸۷۲ ۸۳۱/۱ مركز خدمة السنة. (۲) مجمع الزوائد للهيثمي، كتاب النهي عن الضرب على الوجه والنهي عن سبه: ۱۹۸/۸ رقم: ۲۳۱/۹ دار الفكر. (۳) الجامع الكبير للسيوطي، قسم الأقوال، اللام ألف مع التاء: ۲۲۷/۸ دار الكتب العلمية. (۴) إتحاف المهرة بالفوائد المبتكرة من أطراف العشرة، حرف العين، مسند عبدالله بن عمر، عطاء بن أبي رباح عن ابن عمر: ۵۹۲/۸ رقم الحديث: ۱۰۰۲۳، مركز خدمة السنة والسيرة النبوية.

(۶) فتح الباري كتاب العتق باب إذا ضرب العبد إلخ: ۱۸۳/۵.

حنبل رحمه الله خوني عبدالله بن احمدبن حنبل رحمه الله بیان اوکړو چه یو سړي زمونږ والد صاحب (امام احمد بن حنبل رحمه الله) ته اووئیل چه یو سړی (خلق آدم علی صورته) معنی دا بیان کړه چه الله تعالی حضرت آدم علیه السلام د رجُل په شکل او صورت باندې پیدا کړې دې نو هغوی اوفرمائیل چه دې سړي د دروغو نه کار اخستې دې دا عقیده خود جهمیه ده.[1] د صورته د ضمیر مرجع حضرت آدم علیه السلام نه دې بلکه الله تبارك وتعالی دې.

ترکومې چه خبره د علامه قرطبي رحمه الله مازري رحمه الله او عراقي دَدې روایت د تردید ده او دا چه روایت بالمعنی کیدو کښې راوی ته غلط فهمي شوې ده. نو دَدې جواب حافظ ابن حجر رحمه الله دا ورکړې دې چه هم ابن ابی عاصم رحمه الله ابویونس عن ابی هریرة رضی الله عنه په طریق سره دَدې حدیث تخریج په داسې الفاظو سره کړې دې چه د مذکوره تاویل تردید کوی هغه الفاظ دادی: (من قاتل فليجتنب الوجه، فإن صورة وجه الإنسان على صورة وجه الرحمن)[2] یعني کوم سړې چه جنګ کوی نو (په جنګ کښې) دې په مخ باندې د وهلو نه ځان ساتی، ځکه چه د انسان د مخ صورت د رحمن د مخ په صورت باندې ساتلې شوې دې.

دَدې روایت په الفاظو کښې مذکوره تاویل ممکن نه دې او دا په دې خبره کښې صریح دې چه صورته د ضمیر مرجع هم د الله تعالی ذات دې.[3] بهرحال که چرې د صورته د ضمیر مرجع الله تعالی وی نو دَدې جملې به داسې تاویل کیږی کوم چه د الله تعالی د شان برابر وی مثلاً:

① صورة به هغه ځائی د صفة په معنی کښې دې لکه چه لفظ صورت مسئله مشهور دې. او دَدې نه د مسئلې صفت او کیفیت مراد وی. دَدې مطلب به دا شی چه الله تعالی حضرت آدم علیه السلام په هغه صفاتو باندې پیدا کړو چه د الله تعالی د صفاتو په شان او مثال دی. چنانچه الله تعالی هغه حي، عالم، قادر، مرید، متکلم، سمیع او بصیر جوړ کړو.[4]

② د صورت نه صفة نه بلکه هم صورت او هئیت مراد دې. لیکن د الله تعالی طرف ته دَدې اضافت د تشریف او تکریم دپاره دې. لکه چه روح الله، او بیت الله کښې د روح او بیت اضافت د شرف او عظمت ظاهرولو دپاره دې. په دې صورت کښې د حضرت آدم علیه السلام شکل او صورت وجاهت او لطافت او حسن او جمال طرف ته اشاره کول مقصود دی چه الله تعالی حضرت آدم علیه السلام په هغه لطیف او جمیل صورت باندې پیدا کړو کوم چه په اسرار او لطائف باندې مشتمل دې او کوم چه هغه په خپل قدرت کامله سره د خپل طرف نه ورعطاء کړه.[5]

---

[1]) التخريج السابق.

[2]) التخريج السابق.

[3]) كتاب السنة باب: ۱۰۹، ۲۲۹/۱رقم: ۵۲۱المكتب الإسلامي، بل كنزالعمال کښې د طبراني په حواله سره دا الفاظ راغلي دي:"إذا قاتل أحدكم فليجتنب الوجه، فإن صورة الإنسان على صورة وجه الرحمن" كنزالعمال، الكتاب الأول الباب الثالث، الفصل الأول: في الصفات، ۲۲۷/۱، رقم: ۱۱۴۳، الرسالة، الجامع الكبير، حرف إذا مع القاف، رقم: ۲٤۰۸، ۳۲۷/۱ألفاظ الحديث:"إذا قاتل أحدكم فليجتنب الوجه، فإن صورة وجه الإنسان على صورة وجه الرحمن"، دارالكتب العلمية.

[4]) فتح الباري كتاب العتق: ۱۸۳/۵دارالفكر.

[5]) شرح ابن بطال: ٤/۹فتح الباري: ۳/۱۱عمدة القاري: ۳۵۸/۲۲إرشادالساري: ۲۲۹/۱۳.

[6]) عمدة القاري: ۳۵۸/۲۲إرشادالساري: ۲۲۹/۱۳شرح ابن بطال: ۵/۹مرقاة المفاتيح كتاب الديات باب مالايضمن من الجنايات: ۷۹/۷.دارالكتب العلمية.

③ دَ صورة نه مراد هم شكل اوهينت دي ليكن دَ الله تبارك وتعالى و طرف ته دَدې اضافت حقيقى نه دې بلكه اضافت ملك دې. لكه چه ﴿وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي﴾ الآية كښې دى او په دې صورت كښې به معنى وى چه الله تعالى حضرت آدم عليه السلام په خپل مملوكه صورت باندې پيدا كړو.[1]

④ حضرت كشميرى رحمه الله دَدې جملې يو بل مطلب بيان كړې دې. هغه دا چه كه چرې بالفرض والمحال الله تعالى دې عالم ناسوتى طرف ته نزول فرمائيلې نوهم دَ انسانى صورت سره به ئې نزول فرمائيلو. ځكه چه په قرآن كريم او احاديث طيبه كښې ځائې په ځائې دَ الله تعالى طرف ته دَعين، قدم، اصابع، وجه، ساق، يد، حق، يمين، قبضة او رداء او ازار وغيره الفاظوسره نسبت كړلې شوې دې. او په دې خبره كښې څه شك نشته دې چه ذكرشوى اوصاف دَ انسانى بدن اوحليې سره تعلق لرى. نوچه كله په قرآن اوحديث كښې انسانى صورت سره تعلق لرونكى څيزونو نسبت الله تعالى طرف ته كړې شوې دې نوهم دې سره دَدې خبرې طرف ته اشاره ملاويږى چه كه چرې الله تعالى جل وعلا دَدې عالم ناسوتى طرف ته نزول كولې نو هم په دې حليې سره به ئې نزول فرمائيلو دَ كوم نسبت چه الله تعالى طرف ته كړې شوې دې. اوهم دَدې خبرې طرف ته دَ حديث دجال نه هم لارخودنه ملاويږى په كوم كښې چه فرمائيلې شوى دى «إنه أعور العين اليمنى وربكم ليس بأعور»[2]

يعنى فرض كړه كه زمونږ رب ذوالجلال دې دنيا ته تشريف راوړلو نودَهغه دواړه سترګې به سلامتې وې ځكه چه دَ يو سليم الجسد انسان حليه هم دغه ده. دَ مذكوره بحث په رڼا كښې به دَمذكوره جملې مطلب داشى چه الله تعالى حضرت آدم عليه السلام په هغه صورت باندې پيدا كړو كوم چه په على تقدير النزول دَ الله تعالى وې.[3]

**خلورم قول:** دَ صورته دَ ضمير دَمرجع په تعيين كښې يوجماعت دا قول اختيار كړې دې چه په اصل كښې حضورپاك دا ارشاد په يوخاص سبب سره فرمائيلې دې،[4] اوهغه داسې چه يوځل حضورپاك په يو سړى باندې تيريدو چه خپل غلام ئې په مخ باندې وهلو او ورسره ئې دا وئيل «قبح الله وجهك ووجه من أشبه وجهك»[5] يعنى الله پاك دې ستا مخ اودَ چا مخ چه ستا په شان دې بدرنګه كړى. حضورپاك چه كله دا واوريده نو وئې فرمائيل «إذا ضرب أحدكم فليتق الوجه، فإن الله خلق آدم على صورته»[6] كله چه په تاسو كښې «څوك» بل څوك وهى نو په مخ باندې دَ وهلو نه دې ځان ساتى، ځكه چه الله تعالى حضرت آدم عليه السلام دَ دغه وهلې شوى سړى په شكل اوصورت باندې پيدا كړې دې. يعنې مه په مخ باندې وهل كوئى او مه هغې ته بدې ردې وئيل صحيح دى. ځكه چه دَحضرت آدم عليه السلام اودهغه دَ ټول اولاد صورت هم په يو نوعيت باندې دې. لهذا دَ يو انسان دَمخ سپكاوې كولوسره دَحضرت آدم عليه السلام اودَ نورو ټولو انبياء كرامو دَ شكل اوصورت تنقيص لازم راځى. اودَ حضرت آدم عليه السلام نوم په خاص توګه ځكه راغلې دې چه هغه ابوالبشر دې اودَ ټولونه اول دا صورت هم هغوى ته وركړې شوې دې. دا قول دَ مهلب رحمه الله وغيره دې.[7]

---

[1] كشف المشكل مسندأبى هريرة: ۴۹۸/۳ رقم: ۲۴۴۴.

[2] صحيح البخارى كتاب الجمعة باب من انتظر حتى تدفن رقم: ۴۴۰۲ صحيح مسلم كتاب الإيمان باب ذكر المسيح إلخ رقم: ۴۲۶(۱۶۹) ۲۷۴ سنن الترمذى كتاب الفتن باب صفة الدجال: رقم: ۲۲۴۱.

[3] فيض البارى كتاب الاستئذان: ۱۸۸/۶-۱۸۷ دارالكتب العلمية.

[4] شرح ابن بطال، كتاب الاستئذان: ۹/۴ طرح التثريب، كتاب الحدود، باب اتقاء الوجه فى الحدود والتعزيرات، السابعة: ۱۷/۸ فتح البارى، كتاب العتق، باب إذا ضرب العبد إلخ: ۱۶۵/۱۳ دارالكتب العلمية.

[5] المصادر السابقة.

[6] المصادر السابقة.

[7] المصادر السابقة.

په دې روایت کښې دَ خلقت په توګه دَحضرت آدم علیه السلام دَ پلنوالي مقدار ذکر نه دې خو په بعض نورو روایاتو کښې دَ پلنوالي مقدار هم بیان کړې شوې دې. چنانچه امام احمد رحمه الله دَ سعید بن المسیب رحمه الله په طریق باندې دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه مرفوع روایت ذکر کړې دې دکوم الفاظ چه دا دي: (کان طول آدم ستین ذراعا فی سبعة أذرع عرضا).[1] یعنی چه په وخت دَ خلقت دَ حضرت آدم علیه السلام اوږدوالې شپیته لاسه او پلینوالې اووه لاسه وو.

**قوله: قال: اذهب فسلم علی أولئك من الملائکة.....إلخ:** لاړ شه او هغه فرښتو ته سلام اوکړه چه هغوی څه جواب کوی هغه به ستا او ستاد اولاد سلام شي.

"فسلم" صیغه دَامر نه بعض حضراتو په شروع کښې دَ سلام په وجوب باندې استدلال کړې دې لیکن دا خبره صحیح نه ده ځکه چه حضرت آدم علیه السلام ته کیدونکی دَ سلام حکم صرف دَ هغه خاص واقعې سره متعلق دې. په یو خاص حالت کښې صادر کیدونکې حکم په ټولو حالاتو کښې جاری کول صحیح نه دي.[2] "أولئك" سره دې خبرې طرف ته اشاره ده چه دَ ملائکو کوم جماعت ته دَ سلام کولو حکم ورکړې شوې وو هغه دَحضرت آدم علیه السلام نه لرې په څه فاصله باندې وو.[3] دَ ابوذر په روایت کښې دَ "استمع" په ځائې "اسمع" لفظ دې. دغه شان "یجیبونك" په ځائې "یحیونك" دې یعنی هغوی څنګه جواب ورکوی.[4]

"تحیة" دَ باب تفعیل مصدر دې او تَفْعِلَةٌ په وزن باندې دې. په اصل کښې "تَحْيِيَةٌ" وو دَ ړومبې یاء حرکت حاء ته دَ ورکولو نه پس یاء په یاء کښې ادغام کړه شو دې دَ آخر تاء چه په حالع دَ وقف کښې هَاء سره بدلولې شی دې سره لازم ده، او ددې ماده حیاة ده.[5]

په لغت کښې "تحیة" چاته "حیاك الله" (یعنی الله تعالي دې تا ژوندې لرې) وئیلو ته وائي. روستو چه په کومو الفاظو سره مخاطب ته دعا کولې شی دَ دغه الفاظو دَپاره دَ تحیة لفظ استعمالیدل شروع شو که هغه الفاظ دَ السلام علیکم وی او که بل څه لفظ وی.[6] چنانچه دَ جاهلیت په زمانه کښې به دَ هریو بادشاه خپله تحیه وه. په کوم سره چه به صرف هم هغه مخاطب کولې شو. بعضو ته "أبیت اللعن" (تا دَ خان دَ ملامتیا دکارونو نه خپل خان لرې اوساتلو) به وئیلې شو.[7] بعضو ته "أنعم صباحاً" (ستاسو سحر دې په خیر وی) چاته به ئي "إسلم کثیرا" (همیشه سلامت اوسیږه) سره به مخاطب کولې شو او چاته به "عش ألف سنة" (زرګونه کاله ژوندې اوسې) وئیلو شو.[8] دَ "تحیتك" مبتداء محذوف، دَهذه خبر دې. تقدیری عبارت دادې: (هذه تحیتك وتحیة ذُرِّیتك من بعدك) یعنی ستاسو دَ پاره او تاسو نه پس ستاسو دَ اولاد دَپاره تحفه ده.

---

[1] مسند الإمام أحمد، مسند أبی هریرة، رقم: ۱۰۹۱۳، ۵۳۲/۱۶، مؤسسة الرسالة، مسند البزار، علی بن زید عن سعید، رقم: ۷۸٤٤، ۲۵۸/۵ مکتبة العلوم والحکم، المعجم الصغیر للطبرانی، باب المیم، من اسمه محمد، رقم: ۸۰۸۰ ــ ۷۵-۷۶/۲ المکتب الإسلامی.

[2] فتح الباری: ٤۰۳/۱۱.

[3] المصدر السابق.

[4] فتح الباری: ٤/۱۱، عمدة القاری: ۳۵۸/۲۲ إرشاد الساری: ۲۲۹/۱۳.

[5] الصحاح للجوهری، ص: ۲۷۹، المغرب: ۲۳۹/۱ لسان العرب: ٤۲۹/۳-٤۲۸ النهایة: ۱۸٤/۱ دار المعرفة.

[6] المغرب فی ترتیب المعرب: ۲۳۹/۱.

[7] الصحاح للجوهری، ص: ۲۲، النهایة لابن الأثیر: ۳۶/۱ لسان العرب لابن المنظور: ۵۵/۱.

[8] النهایة فی غریب الحدیث والأثر: ۱۸۷/۱.

**ايا سلام دَ امت محمديه خصوصيت دى؟** په دې حديث كښې ذكر لفظ ذريه نه دَحضرت آدم عليه السلام عام ذريت هم مراد كيدې شي اوصرف دَ امت محمديه مسلمان ذريت هم مراد كيدې شي.[1] ليكن دَ نورو رواياتونه معلوميږى چه دَ سلام مشروعيت امت محمديه على صاحبها الف الف صلاة وتسليم خصوصيت دې.

چنانچه امام بخارى رحمه الله په الادب المفرد [2] كښې او ابن ماجه رحمه الله سنن [3] كښې دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها مرفوع روايت نقل كړې دې په كوم كښې چه دى: «ماحسدتكم اليهود على شيء ماحسدوكم على السلام والتأمين». [4] يعنى يهوديان چه څومره حسد په سلام او آمين ويلو باندې كوى دومره حسد دَ بل څه څيز دَ وجې نه نه كوى.

دغه شان دحضرت ابوذر غفارى رضي الله عنه يو اوږد مرفوع روايت امام مسلم رحمه الله نقل كړې دې په كوم كښې چه دى: «فكنت أنا أول من حياه بتحية الإسلام». [5] يعنى دَ ټولونه اول هم ما حضورپاك ته اسلامى تحيه پيش كړه.

بيهقى رحمه الله شعب الايمان كښې دَحضرت ابوامامه رضي الله عنه مرفوع روايت نقل كړې دې په هغې كښې دى: «جعل الله السلام تحية لأمتنا وأمانا لأهل ذمتنا» [6] يعنى الله تعالى سلام زمونږ دَ امت دَپاره تحيه او دَ اهل ذمه دَپاره امان جوړ كړې دې. سنن ابى داؤد كښې دَحضرت عمران بن حصين رضي الله عنه يو روايت دې: «كنانقول في الجاهلية: أنعم الله بك عينا وأنعم صباحا، فلما كان الإسلام نهينا عن ذلك». [7] يعنى مونږ به دَ جاهليت په زمانه كښې به «أنعم الله بك عينا» (ستا په ذريعه دې سترګې يخې وى) او «أنعم صباحا» (ستا سحر دې ښه وى، صبح بخير) الفاظ ونيل ليكن دَ اسلام راتلونه پس مونږ دَدې الفاظو دَ ويلو نه منع كړې شو. دَ مقاتل بن حيان رحمه الله په روايت كښې دى «كانوا في الجاهلية يقولون: حييت مساء، حييت صباحا، فغير الله ذلك بالسلام» [8] يعنى دَ جاهليت په زمانه كښې به خلقو «حييت مساء» او «حييت صباحا» الفاظ (چه دَ هغې معنى ده ته سحر ماښام تروتازه او آباد اوسيږه) دَ تحية په توګه به ونيلې شو الله تعالى دا په سلام سره بدل كړه.

**قوله: فقال: السلام عليكم:** حضرت آدم عليه السلام ته دَ "سلم" لفظ ونيلې شوې وو دَدې حكم په پوره كولو كښې حضرت آدم عليه السلام "السلام عليكم" اوونيل. دا الفاظ يا خو الله تعالى دَ الهام په ذريعه حضرت آدم عليه السلام ته اوخودل يا

---

[1] فتح البارى: ٤/١١ عمدة القارى: ٣٥٨/٢٣ إرشادالسارى: ٢٢٩/١٣ فيض القدير رقم: ٣٩٢٨.

[2] الأدب المفرد: ٥٥١/١ رقم: ٩٨٨، مكتبة المعارف، رياض.

[3] سنن ابن ماجه رقم: ٨٥٦ ص: ٢٧٨ دار إحياء الكتب العربية.

[4] مصنف عبدالرزاق رقم: ٢٦٣٩، ٩٨/٢ المجلس العلمى، مسند إسحاق بن راهوية رقم الحديث: ٥٧٩ – ١١٢٢، ٥٤٠/٢، مكتبة الإيمان.

[5] الصحيح لمسلم رقم: ٢٤٧٣ صحيح ابن حبان رقم: ٧١٣٣، ٨١/١٦ الرسالة، مسند أحمد رقم: ٢١٥٢٥، ٤١٥/٣٥ الرسالة، مسند أبى داؤدالطيالسى: ٢٠٦٤/١ رقم: ٤٥٨، دارهجر مصنف ابن أبى شيبة: ٢٦١/٢٠ رقم: ٣٧٧٥٣ دار القبلة شرح مشكل الآثار: ٢٧١/٤ رقم: ١٥٩٥ الرسالة، مسندالبزار: ٣٧١/٩٠ رقم: ٢٩٤٨ مكتبة العلوم والحكم. پورته ذكرشو ټولو كتابونو كښې صرف صحيح مسلم كښې كنت نه پس أنا ضمير اضافه دى.

[6] كنزالعمال رقم: ٢٥٢٥٤، ١١٦/٩ الرسالة المعجم الأوسط قم: ٣٢١، ٢٩٨/٣ دارالحرمين، المعجم الكبير رقم: ٧٥١٨ ١٢٧/٨ مكتبة ابن تيمية.

[7] سنن أبى داؤد كتاب الأدب باب: يقول الرجل للرجل: أنعم الله بك عينا، رقم: ٥١٥٨ جامع الأصول رقم: ٤٨٦٢، ٦٠٧/٦ مكتبة دارلبيان مصنف عبدالرزاق رقم: ١٩٤٣٧ شعب الإيمان، رقم: ٨٥٠٢ ٢٥٣/١١ مكتبة الرشد.

[8] تفسير ابن أبى حاتم، سورة النور، قوله تعالى: ﴿لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ﴾ رقم: ١٣٣٣٢، ٣٥١/٤٤ فتح البارى: ٤/١١.

الله تعالى هم دغه الفاظ اوخودل او يا حضرت آدم عليه السلام پخپله سَلْمْ د لفظ مصداق هم دغه الفاظ اوګنړل (١) د الهام په ذريعه د خودلو تائيد د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د دې مرفوع حديث نه هم کيږي د کوم تخريج چه ابن حبان رحمه الله کړې دې. په دې کښې دی: «إن آدم لما خلقه الله عطس فألهمه الله أن قال: الحمد لله» (٢) يعنې چه حضرت آدم عليه السلام الله تعالى پيدا کړو نوهغوى ته انترونشې راغلو نو الله تعالى د الهام په ذريعه الحمد الله ونيل وراوخودل (٣)

علامه قسطلاني رحمه الله فرمائي چه سلام هم دالته مشروع شو اودې شروع اوشوه. سلام د محبت کنجى ده په دې سره د نورو رونړو په زړونوکښې مينه اومحبت زياتيږي. په دې سره ايمان کامل کيږي. حضرت آدم عليه السلام ته هم په دې موقع باندې د سلام ونيلو په خاص توګه هم په دې وجه حکم اوشو (٤) د صحيح مسلم په يو مرفوع روايت کښې حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى: «لَا تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى شَيْءٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ، أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ» (أخرجه مسلم في كتاب الإيمان، باب بيان أنه لا يدخل الجنة إلا المؤمنون رقم: ٥٤، وأيضاً عند أبي داؤد في سننه في كتاب الأدب، باب في إفشاء السلام، وعند الترمذي في جامعه في الاستئذان، باب ما جاء في إفشاء السلام، رقم: ٢٦٨٩ نور اوګورئى إرشاد الساري: ٧/٢٣٤) يعنې تاسو د ايمان راوړلو نه بغير جنت ته نه شئ داخليدلې، اوتاسو ترکومې چه خپل مينځ کښې محبت نه کوئى کامل مؤمن نه شئ جوړيدې. آيا زه تاسو ته هغه څيز اونه ښايم چه کله تاسو په هغې باندې عمل اوکړئى نو په خپل مينځ کښې به مينه کوئى (هغه دا دې چه) خپل مينځ کښې يو بل ته سلام کوئى.

**د سلام شروع په کومو الفاظو سره اوکړې شى؟:** امام بخارى رحمه الله دا حديث ذکرکولو سره په دې خبره باندې استدلال کړې دې چه د سلام مشروع او مسنون الفاظ السلام عليکم دى. (٥) که څه هم ځوك بغير د الف لام نه سلام عليکم اووائى نو بيا هم صحيح دى. (٦) قرآن کريم کښې دى: ﴿فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ﴾ (٧) په يو بل آيت کښې دى: ﴿سَلٰمٌ عَلٰى نُوْحٍ فِى الْعٰلَمِيْنَ﴾ (٨) په دې دواړو آياتونو کښې سلام بغير د الف لام نه دې البته بهتر او غوره السلام عليکم هم الف لام سره دې لکه څنګه چه د حديث تشهد په الفاظ کښې «السلام عليك أيها النبي ...الخ» راغلى دى.

**وعليکم السلام او عليکم السلام نه شروع د سلام کول:** که چرې يوسړې د وعليکم السلام د لفظ نه د سلام شروع اوکړى نو په اتفاق سره به دا سلام نه شميرلې کيږى اونه به د دې الفاظو ويونکې د جواب مستحق وى ځکه چه د وعليکم السلام په لفظ کښې د کلام د شروع کولو صلاحيت نشته دې. (٩) البته که د واؤ نه بغير عليکم

---

(١) طرح التثريب كتاب الحدود: ١٠٥/٨ دار إحياء التراث، فتح الباري: ٤/١١.

(٢) صحيح ابن حبان رقم: ٦١٦٤ الرسالة، موارد الظمآن رقم: ٢٠٨٠، ٢١/٦، ٤ دار الفيحاء، كنز العمال رقم: ٢٥٧٨٣، ٢٣٠/٩ الرسالة، شعب الإيمان رقم: ٨٨٨٠، ١٢/ ٤٨٦ مكتبة الرشد.

(٣) فتح الباري: ٤/١١.

(٤) إرشاد الساري: ٢٣٤/٧.

(٥) فتح الباري: ٤/١١ إرشاد الساري: ٢٣٠/١٣-٢٢٩.

(٦) فتح الباري: ٤/١١ إرشاد الساري: ٢٣٠/١٣-٢٢٩.

(٧) سورة الأنعام الآية: ٥٤.

(٨) سورة الصفات الآية: ٧٩.

(٩) فتح الباري: ٤/١١ إرشاد الساري: ٢٣٠/١٣ الأذكار للنووي مع شرحه الفتوحات الربانية: ٢٩٥/٥، المكتبة الإسلامية.

السلام وئيلوسره چا دَ سلام شروع اوکړه نو په دې کښې اختلاف دې. بعض حضرات وائي چه په دې الفاظوسره دَ سلام شروع کول به سلام نه شي شميرلې اونه به دا الفاظ ويونکې دَ جواب مستحق وي.(١) څکه چه سنن ابی داؤد (٢)او سنن ترمذي کښې ابوجُرى جابر بن سليم رضي الله عنه نه روايت دې : «أتيت رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقلت: عليك السلام يا رسول الله! قال: لا تقل عليك السلام، فإن عليك السلام تحية الموتى» (٣)يعنى زه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضرشوم او اوومې وئيل عليك السلام يارسول الله! نوحضورپاك اوفرمائيل عليك السلام مه وايه څکه چه عليك السلام دَ مړو تحيه ده.

په دې روايت کښې عليك السلام په الفاظوسره سلام کولو نه حضورپاك منع فرمائيلې ده او جواب ئې هم نه دې ورکړې. ددې نه استدلال کولوسره دا حضرات فرمائي چه دا الفاظ به نه شرعاً په سلام کښې شميروى اونه به ويونکې دَ جواب مستحق وي.(٤) ليکن راجح قول کوم چه امام غزالى، قاضى عياض، علامه ابن قيم اوامام نووى رحمهم الله اختيارکړې دې هغه دادې چه په دې الفاظو سره دَ سلام شروع کول مکروه دي. ليکن بهر حال په دې کښې دَ سلام صيغه موجود ده نو په دې وجه به دې ته هم سلام وئيلې شي اوددې الفاظو دَ اوريدلو نه پس جواب ورکول هم ضرورى دى. (٥) څکه چه دَ عليك السلام په الفاظو کښې کوم کراهت دې هغه ذاتى نه دې بلکه دَ مشروع لفظ دَ تقديم وتاخير دَ وجې نه راغلې دى.(٦)

**فائده:** علامه شامى رحمه الله ردالمحتار کښې فرمائي چه راجح خبره داده چه په شروع کښې عليك السلام وئيل شرعى سلام نه دې اونه په دې صورت کښې جواب ورکول ضرورى دى څکه چه په حديث کښې دى حضورپاك ددې الفاظو جواب نه دې ورکړې بلکه ددې نه ئې منع فرمائيلې ده. اوکه چرې دا سلام وي نوحضورپاك به اول دَ هغه دَ سلام جواب ورکولو دهغې نه پس به ئې ورته دَ صحيح سلام کولو طريقه خودله لکه چه په مانځه کښې تعديل ارکان نه کونکې سړى ته اول دَ سلام جواب ورکړو دهغې نه پس ئې دَ مونځ دَ راګرځولو حکم ورکړو. دارنګه علامه شامى رحمه الله فرمائي «قلت: فهذا مما يفيد اختصاص وجوب الرد عما إذا ابتدأ بلفظ السلام عليكم أو سلام عليك» (کتاب الحظر والإباحة، فصل في البيع، ٥٩٦/٩دارعالم الکتب) يعنى دَ سلام دَ جواب وجوب صرف دوو صورتونو سره خاص دې ① کله چه دَ سلام شروع کول السلام عليکم يا ② سلام عليکم په لفظ سره اوکړې شى.

---

(١) فتح البارى: ٤/١١ إرشادالسارى: ٢٣٠/١٣ الأذکار مع الفتوحات: ٣٢٠/٥.

(٢) سنن أبى داؤد، أبواب السلام، باب کراهية أن يقول:عليک السلام رقم الحديث: ٥١٦٨، ٤٣٥/٥مؤسسة الريان.

(٣) سنن الترمذى أبواب الاستئذان والآداب، باب ماجاء فى کراهية أن يقول: عليک السلام مبتدأ، رقم: ٢٧٢٢وکذلک أخرجه ابن ابى شيبة فى المصنف، کتاب اللباس، باب: موضع الإزار أين هو؟ رقم: ٢٥٣١٩، ٣١٩/٢٥دارالقبلة. والنسائى فى السنن الکبرى، کتاب عمل اليوم والليلة، باب: کيف السلام، رقم الحديث: ١٠٠٧٧، ١٢٦/٩الرسالة. والبيهقى فى السنن الکبرى، کتاب الشهادات، باب شهادة أهل المعصية، رقم: ٢١٦٢٣، ٢٣٦/١دائرة المعارف العثمانية.

(٤) إکمال المعلم بفوائدمسلم، کتاب السلام، باب يسلم الراکب على الماشى الخ: ٤١/٧،رقم: ٢١٦٠،دارالوفاء.

(٥) الأذکار للنووى، کتاب السلام، باب کيفية السلام ص: ٢١٤دارالفکر، فتح البارى کتاب الاستئذان: ٥/١١دارالمعرفة. شرح المسلم للنووى، کتاب السلام، باب: يسلم الراکب على الماشى إلخ: ٣٦٦/١٤ رقم ٥٦١١ دار المعرفة.

(٦) الفتوحات الربانية، کتاب السلام، باب کيفية السلام: ٢٣٤/٥المکتبة الإسلامية.

باقي تركومې پورې چه ماقبل كښې ذكرشوې د ابوجرى ﷺ په حديث كښې د راغلې نهى تعلق دې نوهغه به په بيان احسن او اكمل باندې محمول وى يعنى چه د عليكم السلام په مقابله كښې بهتر اوكامل تر سلام السلام عليكم دې.[1]

**ايا عليک السلام د مړو سلام دې؟** پورته ذكرشوى حديث كښې حضورپاك د عليك السلام وئيلو نه منع فرمائيلې ده او د منع كولووجه ئې دا خودلې ده چه دا د مړو سلام دې.

**اشكال:** په دې باندې دا اشكال پيدا كيږى چه دا حديث نور رواياتو سره متعارض دې ځكه چه امام مسلم رحمه الله د حضرت عائشه ﷺ د حضورپاك سره جنت البقيع ته د تللوسره متعلق حديث ذكركړې دې په كوم كښې چه حضرت عائشه ﷺ د رسول الله ﷺ نه معلومه كړه چه (قبرستان ته تلوسره) زه څه اوكړم؟ حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو (قولى: السلام على أهل الديار من المؤمنين)[2] دغه شان امام مسلم رحمه الله د حضورپاك جنت البقيع ته تللو سره پخپله د دعاكولوسره متعلق حديث ذكركړې دې. په كوم كښې چه حضورپاك (السلام عليكم أهل الديار من المؤمنين) الفاظوسره اهل قبور ته سلام كړې دې.[3]

د امام مسلم رحمه الله ذكركړې شوى دا دواړه روايتونه ماقبل كښې ذكركړې شوى د ابوجرى الهجيلى ﷺ حديث سره متعارض دى. ځكه چه د امام مسلم ذكركړې شوې روايتونوكښې په كومو الفاظوسره چه اهل قبور ته سلام كړې شوې دې هغه عليك السلام د لفظ نه مختلف دى. نوبيا عليك السلام لفظ مړو سره خاص كيدو څه معنى ده؟ د دې اشكال مختلف جوابونه وركړې شوى دى:

**جواب نمبر ①:** علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه پورته ذكركړې شوو دواړو روايتونوكښې هيڅ تعارض نشته دې. ځكه چه د حضرت ابوجرى ﷺ نه روايت كړې شوى حديث مطلب دادې چه كله يوقبر ته لاړشى اوسلام كوى نوعليك السلام (د مفرد صيغې سره) به وئيلې شى اوكه د ډيرو قبرونو په مقبره كښې داخل شى سلام كوى نو (السلام على أهل الديار من المؤمنين) به وئيلې شى.[4]

**جواب نمبر ②:** علامه ابن العربى رحمه الله هم د عدم تعارض قائل دې. د هغه د بيان كړې شوې تطبيق وجه داده چه د عليك السلام په الفاظوسره د سلام كولومتعلق حديث كښې چه كومه نهى راغلې ده هغه صرف د هغه خلقو سره خاص ده ځوك چه دا الفاظ مړو سره خاص ګنړى اودې الفاظوسره ژوندى خلقوته سلام وئيل د بدفالئى اونحوست والاعمل ګنړى. د داسې خلقو د پاره په دې لفظ سره ژوندو ته سلام كول منع دى دعامو خلقو د پاره منع نه دى.[5]

خو دا پورته دواړه جوابونه بعيد ښكارى ځكه چه د حديث په الفاظو كښې په مذكوره صيغه سره د سلام كولو

---

[1] الأذكار للنووي، كتاب السلام، باب كيفية السلام ص: ٢١٤دار الفكر.

[2] صحيح مسلم كتاب الجنائز، باب : ما يقال عند دخول القبور، ص: ٣٧٦، رقم: ١٠٢ (٩٧٤) بيت الأفكار الدولية، صحيح ابن حبان، كتاب إخباره صلى الله عليه وسلم عن مناقب الصحابة، ذكر البيان بأن جبريل عليه السلام كان لا يدخل على المصطفى صلى الله عليه وسلم بيته إذا وضعت عائشة ثيابها، ٤٥/١٦رقم: ٧١١، الرسالة، مسند أحمد، مسند عائشة، رقم الحديث: ٢٥٨٥٥، ٤٤/٤٣، مؤسسة الرسالة.

[3] صحيح مسلم كتاب الجنائز، باب : ما يقال عند دخول القبور، ص: ٣٧٧، رقم: ١٠٤ (٩٧٥) بيت الأفكار الدولية، سنن النسائي الكبرى، كتاب الجنائز باب الاستغفار للمؤمنين رقم: ٢١٧٧، ٢١٧٨، ٤٦٨/٢ الر سالة ، مسند أحمد، رقم الحديث: ٢٣٠٣٩، ٢٢٩٨٥، الرسالة.

[4] تفسير القرطبى سورة النساء الآية: ٨٦، ٤٩٥/٦ الرسالة.

[5] فتح البارى كتاب الاستيذان باب بدء السلام: ٥/١١.

متعلق راغلې ممانعت عام دې نه په دې کښې د مفرد صیغې تخصیص دې اونه د څه خاص گمان د تخصیص طرف ته اشاره موجود ده. لهذا د حدیث عام الفاظ په یوخاص مفهوم کښې مقید کول بعید دي.

**جواب نمبر۴**: د دې اعتراض دریم جواب قاضي عیاض رحمه الله (۱) اوعلامه ابن قیم رحمه الله (۲) ورکړې دې دا حضرات هم د مذکوره احادیثو په مینځ کښې د تعارض نفی کوی. ځکه چه علیك السلام ته کوم تحیة الموتی وئیلې شوې دې د دې مطلب دانه دې چه په شرعی لحاظ سره مړو ته د سلام کولو الفاظ علیك السلام دي. بلکه په دې حدیث کښې حضورپاك د یوداسې امر طرف ته خبر ورکړې دې د کوم چه په غریب معاشره کښې رواج وو. ځکه چه د عربو د شاعرانو دا عادت وو چه هغوی به په خپلو اشعاروکښې یومړ شوی سړې مخاطب کولوسره د سلام پیش کولو د پاره (جار مجرور مقدم کولوسره) علیك السلام الفاظ استعمالول لکه چه دې شعر کښې دي:

علیك سلام الله قیس بن عاصم ورحمتهٔ ماشاء أن یترحما (۳)

دغه شان د حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه په شان کښې لوستلې شوې مرثیې الفاظ دادي:

علیك السلام من أمیروبارکت ید الله في ذاك الأدیم الممزّق (۴)

د مذکوره کلام نه داخبره معلومه شوه چه په حدیث کښې حضورپاك د دې الفاظو په ذریعه د سلام کولونه منع فرمائیلې ده د کوم نه چه د عربو شاعرانو د خپل عادت موافق به مړو ته سلام کولو. د دې نه داخبره گنړل صحیح نه دی چه دا الفاظ د مړو سلام گرځولې شوې دي. بلکه مطلب دادې چه په دې الفاظو سره دې نه ژوندو ته سلام کولې شي اونه د جاهلیت د خلقو په شان مړو ته په دې الفاظوسره سلام کوئی. بلکه د مړو د سلام کولو د پاره (السلام علیکم علیاهل الدیار من المؤمنین) الفاظ استعمالوئی.

**فقالوا: السلام علیك ورحمة الله**: یعنی د حضرت آدم علیه السلام د السلام علیکم په جواب کښې فرښتو السلام علیك ورحمة الله اووئیل. د دې نه معلومه شوه چه په کوم لفظ سره د سلام شروع کړې شوې ده هم په هغې سره جواب ورکول هم صحیح دی. (۵) لیکن بهتردادی چه په جواب کښې صله (جارمجرور) مقدم کړې شی. (۶)

"فقالوا" د صیغې د جمع نه بعض حضراتو په دې باندې استدلال کړې دې چه دیرو خلقو ته د سلام کولو په صورت کښې به د هغوی نه د هرسړی د پاره جواب ورکول لازم شی ځکه چه د قالواصیغه د جمع نه دا معلومیږی چه د ملائکه په جماعت کښې موجود هریوفرد جواب ورکړې دې. (۷) لیکن صحیح خبره داده چه گنړې ډلې ته د سلام کولوپه صورت کښې د هغه مجمعې نه د یوکس په جواب ورکولوسره وجوب ساقط کیږی او د ټولو د طرف نه به کافی گنړلې شی. (۸) اگرچه بهترصورت دادې چه ټول مخاطبین نمبرپه نمبرجواب ورکړی. (۱)

---

(۱) إکمال المعلم بفوائدمسلم، کتاب السلام، باب یسلم الراکب علی الماشی الخ: ۴۱/۷، دارالوفاء.

(۲) زادالمعاد فصل فی صفة السلام: ۴۲۱/۲الرسالة.

(۳) فتح الباري: ۵/۱۱، الوافی بالوفیات، حرف الواؤ، حفید ابن أبی داؤد: ۲۱۵/۲۴دارإحیاء التراث العربی، زادالمعاد: ۴۲۱/۲الرسالة.

(۴) فتح الباري: ۵/۱۱.

(۵) فتح الباري: ۶/۱۱تفسیر القرطبی سورة النساء: ۸۶، ۳۰۰/۵إرشادالساری: ۲۳۰/۱۳.

(۶) الأذکار مع الفتوحات الربانیة، کتاب السلام إلخ، باب کیفیة السلام: ۲۸۷/۵المکتبة الإسلامیة، عمدةالقاری، کتاب الاستئذان باب بدء السلام: ۳۵۸/۲۲دارالکتب العلمیة.

(۷) فتح الباري: ۶/۱۱تفسیر القرطبی، سورة النساء: ۸۶، ۳۰۰/۵، الفتوحات: ۳۰۷/۵-۳۰۶.

(۸) فتح الباري: ۷/۱۱الفتوحات: ۳۰۷/۵باب حکم السلام، الأذکار: ۳۰۴روح المعانی سورة النساء: ۸۶، ۹۶/۳دارالکتب العلمیة.

دَ السلام علیك دَمفرصیغې نه بعض حضراتو په دې باندې استدلال کړې دې چه صیغه دَ جمع (السلام علیکم) نه دَ سلام شروع کولو په صورت کښې صیغه دَمفرد (السلام علیك) سره جواب ورکول هم کافي دی. [2] لیکن صحیح خبره لکه چه علامه قرطبي رحمه الله دَ ابن ابی زید رحمه الله نه [3] اوحافظ ابن حجر رحمه الله دَ ابن دقیق العید رحمه الله [4] نه نقل کړې ده، دا ده چه که چرې په سلام کښې دَ جمع صیغه استعمال کړې شی نو جواب هم دَ جمع په صیغه سره ورکول پکاردی. په دې صورت کښې به دَمفرد په صیغه سره جواب ورکول کافي نه وی ځکه چه دَ الله تعالی ارشاد دې: ﴿وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا﴾ [5] یعنی چه کله تاسو ته سلام اوکړې شی نو تاسو دَهغې نه ښه جواب ورکوئی یا بیا هم هغه هومره جواب ورواپس کړئی. په دې آیت کښې دَدې خبرې حکم دې چه دَ سلام جواب دَ سلام په نسبت بهتر او احسن کیدل پکاردی. ګنی کم نه کم هم دَهغې برابر کیدل پکاردی اودَ جمع دَصیغې په مقابله کښې دَ مفرد صیغه کمتر ده. ځکه چه دَ جمع صیغه دَ تعظیم اوتفخیم دپاره راځی. [6] بل دَ جمع صیغه دَ مخاطب سره سره هغه سره هروخت موجود پاتې کیدونکې کراماً کاتبین فرښتو سلام ته هم شامل کیږی. هم دغه وجه ده که مخاطب سره دَدې چه هم یو کس وی نوبیا هم دَ جمع صیغه استعمالول مستحب دی. [7] لهذا دَ جمع په مقابله کښې دَ کمتر کیدو دَ وجې نه دَ مفرد په صیغه سره دَ جمع جواب ورکول صحیح نه دی.

**اشکال:** دَ مذکوره حدیث نه خودَ جمع په جواب کښې دَ مفرد صیغه استعمالول صحیح معلومیږی ځکه چه دَحضرت آدم علیه السلام دَ السلام علیکم وئیلو په جواب کښې فرښتو السلام علیك دَ مفرد صیغې سره جواب ورکړو.

**جواب:** په مذکوره حدیث کښې سره دَدې چه فرښتو دَ جمع دَ صیغې په جواب کښې دَ مفرد صیغه استعمال کړې ده او په دې اعتبارسره دَ سلام په مقابله کښې په جواب کښې کمې واقع شوې دې لیکن چونکه په سلام کښې دَ ورحمة الله اضافه موجود نه ده کوم چه په جواب کښې موجود ده. نوکه په یواعتبارسره په جواب کښې څه کمې راغلې دې نو دَ ورحمة الله اضافې سره هغه کمې پوره شو او بالجمله جواب دَ سوال په مثل شو.

دَدې نه معلومه شوه چه دَمفرد صیغه په هغه صورت کښې دَ جمع دَ جواب دپاره نه کافي کیږی کله چه دې سره نوره څه اضافه اونه کړې شی. ځکه اصل مقصود دادې چه دَ سلام جواب دَ سلام په نسبت بهتر وی یا کم نه کم برابر وی اودَ مفرد صیغې سره که چرې ورحمة الله وغیره اضافه اوکړې شی نودغه دَ جمع دَ صیغې برابر کیدې شی.

**فزادوه ورحمة الله:** یعنی فرښتو په جواب کښې دَ ورحمة الله اضافه اوکړه دا اضافه کول په اتفاق سره مستحب ده. [8] که چرې سلام کونکې ورحمة الله اووئیل نو جواب کښې دَ وبرکاته اضافه کول مستحب دی. [9]

**وطوله ستون ذراعاً:** دَ ذراع نه کوم یوذراع مراد دې؟ په دې کښې دوه احتماله دی. ① دې نه دَحضرت آدم علیه السلام ذراع مراد دې. ② ذراع متعارف مراد دې. شارحینو حضراتو دا دواړه احتمالات نقل کړی دی. علامه ابن

---

[1] الفتوحات: ۳۰۶/۵-۳۰۴روح المعاني:۹۶/۳.

[2] فتح الباري: ۶/۱۱

[3] تفسیر القرطبی سورة النساء: ۸۶ ۳۰۰/۵.

[4] فتح الباري: ۳۷/۱۱.

[5] سورة النساء: ۸۶

[6] فتح الباري: ۳۷/۱۱.

[7] تفسیر القرطبي: ۳۰۰/۵-۲۹الأذکار مع الفتوحات: ۲۸۷/۵-۲۸۵عمدة القاري:۳۵۸/۲۲الکوثر الجاري: ۶/۱۰

[8] فتح الباري:۶/۱۱إرشادالساري:۲۳۰/۱۳.

[9] فتح الباري:۶/۱۱إرشادالساري:۲۳۰/۱۳.

التين رحمه الله فرمائي چه دې نه ذراع متعارف مراد دې اودې ته علامه عيني رحمه الله قول اشهرونيلې دې.[1] اومطلب دادې چه دَحضرت آدم عليه السلام قد په اوږدوالي كښې دَ نن وخت دَخلقو دَ شپيتو ذراع په اندازه وو يعنې شپيته گزه وو. علامه سندهي رحمه الله فرمائي چه دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په كلام كښې تسامح واقع شوې دې اوهغه داسې چه حافظ ابن حجر رحمه الله احتمال اول ته اظهر وئيلې دې خو احتمال اول دَهغوي په عبارت كښې هډو ذكرنه دې اودويم دا هغوي چه دَ اظهريت كوم دليل ذكر كړې دې هغه دَ اول احتمال مؤيدنه دې بلكه دَدې نه دَ دويم احتمال تائيد كيږي.[2]

علامه سندهي رحمه الله اول احتمال (چه پخپله هم دَحضرت آدم عليه السلام ذراع مراد دې) دَ نه صحيح كيدو علت بيانولوسره وئيلي دي چه دلته مقصد دَحضرت آدم عليه السلام تعارف دې اود اول احتمال مراد داخستلو په صورت كښې دا مقصد نه حاصليږي ځكه چه په دغه صورت كښې به مفهوم داشي دَ آدم عليه السلام پخپله ذراع دَهغوي دَ شپيتو ذراع دَ اوږد بدن يو جز دې ليكن دا معلومه نه ده چه پخپله دَهغوي ذراع څومره وو اوچه كله دَحضرت آدم عليه السلام پخپله ذراع مجهول دې نو په دې سره به لازماً دَهغوي دَ بدن اوږدوالې هم مجهول شي اوداسې به په ځائې دَ تعارف تجهيل لازم راشي په دې وجه اول احتمال صحيح نه دې.

بل دَ اولني احتمال مراد اخستلو په صورت كښې دَحضرت آدم عليه السلام دَ لاسونو ډير واړه كيدل لازمي راځي اودا په ځائې دَ ښائست بدرنگوالي دې اوداسې كيدل دَاعتدال نه هم جدا دې. دغه شان دَ لاسونو دَ ډير واړه كيدو سره هغه منافع او مقاصد هم نه شي حاصليدلې كوم چه دَ يو معتدل لاسونو والا انسان حاصلولې شي.[3]

په دې حواله دَحافظ ابن حجر رحمه الله په عبارت كښې سهو ده. چنانچه فتح الباري كښې دي: «يحتمل أن يريد بقدر الذراع المتعارف يومئذ عند المخاطبين، والأول أظهر، لأن ذراع كل أحد بقدر ربعه، فلوكان بالذراع المعهود لكانت يده قصيرة في جنب طول جسده»

([4]) يعنې ممكن دي چه دَدې نه مراد هم هغه ذراع مراد وي كوم چه حديث رسول صلى الله عليه وسلم مخاطب حضراتو په نيز متعارف وو. ليكن اولني احتمال راجح دې ځكه چه دَ سړي ذراع دَهغه دَ قد دَ څلورمې حصې برابر وي. نو كه چرې دَ ذراع نه متعارف ذراع مراد واخستې شي نو ددې نتيجه به داشي چه دَحضرت آدم عليه السلام دَ اوږد بدن په اړخ كښې دَ لاسونو ډير زيات لنډيدل او واړه كيدل لازم راځي.

دَحافظ ابن حجر رحمه الله په عبارت كښې دي (والأول أظهر) ليكن په عبارت كښې دَ احتمال اول تصريح نشته دا سهو ده او صحيح عبارت داسې دي: «يحتمل أن يريد بقدر ذراع نفسه ويحتمل أن يريد بقدر الذراع المتعارف يومئذ عند المخاطبين، والأول أظهر، لأن ذراع كل أحد بقدر ربعه، فلوكان بالذراع المعهود لكانت يده قصيرة في جنب طول جسده»[5]

دا روايت امام احمد بن حنبل رحمه الله هم په دې طريق سره مرفوعاً نقل كړې دې.[6]

په روايت باب كښې دَحضرت آدم عليه السلام قد شپيته ذراع خودلې شوې دې دَدې تائيد دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه په يوبل روايت سره هم كيږي. هغه روايت دادې: «كان طول آدم ستين ذراعاً في سبعة أذرع عرضاً»[7] يعنې آدم عليه السلام دَ اووه ذراع پلنوالي سره شپيته ذراع اوږد وو.

---

[1] عمدة القاري: ۲۸۷/۱۵.

[2] تعليقات العلامة السندهي على صحيح البخاري: ۴۶۸/۱.

[3] تعليقات العلامة السندهي على صحيح البخاري: ۴۶۸/۱.

[4] فتح الباري: ۴۴۲/۶.

[5] الأبواب والتراجم، ص: ۲۱۲.

[6] مسند الإمام أحمد، مسند أبي هريرة رضي الله عنه: ۵۰۴/۱۳، رقم الحديث: ۸۱۷۱

[7] عمدة القاري: ۲۸۸/۱۵ إرشاد الساري: ۲۳۴/۷.

حافظ ابن کثیر رحمه الله البدایه والنهایه کښې فرمائیلي دي چه دې روایت کولو کښې امام احمد رحمه الله متفرد دي.[1] بعض روایاتو کښې د حضرت آدم علیه السلام قد غیر معمولي اوږد خودلې شوې دې. چنانچه د حضرت ابوهریره رضي الله عنه دا روایت حافظ عبدالرزاق رحمه الله په یوبل طریق سره نقل کړې دې په کوم کښې چه دي: «أن آدم لما أهبط كانت رجلاه في الأرض ورأسه في السماء فحطه الله إلى ستين ذراعا»[2] یعنې چه کله آدم علیه السلام په زمکه باندې راکوز کړې شو نو د هغوی خپې په زمکه وې او سر ئې په آسمان کښې وو بیا الله تعالی شپیته ذراع پورې د هغوی قد راکم کړو.

د دې مفهوم نور احادیث هم نقل دي او هغه ټول د حدیث باب معارض دي. په حدیث باب کښې تصریح ده چه حضرت آدم علیه السلام پیدا شو نو د هغه قد شپیته ګزه وو. د دې مطلب دا شو چه هغه د خلقت د شروع نه هم په دغه قد باندې وو. لیکن د عبدالرزاق رحمه الله د روایت نه په ظاهره معلومیږي چه د پیدائش د شروع نه هم دغه شان د اوږد قد والا وو چه خپې به ئې په زمکه باندې وې او سر به ئې آسمان سره لګیدلو. نو چونکه حدیث باب سره د دې تعارض دې په دې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله او فرمائیل چه هم دا روایت باب معتبر دې چه حضرت آدم علیه السلام پیدا کړې شو نو شپیته ذراع وو.[3]

فَكُلُّ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ آدَمَ: چنانچه هر هغه سړې چه جنت کښې به داخلیږي (هغه) به د حضرت آدم علیه السلام په صورت باندې وي. حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله فرمائي چه د دې حدیث نه ثابته شوه چه جنتیان به د شکل او صورت د هر نقص او عیب نه پاکید و سره جنت کښې داخلیږي. په حسن او جمال او طول او قامت کښې به هغه د حضرت آدم علیه السلام په صورت باندې وي.[4]

معارف ابن قتیبه کښې دي: «ان آدم علیه السلام کان أمرد، وإنما نبتت اللحية لولده بعده، وكان طوالا، كثير الشعر، جعد الشعر، أجمل البرية»[5] یعنې آدم علیه السلام بې ږیرې وو البته د هغه د خوئې ږیر راختلې وه، حضرت آدم علیه السلام د اوږدو ګورګوتې ویښتو والا په مخ د زمکه د ټولو نه زیات ښائسته وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي حافظ عبدالرزاق رحمه الله «على صورة آدم» سره «وطوله ستون ذراعا» الفاظ هم په خپل روایت کښې نقل کړي دي. دا د «على صورة آدم» تفسیر نه دې بلکه د خاص بعد العام د قبیل نه دې او مطلب دا دې چه په جنت کښې داخلیدونکې هر سړې به د حضرت آدم علیه السلام په صورت باندې وي او د هغه قد به شپیته ذراع وي.[6]

فَلَمْ يَزَلِ الْخَلْقُ يَنْقُصُ حَتَّى الْآنَ: لیکن د (حضرت آدم علیه السلام نه پس) تر اوسه پورې خلق په کمیدو دي. حتی د إلى په معنی کښې دي.

د حدیث باب د تشریح په ذیل کښې وړاندې تیر شو چه حضرت آدم علیه السلام د قد و قامت سره په حسن او جمال کښې هم بې مثال وو او د هغوی په شان هیڅوک نه وو. نو سوال دا دې چه د کمیدو عمل روستو په مخلوق کښې د حسن او جمال او قد و قامت دواړو په اعتبار سره وو یا صرف د قد په لحاظ سره وو.

اکثر شراح د حدیث په دې جمله کښې د نقص خلق اطلاق په قد باندې کړې دې او مطلب دا خودلې شوې دې چه د حضرت آدم علیه السلام نه پس د خلقو په قد کښې کمې راتلو. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عیني رحمه الله فرمائي چه مطلب دا دې چه د هر راتلونکې قرن خلقو قد، د تیر شوي قرن د خلقو نه کم پاتې دې او دغه شان د نقص خلق

---

[1] البداية والنهاية: ۱۳۲/۱.

[2] مصنف عبدالرزاق: ۹۳/۵باب بيان الكعبة رقم: ۹۰۹۶.

[3] فتح الباري: ۴۴۳/۶.

[4] فتح الباري: ۴۴۳/۶عمدة القاري: ۲۸۸/۱۵إرشادالساري: ۳۳۴/۷.

[5] إرشادالساري: ۳۳۴/۷.

[6] فتح الباري: ۴۴۳/۶.

دا سلسله روانه ده. لیکن دې امت ته په رسیدو سره په قد کښې دکمې عمل بند شو. اوس به د قیامت پورې په قد کښې نور کمې نه کیږي. دحتی الآن هم دغه مطلب دې.[1]

خو علامه قسطلانی رحمه الله د نقص خلق اطلاق په حسن وجمال او قدوقامت دواړو باندې کړې دې. مطلب دا چه څنګه په قد کښې کمې راغلې دې دغه شان په حسن وجمال کښې هم کمې راغلې کوم چه دې امت ته په راتلو باندې بند شوې. البته جنت کښې دداخلیدو نه پس به ټول خلق په حسن وجمال او قد وقامت کښې دحضرت آدم علیه السلام په صورت وی.[2]

علامه ابن التین رحمه الله فرمائی چه کله د سړی قد راؤخی نوکتونکو ته قطعی دا اندازه نه کیږی چه په څومره وخت کښې د ده قد راؤوتلو بلکه کتونکو ته د یوې مودې تیریدونه پس ددې خبرې اندازه کیږی چه د فلانکی قد لوئی شوې دې او هغه اوږد شوې دې هم په دې باندې نقص خلق هم قیاس کړئی.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې اشکال کوی چه د قد اوږدوالي زمانه په زمانه کم شو نو په دې باندې قیاس کولوسره د قوم ثمود او نورو پخوانو قومونو قدونه هم دحضرت آدم علیه السلام په شان غیر معمولی کیدل پکار وو څکه چه دهغوی اوحضرت آدم علیه السلام په مینځ کښې زیاته فاصله نه ده لیکن دهغوی د کلو اوقصبو کوم آثار چه تراوسه پورې محفوظ دی دهغې نه اندازه کیږی چه دهغوی قد دعام انسانانو په شان درمیانه وو زیات اوږد نه وو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه تراوسه پورې ددې اشکال هیڅ جواب ماته معلوم نه شو.[4]

هم دغه اشکال حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله هم د علامه ابن خلدون رحمه الله په حواله سره نقل کړې دې.[5]

حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا کاندهلوی رحمه الله په ډیر بارك بینئی سره ددې اشکال جواب ورکړې دې. هغه فرمائی چه لکه څنګه په یوانسان باندې ماشوموالي خوانې او بوډاوالی درې مختلف ادوار راځی هم دغه شان په عالم باندې هم دغه دریواړه زمانې تیرشوی دی. چنانچه دحضرت آدم علیه السلام نه د نوح علیه السلام پورې ماشوموالي دور وو، د نوح علیه السلام نه د ابراهیم علیه السلام پورې شباب یعنی خوانی وه اوبیا دې نه پس بوډاوالي. د ماشوموالی د دور نه د شباب پورې د انسان قد ورځ په ورځ غتیږی. په حدیث کښې خودلې شوی دې چه د انسان قد د حضرت آدم علیه السلام نه پس د اوږدوالی نه د کمی طرف ته مائل شوی. اوس داسې اوګنړئی چه د حضرت آدم علیه السلام نه د نوح علیه السلام پورې دور چونکه د طفولیت وو په دې وجه په دې موده کښې انسان د قامت په اعتبار سره دطول نه دقصر طرف ته سفر اوکړو اود طول نه د قصر طرف ته دامیلان دومره په تیزئی سره وو چه په دومره تیز رفتارئی سره په طبعی توګه باندې د انسان قد د قصر نه د طول طرف ته نه لوښیږی.[6]

دحضرت شیخ الحدیث مقصد دا خودل دی چه دحضرت آدم نه تر نوح پورې عالم د طفولیت د دور نه تیریدو او په دغه موده کښې د انسان قد په ډیرتیزئی سره کمیدلو. چونکه د قوم ثمود وغیره تعلق دحضرت نوح علیه السلام نه پس زمانې سره دې کوم چه د عالم دشباب دور وو او انسان قد ددې نه وړاندې هم د عالم د طفولیت په دورکښې کم شوې وو په دې وجه دهغوی قدونه هم د نن د عام انسانانو د قد په شان درمیانه یا ددې نه لږ شان اوږده وو. اوهم په دې وجه دهغوی کورونه هم غیرمعمولی اوچت نه وو بلکه دهغه دور د مروج انداز وو.

[1] فتح الباری: ۳۴۳/۶ عمدة القاری: ۲۸۸/۱۵.

[2] إرشادالساری: ۲۳۴/۷.

[3] فتح الباری: ۳۴۳/۶.

[4] فتح الباری: ۴۴۳/۶.

[5] فیض الباری: ۱۷/۴.

[6] الأبواب والتراجم ص: ۲۱۲.

مګر حقیقت دادې چه دقوم عاد او ثمود قدونه غیر معمولي اوږده وو. ددې تائید د مختلف تاریخي روایاتونه هم کیږي. د آیت ﴿وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَصْطَةً﴾ (الاعراف: ٦٩) لاندې علامه آلوسي رحمه الله د کلبي رحمه الله په حواله سره نقل کړې دي:
«کانت قامة الطویل منهم مأة ذراع، وقامة القصیر منهم ستین ذراعا»[1]
یعنی د قوم عاد او ثمود د اوږد سړي قد سل ذراع او د ټیټ سړي قد شپیته ذراع وو. حافظ ابن عساکر رحمه الله هم د ابن وهب رحمه الله یو روایت نقل کړې دې په هغې کښې دي: «وکانت هامة الرجل مثل القبة العظیمة وعینه یفرخ فیهما السباع» چه په هغوی کښې د یو سړي سر به د لوئې ګنبد په شان وو او سترګې به ئې دومره غټې وې چه په هغې کښې به ځناور[2] اوروبچي راوړلي شو. دغه شان د قتاده رحمه الله روایت دې: «انهم کانوا اثني عشر ذراعا»[3] یعنی د هغوی قد به دوولس ذراع وو. په یو بل روایت کښې دی چه هغوی د کهجورو د ونو په شان اوږده وو.[4] لیکن دا اشکال بیان هم باقي پاتې کیږي چه د هغوی کورونه ولې د هغوی د قد په شان اوږده نه وو؟
امام بخاري رحمه الله د باب لاندې مختلف احادیث او آثار د صحابه کرامو نقل کړي دي. خود باب مناسبت سره ئې هغه حدیث نه دې راوړې کوم چه امام ترمذي رحمه الله امام نسائي رحمه الله او امام بزار رحمه الله د سعید مقبري رحمه الله په طریق سره د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه مرفوعاً روایت کړې دې او ابن حبان رحمه الله ددې روایت تصحیح کړې ده روایت دادې: «ان الله خلق آدم من تراب، فجعله طینا، ثم ترکه، حتی إذا کان حمأ مسنونا خلقه وصوره، ثم ترکه حتی إذا کان صلصالا کالفخار، کان إبلیس یمر به فیقول: لقد خلقت لأمر عظیم، ثم نفخ الله فیه من روحه. وکان أول ما جری فیه الروح بصره وخیاشیمه، فعطس فقال: الحمد لله، فقال الله: یرحمك الله...... الحدیث» یعنی الله تعالی حضرت آدم علیه السلام د خاورې نه پیدا کړو نو هغه ئې خټه جوړه لو سره پریخودو. کله چه دا خټه سخابدبوداره شوه نو بیا الله تعالی د هغه شکل او صورت جوړ کړو. بیائې دا پریخوده تردې چه هغه لکه د ټکرې (ټوکرکې) په شان آواز کونکې شوه. بیا الله تعالی په دې کښې خپل روح پوکو هلو. د بدن په کومه حصه کښې چه اول روح روان شو هغه د هغه سترګې او پوزه وه. په کوم سره چه هغه ته اترونشې راغلو په دې باندې هغه الحمد لله اووئیل نو الله تعالی په جواب کښې یرحمك الله اوفرمائیل.[5]
حافظ ابن حجر رحمه الله چه د حدیث کوم الفاظ ذکر کړي دی په دې الفاظو سره دا حدیث صرف امام ابویعلی موصلي رحمه الله روایت کړې دې. نورو محدثینو سعید مقبري عن ابي هریرة په طریق سره نقل کړې شوی روایت الفاظ د پورتنو الفاظو نه مختلف دی. البته مضمون په ټولو کښې هم یو دې. حافظ ابن حجر رحمه الله سره ددې چه دلته تصریح نه ده کړې چه د حدیث دا الفاظ د کوم محدث تخریج کړې شوی دی مګر المطالب العالیه کښې د حدیث

---

[1] روح المعاني سورة الأعراف: ٥٤٩/٨ دار إحیاء التراث العربي.
[2] تعلیقات الأستاذ بدر عالم المیر تهی علی هامش فیض الباري: ٣٤٢/٤ دار الکتب العلمیة.
[3] روح المعاني: ٤١٩/٨ وتعلیقات الأستاذ بدر عالم المیر تهی علی هامش فیض الباري: ٣٤٢/٤ دار الکتب العلمیة.
[4] روح المعاني: ٤١٩/٨ وتعلیقات الأستاذ بدر عالم المیر تهی علی هامش فیض الباري: ٣٤٢/٤ دار الکتب العلمیة.
[5] مسند أبي یعلی الموصلي، مسند أبي هریرة رضي الله عنه: ٤٥٣/١١، رقم: ٦٥٨٠-٧٤٠ وأخرجه الترمذي في جامعه في کتاب التفسیر، باب في قصة خلق آدم وبدء التسلیم والتشمیت وجحده وجحد ذریته رقم: ٣٣٦٨ وقال: حسن غریب وأخرجه الحاکم في المستدرک: ٢٩٢/٤ وقال: هذا حدیث صحیح الإسناد ولم یخرجاه، کتاب الأدب رقم: ٧٦٨١ وابن حبان في صحیحه في کتاب التاریخ باب بدء الخلق رقم: ٦١٦٧ مؤسسة الرسالة، مسند أبي هریرة رضي الله عنه، ابن أبي ذباب عن المقبري عن أبي هریرة رقم: ٨٤٧٨ والنسائي في عمل الیوم واللیلة في باب ما یقول إذا عطس، رقم: ٢١٨ وفتح الباري: ٣٦٤/٦.

الفاظ مذكوره امام ابويعلى موصلى رحمه الله طرف ته منسوب كړى دى.[1]
دغه شان دَ باب متعلق يو څو نور احاديث هم دى لكه چه دَ حضرت موسى اشعرى مرفوع روايت دې كوم چه امام ترمذى رحمه الله او امام ابوداؤد رحمه الله تخريج كړې دې. روايت دادې: (إن الله خلق آدم من قبضة قبضها من جميع الأرض، فجاء بنو آدم على قدر الأرض.... الحديث) الله تعالى حضرت آدم دَ ټولې زمكې نه اخستې شوې يوموټى خاورې نه پيدا كړو، چنانچه دَدې نه پس بنى آدم هم په داسې اندازه شمير كښې دنيا ته راغله.[2]
هم دَدې رواياتو نه يو دَ حضرت انس رضى الله عنه مرفوع روايت هم دې كوم چه امام مسلم رحمه الله او امام احمد رحمه الله تخريج كړې دې. روايت دادې: (لما صور الله آدم تركه ماشاء الله أن يتركه، فجعل إبليس يطيف به، ينظر ما هو، فلما رآه أجوف، عرف أنه خلق خلقا لا يتمالك. اللفظ لمسلم) يعنى چه كله الله رب العزت دَ حضرت آدم عليه السلام جُسه جوړه كړه نوچه څومره موده نى غوښتل په جنت كښې اوساتل. ابليس به دَدې نه څلور واړه طرف ته تاويدلو او كتل به ئى چه دا څه دى. نوچه كله هغه دا جسه دَ دننه نه خالى او ډډه اوليدله نوونى ونيل چه داسې مخلوق ئى پيدا كړو چه په خپل ځان به قابو نه شى ساتلې.[3]

**دَحضرت ادم اوحواء عليهما السلام نه دَ انسانى نسل زياتيدلو بيان:** حافظ ابن كثير رحمه الله په البداية والنهاية كښې تحرير كړى دى چه دَ بعض اهل علم رائې داده چه په جنت كښې هيڅ اولاد نه وو شوې. بعض فرمائى چه شوې وو. دَ هغوى قابيل اودَ هغه سره په يو ځائى پيداشوې خور هم جنت كښې پيدا شوې. والله اعلم.[4]

زمونږ په نيز ړومبې قول راجح دې ځكه چه دَدويم قول تائيد دَ يوروايت نه هم نه كيږى. حافظ ابن جرير رحمه الله فرمائى چه حضرت حواء ته كله حمل اوشو نو په يووخت دوه بچى رور اوخور پيداشوى وو. دغه شان دَحضرت آدم عليه السلام څلويښت بچى دَهغه دَ شانه شل ځل په حمل كيدو سره پيداشو: په هغوى كښې يوهلك هم خپل ځان سره پيداشوې (غيرګونې) خور نه علاوه چه كومې خور سره غوښتل نكاح كولې شوه. هغه وخت غيرګونې خور نه علاوه ټولو سره نكاح جائز وه ځكه چه ښځې هغه وخت دَخپلو دغه خوئيندو او ميندو نه علاوه نورې نه وې. په دې وجه دَ نسل دَ زياتولوَ پاره دَدې اجازت وركړې شو.[5]
حافظ ابن جرير رحمه الله دَ بعض مؤرخينو په حواله سره ليكلى دى چه حضرت حواء دَ خپلې ختيې نه دَحضرت آدم عليه السلام شپږشلې اولاد راوړې. دَ هر حمل نه به يو جوړه پيدا كيدله. دَټولو نه اول جوړه كښې قابيل او دَهغه غيرګونې خور قليحا او دَ ټولو نه آخر كښې عبدالمغيث اودَهغه غيرګونى خور أمة المغيث وو. والله اعلم.[6]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** كه چرې حديث دَ (باب خلق آدم وذريته) حصه اومنلې شى نوبيا خو په

---

[1] المطالب العالية كتاب أحاديث الأنبياء باب خلق آدم عليه الصلاة والسلام: ۲۲۹/۱۴رقم: ۳۴۴۷ وتحفة الأشراف بمعرفة الأطراف: ۴۷۱/۹برقم: ۱۲۹۵۵.

[2] سنن أبى داؤد كتاب السنة باب فى القدر رقم الحديث: ۴۶۹۳وجامع الترمذى، أبواب تفسير القرآن، باب سورة البقرة، رقم الحديث: ۲۹۵۵، وصحيح ابن حبان كتاب التاريخ باب بدء الخلق رقم الحديث: ۶۱۶۰، ۲۹/۱۴مؤسسة الرسالة.

[3] أخرجه الإمام مسلم فى كتاب البر والصلة والآدب، فى باب خلق الإنسان خلقا لا يتمالك، رقم الحديث: ۶۶۴۹وأخرجه الإمام أحمد، مسند أنس بن مالك رضى الله عنه: ۱۶/۲۰رقم الحديث: ۱۲۵۳۹وفتح البارى: ۳۶۴/۶.

[4] البداية والنهاية: ۱۲۵/۱.

[5] تاريخ الطبرى: ۸۹/۱

[6]

دوارو كښې مناسبت واضح دې چه په دواړو كښې د حضرت آدم علیه السلام د پيدائش ذكر دې. او كه چرې داحديث «باب قول الله تعالى: ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾» حصه اومنلې شى نوبيا هم د حديث او ترجمة الباب په مينځ كښې مناسبت واضح دې په دې معنى چه دواړو كښې د حضرت آدم علیه السلام تذكره ده خكه چه «خليفه» نه مراد حضرت آدم علیه السلام دې يا بيا حضرت آدم علیه السلام او اولاد آدم دواړه مراد دى. [1]

[۳۱۴۹]: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عُمَارَةَ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ أَوَّلَ زُمْرَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ عَلَى صُورَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ عَلَى أَشَدِّ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ إِضَاءَةً، لاَ يَبُولُونَ وَلاَ يَتَغَوَّطُونَ، وَلاَ يَتْفِلُونَ وَلاَ يَمْتَخِطُونَ، أَمْشَاطُهُمُ الذَّهَبُ، وَرَشْحُهُمُ الْمِسْكُ، وَمَجَامِرُهُمُ الأَلُوَّةُ الأَنْجُوجُ، عُودُ الطِّيبِ وَأَزْوَاجُهُمُ الْحُورُ الْعِينُ، عَلَى خَلْقِ رَجُلٍ وَاحِدٍ، عَلَى صُورَةِ أَبِيهِمْ آدَمَ، سِتُّونَ ذِرَاعًا فِي السَّمَاءِ» [۹ ص ۱۰۴] [ر: ۳۰۷۳]. [2]

**ترجمه:** رسول الله ﷺ فرمائيلى چه د خلقو رومبۍ ډله كومه چه به جنت ته داخليږى (په حسن او چمك كښې) د څوارلسمې شپې د سپوږمئ په شان وى. بيا چه كوم خلق د هغې نه پس څى هغه به د ډېر قيدونكى ستورو په شان وى كوم چه په آسمان كښې دى. نه به متيازې كوى او نه غټ اودس ماتى، نه به توكانړى توكى او نه به نى پوزه بهيږى، د هغوى ږمونځې به د سرو زرو وى. د هغوى خوله به د مشك (په شان خوشبو داره) وى. د هغوى په انګيټو كښې به عود بليږى.

### تراجم رجال

**قتيبة بن سعيد:** دا قتيبة بن سعيد بن جميل بن طريق ثقفى دې. [3]

**جرير:** دا جرير بن عبدالحميد بن قرط ضبى رازى دې. [4]

**عمارة:** دا عمارة بن القعقاع بن شبرمة ضبى كوفى دې. [5]

**ابوزرعة:** دا ابوزرعه بن عمر بن جرير دې. د دوى د نوم باره كښې مختلف اقوال نقل دى. [6]

**ابوهريرة:** دا صحابى رسول حضرت ابوهريره رضی الله عنه دې د دې پورته ذكرشو تولو رواة حالات ماقبل كښې تيرشوى دى. [7]

### شرح حديث

**قوله: لايتفلون:** بكسر الفاء، تَفَلَ يتفِل تَفْلاً معنى ده توكانړې توكل. «باب ماجاء فى صفة أهل الجنة وأنها مخلوقه» كښې روايت تيرشوې دې. په هغې كښې «لايبصقون» الفاظ راغلى دى دواړه هم د يو معنې الفاظ دى.

---

[1] عمدة القارى: ۲۸۷/۱۵ دارالكتب العلمية.

[2] د حديث تخريج كتاب بدء الخلق باب ماجاء فى صفة الجنة وأنهامخلوقه لاندې تيرشوې دې.

[3] كشف البارى: ۱۸۹/۲.

[4] كشف البارى: ۲۶۸/۳.

[5] كشف البارى: ۳۰۳/۲.

[6] كشف البارى: ۳۰٤/۲.

[7] كشف البارى: ۶۵۹/۱.

**قوله:لايتمخطون:** الـمخاط دَ پوزې ګرنګ اوريزش ته وائي چه دلته دَباب افتعال دَ صيغې نه وارد شوې دې. (امتخط فلان) فلانکي پوزه صفا کړه، دَ پوزې ګرنګ او ريزش ئې اوويستلو.

**قوله:أمشاطهم:** دَ مشط جمع ده يعنى ږمونځ.

**قوله:رشحهم:** دَ الرشح اطلاق په خوله يا دَ خولې په شان څڅيدونکي څيز باندې کيږي. دلته هم خوله مراد ده. په حديث قيامت کښې دي: (حتى يبلغ الرشح آذانهم) يعنى په ورځ دَ قيامت به خلق په خولو کښې ډوب وى تردې چه خوله به دهغوى دَغوږونو پورې اورسيږي.([1])

**قوله:مجامرهم:** مجامر، دا لفظ مجمر په کسره دَ ميم او سکون دَ جيم جمع ده او يا بيا مجمر په ضمه دَ ميم اوسکون دَ جيم جمع ده. مجمر په کسره دَميم معنى انګيټئى ده په کوم کښې چه دَ خوشبوئى دَپاره عود بلولې شى. او مجمر په ضمه دَ ميم معنى عود ده کوم چه دَ خوشبوئى دَحاصلولو دَپاره بلولې شى او په حديث باب کښې هم دغه دويمه معنى مراد ده چه دَ جنتيانو خوشبوئى به عود وى يا دهغوى په انګيټو کښې به عود بلولې شى.([2])

**قوله:الألوة:** په دې لفظ کښې دوه لغتونه دى: ① الألوة بفتح الهمزة واللام وتشديد الواو. ② الألوة: بضم الهمزة واللام وتشديد الواو. امام اصمعى رحمه الله فرمائى چه دا اصلاً دَ فارسئى ژبې لفظ دې کوم چه روستو بيا عربى ته وربدل کړې شوې دې.([3])

**قوله:الأنجوج:** بفتح الهمزة وسكون النون وضم الجيم. دَ ابوذر په روايت کښې دا لفظ (الأنجوج) بفتح الهمزة واللام وسكون النون نقل دې. ([4])لفظ الألوة او الأنجوج دواړو معنى عود الطيب يعنى دَ عود خوشبوئى ده. او دَدې وضاحت نه دا هم معلومه شوه چه لفظ الأنجوج دَ لفظ الألوة تفسير دې لکه چه عودالطيب تفسير التفسير دې.([5])

**قوله:وأزواجهم الحور العين على خلق رجل...إلخ:** دَهغوى بيبيانې به دَ غټو سترګو والاحوزې وى. ټولې به هم دَ يوسړى يعنى دهغوى دَ پلار حضرت آدم عليه السلام په صورت باندې په اوږدوالى کښې شپيته ذراع وى. دَ سماء نه دلته مراد ارتفاع او اوچتوالې دې. آسمان مراد نه دې. عربى ژبه کښې دَ لوړ او اوچتوالى اطلاق په سماء باندې کيږي.

دَحديث په شروع کښې اوفرمائيلې شوچه په جنت کښې داخليدونکې رومبې ډله به دَ څوارلسمې دَ سپوږمئى په شان ښائسته وى. دلته اوفرمائيلې شو دَ حضرت آدم عليه السلام په صورت باندې به وى. په دواړو کښې دا تطبيق ورکړې شوې دې چه دَ قد اوږدوالې دَ خلقت په اعتبار خو به هرسړې دَ حضرت آدم عليه السلام په صورت باندې وى ليکن په دوى کښې به بعض زيات دَ حسن اوجمال دَ وجې نه په نور او پرقار يعنى ځليدلو کښې دَ سپوږمئى په شان وى.([6])

---

[1]) أخرجه أحمدفى مسنده: ٢٣٠/٩،رقم: ٥٣١٩عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما، وعنه أخرج الترمذى فى جامعه فى أبواب صفة القيامة والرقاق والورع، باب ماجاء فى شأن الحساب والقصاص، رقم: ٢٤٢٢وفى أبواب تفسير القرآن، باب ومن سورة ويل للمطففين، رقم:٣٣٣٥وابن ماجه فى سننه فى كتاب الزهد، باب ذكر البعث رقم: ٤٢٧٨.

[2]) النهاية: ٢٩٣/١مؤسسة التاريخ العربى.

[3]) معجم الصحاح للجوهرى ص: ٤٩دارالمعرفة.

[4]) عمدة القارى: ٢٨٨/٣التوضيح لابن الملقن: ٢٨٠/١٩تحفة البارى: ٤٠٦/٦مكتبة الرشد.

[5]) عمدة القارى: ٢٨٨/٣.

[6]) عمدة القارى: ٢٨٨/١٥.

دلته اشکال کیدې شی چه په جنت کښې به ویښته خیرن او ګډوډ نه وی بیا د ګمنز او خوشبوئی څه ضرورت دې؟ ددې په جواب کښې علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه د جنتیانو عیش او آرام به د څه تکلیف یا غم خفګان د لرې کولو د وجې نه وی بلکه جنتیانوته وار په وار نعمتونه ملاویدل د خوند اومزې دپاره وی چنانچه د هغوی خوراك څښاك به د اولږې تندې د وجې نه نه وی دغه شان د هغوی خوشبویانو سره معطر کیدل د بد بوئی لرې کولو په غرض سره نه وی.[1]

**دحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت:** دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت دحدیث دې ټکړې (علی صورة أبیهم آدم) کښې دې. په دې معنی چه ترجمة الباب اوحدیث دواړو کښې د حضرت آدم علیه السلام تذکره ده.[2]

[۳۱۵۰] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ أُمَّ سُلَيْمٍ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ لاَ يَسْتَحْيِي مِنَ الحَقِّ فَهَلْ عَلَى المَرْأَةِ الغُسْلُ إِذَا احْتَلَمَتْ؟ قَالَ: «نَعَمْ، إِذَا رَأَتِ المَاءَ» فَضَحِكَتْ أُمُّ سَلَمَةَ، فَقَالَتْ: تَحْتَلِمُ المَرْأَةُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَبِمَ يُشْبِهُ الوَلَدُ» [ص ۱۰۸] [ر: ۱۳۰][3]

**ترجمه:** دحضرت ام سلمة رضی الله عنها روایت دې چه ام سلیم رضی الله عنها رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو یارسول الله الله تعالی خو د حق بیانولو کښې نه شرمیږی نو آیا ښځې له هم غسل کول ضروری دی؟ کله چه هغې ته احتلام وی؟ حضورپاك اوفرمائیل او که چرې هغه لوندوالې اووینی. په دې باندې ام سلمه رضی الله عنها په خندا شوه او عرض ئې اوکړو آیا ښځې ته هم احتلام کیږی؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل بیا دا بچې ولې د هغې مشابه کیږی؟ مطلب دا چه ښځې ته هم احتلام کیږی. که چرې احتلام ورته نه کیدو اومنی نه وتله نوبیا به دا بچې د هغې په شان څنګه کیدو؟

**تراجم رجال**

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد بن مسربل بن مرعبل رحمه الله دې.[4]

**یحیی:** دا یحیی بن سعید بن فروخ القطان تمیمی رحمه الله دې.[5]

**هشام بن عروة:** داهشام بن عروه، حضرت عروه بن زبیر رحمه الله خوئی دې.[6]

**ابیه:** دا مشهور تابعی عروه بن زبیر بن العوام رحمه الله دې.[7]

**زینب بنت ابی سلمة:** دا زینب بنت ابی سلمه عبدالله المخزومی (صحابیه) ده. (کتاب العلم باب الحیاء فی العلم) لاندې ددې حالات تیرشوی دی.[8]

دې روایت سره متعلق تفصیلی بحث (کتاب العلم باب الحیاء فی العلم) لاندې تیرشوی دی.[1]

---

[1]) إرشادالساري: ۳۲۱/۵.

[2]) عمدة القاري: ۲۸۸/۱۵.

[3]) مرتخریجه فی کتاب العلم باب الحیاء فی العلم. رقم الحدیث: ۱۳۰.

[4]) کشف الباري: ۲/۲.

[5]) کشف الباري: ۲/۲.

[6]) کشف الباري: ۲۱۹/۱.

[7]) کشف الباري: ۲۹۱/۱.

[8]) کشف الباري: ۶۴۰/۴

دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت: «لمن يشبه الولد» ترجمة الباب سره مناسبت دې. په دې كښې دَ انسان دَتخليق ذكر دې چه بچي دَ مور پلار دواړو دَنطفې نه جوړيږي. په دې وجه كله هغه دَ مور په شان وي او كله دَ پلار په شان.(٢) كه چرې مذكوره حديث «باب خلق آدم وذريته» حصه اومنلې شي نوبيا په دواړو كښې مناسبت واضح كيږي ليكن كه چرې «قوله الله تعالى: ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾» باب تسليم كولوسره حديث دَ دغه باب حصه اومنلې شي نو مناسبت به په دغه صورت كښې واضح شي. اودَ خليفة نه به فقط حضرت آدم عليه السلام مراد نه وي بلكه اولاد آدم به هم مراد وي.

[٣١٥١] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلاَمٍ أَخْبَرَنَا الْفَزَارِيُّ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: بَلَغَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَلاَمٍ مَقْدَمُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ فَأَتَاهُ، فَقَالَ: إِنِّي سَائِلُكَ عَنْ ثَلاَثٍ لاَ يَعْلَمُهُنَّ إِلاَّ نَبِيٌّ قَالَ: مَا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ؟ وَمَا أَوَّلُ طَعَامٍ يَأْكُلُهُ أَهْلُ الْجَنَّةِ؟ وَمِنْ أَيِّ شَيْءٍ يَنْزِعُ الْوَلَدُ إِلَى أَبِيهِ؟ وَمِنْ أَيِّ شَيْءٍ يَنْزِعُ إِلَى أَخْوَالِهِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «خَبَّرَنِي بِهِنَّ آنِفًا جِبْرِيلُ» قَالَ: فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ ذَاكَ عَدُوُّ الْيَهُودِ مِنَ الْمَلاَئِكَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَّا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ فَنَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ، وَأَمَّا أَوَّلُ طَعَامٍ يَأْكُلُهُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فَزِيَادَةُ كَبِدِ حُوتٍ، وَأَمَّا الشَّبَهُ فِي الْوَلَدِ: فَإِنَّ الرَّجُلَ إِذَا غَشِيَ الْمَرْأَةَ فَسَبَقَهَا مَاؤُهُ كَانَ الشَّبَهُ لَهُ، وَإِذَا سَبَقَ مَاؤُهَا كَانَ الشَّبَهُ لَهَا" قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ، ثُمَّ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الْيَهُودَ قَوْمٌ بُهُتٌ، إِنْ عَلِمُوا بِإِسْلاَمِي قَبْلَ أَنْ تَسْأَلَهُمْ بَهَتُونِي عِنْدَكَ، فَجَاءَتِ الْيَهُودُ وَدَخَلَ عَبْدُ اللَّهِ الْبَيْتَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَيُّ رَجُلٍ فِيكُمْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلاَمٍ» قَالُوا أَعْلَمُنَا، وَابْنُ أَعْلَمِنَا، وَأَخْيَرُنَا، وَابْنُ أَخْيَرِنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَفَرَأَيْتُمْ إِنْ أَسْلَمَ عَبْدُ اللَّهِ» قَالُوا: أَعَاذَهُ اللَّهُ مِنْ ذَلِكَ، فَخَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ إِلَيْهِمْ فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، فَقَالُوا: شَرُّنَا، وَابْنُ شَرِّنَا، وَوَقَعُوا فِيهِ [ص ١١٠][٣٦٩٩، ٣٧٢٣، ٤٢١٠](٣)

**تراجم رجال**

**محمدبن سلام:** دا محمد بن سلام بن الفرج سلمي بيكندي رحمه الله دې.(٤)

**للفزاري:** دا للفزاري مروان بن معاويه بن الحرث بن اسماء كوفي رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب مواقيت الصلاة، باب فضل الصلاة العصر» لاندې تيرشوي دى

---

(١) كشف الباري: ٦٢٨/٤-٦٠٥.

(٢) عمدة القاري: ٢٨٩/١٥.

(٣) رواه البخاري أيضا في كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة رقم: ٣٩١١كذا في باب قبيل باب إتيان اليهود النبي صلى الله عليه وسلم، حين قدم المدينة رقم الحديث: ٣٩٣٨وفي كتاب التفسير في باب ﴿مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ﴾ رقم الحديث: ٤٤٨٠وجامع الأصول في أحاديث الرسول صلى الله عليه وسلم: ٣٨١/١١رقم الحديث: ٩٣٠.

(٤) كشف الباري: ٩٣/٢.

حميد: دا ابو عبيده حميد بن ابى الطويل خزاملى بصرى رحمه الله دي.[١]

**قوله: قال: بَلَغَ عبدَ الله بنَ سلام مَقْدَمُ.....إلخ:** حضرت انس رضي الله عنه فرمانى چه عبد الله بن سلام ته د رسول الله ﷺ مدينې ته د تشريف راوړلو خبر اورسيدلو نو هغه د حضور پاك په خدمت كښې حاضر شو عرض ئې اوكړو چه زه تاسو نه د درې خبرو تپوس كوم كومې چه هم نبى ئې پيژنى.

مقدم: دا مصدر ميمى دې او د قدوم په معنى كښې دې. په عبارت كښې لفظ عبد الله مفعول كيدو د وجې نه منصوب او لفظ مقدم فاعل كيدو د وجې نه مرفوع دې.[٢]

**قوله: ما أوّلُ أشْرَاطِ السَّاعَةِ:** د قيامت رومبې نښانى څه ده؟ أشراط، دا د شَرَط (د شين او راء فتحه سره) جمع ده. د علاماتو په معنى كښې دې.[٣]

په دې روايت كښې رومبې سوال د قيامت د رومبى علامت سره متعلق دې. خو د امام بيهقى رحمه الله په "دلائل النبوة" كښې دى چه رومبې سوال (سواد فى القمر يعنى په سپوږمئى كښې موجود تور داغ سره متعلق دې.[٤]

**قوله: وَمَا أوّلُ طَعَامٍ يَأكُلُهُ أهْلُ الجَنّةِ.....إلخ:** اوهغه كوم يو رومبې خوراك دې كوم چه به جنتيان خورى او بچې د خپل پلار په شان ولې وى او د خپلې نيكانې په شان ولې وى؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه حضرت جبرائيل عليه السلام هم اوس دا خبرې ماته اوخودلې. عبد الله بن سلام اووئيل دا فرښته د يهوديانو دښمن ده.

علامه رشيد احمد گنگوهى رحمه الله د (لايعلمهن إلا نبى) په توضيح كښې فرمائى (أو من علم أخبار النبى صلى الله عليه وسلم، كأحبار اليهود، فإنهم علموا بذلك بالكتب السماوية) يعنى دا خبرې صرف هم نبى پيژنى يا بيا هغه سړې چاته چه نبى د دې خبرو خبر وركړې وى لكه څنګه چه به د يهودو علماؤ دا خبرې د آسمانى كتابونو د وجې نه پيژندلې. د دې وضاحت ضرورت څكه دې چه دا وهم نه وى چه كله د دې خبرو خبر صرف هم نبى ته كيدې شى نو بيا د دې خبرو علم حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه ته څنګه اوشو څكه چه هغه خو هم نبى نه وو اوحضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه (لا يعلمهن إلا نبى) په دې وجه اوفرمائيل چه هغه ته معلومه وه اهل عرب خو نه د ليك لوستونكى دى اونه اهل كتاب دى. لهذا كه حضور پاك ماته زما د سوالونو جوابونه راكوى نو دا جوابونه وركول به د حضور پاك د نبى كيدو د وجې نه وى.[٥]

بل چه حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه د خپلو سوالونو جوابونه اوريدو سره دا شك كولې شو چه كيدې شى دامعلومات هغوى ته د اهل كتاب نه رسيدلې وى. په دې وجه (أخبرنى بهن جبرئيل آنفا) ئې اوفرمائيل په كوم سره چه دغه شك لرې كول مقصود وو.[٦]

دې نه پس رسول الله ﷺ د عبد الله بن سلام رضي الله عنه د تپوس كړې شوى سوالونو جوابونه وركړل. اولنې سوال د قيامت د رمبې نښانې باره كښې وو. حضور پاك اوفرمائيل:

**قوله: أمّا أوّلُ أشْرَاطِ السّاعَةِ فَنَارٌ تَحْشُرُ النّاسَ......إلخ:** يعنى د قيامت هغه رومبې نښه به هغه اور وى

---

[١] كشف البارى: ٥٧١/٢.

[٢] عمدة القارى: ٢٨٩/١٥ دار الكتب العلمية.

[٣] إرشاد السارى: ٢٣٨/٧.

[٤] عمدة القارى: ٢٩٠/١٥ وانظر دلائل النبوة للبيهقى: ٢٦٢/٦.

[٥] الكنز المتوارى: ٢٤٨/١٣.

[٦] مرقاة المفاتيح كتاب الفضائل والشمائل باب فى المعجزات: ١١/٨ رقم الحديث: ٥٨٧٠ دار الكتب العلمية.

چه خلق به د مشرق د طرف نه مغرب طرف ته راجمع كولوسره بوځي او رومبي خوراك كوم چه به جنتيان خوري هغه به د كب د ځيگر زياتي حصه وي. يعني د كب د ځيگر زياتي حصه، كومه چه ځيگر سره جدا زوړند وي او د كب يو خوند ناكه حصه وي. (١)

**قوله: وَأَمَّا الشَّبَهُ فِي الْوَلَدِ فَإِنَّ الرَّجُلَ...... الخ:** او په بچي كښې د مشابهت وجه دا ده چه كله سړي په ښځه راخور شي (يعني صحبت اوكړي)، نوكه د سړي اوبه (مني) د ښځې په اوبو باندې غالب راشي نو بچې به د پلار په شان وي اوكه چرې د ښځې اوبه غالب شي نو بچې به د مور په شان وي. په صحيح مسلم كښې دحضرت عائشه رضي الله عنها د روايت الفاظ دي: «إذا علا ماءها ماء الرجل أشبه الولد أخواله، وإذا علا ماء الرجل ماءها أشبه أعمامه» (٢) «علا» دلته د سبق په معنى كښې دې «أي: إذا سبق ماء الرجل» او مطلب دا دې چه د چا انزال اول كيږي بچې به هم د هغې په شان وي.

**قوله: قَالَ: أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللهِ، ثُمَّ قَالَ...... الخ:** د خپلو سوالونو جواب اوريدو سره عبدالله بن سلام رضي الله عنه اووئيل چه زه گواهي وركوم چه تاسو د الله تعالى رسول يئې. بيائې عرض اوكړو يا رسول الله! يهوديان ډيرزيات بهتانونه لگوى ستاسو نه د تپوس نه وړاندې كه زما د مسلمان كيدو علم هغوى ته اوشو نو هغوى به ماته دروغژن وائي. مطلب دا چه اول تاسو د هغوى نه زما باره كښې معلومه كړئ. هغوى به زما باره كښې مثبت رائې دركوى او تعريف به مې كوى ليكن كه ستاسو د تپوس كولو نه وړاندې هغوى ته زما د اسلام راوړلو علم اوشو نو هغوى به د خپل عادت مطابق ماته دروغژن او د ځان نه خبرې كونكې وائي.

بُهْتٌ: «بضم الباء الموحدة وضم الهاء وسكونها» د بَهُوت جمع او د مبالغې صيغه ده لكه صُبُر د صَبُور جمع ده. بهت په هاء باندې ضمه ده تخفيفاً دا ساكن كولوسره لولى. (٣)

**فَجَاءَتِ الْيَهُودُ وَدَخَلَ عَبْدُ اللهِ الْبَيْتَ......** چنانچه يهود رسول الله ﷺ له راغله او عبدالله بن سلام رضي الله عنه كورته دننه لاړو. حضورپاك د هغوى نه تپوس اوكړو عبدالله بن سلام تاسو كښې څنگه سړې دې؟ هغوى اووئيل «أعلمنا وابن أعلمنا وأخيرنا وابن أخيرنا» يعنې هغه په مونږ كښې د ټولو نه زيات پيژندونكې د ټولو د زيات پيژندونكى خوئى او د ټولونه بهترين سړې دې. د ټولو نه د بهترين سړى خوئى دې. حضورپاك اوفرمائيل تاسو اوښايئى كه عبدالله بن سلام مسلمان شى نو آيا تاسو به هم مسلمانان كيږئ؟ هغوى اووئيل «أعاذه الله من ذلك» الله دې هغه د مسلمانيدو نه بچ كړى دې اوريدو سره عبدالله راؤتلو هغوى له راغلو او وئې وئيل «أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمداً رسول الله» دې اوريدو سره يهوديانو اووئيل عبدالله خو په مونږ ټولو كښې بدترين سړې دې د بدترين سړى خوئى دې او دغه شان ټولو عيبونه اولگول.

د صحيح بخارى كتاب مناقب الانصار والا روايت كښې دى چه دې اوريدو سره عبدالله بن سلام رضي الله عنه اووئيل «هذا الذي كنت أخاف يا رسول الله» (٤) هم دغه خبره وه يا رسول الله! د كوم نه چه زه ويريدلم.

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت د حديث الفاظ «وأما الشبه في الولد- إلى قوله- كان الشبه لها» نه ظاهريږى په دې معنى چه په حديث كښې د ذريت د تخليق تذكره ده او ترجمة الباب هم د

---

(١) عمدة القارى: ٢٩٠/١٥.

(٢) صحيح مسلم كتاب الحيض باب وجوب الغسل على المرأة بخروج المنى منها: ١٤٥/١ رقم: ٣١٤.

(٣) النهاية في غريب الحديث: ١٦٧/١.

(٤) صحيح البخارى كتاب مناقب الأنصار باب: كيف آخى النبى صلى الله عليه وسلم بين أصحابه، رقم الحديث: ٣٩٣٨.

تخلیق آدم او تخلیق ذریت آدم سره معنون دي او که چرې (باب قول الله تعالی ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾)، تسلیم کولوسره حدیث ددې باب حصه اومنلې شی او خلیفه عام مراد وی یعنی آدم او اولادآدم نو بیا به هم مناسبت واضح وی.(١)

[٣١٥٢] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ [ص: ٣٣]، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ يَعْنِي «لَوْلَا بَنُو إِسْرَائِيلَ لَمْ يَخْنَزِ اللَّحْمُ، وَلَوْلَا حَوَّاءُ لَمْ تَخُنْ أُنْثَى زَوْجَهَا» [ص ١١٥][٣٢١٨](٢)

## تراجم رجال

**بشر بن محمد:** دا بشربن محمد السختیانی المروزی رحمه الله دي.(٣)

**عبدالله :** دا مشهور محدث عبدالله بن مبارك المروزی رحمه الله دي.(٤)

**معمر:** دا معمر بن راشد الازدی البصری رحمه الله دي (کتاب العلم، باب کتابة العلم) لاندې دهغوی تذکره تیره شوې ده.(٥)

**همام:** دا همام بن منبه بن کامل بن سیج بن ذی کبار الیمانی البصری رحمه الله دي. (کتاب العلم، باب العرفی العلم) لاندې ئې تذکره تیره شوې ده.(٦)

**ابوهریرة:** دهٔوی تذکره (کتاب الایمان، باب أمور الایمان) لاندې تیره شوې ده.(٧)

**قوله: عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم نَحْوَهُ:** یعنی بشربن محمد رحمه الله د عبدالله بن مبارك رحمه الله هغوی د معمر نه معمر د همام نه او هغوی د ابوهریرة رضي الله عنه نه او ابوهریرة رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه هم داسې روایت بیان کړې دې.

**په مذکوره عبارت باندې یواشکال او دحافظ ابن حجرجواب:** دلته اشکال کیږی چه کله سابق کښې ددې روایت څه سند نه دې تیرشوې نو د نحوه ضمیر چرته راګرځی؟ حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائیل چه کیدې شی امام بخاری رحمه الله ددې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه دخپل شیخ نه هغه کوم روایت ذکرکړې دې هغه روایت باللفظ نه دې بلکه روایت بالمعنی دې. لکه چه امام بخاری رحمه الله دا روایت د خپلې حافظې نه بیان کړې. بعضو ته بعینه نقل کولوکښې تردد اوشو نو نحوه سره ئې تنبیه اوکړه چه ددې مفهوم روایت شیخ ماته بیان کړې دې او الفاظ کیدې شی چه بدل شوی وی.(٨)

**دعلامه عینی رحمه الله رد:** علامه عینی رحمه الله په دې توجیه باندې رد کولوسره فرمائیلی چه د ترکیب د قائق اوغوامض څوك رمزشناس حافظ صاحب به دا توجیه نه تسلیم کوی. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه لفظ "نحوه" یا

---

(١) عمدة القاري: ٢٨٩/١٥.

(٢) أخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء أيضاً تحت باب قول الله تعالى ﴿وَوَاعَدْنَا مُوسَىٰ ثَلَاثِينَ لَيْلَةً﴾ رقم: ٣٣٩٩ وأخرجه مسلم في كتاب الرضاع، باب لولا حواء لم تخن أنثى زوجها الدهر، رقم: ١٤٧٠.

(٣) كشف الباري: ٤٦٥/١.

(٤) كشف الباري: ٤٦٢/١.

(٥) كشف الباري: ٣٢١/٤.

(٦) كشف الباري: ٣١٧/٤.

(٧) كشف الباري: ٦٥٩/١.

(٨) فتح الباري: ٤٥٣/٨.

"مثله" چه کله ذکرکولې شي نو دې مطلب دا وي چه دې نه وړاندې متن او سند سره په حدیث سابق کښې تیرشوی دی او چه کله هم دا حدیث بل سند سره دوباره ذکرکول مقصود وي نو دَ هغې په آخرکښې دَ "نحوه" یا "مثله" تصریح کولې شي او په سند باندې اکتفا کولو سره په دویم خل متن نه شي ذکرکولې. چنانچه علامه عیني رحمه الله او دَ هغه اتباع کښې علامه قسطلاني رحمه الله فرمائیلي چه دلته په اصل کښې عبارت محذوف دې. کیدې شي چه دا روایت امام بخاري رحمه الله دَ دې نه وړاندې (محمد بن رافع عن عبدالرزاق عن معمر عن همام عن أبي هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم) په طریق سره ذکرکړې وو. بیا هم دغه روایت هغوی (عن بشر بن محمد عن عبدالله عن معمر عن همام عن أبي هريرة) په طریق ذکرکولو سره آخر کښې نحوه اوفرمائیل.

امام بخاري رحمه الله دَ نحوه تفسیر په یعنې کولو سره دَ حدیث متن ذکرکړې دې. په یعنی سره امام بخاري رحمه الله په اول او دویم طریق کښې دَ متن الفاظو کښې مغایرت او فرق بیانول غواړي. چنانچه دَ محمد بن رافع عن عبدالرزاق دَ روایت الفاظ دادي: (لولا بنو إسرائيل لم يخنث الطعام ولم يخنز اللحم، ولولا حواء لم تخن أنثى زوجها الدهر). په دې طریق کښې (لم يخنث الطعام) او (الدهر) اضافه شوې ده. خو دَ بشر بن محمد والا ذکر شوی روایت کښې دا اضافه نشته. لکه امام بخاري رحمه الله هم دا فرق او مغایرت بیانوي.[1]

## دَ بنواسرائیل دَ خوراکونو سخاکیدل

**قوله: لولا بنو إسرائيل لم يخنز اللحم:** یعنی که بنواسرائیل نه وې نو غوښه به نه سخاکیدله. یخنز: باب سمع او باب ضرب دواړو نه (خنز يخنز اللحم) معنی ده دَ غوښې بدبوئي داره کیدل، سخا کیدل، خرابیدل.[2]

علامه قرطبي رحمه الله وغیره دَ قتاده رحمه الله نه نقل کړې دي چه کله په بني اسرائیلو باندې دَ اسمان نه مائده نازلیدل شروع شو نو هغوی دَ ذخیره کولو نه منع کړې شو هغوی دَ دې حکم خلاف ورزی اوکړه نو دَ سزا په توګه باندې دَ هغوی خوراکونه سخا کیدل.[3]

دَ بعض حضراتو په نیز دَ دې حدیث مطلب دا نه دې چه دَ بنو اسرائیلو نه وړاندې غوښه نه سخا کیدله. حقیقت دا وو چه دَ هغوی نه وړاندې دَ غوښې دَ ذخیره کولو رواج نه وو نو دغه شان ښکاره خبره ده چه دَ خرابیدو او سخاکیدو نوبت به هم نه راتلو. دَ ذخیره کولو شروع بني اسرائیلو اوکړه او دغه شان دَ هغوی غوښه خرابیدل او سخاکیدلو سره بدبوئي داره کیدله.[4]

دا رائي دَ حدیث دَ ظاهر نه خلاف معلومیږي دَ حدیث منطوق یعنې حاصل هم دغه دې چه دَ خوراک څیزونه دَ بني اسرائیلو دَ نافرمانئي دَ وجې نه سخاکیدل که چرې هغوی دَ نافرمانئي ارتکاب نه وې کړې نو خوراک به کله هم نه سخا کیدل. یو قول دا دې چه دَ هفتې په ورځ دَ ښکار اجازت نه وو نو بنواسرائیلو یوم السبت کښې هم ښکار کول

---

[1] إرشاد الساري: ۲۳۹/۶ عمدة القاري: ۲۹۱/۱۵-۲۹۰. دلته دې دا خبره واضحه وي چه علامه عیني رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله دَ صحیح بخاري کوم روایت طرف ته اشاره کړې ده هغه محمد بن رافع عن عبدالرزاق الخ نه نقل نه دې بلکه عبدالله بن محمد الجعفي عن عبدالرزاق الخ په طریق سره نقل دې اودا روایت دَ مذکوره روایت نه پس باب قول الله تعالی: ﴿وَوَٰعَدۡنَا مُوسَىٰ ثَلَٰثِينَ لَيۡلَةٗ﴾ لاندې ذکر دې. بل دَ دواړو روایتونو په مینځ کښې صرف دا فرق دې چه دَ بشر محمد والا روایت کښې الدهر اضافه نشته او دَ عبدالله بن محمد جعفي والا روایت کښې موجود دی او لم يخنث الطعام دواړو کښې موجود نه دې.

[2] النهاية لابن الأثير: ۵۳۶/۱، دار المعرفة.

[3] فتح الباري: ۴۵۳/۸.

[4] تكملة فتح الملهم: ۱۲۷/۱.

شروع کړه په دې وجه د هغوی خوراك د سزا په توګه سخا کیدل شروع شو. یو قول دا دې چه کله په بنواسرائیلو باندې د الله تعالی عذاب نازل شو نو چه کله به هغوی په خله کښې اوبه اچولې هغه اوبه به وینه جوړیدله. د هغې په وجه د بنو اسرائیلو بدنونه سخا کیدل او بدبوئی داره کیدل. هم دغه بدبوئی اوسخا کیدل غوښې ته ورمنتقل شو.([1])

وهب بن منبه رحمه الله فرمائی چه بعض پخوانو مذهبی کتابونو کښې دا روایت نقل کړې شوې دې: «لولا أني كتبتُ الفناء على الميت لحبسه أهله في بيوتهم، ولولا أني كتبتُ الفساد على الطعام لخزنته الأغنياء عن الفقراء» ([2])

یعنی که چرې ما د مړی دپاره فنا کیدل مقدر کړې نه وې نو خلقو به خپل مړی په کورونو کښې کیخودل او که چرې ما د انواع طعام دپاره خرابیدل مقدر کړې نه وې نو مالداران خلقو به په ځانی د فقیرانو ته د ورکولو هغه په خپلو کورونو کښې ذخیره کول.

**قوله: وَلَوْلَا حَوَّاءُ لَمْ تَخُنْ أُنْثَى زَوْجَهَا:** او که چرې بی بی حواء نه وې نو ښځې به خاوند سره دهوکه نه کوله. حواء الف ممدود سره دې. «سُمِّيَتْ بِذَلِكَ، لِأَنَّهَا أُمُّ كُلِّ حَيٍّ» ([3]) یعنی حضرت حواء علیها السلام ته حواء په دې وجه وائی خکه چه هغه د هر انسان مور ده.

مطلب دا دې چه په جنت کښې آدم او حواء دپاره یو ونه ممنوعه ګرځولې شوې وه چه دواړه به د دې میوه نه شوکوئی. شیطان دهوکه کولو سره د دواړو په زړه کښې وسوسه واچوله. شیطان د خپل فریب په جال کښې بی بی حواء راګیره کړه دغه شان حواء علیها السلام حضرت آدم علیه السلام د ممنوعه ونې د میوې راشوکولو باندې تیار کړو.

دلته د خیانت نه هم دغه معصیت مراد دې نه د فواحش ارتکاب هیڅ کله مراد نه دې. چونکه په بی بی حواء باندې د ممنوعه ونې د میوې راشوکولو نفسانی خواهش غالب راغلې وو او خپل دغه خواهش ظاهرولو سره هغې حضرت آدم علیه السلام هم تیار کړې وو په دې وجه دا د خیانت په الفاظو سره دلته تعبیر کړې شوې دې.

د حدیث شارحینو فرمائیلې دی چونکه بی بی حواء د ټولې دنیا د ښځو مور ده په دې وجه د دهوکې او سرکشئ په یو نه یو درجه کښې د هغې په لونړو کښې منتقل شوې. هره یوه ښځه په وړه شان خبره د خاوند مخالفت کولو سره د خیانت ارتکاب کوی. یوه نیمه ښځه ډیره سرکښه وی او د نفس د خواهش ښکار کیدو سره د فواحش مرتکب کیږی او هغه داسې د خاوند په حق کښې خیانت کوی.([4])

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی په دې حدیث کښې خاوند ته تسلی ورکول مقصود دی چه د ښځې د طرف نه کومه کوتاهی د هغه په حق کښې کیږی په هغې باندې خفه کیدل نه دی پکار خکه چه بی بی حواء هم د نفس د خواهش ښکار شوې وه. په دې وجه د ښځې په تادیب کښې د حد نه تجاوز نه دی کول پکار. د خاوند د حکم او مزاج خلاف بغیر د قصد او شاذونادر که د ښځې د طرف نه کوتاهی وی نو د معافئی نه کار اخستل پکار دی. لیکن پخپله ښځې له هم پکار دی چه د نفس د خواهشاتو نه د بچ کیدو کوشش کوی. او کوشش دا کول پکار دی چه د حکم او مزاج د مخالفت نوبت په کثرت سره رانه شی. والله المستعان.([5])

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** د حدیث ترجمة الباب سره په ظاهره هیڅ مناسبت نشته البته د مناسبت په حواله سره دا وئیلی کیدې شی چه د حضرت حواء علیها السلام پیدائش د حضرت آدم علیه السلام د پیدائش سبب او د

---

[1]) عمدة القاري: ۲۹۱/۱۵.

[2]) عمدة القاري: ۲۹۱/۱۵.

[3]) فتح الباري: ۴۵۳/۸.

[4]) فتح الباري: ۴۵۳/۸.

[5]) فتح الباري: ۴۵۴/۸-۴۵۳.

هغې دَ پيدائش طرف تـه مضاف اومنسوب دې چه دَحضرت آدم تخليـق اصـل او حضرت حـواء عليها السـلام تخليق فرع ده. نو داسې په حديث او ترجمة الباب كښې مناسبت ممكن دې.[1]

[۳۱۵۳] حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَمُوسَى بْنُ حِزَامٍ، قَالاَ: حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ مَيْسَرَةَ الأَشْجَعِيِّ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ، فَإِنَّ المَرْأَةَ خُلِقَتْ مِنْ ضِلَعٍ، وَإِنَّ أَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ أَعْلاَهُ، فَإِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهُ كَسَرْتَهُ، وَإِنْ تَرَكْتَهُ لَمْ يَزَلْ أَعْوَجَ، فَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ»

[ص ۱۲۰] [۴۸۸۹، ۴۸۹۰، ۵۴۷۲، ۵۷۸۵، ۵۷۸۷، ۶۱۱۰] [2]

**تراجم رجال**

**ابوكريب:** دا ابوكريب محمد بن العلاء بن كريب الهمداني الكوفي رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب العلم باب فضل من علم وعلّم) لاندې تيره شوې ده.[3]

**موسى بن حزام:** دا ابوعمران موسى بن حزام الترمذي رحمه الله دې.

هغوى دَ احمد بن حنبل، حسين بن على الجعفي، حماد بن سلمه، زيد بن حباب، صالح بن عبدالله الترمذي، عبدالله بن مسلمه القعنبي، عبدالملك بن قريب الاصمعي، ابونعيم فضل بن دكين، محمدبن بشر او يحيى بن آدم غوندې أعلام حديث نه روايات اخستي دي.[4]

دَدوى نه دحديث روايت كونكوكښې امام بخارى، امام ترمذى، امام نسائى، احمد بن سيار المروزى، ابوبكر بن عبدالله بن ابى داؤد او محمد خزيمه بن خازم شامل دي.[5]

روايت حديث كښې تولو ائمه جرح او تعديل دَ دوى توثيق كړې دې. چنانچه ترمذى رحمه الله دَدوى باره كښې (الرجل الصالح) او امام نسائى رحمه الله "ثقة" الفاظ نقل كړى دى. ابن حبان رحمه الله هم دَدوى تذكره ثقات كښې كړې ده.[6]

علامه ذهبى رحمه الله دَدوى باره كښې فرمانيلى دى (ثقة عابد داعية إلى السُّنّة).[7] حافظ ابن حجر رحمه الله دَدوى باره كښې فرمانيلى دى: (ثقة، فقيه، عابد)[8] ابن ابى الدين رحمه الله فرمائى موسى بن حزام ترمذى رحمه الله مونږ ته په ۲۵۱ هجرى كښې حديث بيان كړو. دارنګه دَ موسى بن حزام رحمه الله باره كښې ونيلې شوى دى چه دې دَ ابدال نه وو.[9] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَدوى انتقال ۲۵۰ هجرى نه پس شوې دې.[10]

---

[1] عمدة القاري: ۱/۲۹۰.

[2] والحديث أخرجه البخاري في كتاب النكاح في باب المداراة مع النساء أيضاً، رقم الحديث: ۵۱۸۴ وفي باب الوصاة بالنساء رقم الحديث: ۵۱۸۶ وكذا رواه مسلم في كتاب الرضاع، في باب الوصية بالنساء رقم الحديث: ۳۶۴۳ والترمذي في أبواب الطلاق باب ماجاء في مداراة النساء رقم الحديث: ۱۱۸۸.

[3] كشف الباري: ۳/۴۱۳.

[4] تهذيب الكمال، ۲۹/۵۲ تهذيب التهذيب: ۱۰/۳۴۰.

[5] تهذيب الكمال: ۲۹/۵۲ تهذيب التهذيب: ۱۰/۳۴۰ - ۳۴۱.

[6] تهذيب الكمال: ۲۹/۵۲ تهذيب التهذيب: ۱۰/۳۴۱.

[7] الكاشف في معرفة من له الرواية في الكتب الستة: ۲/۳۰۳ رقم الترجمة: ۵۶۸۹ دار القبلة مؤسسة علوم القرآن.

[8] تقريب التهذيب ص: ۵۵۰ رقم الترجمة: ۶۹۵۶ دار الرشيد.

[9] تهذيب التهذيب: ۴/۱۷۳.

**حسين بن علي:** دا ابوعبدالله حسين بن علي بن الوليد الجعفي رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب الأذان باب: أهل العلم والفضل أحق بالإمامة) لاندې شوې ده.

**زائدة:** دا ابوالصلت زائده بن قدامه الثقفي دې.[2]

**ميسرة الاشجعي:** دا ميسره بن عمار الاشجعي الکوفي رحمه الله دې.

هغوی دَ سعيد بن المسيب، سلمان بن ابی حازم الاشجعي، عکرمه او ابوعثمان الهندي رحمه الله نه دَحديث روايت کړې دې. او دَدوی نه اسباط بن نصر الهمداني، زائده، قدامه، زهير بن معاويه الجعفي، سفيان ثوري، ابوداؤد عيسى بن مسلم الطهوي رحمهم الله روايات اخستی دی. او امام بخاری، امام مسلم، امام نسائي او امام ابن ماجه رحمهم الله هم روايات نقل کړي دی.[3]

حافظ ابوزرعه رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائيلی دی "ثقة".[4] يحيى بن معين رحمه الله فرمائی (هو کوفي ثقة)[5] حافظ ابن حبان دَدوی تذکره ثقات کښې کړې ده.[6]

**ابوحازم:** دا سلمان الاشجعي الغطفاني رحمه الله دې. دَدوی تفصيلي تذکره (کتاب العلم باب هل يجعل للنساء يوم على حدة في العلم) لاندې تيره شوې ده.[7]

**شرح حديث**

**قوله: استوصوا بالنساء فإن المرأة خلقت من ضلع:** تاسو دَ ښځو باره کښې ښه سلوك او دَ ښيګړې وصيت قبول کړئ خکه چه ښځه دَ پښتئ نه پيدا شوې ده. (فإن المرأة خلقت من ضلع) دَ رومبي جملې دَپاره تعليل دې. مطلب دادې چه ښځو سره ښيګړه او ښه سلوك خکه کوئ چه هغه دَ کږې پښتئ نه پيدا شوې ده او دَهغې په اخلاقو کښې کوږوالي دَ دغه پښتئ نه دَ پيدا کيدو په وجه دې. که چرې تاسو دَهغې دَ صحيح کولو کوشش کوئ نو دا به ماته شي. دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت کښې دی چه حضرت آدم عليه السلام دَ خوب په حالت کښې وو چه دَهغه دَ کسې پښتئ نه حضرت بی بی حواء پيدا کړې شوه.[8]

**قوله: استوصوا:** بعض حضراتو فرمائيلی چه دا صيغه دَ باب استفعال نه ده ليکن دَ افعال په معنی کښې استعماليږي. چنانچه دَ سورت بقره آيت ﴿فليستجيبوا لي﴾ او سورت شوری آيت ﴿ويستجيب الذين آمنوا﴾ کښې هم لفظ دَ استجاب دَ باب افعال "إجابة" په معنی کښې دې.[9]

---

[1] تقريب التهذيب ص: ۵۵۰ رقم الترجمة: ۶۹۵۶ دار الرشيد.

[2] کتاب الغسل باب غسل المذي والوضوء رقم: ۲۶۹.

[3] دَ شيوخ او تلامذه دَ تفصيل دَپاره اوګورئ تهذيب الکمال: ۱۹٤/۲ تهذيب التهذيب: ۳۸۶/۱۰ التاريخ الکبير: ۷ الترجمة: ۱۶۱۶ والجرح والتعديل، الترجمة: ۱۱۵۳ والکاشف الترجمة: ۵۸۵ تاريخ الإسلام: ۱۶۸/۵.

[4] الجرح والتعديل رقم الترجمة: ۱۱۵۳ التقريب لابن حجر ص: ۵۵۵ رقم الترجمة: ۷۰۸۳ دار الرشيد.

[5] تعليقات بشار عواد معروف على هامش تهذيب الکمال: ۱۹٤/۲۹.

[6] کتاب الثقات لابن حبان: ٤۸٤/۷.

[7] کشف الباري: ۱۰۱/٤.

[8] فتح الباري: ٤۵٤/۸ عمدة القاري: ۲۹۲/۱۵.

[9] عمدة القاري: ۲۹۲/۱۵ فتح الباري: ٤۵٤/۸ إرشاد الساري: ۲۳۹/۷.

**دَ استيصاء مطلب:** علامه بيضاوي رحمه الله فرمائي چه دَ استيصاء معنى دَ وصيت قبلولو ده. او په حديث كښې دَ مذكوره جملې مطلب دې: «أوصيكم بهن خيراً فاقبلوا وصيتي فيهن» يعنى زه تاسو ته دَ ښځو په معامله كښې دَخير او ښه سلوك وصيت كوم لهذا تاسو زما دا وصيت قبول كړئ.(١)

دَعلامه طيبي رحمه الله په توجيه كښې لوئى ندرت نااشناوالې دې هغه فرمائي چه "استوصوا" كښې سين دَ طلب په معنى كښې دَ مبالغه دَ پيدا كولو دپاره دې او مطلب دَدې دادې چه هم دَخپل نفس نه دَ ښځو په معامله كښې دَحسن سلوك او خير وصيت طلب كړئ.(٢) حافظ ابن حجر رحمه الله دَ علامه بيضاوي رحمه الله توجيه دَ ټولو نه بهتر گرځولې ده.(٣)

**قوله: وَإِنَّ أَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ أَعْلاَهُ.....إلخ:** دَ ټولو نه زيات كږه پښتئ پورتنئ وى. كه چرې پريخودې شوه نو هميشه به كږه وى لهذا دَ ښځو په معامله كښې زما نصيحت او مننئ يعنى دَ خير او ښيګړې سلوك كوئ.

**دَ ښځې په فطرت كښې كوږوالې:** دا چه او فرمائيلې شو چه دَ ټولو نه كږه پښتئ پورتنئ ده په دې كښې دوه خبرې ممكن دى. يا خو دَدې خبرې طرف ته اشاره ده لكه څنګه چه پښتئ كږه وى او دَهغې نيږوالې صحيح كول ممكن نه دى دغه شان ښځې دَ اخلاق په لحاظ سره كړې دى اودا نيغول ممكن نه دى. دا هم ممكن دى چه دا تمثيل وى يعنى دا خودل مقصود وى چه څنګه پورتنئ پښتئ زياته كږه وى دغه شان دَ ښځې پورتنئ حصه (راس) سردې او په دې كښې موجود ژبه دَ پښتئ په شان كږه ده. مطلب دا چه په انسانى بدن كښې دَ ټولو نه موذى اندام ژبه ده اوهم دغه ژبه دَښځې دَ ټولو نه لويه بلا وى. اوس به مطلب دا شي چه څنګه كږه پښتئ نيغول ممكن نه دى دغه شان دَښځې دَ ژبې اصلاح كول هم ممكن نه دى.(٤)

دا الفاظ دَ طلاق نه كنايه دى. مطلب دادې چه كه چرې ته دَ دې دَ نيغولو كوشش كوې نو طلاق به واقع شى.(٥) په حديث كښې هم دَدې صراحت شته چنانچه په صحيح مسلم كښې (عن الأعرج عن أبي هريرة) په طريق سره چه كوم روايت نقل دې دَهغې الفاظ دادى: «إن ذهبت تقيمها كسرتها، وكسرها الطلاق»(٦) يعنى كه تاسو دَ دې دَ نيغولو كوشش كوئى نو دا به ماته كړئى او دَدې ماتيدل طلاق دې.

دَ حديث باب الفاظ "تقيمه" او "كسرته" كښې دَ ضمير مفعول مرجع "ضلع" ده. دې نه دا مستفاد كيږى چه ضلع مذكر دې. بعض حضراتو فرمائيلى چه لفظ ضلع مؤنث دې. دې حضراتو دَ صحيح مسلم دَ روايت نه استدلال كړې دې چه (إن ذهبت تقيمها كسرتها) ضمير مؤنث دَ ضلع طرف ته راجع دې اودا دَدې خبرې دليل دې چه ضلع مؤنث دې. حقيقت دادې چه دَدې حضراتو استدلال صحيح نه دې څكه چه دَ صحيح مسلم په روايت كښې تقيمها او كسرتها كښې دواړه ضمائر مرءة طرف ته راجع دى نه چه دَ ضلع طرف ته.(٧) البته بعض حضراتو فرمائيلى دى چه ضلع مذكر

---

(١) فتح الباري: ٤٥٤/٧ عمدة القاري: ٢٩٢/١٥ إرشاد الساري: ٢٣٩/٧.

(٢) شرح الطيبي على المشكاة الجزء الأول: ٦٧٦ رقم الحديث: ٣١٥ مكتبة نزار مصطفى الباز.

(٣) فتح الباري: ٤٥٤/٨.

(٤) فتح الباري: ٤٥٤/٨ إرشاد الساري: ٢٤٠/٧.

(٥) فتح الباري: ٤٥٤/٨ عمدة القاري: ٢٩٣/١٠.

(٦) أخرجه مسلم في صحيحه كتاب الرضاع باب الوصية بالنساء رقم الحديث: ٣٦٤٣.

(٧) فتح الباري: ٤٥٤/٨.

او مؤنث دواړه شان استعمالیږي.[۱]
خلاصه دا چه خله وهل، د خاوند په اطاعت کښې کوتاهي کول د ښځې پیدائشي کمزوري ده او د دې په خته کښې داخل دي. که د دې کمزورتیا په ردعمل کښې خاوند د تریخوالي او سختئې نه کار واخلي نو د طلاق په صورت کښې کورنئې تعلق ختمیدې هم شي. په دې وجه د صبر او تحمل نه کار اخستل پکار دي. که خاوند د مینې محبت او حکمت نه کار واخلي نو دغه شان د دغه پیدائشي کمزورو اصلاح ممکن ده.
**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** امام بخاري د (خلق آدم و ذریته) ترجمه قائم کړې ده. په حدیث باب کښې د ښځې خلقي اوصاف بیان کړې شوي دي او ښځه په ذریت آدم کښې شامل ده. په دې وجه ترجمة الباب سره د روایت مناسبت واضح دې او که چرې حدیث (باب قول الله تعالى: ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾) حصه او منلې شي نو بیا هم مناسبت واضح دې ځکه چه خلیفه کیدل د آدم او اولاد آدم دواړو مراد کیدو هم احتمال لري.[۲]

[۳۱۵۴] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ، حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ، «إِنَّ أَحَدَكُمْ يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، ثُمَّ يَكُونُ عَلَقَةً مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ يَبْعَثُ اللَّهُ إِلَيْهِ مَلَكًا بِأَرْبَعِ كَلِمَاتٍ، فَيُكْتَبُ عَمَلُهُ، وَأَجَلُهُ، وَرِزْقُهُ، وَشَقِيٌّ أَوْ سَعِيدٌ، ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ الرُّوحُ، فَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ، حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ، فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَدْخُلُ الْجَنَّةَ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ، حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ، فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ، فَيَدْخُلُ النَّارَ» [ص ۱۲۵ – ۱۲۶] [ر: ۳۰۳۶][۳]

**ترجمه:** حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ او فرمائیل او حضور پاك رښتوني دې او هغوی سره چه کومه وعده کړې شوې ده هغه رښتوني ده. حضور پاك او فرمائیل په تاسو کښې د هر سړي (نطفه) د هغه د مور په خیټه کښې څلویښت ورځې جمع وي. بیا په څلویښت ورځو کښې چك وینه جوړیږي. بیا په څلویښت ورځو کښې هغه د غوښې بوټئې جوړیږي. (د دریو چلو (څلویښتو) نه پس) الله تعالى یو فرښته هغې ته ورلیږي او هغه څلور خبرې لیکي: عمل، رزق او نیك بختي او بدبختي، بیا هغې کښې روح وربو کوهلې شي نو څوك داسې وي چه (ټول عمر) د دوزخیانو والا کارونه کوي تردې چه د دوزخ او د هغه په مینځ کښې د یو لاس فاصله پاتې شي بیا د تقدیر لیك غالب راشي او هغه د جنتیانو والا کار او کړي جنت ته څي. او څوك داسې وي چه ټول عمر د نیکو کارونو کولو نو نه باوجود چه کله جنت ته تلل یو لاس پاتې شي نو هغه وخت د تقدیر لیك غالب راشي او هغه د دوزخیانو کار کولو سره دوزخ کښې داخلیږي.

### تراجم رجال

**عمر بن حفص:** دا عمر بن حفص بن غیاث الکوفي رحمه الله دې د دوی تذکره (کتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق في الجنابة) لاندې تیره شوې ده.[۴]

---

[۱] فتح الباري: ۴۵۴/۸.
[۲] عمدة القاري: ۲۹۲/۱۵.
[۳] والحدیث مر تخریجه فی کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم، رقم: ۳۲۰۸.
[۴] کشف الباري: کتاب الغسل ص: ۴۶۴.

**ابي:** دا دَ عمر بن حفص پلار حفص بن غياث بن طلق رحمه الله دي. دَدوى تذكره هم «كتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق فى الجنابة» لاندې تيره شوې ده.(١)

**الاعمش:** دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى رحمه الله دې. أعمش په لقب سره مشهور دې. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيره شوې ده. (٢)

**زيد بن وهب:** دا مشهور تابعى ابوسليمان زيد بن وهب الجهنى الهمدانى رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب مواقيت الصلاة، باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر» لاندې تيره شوې ده. (٣)

**عبدالله:** دا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې. دَدوى تفصيلى تذكره «كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيره شوې ده. (٤)

**دَ سند خصوصيات:** دَدې روايت په سند كښې دَ رومبى راوى نه واخله تر آخرى راوى حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه پورې تولو دَتحديث لفظ استعمال كړې دې اومزه دا ده چه جمع صيغه ئې استعمال كړې ده. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حدثنا ونيلو سره حديث وړاندې بيان كړو نو تولو راويانو دَهغوى اتباع اوكړه. دَ تحديث دَپاره عموماً صحابه كرام دَ «سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم» الفاظ استعمال كړى دى. دويم خصوصيت دَدې سند دادې چه په دې كښې خوئى دَ پلار نه روايت اخستې دې. چنانچه عمر، دَ حفص بن غياث خوئې دې او هغه دَ خپل پلار نه روايت بيان كړې دې. دريم خصوصيت دَ سند دَ روايت دادې چه په دې كښې يو تابعي دَ بل تابعي نه روايت بيان كړې دې. چنانچه اعمش او زيد بن وهب رحمهما الله دواړه تابعى دى او اعمش رحمه الله دَ زيد رحمه الله نه روايت بيان كړې دې.(٥)

دَدې روايت دَ شروع حصه «كتاب الحيض، باب مخلقة وغير مخلقة» لاندې تول تشريحاتو سره تيره شوې ده.(٦) دَدې نه علاوه دا روايت په تفصيل سره «كتاب بدء الخلق» كښې «باب ذكر الملائكة صلوات الله عليهم» لاندې هم تيرشوې دې.

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په مذكوره روايت كښې دَ ذريت آدم دَ تخليق دَكيفيت او هيئت ذكر دې او ترجمة الباب كه «باب خلق آدم وذريته» وى يا «باب قول الله تعالى: ﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾» دوې دواړو كښې هم دَحضرت آدم او اولاد آدم تذكره ده لهذا ترجمة الباب سره دَدې حديث مطابقت واضح دې.(٧)

[٣١٥٥] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ

---

(١) كشف البارى: كتاب الغسل ص: ٤٦٧.

(٢) كشف البارى: ٢/٢٥١.

(٣) كتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر فى شدة الحر رقم الحديث: ٥٣٥

(٤) كشف البارى: ٢/٢٥٧.

(٥) عمدة القارى: ١٥/٢٩٣ قال العينى رحمه الله عليه : فيه: التحديث بصيغة الجمع فى موضعين. وفيه: العنعنة فى أربعة مواضع. وفيه: القول فى ثلاثة مواضع. وفيه: أن موسى بن حزام من أفراد البخارى، وروى عنه مقرون بابى كريب، وقد وثقه النسائى وغيره، وماله فى البخارى إلا فى هذالموضع. وفيه: ميسرة، وما له فى البخارى إلا هذا الحديث، وآخر فى سورة آل عمران، وحديث الباب ذكره فى النكاح من وجه آخر. وفيه: أن رواته كلهم كوفيون ما خلا موسى بن حزام، فإنه ترمذى نزل بلخ.

(٦) كشف البارى كتاب الحيض باب مخلقة وغيره مخلقة ص: ٤٠٤-٤٢٠.

(٧) عمدة القارى: ١٥/٢٩٣.

وَكَّلَ فِي الرَّحِمِ مَلَكًا، فَيَقُولُ: يَارَبِّ نُطْفَةٌ، يَارَبِّ عَلَقَةٌ، يَارَبِّ مُضْغَةٌ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْلُقَهَا قَالَ: يَارَبِّ أَذَكَرٌ، يَارَبِّ أُنْثَى، يَارَبِّ شَقِيٌّ أَمْ سَعِيدٌ، فَمَا الرِّزْقُ، فَمَا الأَجَلُ، فَيُكْتَبُ كَذٰلِكَ فِي بَطْنِ أُمِّهِ" [ص ١٢٨] [ر: ٣١٢] (١)

**تراجم رجال**

**ابوالنعمان:** دا ابوالنعمان محمد بن الفضل السدوسی رحمه الله دی. دّدوی تذکره (کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم الدین نصیحة.... الخ) لاندې تیره شوې ده. (٢)

**حماد بن زید:** دا حماد بن زید بن درهم ازدی البصری رحمه الله دی. دّدوی تذکره (کتاب الایمان باب المعاصی من أمر الجاهلیة) لاندې تیره شوې ده. (٣)

**عبیدالله بن ابی بکر بن انس:** دا ابومعاذ عبیدالله بن ابی بکر بن انس انصاری بصری رحمه الله دی. تذکره ئې (کتاب الحیض باب مخلقة وغیر مخلقة) لاندې تیره شوې ده. (٤)

**قوله: إِنَّ اللّٰهَ وَكَّلَ فِي الرَّحِمِ مَلَكًا.....:** یعنی الله تعالی دَ ښځې په رحم باندې یو فرښته مقرر کړې ده کله چه دَ ښځې په رحم کښې دَ سړی نطفه پریوځي نو فرښته دَ الله تعالی نه تپوس کوی (یارب! نطفة) چه اوس دا نطفه ده یعنی فرښته دَ الله تعالی نه دَ اتمام تخلیق اجازت غواړی چه اوس دا دَ نطفې په شکل کښې ده آیا دا دَ تخلیقی مراحل نه تیرولو سره دې ته مکمل صورت ورکړې شي؟ بیا فرښته وائي (یارب! علقة)، چه دا اوس دَ چك شوې وینې ټکړه ده، (یارب! مضغة) اې الله اوس دا دَ غوښې بوټۍ ده. کله چه الله تعالی دا پیدا کول غواړی نو فرښته سوال کوی (یارب! أذکر أم أنثی؟) اې الله سړې دې که ښځه؟ (یارب! أشقی أم سعید) اې الله بدبخت دې که نیك بخت؟ بیا فرښته سوال کوی (فما الرزق) دَ ده روزی به څه وی؟ (فما الأجل؟) دَ ده عمر به څومره وی؟ دا ټولې خبرې دَ مور په خیټه کښې لیکلې کیږی. دا روایت کتاب الحیض (باب مخلقة وغیر مخلقة) کښې په تفصیل سره تیر شوې دې.

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث مذکور ترجمة الباب سره مناسبت دا دې چه په دې روایت کښې هم دَ مور په رحم کښې دَ ذریت ادم دَ تخلیق مختلف مراحل ذکر دی لهذا ترجمة الباب سره دَ دې مناسبت واضح دې. (٥)

[٣١٥٦] حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، يَرْفَعُهُ: "إِنَّ اللّٰهَ يَقُولُ لِأَهْوَنِ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا: لَوْ أَنَّ لَكَ مَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ كُنْتَ تَفْتَدِي بِهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَقَدْ سَأَلْتُكَ مَا هُوَ أَهْوَنُ مِنْ هٰذَا وَأَنْتَ فِي صُلْبِ آدَمَ، أَنْ لَا تُشْرِكَ بِي، فَأَبَيْتَ إِلَّا الشِّرْكَ" [ص ١٢٩-١٣٠] [٣١٧٣، ٦١٨٩] (٦)

---

(١) والحدیث مر تخریجه فی کتاب الحیض باب مخلقة وغیر مخلقة.

(٢) کشف الباری: ٧٦٨/٢.

(٣) کشف الباری: ٢١٩/٢.

(٤) کتاب الحیض باب مخلقة وغیر مخلقة رقم الحدیث: ٣١٨ ص: ٤١٢.

(٥) عمدة القاری: ٢٩٣/١٥ دار الکتب العلمیة.

(٦) والحدیث أخرجه البخاری أیضاً فی کتاب الرقاق باب من نوقش الحساب عذب رقم: ٦٥٣٨ وباب صفة الجنة والنار: رقم: ٦٥٥٧ وکذا رواه الإمام مسلم فی صفات المنافقین باب طلب الکافر الفداء بملء الأرض ذهباً رقم الحدیث: ٧٠٨٣ وکذا فی جامع الأصول: ٤٩١/١٠ رقم الحدیث: ٨٠٢٢.

## تراجم رجال

**قيس بن حفص:** دا ابومحمد قيس بن حفص بن القعقاع التميمي رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب العلم باب الحياء فى العلم) لاندې تيره شوې ده.[1]

**خالدبن الحارث:** داخالدبن الحارث بن سليم البصري رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب الصلاة باب فضل استقبال القبلة.....إلخ) لاندې اول تيره شوې ده.[2]

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج بن الورد العتكى الواسطى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب من سلم المسلمون من لسانه ويده) لاندې تيره شوې ده.[3]

**ابوعمران:** دا ابوعمران عبدالملك بن حبيب الجونى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب أبواب الاستسقاء باب الجهر بالقراءة فى الاستسقاء) لاندې تيره شوې ده.[4]

**قوله: عَنْ أَنَسٍ يَرْفَعُهُ: يرفعه** :دَ تحديث الفاظ دي قال يا سمعت په ځاني محدثين يرفعه الفاظ هم استعمالوي.[5]

**قوله: أَنَّ اللَّهَ يَقُولُ لِأَهْوَنِ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا: لَوْ أَنَّ لَكَ........إلخ:** رسول الله ﷺ فرمائي چه كوم سړى ته په جهنم كښې دَ ټولو نه سپك عذاب وركولې كيږي الله تعالى به دَهغه نه تپوس اوكړى كه په ټوله زمكه كښې څه چه دى هغه ستا ملكيت شي نوته به دَ عذاب نه دَ بچ كيدو په بدله كښې دغه فديه كړې؟ هغه به وائي چه اوجي هم دغه شان ده. الله تعالى به فرمائي ما خودې نه آسانه خبره تانه غوښتې وه كوم وخت چه ته دَ آدم په شا كښې وې چه ته به ماسره څوك شريك نه ګرځوې مګر تا انكار اوكړو او هم په شرك دې اصرار اوكړو. بعض حضراتو فرمانيلي دى چه په دې روايت كښې (أهون أهل النار) نه دَ رسول الله ﷺ تره ابوطالب مراد دې. څكه چه هغه به دَ رسول الله ﷺ سره دَ شفقت او محبت دَ معامله په بدله كښې دَ ټولو نه په كمه درجه دَ عذاب كښې اخته وى.[6]

(كتاب الرقاق، باب صفة الجنة والنار) لاندې په دې روايت كښې (أردت منك أهون من هذا) الفاظ راغلي دى. شراح ليكلي دى چه (أردت) دلته دَ امر په معنى كښې دې چه ما تاسو ته دَ توحيد اختيارولو حكم دركړو مګر تاسو شرك اختيار كړو. او اراده دَ امر په معنى كښې دَ اختسلو وجه داده چه مخلوق نه هم هغه صادر كيږي څه چه الله تبارك وتعالى غواړي. اوس كه چرې دَ ارادې نه هم اراده مراد وى نوبيا به مطلب داشي چه زما اراده خودا وه چه تاسو توحيد اختيار كړې وې خو تاسو زما دَ رضا او ارادې خلاف شرك اختيار كړو اوښكاره خبره ده چه دا معنى په هيڅ صورت صحيح نه ده.[7]

---

[1] كشف البارى: ٥٢٦/٤.

[2] كتاب الصلاة باب فضل استقبال القبلة، رقم: ٣٩٣.

[3] كشف البارى: ٦٧٨/١

[4] كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها، باب: بمن يبدأ بالهَدِيَّة، رقم: ٢٥٩٥.

[5] فتح البارى: ٤٥٥/٨ عمدة القارى: ٢٩٤/١٥.

[6] فتح البارى: ٤٥٥/٨ عمدة القارى: ٢٩٤/١٥ إرشاد السارى: ٢٤٣/٧.

[7] إرشاد السارى كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار: ٥٥٦/١٣ التوضيح لابن الملقن كتاب الرقاق، باب صفة الجنة والنار: ٨٨/٣

(قوله: ألا كثرك به) دا مستثنى مفرغ دې اودلته مستثنى منه دكلام موجب كيدو باوجود دحذف كولووجه داده چه په دې مقام كښې د نفى والا معنى په معنوى توګه باندې ده. خكه چه إباء دامتناع په معنى كښې دې او په امتناع كښې د نفى والا معنى ښكاره ده اولكه چه دحديث ددې تكړې مطلب دادې چه تاسو اختيارنه كړو مګر شرك (١)
علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه معلومه خبره داده چه دلته اراده په اخذميثاق باندې محمول كړې شى دكوم تذكره چه د سورت اعراف آيت: ﴿وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ﴾ كښې ده او اراده په اخذميثاق باندې دمحمول كولو قرينه ددې حديث الفاظ (وأنت فى صلب آدم) دې اوپه دې مناسبت سره به إباء په نقض عهد باندې محمول كولې شى.(٢)
**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دلته امام بخارى رحمه الله روايت په دې وجه نقل كړې دې چه په دې روايت كښې د انسان دحضرت آدم عليه السلام د شان نه د پيدا كيدو ذكر دې. چنانچه په دې صورت كښې دحديث باب الفاظ (وأنت فى صلب آدم) مناسبت ترجمة الباب سره واضح دې. دحافظ ابن حجر رحمه الله رجحان هم دغه معلوميږى.(٣)

[٣١٥٧] **حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُرَّةَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لاَ تُقْتَلُ نَفْسٌ ظُلْمًا، إِلَّا كَانَ عَلَى ابْنِ آدَمَ الأَوَّلِ كِفْلٌ مِنْ دَمِهَا، لِأَنَّهُ أَوَّلُ مَنْ سَنَّ القَتْلَ»** [ص ١٣٢] [٦٤٧٣، ٦٨٩٠] (٤)

### تراجم رجال

**عمر بن حفص بن غياث:** دا عمر بن حفص بن غياث النخعى الكوفى رحمه الله دې. ددوى تذكره (كتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق فى الجنابة) لاندې تيره شوې ده.(٥)
**اعمش:** دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى رحمه الله دې. أعمش په لقب سره مشهور دې. ددوى تذكره (كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تيره شوې ده. (٦)
**عبدالله بن مرة:** داعبدالله بن مره الهمدانى كوفى رحمه الله دې. ددوى تذكره (كتاب الإيمان باب علامة المنافق) لاندې تيره شوې ده. (٧)
**مسروق:** دا مسروق بن اجدع بن مالك صمدانى رحمه الله دې. ددوى تذكره هم د مذكوره كتاب اوباب لاندې تيره شوې ده. (١)

---

(١) إرشادالسارى كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار: ١٣/٥٥٦.
(٢) إرشادالسارى كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار: ١٣/٥٥٦.
(٣) فتح البارى: ٨/٤٥٥.
(٤) والحديث أخرجه البخارى إيضاً فى كتاب الديات باب قول الله تعالى: ﴿وَمَنْ أَحْيَاهَا﴾ رقم الحديث: ٦٨٦٧وفى كتاب الاعتصام باب إثم من دعا إلى ضلالة أو سن سنة سيئة، رقم الحديث: ٧٣٢١ومسلم فى القسامة، باب بيان إثم من سن القتل رقم الحديث: ٤٣٧٩والترمذى فى كتاب العلم باب الدال على الخير كفاعله رقم الحديث: ٢٦٧٣والنسائى فى كتاب المحاربة، باب تحريم الدم، رقم الحديث: ٣٩٩٠وابن ماجه فى الديات باب التغليظ فى قتل مسلم ظلماً رقم الحديث: ٢٦١٦.
(٥) كشف البارى كتاب الغسل ص: ٤٦٤.
(٦) كشف البارى: ٢/٢٥١.
(٧) كشف البارى: ٢/٢٨٠.

عبدالله: دا مشهور صحابی حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی الاسلام علی خمس) لاندې تیره شوې ده. ([2])

**قوله: لاتُقتَلُ نَفسٌ ظُلمًا اِلَّاکَانَ عَلَی ابنِ آدَمَ......الخ:** څوك چه هم په دنیاکښې په ظلم سره وژلې شي دَهغه دَ وینې (وبال) یو حصه دَحضرت آدم علیه السلام اولنې خونې (قابیل) په سټ باندې ضرور پریوځي. ځکه چه هغه رومبی سړې دې چاچه په (ظلم) قتل کړې (مذموم) طریقه ئې جاری کړه.

**دَهابیل دَقتل واقعه:** په دې روایت کښې دَحضرت آدم علیه السلام دَ رومبی خونی نه مراد قابیل دې. قابیل خپل رور هابیل قتل کړې وو. هغه وخت دَ هابیل عمر شل کاله اودَ قابیل عمر پنځه ویشت کاله وو. ([3])

علامه طبری رحمه الله دَ قاتل مختلف نومونه نقل کړی دی. یو قول دادې چه دَهغه نوم قین بن آدم وو. یوقول دادې چه قاین بن آدم وو. بعض حضراتو ونیلی دی چه دَ قاتل نوم قابیل وو اوهم دغه قول ډیر مشهور دې. ([4])

قابیل هابیل ولې قتل کړو؟ په دې سلسله کښې زیات تفصیلات اسرائیلی روایات دی. خو حافظ ابن کثیر رحمه الله وغیره دَ سدی په حواله سره دَحضرت عبدالله بن عباس او عبدالله بن مسعود رضی الله عنهم نه نقل کړی دی چه دآدم علیه السلام کوم اولاد پیداشوې وو په هغې کښې به هر خل غبرګونی هلك اوجینئی پیدا کیدل. یوخل چه به هلك سره کومه جینئی پیدا کیدله دَهغې نکاح به ئې په بل خل پیداکیدونکی هلك سره کوله. دوه هلکان پیدا شو دَ یونوم قابیل وو چه زمینداری به ئې کوله. دَ بل نوم هابیل وو دَهغه دَ پیښو ورکونکی څاروی وو. قابیل په عمر کښې لوئی وو. هغه سره چه کومه خور پیدا شوې وه هغه دَهابیل سره پیداکیدونکی خور نه ډیره زیاته ښائسته وه. دَ هابیل خواهش وو چه دَ قابیل خور سره دَهغه نکاح اوشی. قابیل په دې باندې رضامند نه وو. هغه ونیل زما خور ده ماسره پیدا شوې ده چه تاسره پیداکیدونکی خور نه زیاته ښائسته ده زه دَدې زیات حقدار یم چه زما نکاح دې سره اوشی (حالانکه دَ ضابطه او قانون مطابق دَ هغې نکاح هابیل سره کیدل پکاروو). حضرت آدم علیه السلام قابیل ته اوونیل چه کومه جینئی تاسره پیدا شوې ده دَهغې نکاح هابیل سره اوکړه لیکن قابیل انکار اوکړو. بیا دَ جګړې ختمولو دَپاره دواړو دَالله تعالی په بارګاه کښې نذر پیش کړو. دَ چا نذر چه قبول شی هم هغه به دې جینئی سره دَ نکاح حقدار وی. دواړو چه کله نذر پیش کړو نودَ هابیل نذر قبول شو. دَ آسمان نه اور راغلو هغه ئې اوسیزلو. دَ قابیل نذر قبول نه شو او آسمانی فیصله دَ هابیل په حق کښې راکوزه شوه نو قابیل ونیل زه به تا قتل کړم. هابیل اوونیل ﴿لَئِن بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيكَ لِأَقتُلَكَ ۖ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ العَالَمِينَ﴾ [المائدة: ۲۸] که چرې تا زما دَ قتل دَپاره لاس اوږداندې کړو نو زه به ستا دَ قتل کولو دَپاره لاس نه وړاندې کوم. زه دَالله تعالی نه ویریږم چه رب العالمین دې ([5])

دَتورات وغیره نه معلومیږی چه په هغه زمانه کښې دَ نذر دَ قبلیدو دغه الهامی دستور وو چه دَنذر اوقربانئی څیز به په اوچت ځائی کیخودې شو اودَ آسمان نه به اور راغلو هغه به ئې اوسوزولو. دَدې الهامی دستور مطابق هابیل دَ خپلې رمې نه ښکلې ګډ دَالله تعالی په نوم نذر کړو او قابیل دَ خپل فصل دَغلې نه یو کمزورې شان غله

---

[1]) کشف الباری: ۲۸۱/۲.

[2]) کشف الباری: ۲۵۷/۲.

[3]) عمدة القاری: ۲۹۵/۱۵.

[4]) عمدة القاری: ۲۹۵/۱۵.

[5]) تفسیر ابن کثیر سورة المائدة: ۲۸، ۷۴/۳دار الکتب العلمیة البدایة والنهایة: ۲۱۷/۱-۲۱۶دار هجر، معارف القرآن للکاندهلوی: ۳۳۲/۲.

دَ قربانئ دَ پاره پیش کړه. دَ دواړو دَ ښه نیت او بدنیت اندازه په دغه طرزعمل سره اوشوه. دَ دستور مطابق آور راغلو اودَ هابیل نذر ئې اوسوزولو اودغه شان دَ قبولیت شرف دَ هغه په حصه کښې راغلو.

قابیل خپله دا بې عزتي په هيڅ شان سره برداشت نه کړې شوه او هغه دَ غضب په جوش کښې راتلوسره هابیل ته دهر که ورکړه چه زه به تا دَ قتل کولونه بغیر نه پریږدم. هابیل جواب ورکړو زه خو به په تاباندې په یوشان سره هم لاس نه اوچتوم باقي ستا چه څه مرضي وی کوه. پاتې شوه دَ قربانئ معامله نودَ الله تعالی په نیز خو هم دَ نیک نیتئ نذر قبلیدې شي. هلته نه دهرکه کار کوی او نه بې وجه غم اوغصه. په قابیل باندې ددې نصیحت بد اثر پریوتلو او په غصه کښې ورانیدوسره ئې خپل رور هابیل قتل کړو.([1])

دا په مخ دَ زمکې باندې دَ قتل اولنئ واقعه وه کومه چه اوشوه. قابیل دَ قتل نوې اراده خو اوکړه لیکن هغه به قتل څنګه کولو؟ دادَ هغه دپاره یو مشکل وو. په دې سلسله کښې مختلف اقوال دی:

① دَ ابن جريج قول دې چه هابیل اوده وو قابیل په اودوکښې هغه قتل کول غوښتل لیکن هغه نه پوهیدلو چه څنګه ئې قتل کړی؟ په دې موقع باندې شیطان ملعون راؤرسیدو هغه یوه مرغئ واخسته اودَ هغې سر ئې په کاڼړی باندې کیخودو او بل کاڼړی سره ئې چقړی کړو. قابیل دا قصه کتله اودَدې نه پس ئې خپل رور هم دغه شان په کاڼړی باندې قتل کړو.

② دَ ابن عباس رضي الله عنهما قول دادې چه قابیل دَ لړې نه یو کاڼړې ویشتلوسره هابیل قتل کړې وو.

③ دَ بعض حضراتو وینا ده چه قابیل ئې ستې تاوولوسره هابیل وژلې وو.

④ یو قول دادې چه په اوسپنه وهلوسره ئې هابیل قتل کړې وو.([2])

**ترجمة الباب سره دَ حدیث باب مناسبت:** په حدیث باب کښې (ابن آدم الأول) نه قابیل بن آدم مراد دې اوهغه په ذریت آدم کښې شامل دې لهذا ترجمة الباب سره دَدې مناسبت واضح دې.([3])

## ۲- بَاب: الْأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ

**دَ ترجمة الباب مقصد او باب سابق سره مناسبت:** دا باب تیرشوی باب سره متعلق دې. باب سابق کښې دَخلق آدم ذکروو. په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دَ ارواح ذکرکولوسره دې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه ابناء آدم اجسام او ارواح دواړو نه مرکب دی.([4])

ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه دَ انسان دَ تخلیق نه وړاندې دَهغوی روحونه په جدا جدا لښکر او غونډه کښې وو. دې نه ثابته شوه چه روح دَ جسد نه مقدم دې.([5])

[۳۱۵۸] قَالَ قَالَ اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ [ص: ۳۳]، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ «الْأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا

---

[1]) تفسير ابن كثير سورة المائدة:۲۸، ۷۶/۲-۷۵دار الكتب العلمية، قصص القرآن:۴۶/۱بتغير يسير، البداية والنهاية للحافظ عمادالدين ابن كثير: ۲۱۷/۱-۲۱۶دارهجر.

[2]) تفسير ابن كثير سورة المائدة:۲۸، ۷۶/۲-۷۵دار الكتب العلمية، البداية والنهاية: ۲۱۷/۱دارهجر عمدة القاري: ۲۹۵/۱۵.

[3]) عمدة القاري:۲۹۴/۱۵.

[4]) عمدة القاري: ۲۹۶/۱۵فتح الباري: ۴۵۵/۸إرشادالساري: ۲۴۴/۷.

[5]) فتح الباري: ۳۶۹/۶شرح الكرماني: ۲۳۱/۱۳ عمدة القاري: ۲۹۶/۱۵دار الكتب العلمية.

[ ائتَلَفَ، وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ» وَقَالَ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ بِهَذَا ص ۱۲۶ ]

**دَ مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق دې، دا تعلیق امام بخاری رحمه الله «الأدب المفرد» کښې «عن عبدالله بن صالح عن اللیث» په طریق سره او امام مسلم رحمه الله په خپل صحیح کښې موصولاً روایت کړې دې. (۱)

**قوله: الأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ، فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا ائْتَلَفَ، وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ:** یعنی دَ روحونو جدا جدا لښکرې وې بیا چه په کومو روحونو کښې (دَ پیدائش نه وړاندې) خپل مینځ کښې پیژند ګلو وه (دَ پیدائش نه پس دنیا کښې) په هغوی کښې خپل مینځ کښې مینه پیدا کیږي او کوم روحونه چه هلته (دَ پیدائش نه وړاندې) اجنبی وو هغه (دلته هم) مختلف اوسیږي.

**قوله: جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ:** جنود دَ جند جمع ده په معنی دَ لښکر او مجندة: مجموعة معنی کښې دې کما یقال: اَلُوفٌ مُؤَلَّفَةٌ. (۲)

**دَ انسانانو روحونه په عالم ارواح کښې وو:** په دې روایت کښې دا خودلې شوی دی چه روح په جسد باندې مقدم دې دَ روح تخلیق دَ جسد نه اول شوې. ګویا چه کله دَ اجساد تخلیق اوشو نو روحونو په هغې کښې حلول کړې شو. (۳)

بله خبره دا چه دَ روحونو تخلیق عادتونه او اخلاق دَ طبائع په لحاظ سره په مختلف صفاتو باندې شوی دی. بعض روحونو کښې محبت او الفت او سعادت ودیعت کړې شوی دی او بعض روحونو کښې شقاوت او نفرت ودیعت کړې شوی دی. (۴)

**خلق محبت یا نفرت ولې کوی؟:** چنانچه «فما تعارف منها ائتلف» مطلب دادې چه صفاتو او اخلاقو کښې دَ یوشانوالی او مماثلت په وجه په کومو روحونو کښې چه په اصل خلقت کښې دَ خپل مینځ تعارف وو په اجساد کښې حلول کولو نه پس په دې دنیا کښې هم دَهغوی په مینځ کښې دَمینې او محبت رشته قائم شوه. هم دغه مطلب «وماتناکر منها اختلف» هم دې چه په صفاتو او عاداتو کښې کوم بغض او تضاد دَ روحونو په مینځ کښې په اصل خلقت کښې وو په بدن کښې دَ حلول کولو نه پس په دې دنیا کښې هم دَهغوی په مینځ کښې نفرت او بعد واقع شو. (۵)

علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دَدې حدیث دوه مطالب کیدې شی: ① یو خودا چه په دې سره په خیر اوشر کښې تشاکل او مماثلت طرف ته اشاره کیدوسره نیک سړې دَ نیک سړی طرف ته مائل کیږي او شریر دَ بل شریر طرف ته مائل کیږي. چنانچه دَ ارواح په مینځ کښې دَ تعارف په بنیاد هم دغه اصل جبلت او فطرت دې په کوم چه دَهغوی تخلیق شوې. دَ کومو روحونو په جبلت او فطرت کښې چه مشاکلت او مماثلت شوې دې هغه روحونه په دې دنیا کښې هم دَهغه مشاکلت دَ وجې نه خپل مینځ کښې محبت لري. چنانچه شریر دَ نورو شریرانو طرف ته او اخیار دَ نورو اخیار او طرف ته طبعاً میلان لري.

---

(۱) کتاب الأدب المفرد باب: الأرواح جنود مجندة رقم الحدیث: ۹۰۰. رقم الباب ۴۰۱ ص: ۴۸۵ مکتبة المعارف للنشر والتوزیع ورواه الإمام مسلم فی أبواب البر والصلة فی باب: الأرواح جنود مجندة رقم الحدیث: ۶۷۰۸ عن قتیبة بن سعید: حدثنا عبدالعزیز، یعنی: ابن محمد عن سهیل عن أبیه عن أبی هریرة.... الحدیث.

(۲) النهایة لابن الأثیر: ۲۹۹/۱-۲۹۸.

(۳) التوضیح لابن الملقن: ۳۹۳/۱۹ فتح الباری: ۴۵۱/۸ عمدة القاری: ۲۹۷/۱۵ دار الکتب العلمیة.

(۴) المرجع السابق.

(۵) المرجع السابق.

چونكه په شر او خير كښې بعد اومنافرت دې په دې بنياد باندې چه په كومو روحونو كښې دَ خير جبلت وو او كومو كښې چه دَ شر جبلت وو نودَ خپل مينځ منافاتو دَ وجې نه هغه روحونه په دې دنياكښې هم په اجساد كښې دَ حلول كولونه پس دَ يوبل نه نفرت كوى.

② علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه دويم مطلب دَدې داكيدې شى چه الله تعالى دَ اجساد نه اول ارواح تخليق كړل نودَ دغه روحونو به په خپل مينځ كښې ملاقات كيدلو. بيا چه كله روحونو په دغه اجساد كښې حلول اوكړلو نو په دې دنياكښې دَ هغوى په مينځ كښې تعارف او الفت هم دَدغه عهد متقدم والادَ تعلق په وجه سره اوشو. لكه چه په دې دنياكښې دَ بنيادمو په مينځ كښې كه چرې اجنبيت دې يا محبت او الفت دې نودَدې بنياد هم دغه عهدمتقدم دې.(١)

**دَ علامه طيبى رحمه الله رائې:** علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه (فما تعارف) كښې فاء دَ تعقيب دَپاره ده اودَدې په ذريعه دَ اجمال تفصيل بيان كړې شوې دې. چنانچه (فما تعارف) الفاظ په ازل كښې دَ روحونو په مينځ كښې په اختلاط اوتعلق باندې دلالت كوى. بيا دا روحونه دَ اوږدې زمانې پورې دَ يو بل نه جدا پاتې شو او په دوى كښې دَ جدائى ديوال راغلو. بيا دَدوى په سابق تعارف باندې دَ يوې زمانې تيريدو نه پس بيا دَ الفت اومحبت رشته قائم شوه. دَدې مثال بالكل داسې دې لكه چه جدا شوى دوستان دَ يوې اوږدې زمانې دَ جدائى نه پس دوباره ملاؤ شى.(٢)

په دې دنياكښې دَ الفت اومحبت كومه رشته چه دَ دوو كسانو په مينځ كښې دَ سابقه تعلق په بيناد باندې قائميږى دوى ته دَ دغه سابق تعلق هيڅ شعور نه وى. حقيقت دادې چه دَدوى په زړونو كښې دَ سابقه تعلق القاء او الهام دَ الله تعالى دَ طرف نه كيږى.(٣)

تاسو داسې وئيلې شئى چه په دې دنياكښې دَ بنديگانو چه كوم تعلق قائم كيږې په اصل كښې دَ سابقه تعلق تجديد دې. علامه قسطلانى رحمه الله دَ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه يومرفوع روايت نقل كړې دې: «الأرواح جنود مجندة، تلتقي فتشام كما تشام الخيل، فما تعارف منها ائتلف، وماتناكر منها اختلف، فلوأن رجلاً مؤمناً جاء إلى مجلس فيه مأة منافق، وليس فيه إلا مؤمن واحد، لجاء حتى جلس إليه، ولوأن منافقاً جاء إلى مجلس فيه مأة مؤمن وليس فيه إلا منافق واحد، لجاء حتى جلس إليه»(٤) يعنى دَ روحونو جدا جدا لښكرې وې اوهغوى په خپل مينځ كښې ملاويدو سره يو بل داسې بوئى كول لكه چه اسونه يوبل بوئى كوى. بيا چه دَ كومو روحونو په مينځ كښې (په عالم ارواح كښې) دَ خپل مينځ تعارف وو (دَدې سابقه تعارف په بنياد) په دې دنياكښې هم دَهغوى په مينځ كښې دَ خپل مينځ تعلق پيدا كيږى. په انسانى نفسياتو باندې دَ عالم ارواح دا تعلق دومره اثر انداز كيږى چه كه يومؤمن سړې په يو داسې محفل كښې داخل شى په كوم كښې چه سل منافقان وى او صرف يو مؤمن وى نوهغه به يقينا هغه مؤمن سره راخى اوكينى به اوكه چرې يو منافق سړې يو داسې محفل ته راشى چرته چه مؤمنان وى او يو منافق وى نوهغه به يقيناً راخى اوهم هغه منافق سره به كينى.

---

(١) أعلام الحديث للخطابى الجزء الرابع ص: ١٥٣١-١٥٣٠جامعة أم القرى، عمدة القارى: ٢٩٧/١٥فتح البارى: ٤٥٥-٤٥٦/٨.

(٢) شرح الطيبى على مشكاة المصابيح: ١٩٥/٩إدارة القرآن والعلوم الإسلامية وإرشادالسارى: ٢٤٤/٧.

(٣) شرح الطيبى على مشكاة المصابيح: ١٩٥/٩إدارة القرآن والعلوم الإسلامية وإرشاد السارى: ٢٤٤/٧.

(٤) إرشادالسارى: ٢٤٤/٧شعب الإيمان للإمام البيهقى باب مقاربة أهل الدين ومودادتهم إلخ، قصة إبراهيم فى المعانقة إلخ: ٣٣٩/١١رقم الحديث: ٨٦٢٠مكتبة الرشد، الإبانة الكبرى لابن بطة: ٤٥٥/٢رقم الحديث: ٤٢٨، دارالراية للنشر.

په عربو کښې يو قول مشهور دې: «المناسبة تؤلف بين الأشخاص»[1] يعنې مناسبت په سرو کښې الفت پيدا کوی او هغوی يو بل ته نيژدې راولی.[2]
حضرت علی رضی الله عنه کوفې ته تشريف راوړو نو وئې فرمائيل «يا أهل الكوفة! قد علمنا خياركم من شراركم» يعنې مونږ ته معلومه ده چه په تاسو کښې څوک نيکان دی او څوک شريران؟ خلقو تپوس او کړو هغه څنګه؟ حضرت علی رضی الله عنه جواب ورکړو: «كان معنا ناس من الأخيار، فنزلوا عند ناس من الأخيار، فعلمنا أنهم من الأخيار، وكان معنا ناس من الأشرار، فنزلوا عند ناس من الأشرار، فعلمنا أنهم من الأشرار»[3] يعنې مونږ سره نيکان او شريفان خلق وو هغه شريفانو سره حصار شو. په دې سره مونږ ته معلومه شوه چه کوم خلقو له هغوی راغلل کيناستل هغه پخپله هم شريف خلق دی. دغه شان مونږ سره اشرار وو نو هغوی لاړل اشرار سره حصار شول. په دې سره مونږ ته معلومه شوه چه دوی هم اشرار دی.
د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او حضرت علی رضی الله عنه د روايات نه علامه خطابی رحمه الله د قول تائيد کيږی چه د روايت باب نه د خير او شر د مشاکلت او مشابهت طرف ته اشاره کيدې شی چه د کومو خلق په طبيعت او فطرت کښې د خير ښيګړې ماده وی هغوی د دغه مشاکلت د وجې نه يو بل ته ميلان لری او د چا په فطرت کښې چه شر وی هغوی د دغه مشاکلت في الشر د وجې نه طبعاً د يو بل طرف ته راښکلې کيږی.

---

[1] عمدة القاري: ٢٩٧.
[2] وقال بعضهم أقرب القرب مودة القلوب وإن تباعدت الأجسام، وأبعد البعد تنافر التدانی ولبعضهم:

إن القلوب لأجنادٌ مجندةٌ قول الرسول فمن ذا فيه يختلف
فما تعارف منها فهو مؤتلفٌ وماتناكر منها فهو مختلف

والآخر:

بيني وبينك فی المحبة نسبةٌ مستورة فی سر هذا العالم
نحن الذين تحابت أرواحنا من قبل خلق الله طينة آدم [إرشادالساری:٧/٢٤٥]

ولأبی نعيم فی الحلية فی ترجمة أويس بن عامر القرني: أنه لما اجتمع به هرم بن حيان العبدی، ولم يكن لقيه وخاطبه باسمه، قال له هرم: من أين عرفت اسمي واسم أبي، فوالله ما رأيتک ولا رأيتني؟ قال عرفت روحي روحک حين كلمت نفسي نفسک، وإن المؤمنين يتعارفون بروح الله وإن نأت بهم الدار. [حلية الاولياء لأبن نعيم: ٢/٨٥-٨٤ وإرشادالساری للقسطلانی: ٧/٢٤٥]. وفی صفة الصفوة لابن الجوزی رحمة الله عليه: قال ذوالنون المصری: بينما أنا أسير فی تيه بنی إسرائيل، إذا أنا بجارية سوداء، قد استلبها الوله (عشق ومحبت) من حب الرحمن، شاخصة ببصرها نحو السماء، فقلت: السلام عليک يا أختاه، فقالت: وعليک السلام باذالنون. فقلت لها: من أين عرفتني يا جارية؟ فقالت يابطال، إن الله عزوجل خلق الأرواح قبل الأجساد بألفی عام، ثم أدارها حول العرش، فما تعارف منها أئتلف وما تناكر منها اختلف، فعرفت روحی روحک فی ذلک الجولان. فقلت: إنی لأ راک حكيمة، علمينی شيئاً مما علمک الله عزوجل. فقالت: باأبا الفيض أضع علی جوارح حكم ميزان القسط، حتی يذوب كل ما كان لغيرالله، ويبقی القلب مصفی ليس فيه غير الرب عزوجل، فبعد ذلک يقيمک علی الباب ويؤليک ولا يةجديدة، ويأمر الخزان لک بالطاعة. فقلت: ياأختاه زيدينی، فقالت: يا أباالفيض، خذ من نفسک لنفسک، وأطع الله عزوجل إذا خلوت بحبيبک إذا دعوی. [ذكر المصطفيات من عابدات لقين فی طريق السياحة: ٤/٤٣٠ رقم: ٩٩٥ دارالمعرفة].
[3] عمدة القاري: ١٥/٢٩٧.

**دَ نیکوخلقو نه دَ نفرت علاج او کړنې:** علامه قرطبي رحمه الله فرماني: «إنّ الإنسان إذا وجد من نفرة ممن له فضيلة أو صلاح فتش عن الموجب لتلك النفرة وبحث عنه نور العلم، فإنه يتكشف له فيتعين عليه أن يسعى في إزالة ذلك..... حتى يتخلص من ذلك الوصف المذموم..... وكذلك القول فيما إذا وجد ميلاً لمن فيه شر أو وصف مذموم» [1]

مطلب دا چه کله یو سړي په خپل زړه کښې دَ یو داسې سړي دَ پاره نفرت اووینی په چا کښې چه څه نیک خصلت او صلاح وی نو هغه دې په خپل زړه کښې دَ ده دَ پاره موجود نفرت سبب اولټوی. دَ لټون او کوشش په نتیجه کښې به دَ نفرت سبب معلوم شی. ددې نه پس دَ داسې سړي دَ پاره ضروري دی چه هغه دې دَ دغه سبب ختمولو کوشش اوکړی تر دې چه دَ دغه خراب خصلت نه خان خلاص کړی. دغه شان که یو سړي په خپل زړه کښې دَ یو شریر او خراب سړی طرف ته خیال لری نو دې دَ ختمولو دَ پاره کوشش کول پکار دی.

**دَ تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ مذکوره تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې خکه چه ترجمة الباب دَ تعلیق جزدې. [2]

**قوله:-وَقَالَ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ بِهَذَا**

**دَ مذکوره تعلیق تخریج:** دا تعلیق دې او اسماعیلي رحمه الله دا «سعيد بن أبي مريم عن يحيى بن أيوب» په طریق سره موصولاً ذکر کړې دې. [3]

**دَمذکوره تعلیق مقصد:** دَ تعلیق مقصد دَ سابقه تعلیق لاندې تیر شوې دې.

په لفظ بهذا سره امام بخاری رحمه الله دَ حدیث باب طرف ته اشاره کړې ده چه یحیی بن ایوب بصری رحمه الله هم دغه روایت دَ یحیی بن سعید رحمه الله نه نقل کړې دې. شارحین حدیث وائی چه یحیي بن ایوب بصری رحمه الله چونکه دَ امام بخاری رحمه الله په شرائط صحت باندې پوره نه دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله دَ هغه روایت صرف استشهاد په توګه نقل کوی. [4]

**دَ تعلیق ترجمة الباب سره مناسبت:** تعلیق ثانی هم چونکه دَ تعلیق اول په شان دې په دې وجه دَ دویم تعلیق ترجمة الباب سره هم هغه مناسبت دې کوم چه تعلیق اول ته حاصل دې.

## ۴- باب: قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ﴾/هود: ۲۵/.

**ماقبل سره ربط او دَ ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دَ حضرت نوح علیه السلام بعثت او رسالت بیانول غواړی چونکه دَ آدم علیه السلام نه پس هغه رومبې نبی دې چاته چه رسالت ورکړې شوې دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله دَ هغوی تذکره دَ ټولو نه اول اوکړه. [5] صحیح مسلم کښې دَ حضرت انس بن مالک رضي الله عنه او حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه نقل شوې یو اوږد روایت کښې صراحت دې چه نوح علیه السلام ته دَ ټولو نه اول رسالت ورکړې شوې دې. [6]

---

[1] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، كتاب البر والصلة، قبيل باب المرء مع من أحب رقم الحديث: ۲۵۶۶، ۴۴۶/۶-۴۴۵ دار ابن كثير، عمدة القاري: ۲۹۷/۱۵.

[2] عمدة القاري: ۲۹۶/۱۵ دار الكتب العلمية.

[3] فتح الباري: ۴۵۶/۸.

[4] فتح الباري: ۴۵۶/۷ إرشاد الساري: ۲۴۵/۷.

[5] عمدة القاري: ۲۹۹/۱۵.

[6] صحيح مسلم كتاب الإيمان باب أدنى أهل الجنة منزلة فيها، رقم الحديث: ۴۷۵، ۴۸۰.

مؤرخينو دَحضرت نوح علیه السلام دَ نسب سلسله داسې بيان کړې ده: (نوح بن لمك بن متوشلخ بن خنوخ) دې نه حضرت ادريس علیه السلام مراد دې، (بن يارد بن مهلائيل بن قينان بن أنوش بن شيث بن آدم عليه السلام)[1]

بعض مورخينو دَدې نسب نامې په صحت باندې تردد ظاهر کړې دې. دَدې حضراتو په نيز دَحضرت آدم علیه السلام او حضرت نوح علیه السلام په مينځ کښې په ذکرشوې نسب نامه کښې ډير سلاسل نسب په مينځ کښې غائب دی. علامه رحمت الله کيرانوی هندی رحمه الله اظهار الحق کښې او مولانا حفظ الرحمن سيوهاروی قصص القرآن کښې په دې باندې تحقيقي بحث کړې دې.[2]

علامه کيرانوی رحمه الله ليکي چه دَحضرت آدم علیه السلام نه واخله دَ طوفان نوح علیه السلام پورې زمانه دَ تورات دَ عبراني نسخې مطابق ۱۶۵۶ کاله دې. دَ يوناني نسخې مطابق ۲۲۶۲ کاله دې او دَسامری مطابق ۱۳۰۷ کاله دې. دَهنری واسکاټ تفسير کښې يو نقشه ورکړې شوې ده او دې نقشه کښې دَحضرت نوح علیه السلام نه علاوه دَهرې نوم سره دَهغه عمر ليکلې شوې دې کوم چه دَ هغه دَ خوئي دَ پيدائش په وخت وو او حضرت نوح علیه السلام سره دَهغه عمر ليکلې شوې دې کوم چه دَ طوفان په وخت وو. هغه نقشه دا ده:

| نوم | عمر په وخت د ولادت د ولد سوا دَ نوح علیه السلام نه | دعبراني نسخې مطابق | د يوناني نسخې مطابق | د سامری نسخې مطابق |
|---|---|---|---|---|
| آدم علیه السلام | شيث علیه السلام | ۱۳۰ | ۲۳۰ | ۱۳۰ |
| شيث علیه السلام | انوش | ۱۰۵ | ۲۰۵ | ۱۰۵ |
| انوش | قينان | ۹۰ | ۱۹۰ | ۹۰ |
| قينان | مهلائيل | ۷۰ | ۱۷۰ | ۷۰ |
| مهلائيل | يارد | ۶۵ | ۱۶۵ | ۶۵ |
| يارد | حنوك | ۱۶۲ | ۱۶۲ | ۶۲ |
| حنوك | متوشالح | ۶۵ | ۱۶۵ | ۶۵ |
| متوشالح | لامك | ۱۸۷ | ۱۸۷ | ۶۷ |
| لامك | نوح علیه السلام | ۱۸۲ | ۱۸۸ | ۵۳ |
| نوح علیه السلام | طوفان | ۶۰۰ | ۲۰۰ | ۶۰۰ |
| | | ۱۶۵۶ | ۲۲۶۲ | ۱۳۰۷ |

ددې پورته ذکر شوو دريوارو نسخو په رڼا کښې د مودې په بيان کښې ډيرزيات فرق دې اودومره اختلاف دې چه په دې کښې تطبيق ممکن نه دې او چونکه دَ دريوارو نسخو مطابق حضرت نوح علیه السلام عمر دَ طوفان په وخت ۶۰۰ کاله متعين دې اودَحضرت آدم علیه السلام عمر ۹۳۰ کاله شوې دې. په دې بنياد دَسامری نسخې مطابق لازم راځي چه دَحضرت آدم علیه السلام وفات په وخت دحضرت نوح علیه السلام عمر ۲۲۳ کاله وو. خودا خبره په اتفاق دَ مورخينو غلطه

[1] فتح الباري: ۴۵۸/۱۸ عمدة القاري: ۲۹۸/۱۵-۲۹۷.

[2] إظهار الحق، الجزء الثاني ص: ۴۳۲-۴۳۱ الرئاسة العامة لإدارات البحوث العلمية والإفتاء والدعوة والإرشاد، قصص القرآن: ۵۵/۱-۵۴ دار الإشاعة.

ده اوعبراني او یوناني نسخې هم دَدې تکذیب اوتردید کوي. ځکه چه دَ عبراني نسخې دَ بیان مطابق دَنوح علیه السلام پیدائش دَ آدم علیه السلام دَ وفات ۱۲۶ کاله پس او دَ دویمې نسخې مطابق ۷۳۲ کاله پس شوي.[۱]
ابن جریر رحمه الله فرمائی دَ نوح علیه السلام ولادت دَحضرت آدم علیه السلام دَ وفات نه یوسل شپږویشت (۱۲۶) کاله پس شوې اوهغوی ته دَ ۳۵ کالو په عمر کښې نبوت ملاؤشوې.[۲]
دَ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما روایت دې چه نوح علیه السلام ته دَ څلویښتو کالو په عمر کښې نبوت ملاؤشوې او نهه نیم سوه (۹۵۰) کاله ئې خلق دَ الله تعالی عبادت طرف ته رابلل. بیا دَ طوفان نه پس شپیته کاله ژوندې وو.[۳] په دې حساب سره دَ نوح علیه السلام عمر یوزر پنځوس کاله جوړیږي. په انبیاء او رسولانو کښې دَهغوی دَ ټولو نه زیات عمر و او ځانله یو پیغمبر دې چه دا قسم دَ اوږدې مودې پورې ئې خلقوته دَتوحید کلمې دعوت ورکولو اودَ هغې په بدله کښې دَخپل قوم دَ طرف نه ډیرزیات تکلیفونه او اذیتونه زغمل.
دَ حضرت انس بن مالک رضي الله عنه روایت دې چه کله نوح علیه السلام له ملک الموت راغلو نودائې ورته اووئیل چه په پیغمبرانو کښې دَ ټولو نه زیات عمر ستاسو دې، تاسو دا دنیا څنګه اولیدله؟ حضرت نوح علیه السلام اوفرمائیل (کَرَجُلٍ دَخَلَ دَارًا لَّهُ بَابَانِ فَقَامَ وَسْطَ الدَّارِ هُنَيْهَةً ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْبَابِ الْآخَرِ)[۴] لکه څنګه چه څوک سړې دَدوو دروازو والامکان کښې داخل شی او په هغې کښې لږشان ساعت حصار شی او په بله دروازه باندې اوځي.
یوحکیمانه متل مشهور دې (سَلِ المجرّب ولاتسأل الحکیم) دَدنیا بې ثباتی او فنا کیدل ئې په یوحکیمانه مثال کښې پیش کړې دې. دَ دنیاوی ژوندون باره کښې دا دَ یوداسې انسان تجربه ده چه یوزر پنځوس کاله ژوندې وو مګر تیرشوې عمر هغه لږشان ساعت قیام سره تعبیرکوی. موږ اوتاسو اوسطاً ۶۰ کاله ژوند تیروو. ډیر زیات مختصر موده. مګر دَ خواهشاتو او تمناګانو دومره لوئې او ږد فهرست جوړوو لکه چه دلته به ټول عمر پاتې یو.
دَ باب لاندې امام بخارې دَ نوح علیه السلام دَ اخبار او قصص سره متعلق دَ مختلفو آیاتونو تفسیر کړې دې.
قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿بَادِيَ الرَّأْيِ﴾/هود: ۲۷/: مَاظَهَرَ لَنَا. ﴿أَقْلِعِي﴾/هود: ۴۴/: أَمْسِكِي. ﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾/هود: ۴۰/: نَبَعَ الْمَاءُ، وَقَالَ عِكْرِمَةُ: وَجْهُ الْأَرْضِ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿الْجُودِيِّ﴾/هود: ۴۴/: جَبَلٌ بِالْجَزِيرَةِ. ﴿دَأْبِ﴾/المؤمن: ۳۱/: مِثْلُ حَالٍ.
حضرت نوح علیه السلام چه کله خپل قوم ته دَتوحید دعوت ورکړو نو مالدارانو طبقې هغه دَ خپل حاکمیت دَپاره خطره اوګڼله اودغه شان هغوی دَحضرت نوح علیه السلام په نبوت او رسالت باندې اعتراضات او شبهات کول شروع کړه. دَ سورة هود په دې آیت کښې دَ دغه مکالمه بیان دې: ﴿فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ مَا نَرَاكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ وَمَا نَرَىٰ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ بَلْ نَظُنُّكُمْ كَاذِبِينَ﴾[۵] یعنی دَهغوی دَ قوم چه کوم کافران سرداران وو هغوی اووئیل چه موږ خو تا دَ خپل ځان په شان سړې ګڼړو او موږ ته ستا منونکی هم هغه ښکاري چه په موږ کښې سپک اوذلیل خلق دی اوهغه هم په سر سری نظرسره او موږ په تاکښې دَ خپل ځان نه څه فضیلت هم نه وینو بلکه تاسو دَروغژن خیال کوو.

[۱] إظهار الحق الجزالثاني ص: ۴۳۲-۴۳۱ الرئاسة العامة لإدارات البحوث العلمية الإفتاء والدعوة والإرشاد.
[۲] فتح الباري: ۴۵۸/۸عمدة القاري: ۲۹۹/۱۵.
[۳] المستدرک للحاکم، کتاب تواریخ المتقدمین من الأنبیاء والمرسلین، ذکرنوح النبی صلی الله علیه وسلم: ۴۲/۲رقم الحدیث: ۴۰۶۳دارالحرمین للطباعة والنشر والتوزیع.
[۴] مجموعة الرسائل ابن أبي الدنیا، ذم الدنیا: ۱۱۱/۲-۱۱۰رقم الحدیث: ۲۲۹مؤسسة الکتب الثقافیة.
[۵] سورة هود: ۲۷.

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د ﴿بَادِيَ الرَّأْيِ﴾ معنى مَا ظَهَرَ لَنَا سره كړې ده. يعنى (أول النظر قبل التأمل) د تامل او غور كولو نه وړاندې په اول نظر كښې رائې قائمول. لكه چه د ﴿بَادِيَ الرَّأْيِ﴾ معنى د سرسرى نظر ده. د نوح عليه السلام په نبوت باندې دهغه د قوم دا اعتراض وو چه خود عقل او فهم نه محروم خلق دهغوى تابعدار جوړ شوى دى. هغوى د خبرې بيخ ته نه شى رسيدې سر سرى نظر لرى چه كوم نوې شې نى واؤريدو په هغې باندې نى (آمنا وصدقنا) اوونيل. (١)

**قوله: أقلعى أمسكى**: په دې سره هم د سورت هود دې آيت طرف ته اشاره ده: ﴿وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي وَغِيضَ الْمَاءُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُودِيِّ وَقِيلَ بُعْدًا لِلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ﴾ (٢)

په دې آيت كښې د طوفان نوح د تباه كارونه پس د حالاتو د هواريدو بيان دې يعنى الله تعالى زمكې ته حكم وركړو چه اې زمكې خپلې اوبه راكاږه او اې اسمان ته بند شه او اوبه اوچې كړې شوې او قصه ختمه كړې شوه او كشتئى د جودى (په غر) باندې اودريده او اوونيلې شو چه په ظالمانو باندې تباهى ده. امام بخارى رحمه الله د أقلعى تفسير په أمسكى سره كړې دې. يعنى بس شه. هم دغه تفسير على بن ابى طلحه رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړې دې. (٣)

﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾: نَبَعَ الْمَاءُ، وَقَالَ عِكْرِمَةُ: وَجْهُ الْأَرْضِ: په دې سره هم د سورت هود آيت ﴿حَتَّى إِذَا جَاءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ طرف ته اشاره ده يعنى تر هغې پورې چه زمونږ حكم راغلو او تنور راؤخوټيدو. امام بخارى رحمه الله ﴿وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ معنى نبع الماء سره كړې ده. يعنى چه كله اوبه راؤخوټيدې. دا تفسير د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې او دا ابن ابى حاتم رحمه الله (عن على ابن أبى طلحة عن ابن عباس) په طريق سره موصولاً روايت كړې دې. (٤)

**د تنور معنى**: اهل لغت او مفسرينو لفظ تنور مختلف معنى بيان كړى دى. علامه بغوى رحمه الله قرطبى رحمه الله د عكرمه رحمه الله او زهرى رحمه الله قول نقل كړې دې (هو وجه الأرض) (٥) يعنى تنور د زمكې مخ ته وائى. بعض حضراتو وئيلى دى چه د زمكې اوچتې حصې يا غونډئى ته هم تنور وئيلې شى. چنانچه هغوى فرمائى: (والتنور أشرف موضع فى الأرض وأعلاه) (٦)

**ايا په ايت كښې د يو خاص تنور طرف ته اشاره ده؟**: بعض حضراتو وئيلى دى چه دې نه هم د روټو پخولو تنور مراد دې (٧) يو قول دا هم دې چه په شام كښې د عين ورده په مقام باندې د حضرت آدم عليه السلام تنور وو دهغې نه اوبه راؤخوټيدې په آيت كښې هم دغه تنور مراد دې (٨) د اكثر مفسرينو په نيز په كوفه كښې د حضرت نوح عليه السلام تنور وو دې نه هم هغه تنور مراد دې. (٩)

---

(١) فتح البارى: ٤٥٩/٨-٤٥٨.

(٢) سورة هود: ٤٤.

(٣) عمدة القارى: ٣٠٠/١٥.

(٤) فتح البارى: ٦٥٩/٧.

(٥) الجامع لأحكام القرآن: ٣٣/٩.

(٦) تفسير البيضاوى: ٤٥٦/١ وروح المعانى: ٣٥٠/١٢.

(٧) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى: ٣/٩ روح المعانى: ٣٥٠/١٢.

(٨) تفسير البيضاوى: ٤٥٦/١ والجامع لأحكام القرآن: ٣٤/٩.

(٩) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى: ٣٤/٩.

یوقول دادې چه دا تنور د کانړی نه جوړ شوې وو. حضرت حواء علیها السلام به په دې کښې روټئی پخولې. هم دغه تنور حضرت نوح علیہ السلام ته ملاؤ شو.[1]

په دې ټولو اقوالو کښې علامه قرطبي رحمه الله تطبیق ورکولو سره فرمائیلي چه کله د طوفان نوح اوبه راخوټکیدل شروع شو نو د روټئی د تنور نه هم راؤوتلې د مخ د زمکې نه هم راؤوتلې او د شام د عین الورد د تنور نه هم راؤوتلې.[2] البته علامه آلوسي رحمه الله فرمائیلي چه د مفسرینو په نیز د تنور نه هم د روټئی پخولو تنور مراد دې.[3]

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: الْجُودِيُّ جَبَلٌ بِالْجَزِيرَةِ** د طوفان د ختمیدو نه پس د نوح علیہ السلام کشتئی په جودی غر باندې اودریده. امام بخاري رحمه الله د جودی محل وقوع بیان کړې دې. مجاهد رحمه الله وائي چه جودی غر په جزیره کښې واقع دې. دې نه جزیره ابن عمر مراد ده. د مجاهد رحمه الله دا قول ابن ابی حاتم رحمه الله د ابن نجیح رحمه الله په طریق سره موصولاً روایت کړې دې.[4]

مفتي محمد شفیع رحمه الله فرمائي چه جودی نن هم په دې نوم باندې قائم دې. د دې محل د حضرت نوح علیہ السلام وطن اصلی عراق د موصل په شمال کښې جزیره ابن عمر سره نیزدې د آرمینیه سرحد سره دې. دا یوه غریزه سلسله ده. په موجوده تورات کښې د کشتئی اودریدو ځائی ته کوه اراراط ونیلې شوې دې. په دې دواړو روایتونو کښې څه داسې تضاد نشته دې مګر په پخوانو زړو تاریخونو کښې هم دغه دی چه د نوح علیہ السلام کشتئی د جودی په غر باندې راغله اودریده. په قدیم تاریخونو کښې دا هم ذکر دی چه د عراق په ډیرو مقاماتو کښې د دې کشتئی ټکړې تراوسه پورې موجود دی. کوم چه د تبرك په توګه کیخودلې او استعمالولې شي. په تفسیر طبري او بغوی کښې دی چه نوح علیہ السلام په لسم ماه رجب کشتئی کښې سور شوې وو شپږ میاشتې داکشتئی په طوفان باندې روانه وه. کله چه د بیت الله شریف مقام ته اورسیدله نو اووه خل ئې طواف اوکړو. الله تعالی خپل بیت اوچت کړو او د غرقیدو نه ئې بچ کړې وو. بیا په لسم محرم الحرام د عاشورې په ورځ طوفان ختم شو او کشتئی د جودی په غر باندې اودریده. حضرت نوح علیہ السلام د شکرانې په توګه په هغه ورځ روژه اوساتله او په کشتئی کښې چه څومره کسان وو ټولو ته ئې د روژې ساتلو حکم ورکړو. بعض روایتونو کښې دی چه په کشتئی کښې شریك ټول ځناورو هم په هغه ورځ روژه اوساتله.[5]

**دَأْبِ: مِثْلُ حَالِ.** سورت غافر کښې دی: ﴿ يٰقَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظٰهِرِيْنَ فِي الْاَرْضِ فَمَنْ يَّنْصُرُنَا مِنْۢ بَاْسِ اللّٰهِ اِنْ جَآءَنَا ؕ قَالَ فِرْعَوْنُ مَاۤ اُرِيْكُمْ اِلَّا مَاۤ اَرٰى وَمَاۤ اَهْدِيْكُمْ اِلَّا سَبِيْلَ الرَّشَادِ ۞ وَقَالَ الَّذِيْۤ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اِنِّيْۤ اَخَافُ عَلَيْكُمْ مِّثْلَ يَوْمِ الْاَحْزَابِ ۞ مِثْلَ دَاْبِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ وَالَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ؕ ﴾[6] یعنی په آل فرعون کښې یو خوان سړی اوونیل اې زما قومه نن په زمکه کښې ستاسو حکومت دې تاسو غالب یئ. نو که د الله تعالی عذاب راغلو نو مونږ له به د هغې نه د بچ کیدو امداد څوك کوی؟ فرعون اوونیل چه زه خو به تاسو ته هم دغه رانې درکوم کومه چه زه پخپله ټیك ګنړم. او هغه سړی اوونیل چه

---

[1] معارف القرآن: ٦٦٢/٤ وقیل: معنی ﴿وَفَارَ التَّنُّوْرُ﴾ تمثیل لحضور العذاب. کقولهم: حمی الوطیس. إذا اشتدت الحرب والوطیس: التنور. انظر تفسیر للقرطبي: ٣٤/٩.

[2] فتح الباري: ٤٥٩/٨.

[3] روح المعاني: ٣٥٠/٢.

[4] تفسیر القرآن العظیم لابن أبي حاتم: ٢٠٣٧/٦ رقم الحدیث: ١٠٩١٥ مکتبة نزار مصطفیٰ الباز.

[5] معارف القرآن: ٦٢٨/٤-٦٢٧ نور اوګورئی تفسر القرطبي مع التعلیقات: ١٢٧/١١ سورة هود: ٤٤.

[6] سورة غافر: ٢٩، ٣١/٣٠.

چاایمان راوړلي وو اې زما قومه ماته خو ستاسو په نسبت (دپخوانو) امتونو په شان د ورځې اندیښنه کیږي لکه چه قوم نوح عاد او ثمود اود هغوی نه د شاته خلقو حال شو.

امام بخاری رحمه الله په مذکوره آیت کښې لفظ "دأب" تفسیر خودلې دې چه دادَ حال په معنی کښې دې. دا دأب یدأب مصدر دې. ددې معنی یوشان په یو کار کښې لګیدل او مشقت برداشت کولوده او په دې وجه ددې استعمال حال عادت او طریقې په معنی کښې کیږي.

## ۵- باب: قَوْلِ اللهِ عَزَّوَجَلَّ: ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ أَنْ أَنذِرْ قَوْمَكَ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾/نوح: ۱/إِلَى آخِرِ السُّورَةِ.

﴿وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ نُوحٍ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُم مَّقَامِي وَتَذْكِيرِي بِآيَاتِ اللَّهِ فَعَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْتُ فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ وَشُرَكَاءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً ثُمَّ اقْضُوا إِلَيَّ وَلَا تُنظِرُونِ ۝ فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَمَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ۝﴾/یونس: ۷۱-۷۲/.

**ماقبل سره ربط:** ددې باب سابقه باب سره مناسبت دادې چه په تیرشوی باب کښې دحضرت نوح علیه السلام د بعثت اورسالت تذکره وه او اوس په دې باب کښې دحضرت نوح علیه السلام قوم د الله تعالی د عذاب نه د ویرولو تذکره ده.[1]

**د ترجمة الباب مقصد:** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه په دې ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله د سورت نوح په ضمن کښې دحضرت نوح علیه السلام خپل قوم د عذاب نه د ویرولو تذکره کول غواړي.[2]

**د نسخو اختلاف:** په اکثرو نسخوکښې د باب سابق نه پس د سورت نوح په مذکوره آیت باندې د باب عنوان قائم دې البته د ابوذر رحمه الله په روایت کښې دا آیت بلاباب دې اوهم د باب سابق د آیات لاندې دې. د حافظ ابن حجر رحمه الله مخې ته نسخه کښې هم دغه ترتیب دې. خود علامه عینی رحمه الله او قسطلانی رحمه الله مخې ته نسخوکښې دباب لاندې د سورت نوح مذکوره آیت درج دې.[3]

دویم آیت د سورت یونس دې په دې کښې هم د حضرت نوح علیه السلام د دعوت اوتبلیغ بیان دې. دا آیت په بعض نسخو کښې درج دې او په اکثر نسخوکښې درج نه دې.[4] امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب قائمولو سره (إلى آخر السورة) ددې خبرې طرف ته اشاره کولو په غرض سره اوونیل چه دا مکمل سورت دحضرت نوح علیه السلام د قضیه سره متعلق دې.[5]

**د ایاتونو ترجمه:** مونږ نوح علیه السلام دخپل قوم طرف ته (پیغمبر جوړولو سره) لیږلې وو چه تاسو خپل قوم (د کفر د وبال نه) اوویره وه مخکښې دهغې نه چه په هغوی باندې دردناک عذاب نازل شی، یعنی هغوی ته اووایه که چرې ایمان نه راوړنی نو په تاسو به دردناک عذاب راځی که هغه دنیاوی وی یعنی طوفان یا اخروی یعنی دوزخ.

او تاسو دوی ته د نوح علیه السلام قصه واؤرونی (کومه چه هغه وخت واقع شوې وه) کله چه هغوی خپل قوم ته اوفرمائیل چه اې زما قومه که چرې تاسو ته زما اوسیدل (یعنی د وعظ کولو په حالت کښې) او د الله تعالی د احکامو نصیحت کول درانه (ناخوښه) معلومیږی نو (معلومیږی دې زه هیڅ پرواه نه کوم ځکه چه) زما خو په الله تعالی باندې یقین دې نوتاسو ماته (د ضرر رسولو متعلق) خپل تدبیر (څه چه کولې شنی) سره د خپلو شریکانو (یعنی

---

[1] عمدة القاری: ۱۵/۳۰۱-۳۰۰.
[2] عمدة القاری: ۱۵/۳۰۰.
[3] عمدة القاری: ۱۵/۳۰۰ إرشادالساری: ۷/۲۴۷.
[4] عمدة القاری: ۱۵/۳۰۱.
[5] الکنز المتواری: ۱۳/۲۵۸.

بتانو) پاخه كړئ (يعنى تاسو اوستاسو معبودان يوځائى شئ او ماته په ضرر رسولوكښې خپل ارمان پوره كړئ) بيا ستاسو دغه تدبيرونه ستاسو زړه تنګيدلو سبب نه دى كيدل پكار (يعنى په اكثرو پټو تدبيرونوسره طبيعت خرابيږى نو د پټ تدبير ضرورت نشته دې. كوم څه تدبير چه كوئ په كولاؤ زړه په اخلاص اوښكاره كوئ، زما لحاظ اوخيال مه ساتئ او مه زما د تللو او د وتلو انديښنه كوئ ځكه چه د دومره زياتو كسانو په بهره كښې د يوسړى وتل هم مستبعد دى بيا د پټولو څه ضرورت دې) زما سره (چه څه كول دى) كوئ او ماته (اصلاً) مهلت مه راكوئ (ماحصل دا دې چه زه ستاسو د دې خبرونه ويريږم اونه د تبليغ نه منع كيدى شم. تردې پورې ئې د ويرې نفى اوفرمائيله وړاندې د طمع نفى فرمائى، يعنى كه بيا هم تاسو ددې كوئى نو (دا اوګڼئ چه ما تاسونه (په دې تبليغ) څه معاوضه خونه ده غوښتې (او ما به تاسو نه ولې غوښتله ځكه) زما معاوضه خو صرف د وعدې مطابق هم) هم د الله تعالى په ذمه ده او (چونكه) ماته حكم كړې شوې دې چه زه په اطاعت كونكوكښې اوسيږم (په دې وجه په تبليغ كښې د حكم تعميل كوم كه چرې تاسو نه مننئ نو په دې كښې زما څه نقصان دې؟):

[۳۱۵۹] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ سَالِمٌ: وَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ: "إِنِّي لَأُنْذِرُكُمُوهُ، وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ، لَقَدْ أَنْذَرَ نُوحٌ قَوْمَهُ، وَلَكِنِّي أَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ: تَعْلَمُونَ أَنَّهُ أَعْوَرُ، وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ"
[ص ۱۵۴] [۶۷۰۸، ۶۹۷۲، وانظر: ۲۸۹۲، ۳۲۵۶] [۱]

**تراجم رجال**

**عبدان:** دا د عبدالله بن عثمان عتكى لقب دې. د دوى تذكره (بدء الوحى) لاندې تيره شوې ده.[۲]

**عبدالله:** دا مشهور محدث عبدالله بن مبارك رحمه الله دې. د دوى تذكره هم (بدء الوحى) لاندې تيره شوې ده.[۳]

**يونس:** دې نه يونس بن يزيد ايلى رحمه الله مراد دې. د دوى تذكره (كتاب العلم باب من يرد الله به خيراً يفقهه فى الدين) لاندې تيره شوې ده.[۴]

**سالم:** دا سالم بن عبدالله بن عمر رضى الله عنهم دې. د دوى تذكره (كتاب الايمان باب الحياء من الايمان) لاندې وړاندې تيره شوې ده.[۵]

**ابن عمر:** دا د حضرت عمر بن الخطاب رضى الله عنه خوئى دې. د دوى تذكره هم (كتاب الايمان باب الايمان وقول النبى صلى الله عليه وسلم: بنى الاسلام على خمس) لاندې تيره شوې ده.[۶]

**قوله: قَامَ رسول الله صلى الله عليه وسلم فى الناس....الخ:** عبدالله بن عمر رضى الله عنهما وائى رسول الله ﷺ د خطبې وركولو دپاره د خلقو مينځ كښې اودريدو. بيا چه څنګه د الله تعالى شان سره لائق دى د الله تعالى تعريف ئې بيان كړو. بيائى د دجال ذكراوكړو اوبيائى اوفرمائيل زه تاسو د دجال نه ويروم او بل هيڅ يو پيغمبر

---

[۱] مرتخريجه فى كتاب الجهاد والسير، باب كيف يعرض الإسلام على الصبى؟ رقم: ۳۰۵۷.
[۲] كشف البارى: ۴۶۱/۱.
[۳] كشف البارى: ۴۶۲/۱.
[۴] كشف البارى: ۲۸۲/۳.
[۵] كشف البارى: ۱۲۸/۲.
[۶] كشف البارى: ۶۳۷/۱

داسې نه دي تیرشوي چاچه خپل قوم دَ دجال نه نه وي ویرولي. تردې چه نوح علیه السلام هم دَدجال نه ویرولی دی. مګر زه تاسو ته ددجال یو داسې حال بیانوم چه یو پیغمبر هم خپل قوم ته نه دي خودلې هغه به کانړې په یوه سترګه روند وي اوالله تعالی کانړې نه دې.

**شرح حدیث**

**قوله: وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ:** یعنی یونبی داسې نه دي تیرشوي چاچه خپل قوم دَ دجال نه نه وي ویرولي. دې نه پس جمله ده: «لقد أنذر نوح قومه» چه نوح علیه السلام هم خپل قوم «دَ دجال نه» اوویرولو. دادَ تخصیص بعدالتعمیم دَ قبیل نه دي. دَحضرت نوح علیه السلام نې په خاص توګه سره ذکر خکه اوفرمانیلو چه هغه دَ ټولو نه اولنې پیغمبر وو چه شارع وو. چنانچه علامه قرطبي رحمه الله فرمانی چه دَ آدم علیه السلام نه پس دَ ټولو نه اول نوح علیه السلام ته دَ بنات عمات اوخالات دَ حرمت حکم ورکړو.[۱] دویمه وجه دَتخصیص دا کیدې شي چه نوح علیه السلام ابوالبشر ثانی دي.[۲]

**إِنَّهُ أَعْوَرُ:** یعنی هغه به کانړې وی. دَ دجال سره متعلق دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت شوی احادیثو کښې متعارض الفاظ راغلی دی. په دې روایت کښې دَ أعور لفظ راغلې دې چه دجال به په یوسترګه کانړې وی. دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دَ روایت الفاظ دی: «کأن عینه عنبة طافية»[۳] یعنی لکه دَهغه سترګه به دَ انګور دَ دانې په شان پړسیدلې وی. یو روایت کښې دی: «انه أعور عین الیمنی»[۴] او په بل روایت کښې دَدې بالکل برعکس: «انه أعور عین الیسری»[۵] الفاظ راغلی دی. په یوروایت کښې «انها لیست بناتئة»[۶] الفاظ نقل کړی دی. یعنی دَ هغه به یوه سترګه نه وی. دغه شان دَحضرت حذیفه رضی الله عنه په روایت کښې دی: «انه ممسوح العین علیها ظفرة غلیظة مکتوب بین عینیه: کافر»[۷] یعنی دَ دجال

---

[۱] إرشاالساري: ۲٤٥/۷.

[۲] عمدة القاري: ۳۰۱/۱۵.

[۳] أخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء باب ﴿واذكر في الكتاب مريم إذ انتبذت من أهلها﴾ رقم الحديث: ۳٤۳۹ وفي كتاب المغازي، باب حجة الوداع رقم: ٤٤۰۲ وفي كتاب اللباس باب الجعد رقم: ۵۹۰۲ وفي كتاب التعبير باب رؤيا الليل رقم: ٦۹۹۹ وباب الطواف بالكعبة في المنام رقم: ۷۰۲٦ وفي كتاب الفتن باب ذكر الدجال رقم: ۷۱۲۳ وفي كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿ولتصنع على عيني﴾ رقم: ۷٤۰۷ ومسلم في كتاب الفتن وأشراط الساعة، باب ذكر الدجال رقم الحديث: ۲۹۳۳.

[٤] أخرجه ابن ماجة في سننه كتاب الفتن باب فتنة الدجال خروج عيسى بن مريم رقم: ٤۰۷۱ وأخرجه البزار في مسنده: ۲۸۱/۷ رقم: ۲۸٦۷ ومسند حذيفة بن اليمان وأخرجه البيهقي في سننه: ٤۰۸/٦ في كتاب صلاة الخسوف باب الخطبة بعد صلاة الكسوف رقم: ٦۱۵٤ وأخرجه أبو يعلى: ٤۰۸/٦ في مسند مالك بن انس رقم: ۳۷٦۸ ومصنف ابن أبي شيبة: ٤۸۸/۷ باب ماذكر في فتنة الدجال والمعجم الكبير للطبراني: ۸٤/۷ وكنز العمال: ۱۳۲/۱٤ رقم: ۳۸۷٤۸ و۱۳۳/۱٤ رقم: ۳۸۷٦۰ و۱۳۷/۱٤ رقم: ۳۸۷۸۷.

[۵] مسند البزار: ۱۲۹/۷ رقم: ۲٦۸۱ عمدة القاري: ۳۰۱/۱۵.

[٦] عمدة القاري: ۳۰۱/۱۵.

[۷] رواه الإمام مسلم في صحيحه في كتاب الفتن وأشراط الساعة باب ذكر الدجال رقم الحديث: ۲۹۳٤ وأخرجه عن أنس رضي الله عنه أيضاً رقم الحديث: ۲۹۳۳ والإمام أحمد في مسنده عن حذيفة رضي الله عنه: ۳٦٤/۲۰ رقم الحديث: ۳۸٤٦ عمدة القاري: ۳۰۱/۱۵.

سترګه به خاورې شوې وی په هغې باندې به پيړه غوښه وی د هغه د دواړو سترګو په مينځ کښې به کافر ليکلې شوی وی.

د رواياتو په الفاظوکښې چه کوم تعارض ښکارى علامه عينى رحمه الله په هغې کښې جمع اوتطبيق ورکولوسره فرمائى: (ووجه الجمع بين هذه الأوصاف المتنافرة أن يقدر فيها أن إحدى عينيه ذاهبة والأخرى معيبة، فيصح أن يقال: لكل واحد عوراء، إذا الأصل فى العَوَر العيب) [1] يعنى په دې متضاد صفاتو کښې تطبيق به داسې وى چه دَهغه به يوه سترګه بالکل نه وى اودويمه سترګه به ئى عيب والاوى، دغه شان به دَ دواړو سترګونه هرې يوې ته عوراء ونيل صحيح وى ځکه چه دَ سترګو په عور کښې اصل عيب دې.

لکه چه کومه سترګه ئى نشته نوهغه هم يو عيب دې اوکومه چه موجود ده هغه دکانړې کيدو په وجه عيب والاده. په دې وجه په دواړو اعتبارو سره دجال ته أعور ونيل صحيح دى. بعض حضراتو داسې تطبيق ورکړې دې چه دا صفات دَ کتونکى په اعتبارسره مختلف بيان کړې شوى دى. بعض به دجال ته أعورالعمنى وينى او بعض بـه ئى أعور اليسرى وينى. [2]

**قوله: وَأَنَّ اللهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ:** يعنى الله تعالى کانړې نه دې. دا کلمات تنزيه دى او په دې کښې دَ الله تعالى دَ تقديس بيان دې چه هغه دټولو عيبونو او صفات رذيله نه منزه دې. [3]

**ترجمة الباب سره دَحديث مناسبت:** په حديث اوترجمة الباب کښې مناسبت واضح دې چه په دواړو کښې دَحضرت نوح عليه السلام تذکره ده. [4]

[۳۱۶۰] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلاَ أُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا عَنِ الدَّجَّالِ، مَا حَدَّثَ بِهِ نَبِيٌّ قَوْمَهُ: إِنَّهُ أَعْوَرُ، وَإِنَّهُ يَجِيءُ مَعَهُ بِمِثَالِ الجَنَّةِ وَالنَّارِ، فَالَّتِي يَقُولُ إِنَّهَا الجَنَّةُ هِيَ النَّارُ، وَإِنِّي أُنْذِرُكُمْ كَمَا أَنْذَرَ بِهِ نُوحٌ قَوْمَهُ" [ص ۱۵۶][۶۷۱۲] [5]

ترجمه: آيا زه تاسو ته دَدجال متعلق داسې خبره اونه ښايم چه ترننه پورې يو نبى خپل امت تـه نـه ده خودلې؟ هغه به کانړې وى اوهغه سره به دَ جنت او دوزخ په نوم باندې دوه منترونه وى؟ کوم تـه چه هغـه جنت وائى هغـه بـه په حقيقت کښې دوزخ وى. زه تاسو دَ دجال نه داسې ويروم لکه څنګه چه نوح عليه السلام خپل قوم ويرولې وو؟

**تراجم رجال**

**ابونعيم:** دا ابونعيم الفضل بن دکين رحمه الله دې. دَدوى تذکره (کتاب الإيمان باب فضل من استبرألدينه) لاندې تيره شوې ده. [6]

**شيبان:** دا ابو معاويه شيبان بن عبدالرحمن تميمى نحوى بصرى رحمه الله دې. دَدوى تذکره (کتاب العلم باب حفظ العلم) لاندې تيره شوې ده. [7]

---

[1] عمدة القارى: ۳۰۱/۱۵.

[2] عمدة القارى: ۳۰۱/۱۵.

[3] عمدة القارى: ۳۰۱/۱۵.

[4] عمدة القارى: ۳۰۱/۱۵.

[5] مرتخريجه فى كتاب الجهاد باب كيف يعرض الإسلام على الصبى؟ رقم: ۳۰۵۷.

[6] كشف البارى: ۶۶۹/۲

[7] كشف البارى: ۲۶۳/٤.

**يحيى:** دا مشهور امام يحيى بن كثير طائي يمامي رحمه الله دي. دَ دوی تذکره هم مذکوره بالا کتاب او باب لاندې تيره شوې ده. (۱)

**ابوسلمة:** دا ابوسلمه عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دي. دَ دوی تذکره (کتاب الایمان باب صوم رمضان احتسابا من الایمان) لاندې تيره شوې ده. (۲)

**شرح حديث**

**قوله: مِثَال الجنة:** دا دَ مثل په معنی کښې دی. په یوروایت کښې (تمثال الجنة) الفاظ راغلی دی. (۳) مطلب دادې چه الله تعالی به خلق په ازميښت کښې دَ اچولو دپاره دجال ته مافوق الفطرت طاقت ورکړی. دجال به په یولاس کښې دَ جنت صورت او بل کښې دَ دوزخ صورت کيخودو سره مداری توب کولو سره خلق ويروی او دَ خپلې خدائيئ کرشمې به ښائی. مړی به ژوندی کوی آسمان ته به حکم ورکولو سره باران کوی. شاړې زمکې ته به په اشاره کولو سره هغه تروتازه فصل راټوکوی. دا به ټول مداری توب او دَ جادو کمالات وی. الله تعالی به دجال ته داسې تصرفات باندې قدرت ورکولو سره دَ نيغې عقيدې والابنديګان ازميښت کوی. په آخره کښې به حضرت عيسی عليه السلام تشريف راوړو سره هغه قتل کړی نو دَ هغه دَ دروغو دَ خدائيئ راز به ښکاره شی. (۴)

دَ احاديثو په ذخيره کښې دَ دجال دَ دروغژن کيدو بعض نښې نښانې په ډير وضاحت سره بيان کړې شوی دی. مثلاً دَ حضرت ابو امامه الباهلی رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به په خپلو اکثرو خطبو کښې دَ دجال باره کښې خودل او دَ هغه دَ فتنې نه به ئې ويرول کول. رسول الله ﷺ به فرمائيل دَ کله نه چه الله تعالی دَ آدم عليه السلام اولاد پيدا کړې پدی. په دنيا کښې هيڅ يوه فتنه دَ دجال نه لويه نشته او الله تعالی چه کوم يو نبی هم مبعوث کړې دې هغوی خپل امت دَ دجال نه ويرولې دې او زه آخری نبی يم او تاسو بهترين امت يئې په دې وجه لامحاله هغه به هم په تاسو کښې راځی. که هغه زما په موجودګئی (ژوند) کښې راؤوتلو نو دَ هر يو مسلمان دَ طرف نه به دَ هغه مقابله کونکې هم زه يم او که زما نه پس راؤوتلو نو هر مسلمان به خپل حفاظت پخپله کوی او الله تعالی به دَ هر مسلمان ساتونکې او محافظ وی.

دجال به دَ شام او عراق دَ يوې لارې په مينځ کښې ښکاره کيږی. او هغه به ښی او ګس هر طرف ته فساد خوروی اې دَ الله تعالی بنديګانو تاسو هغه وخت کلک اوسيږئی. زه ستاسو په مخکښې دَ هغه هغه علامتونه بيانوم چه زما نه اول بل يو نبی هم نه دی بيان کړی. هغه به دَ ټولو اول دَ نبوت دعوی کوی حالانکه زما نه پس يو نبی نشته بيا به دا دعوی کوی چه زه ستاسو رب يم (مګر هغه ته په کتلو سره به سړی ته درې څيزونه ښکاره شی په کوم سره چه دَ هغه دَ دعوی تکذيب کيږی. ① يوخو دا چه هغه به په سترګو ړانده ښکاری) حالانکه تاسو به خپل رب دَ مرګ نه مخکښې نه شئی ليدلې (نو دَ هغه ښکاريدل به دَ دې خبرې دليل وی چه هغه رب نه دې). ② (دويم څيز دا) چه هغه به کاڼړې وی او ستاسو رب کاڼړې نه دې. ③ (دريم څيز دا چه) دَ هغه دَ دواړو سترګو په مينځ کښې به کافر ليکلې شوې وی چه هر يو مؤمن به ئې لوستلې شی که په ليکلو لوستلو باندې پوهيږی او که نه پوهيږی.

دَ هغه به يوه فتنه دا وی چه هغه سره به (دَ دروغو) جنت او دوزخ وی او په حقيقت کښې به دَ هغه دوزخ جنت او دَ هغه جنت دوزخ وی. نو چه کوم خلق دَ هغه په دوزخ کښې راګير کړې شی نو هغه له پکار دی چه الله رب العزت دې

---

(۱) کشف الباری: ٤/۲٦۷.

(۲) کشف الباری: ۲/۳۲۳.

(۳) يعنی (صورة الجنة)

(٤) إرشادالساری: ۷/۲٤۸.

يادوى اود سورت كهف د شروع آياتونه دى لولى. هغه اور به د الله تعالى په حكم په ده باندې يخ شى لكه څنګه چه په ابراهيم عليه السلام باندې اور يخ شوې وو او د سلامتيا والاجور شوې وو.
د هغه به يوه فتنه دا هم وى چه هغه به يو كلى والاته وائى كه چرې زه ستا مور پلار راژوندى كړم نو آيا ته به زما د رب كيدو ګواهى وركړې؟ بدوى يعنى كلى والا به وائى چه بالكل. په دې باندې به دوه شيطانان د بدوى د مور پلار په شكل باندې د هغه مخې ته راوستلې شى او وائى به چه دا زمونږ خوږ خويه ددې «دجال اتباع اوكړه. هم دا ستا رب دې.
د ده به يوه فتنه دا هم وى چه دې به په يوسړى باندې مسلط كولې شى كوم چه به هغه قتل كړى او په آره باندې به ئى دوه ټكړې كړى او «نورو خلقو ته» به وائى ګورئى زما ددې بنده طرف ته زه دې اوس ژوندې كوم مګر دې به بيا هم ګمان كوى چه دده زما نه سوا يو بل رب هم دې. الله تعالى به هغه بنده راژوندې كړى نو دا دجال خبيث به هغه ته وائى چه ستا رب څوك دې؟ هغه به جواب وركړى زما رب الله دې اوته د الله تعالى دښمن ئى ته دجال ئى.
په الله تعالى قسم ستاباره كښې چه څومره پوهه ماته نن حاصله شوې ده دې نه وړاندې نه وه حاصله شوې.(١)
دلته په روايت د باب كښې مقصود بالترجمة جمله «وَإِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ كَمَا أَنْذَرَ بِهِ نُوحٌ قَوْمَهُ» ده اود ې سره د حديث ترجمة الباب سره مناسبت هم واضح كيږى.(٢) باقى د دجال فتنې سره متعلق تفصيلى بحثونه ان شاء الله كتاب الفتن كښې بيانيږى.

[٣١٦١] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَجِيءُ نُوحٌ وَأُمَّتُهُ، فَيَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى، هَلْ بَلَّغْتَ؟ فَيَقُولُ نَعَمْ أَيْ رَبِّ، فَيَقُولُ لِأُمَّتِهِ: هَلْ بَلَّغَكُمْ؟ فَيَقُولُونَ لَا مَا جَاءَنَا مِنْ نَبِيٍّ، فَيَقُولُ لِنُوحٍ: مَنْ يَشْهَدُ لَكَ؟ فَيَقُولُ: مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُمَّتُهُ، فَنَشْهَدُ أَنَّهُ قَدْ بَلَّغَ، وَهُوَ قَوْلُهُ جَلَّ ذِكْرُهُ: وَكَذَلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَالْوَسَطُ الْعَدْلُ" [ص ١٥٩] [٤٢١٧، ٦٩١٧](٣)

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعيل:** دا ابوسلمه موسى بن اسماعيل تبوذكى بصرى رحمه الله دې. دده وى تذكره «كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس» لاندې تيره شوې ده.(٤)

**عبدالواحد بن زياد:** دا عبدالواحد بن زياد بصرى رحمه الله دې. دده كنيت ابوبشر يا ابوعبيده دې. دده وى تذكره «كتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان» لاندې تيره شوې ده.(١)

---

(١) سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عيسى بن مريم إلخ، رقم الحديث: ٤٠٧٧ المستدرك للحاكم كتاب الفتن والملاحم، باب: إن الله لم يبعث نبيا إلا حذر أمته الدجال: ٣٨٠/٤ رقم الحديث: ٨٦٢٠ دار الكتب العلمية، الفتن لنعيم بن حماد، ما يقدم إلى الناس فى خروج الدجال: ٥١٧/٢ رقم الحديث: ١٤٤٦ مكتبة التوحيد، القاهره، المعجم الكبير للطبرانى: ١٤٦/٨ رقم الحديث: ٧٦٤٤ مكتبة العلوم والحكم، الموصل.

(٢) عمدة القارى: ٣٠١/١٥ إدارة الطباعة المنيرية.

(٣) رواه الإمام البخارى فى كتاب التفسير فى باب قوله تعالى: ﴿وكذلك جعلناكم أمة وسطا﴾ أيضاً رقم الحديث ٤٤٨٧ وفى كتاب الاعتصام باب قوله تعالى ﴿وكذلك جعلناكم أمة وسطا﴾ رقم الحديث: ٧٣٤٩ والإمام الترمذى فى كتاب باب ومن سورة البقرة، رقم الحديث: ٢٩٦١.

(٤) كشف البارى: ٤٧٧/٣.

**اعمش:** دا ابومحمد سلیمان بن مهران اسدي کوفي رحمه الله دي. أعمش په لقب سره مشهور دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تیره شوې ده. [۱]

**ابوصالح:** دا ابوصالح ذکوان الزیات رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب أمور الإیمان) لاندې تیره شوې ده. [۲]

**ابوسعید الخدري:** دا سعد بن مالك انصاري رضي الله عنه دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب من الدین الفرار من الفتن) لاندې تیره شوې ده. [۳]

**یجیئ نوح وأمته.......لاما جاء نامن نبي:** دَ قیامت په ورځ به نوح علیه السلام او دَ هغه دَ امت خلق راځي الله تعالی به دَ نوح علیه السلام نه تپوس کوي آیا تا خپل قوم ته پیغام رسولې وو؟ هغه به وائي چه اوجې. بیا به الله تعالی دَ نوح علیه السلام دَ امت نه تپوس کوي آیا نوح علیه السلام تاسو ته پیغام رسولې وو؟ نوهغوی به وائي چه مونږ له هیڅوك پیغمبر نه وو راغلې.

## دَ حدیث شرح

دلته یو اشکال پیداکیږي چه دَ قرآن پاك آیت ﴿اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ﴾ کښې دی چه دَ قیامت په ورځ به مونږ دَ هغوی په ژبو باندې مهرونه اولګوو. نودا خبره به کافران څنګه کوي چه مونږ له څوك پیغمبر نه وو راغلې؟ نودَدې جواب علامه عیني رحمه الله دا ورکړو چه دَ قیامت په ورځ به مختلف مواطن وي په بعض مواطن او مواقع کښې کفار تکلم کولې شي او بعض کښې نه. [۵] دَهغوی په اتباع کښې علامه زکریا انصاري رحمه الله هم مذکوره اشکال نقل کولوسره دا جواب ورکړې دې. [۶]

**قوله: فيقول لنوح من يشهد لك فيقول محمد صلی الله علیه وسلم وأمته:** بیا به الله تعالی نوح علیه السلام نه اوفرمائي ستاد پاره به څوك ګواهي ورکوي؟ نوح علیه السلام به عرض اوکړي محمد صلی الله علیه وسلم او دَ هغه امت. دې نه پس به امت محمدیه علی صاحبها الصلوة والسلام ګواهي ورکوي چه نوح علیه السلام پیغام رسولې وو. چنانچه دَ قرآن مجید آیت دې ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا﴾ چه مونږ به امت محمدیه په نورو امتونو باندې ګواه جوړوو.

په نورو روایاتو کښې دي چه په دې موقع باندې به دَ نوح علیه السلام قوم وائي چه مونږ خو اولني امت یو او دَ امت محمدیه آخري امت دې نو امت محمدیه به زمونږ باره کښې څنګه ګواهي ورکوي؟ امت محمدیه به جواب ورکړي چه الله تعالی مونږ ته رسول صلی الله علیه وسلم مبعوث کړې وو او هغه ته ئې کتاب ورکړې وو په کوم کښې چه ستاسو دَ حالاتو خبرورکړې شو. [۷] امام بخاري رحمه الله دَ "وسطا" تفسیر "عدلا" سره کړې دې. [۸]

حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله لیکلي دي چه دا آیت دَ حجت اجماع دلیل دې ځکه چه الله تعالی په دې آیت کښې امت محمدیه په عدالت موصوف کړې دې اوعدالت هم هغه صفت دې دَ کوم په بنیاد چه ګواه

---

[۱] کشف الباري: ۲۰۱/۲.

[۲] کشف الباري: ۲۵۱/۲.

[۳] کشف الباري: ۶۵۸/۱

[۴] کشف الباري: ۸۲/۲

[۵] عمدة القاري: ۳۰۲/۱۵.

[۶] تحفة الباري: ۶۰/۴

[۷] عمدة القاري: ۳۰۲/۱۵.

[۸] إرشادالساري: ۳۰۳/۱۵ دارالکتب العلمیة.

جوړيدل او د ګواهئ د قبليدلو حکم لګولې شي. نو چه کله د دې امت کسان په يوه خبره باندې راجمع شي او د هغه کار د صحيح کيدو يا نه صحيح کيدو ګواهي ورکړي نو د هغې قبلول لازم او ضروري دی.[1] دا روايت ماقبل کښې کتاب التفسير لاندې تيرشوې دې.[2]

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث باب کښې دی: (يجيء نوح وأمته). علامه عينى رحمه الله وائى چه هم دغه جمله ترجمة الباب سره مناسبت لرى په دې معنى چه حديث او ترجمة الباب دواړو کښې د حضرت نوح عليه السلام تذکره ده.[3]

[۳۱۶۲] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو حَيَّانَ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَعْوَةٍ، «فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ، وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ فَنَهَسَ مِنْهَا نَهْسَةً»

وَقَالَ: "أَنَا سَيِّدُ القَوْمِ يَوْمَ القِيَامَةِ، هَلْ تَدْرُونَ بِمَ؟ يَجْمَعُ اللَّهُ الأَوَّلِينَ وَالآخِرِينَ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ، فَيُبْصِرُهُمُ النَّاظِرُ وَيُسْمِعُهُمْ [ص:۱۳۵] الدَّاعِي، وَتَدْنُو مِنْهُمُ الشَّمْسُ، فَيَقُولُ بَعْضُ النَّاسِ: أَلاَ تَرَوْنَ إِلَى مَا أَنْتُمْ فِيهِ، إِلَى مَا بَلَغَكُمْ؟ أَلاَ تَنْظُرُونَ إِلَى مَنْ يَشْفَعُ لَكُمْ إِلَى رَبِّكُمْ، فَيَقُولُ بَعْضُ النَّاسِ: أَبُوكُمْ آدَمُ فَيَأْتُونَهُ فَيَقُولُونَ: يَا آدَمُ أَنْتَ أَبُو البَشَرِ، خَلَقَكَ اللَّهُ بِيَدِهِ، وَنَفَخَ فِيكَ مِنْ رُوحِهِ، وَأَمَرَ المَلاَئِكَةَ فَسَجَدُوا لَكَ، وَأَسْكَنَكَ الجَنَّةَ، أَلاَ تَشْفَعُ لَنَا إِلَى رَبِّكَ، أَلاَ تَرَى مَا نَحْنُ فِيهِ وَمَا بَلَغَنَا؟ فَيَقُولُ: رَبِّي غَضِبَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ، وَلاَ يَغْضَبُ بَعْدَهُ مِثْلَهُ، وَنَهَانِي عَنِ الشَّجَرَةِ فَعَصَيْتُهُ، نَفْسِي نَفْسِي، اذْهَبُوا إِلَى غَيْرِي، اذْهَبُوا إِلَى نُوحٍ، فَيَأْتُونَ نُوحًا، فَيَقُولُونَ: يَا نُوحُ، أَنْتَ أَوَّلُ الرُّسُلِ إِلَى أَهْلِ الأَرْضِ، وَسَمَّاكَ اللَّهُ عَبْدًا شَكُورًا، أَمَا تَرَى إِلَى مَا نَحْنُ فِيهِ، أَلاَ تَرَى إِلَى مَا بَلَغَنَا، أَلاَ تَشْفَعُ لَنَا إِلَى رَبِّكَ؟ فَيَقُولُ: رَبِّي غَضِبَ اليَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ، وَلاَ يَغْضَبُ بَعْدَهُ مِثْلَهُ، نَفْسِي نَفْسِي، ائْتُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَيَأْتُونِي فَأَسْجُدُ تَحْتَ العَرْشِ، فَيُقَالُ: يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، وَسَلْ تُعْطَهْ" قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ: لاَ أَحْفَظُ سَائِرَهُ [ص ۱۴۲ ـ ۱۴۳][۳۱۸۲، ۴۴۳۵][4]

## تراجم رجال

**اسحاق بن نصر:** دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر بخاری سعدی رحمه الله دی.[5]

---

[1] فتح الباری: ۳۱۷/۱۳ إرشاد الساری: ۳۰۳/۱۵ دارالکتب العلمية.

[2] کشف الباری کتاب التفسير ص: ۳۷.

[3] عمدة القاری: ۳۰۲/۱۵ إدارة الطباعة المنيرية.

[4] والحديث أخرجه البخاری أيضاً فی کتاب أحاديث الأنبياء باب قول الله عزوجل: ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾ وفی کتاب التفسير باب: ﴿ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا﴾ وفی کتاب التوحيد باب قول الله تعالى: ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ وفی کتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار وأخرجه مسلم فی کتاب الإيمان باب إثبات الشفاعة وإخراج الموحدين من النار. والترمذی فی صفة القيامة باب ماجاء فی الشفاعة: ۲۴۳۴.

[5] کتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده فی الخلوة رقم:: ۲۷۸.

**محمد بن عبيدة:** دا ابوعبدالله محمد عبيد بن ابى اميه الطنافسى الكوفى رحمه الله دي.
هغوى دَ ابان بن اسحاق، ادريس بن يزيد اودى، اسماعيل بن ابى خالد، حسن بن حكم نخعى، سليمان الأعمش، مسعر بن كدام، هشام بن عروة، هلال بن سليمان، يزيد بن كيسان او ابوحيان تيمى رحمهم الله غوندي اعلام حديث نه دَحديث روايت كړي دي.
هغوى رحمه الله نه احمد بن حنبل، اسحاق بن راهويه، ابن حبان، ابوبكر بن ابى شيبه، عثمان بن ابى شيبه، ابوخيثمه، محمد بن عبدالله بن نمير، احمد بن منيع، هارون بن عبدالله، يحيى بن موسى بلخى، عيسى بن محمد طنافسى، قتيبه بن سعيد، ابوبكر بن ابى اسود، محمد بن وزيرواسطى، محمد بن يحيى ذهلى، مسدد بن مسرهد، يحيى بن معين رحمهم الله دَ حديث روايت كوى.[1]
امام احمد بن حنبل رحمه الله دَهغوى باره كښې فرمائيلى (كان رجلاً صدوقاً).[2]
يحيى بن معين رحمه الله او دارقطنى رحمه الله هغه ته ثقه وئيلي دي.[3]
محمدبن عبدالله بن عمار وائى چه هغه ثبت وو او په خپلو معاصرينو كښې دَحديث په صحت او سقم باندې به نى دَ ټولو نه ژور نظر ساتلو.[4]
امام عجلي رحمه الله هغوى ثقه ګرخولى دى اوونيلى دى چه هغه ته څلور زره احاديث ياد وو.[5]
ابن سعد رحمه الله دَهغوى باره كښې وئيلى دى (كان ثقة، كثير الحديث، صاحب سنة وجماعة)[6] دَهغوى ولادت په كال ۱۲۴ هجرى كښې شوې[7] خو په تاريخ وفات كښې ئى اختلاف دې. دابن سعد رحمه الله په نيز دَهغوى وفات مامون په دورخلافت ۲۰۴ هجرى كښې شوې[8] حافظ ابن حبان رحمه الله او امام بخارى رحمه الله دَ هغوى تاريخ وفات ۲۰۳ هجرى نقل كړي دي.[9] اكثرحضراتو دَهغوى دَ وفات تاريخ ۲۰۵ هجرى روايت كړې دې.[10] او راجح هم دغه دى. حافظ خزرجى رحمه الله دې ته ترجيح وركړې ده.[11]
**ابوحيان:** دا يحيى بن سعيدبن حيان تيمى كوفى رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب سوال جبرائيل النبى صلى الله عليه وسلم عن الايمان والاسلام) لاندې تيره شوې ده.[12]

---

[1] شيوخ اوتلامذه دَ تفصيل دَ پاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۵۶/۲۶-۵٤تهذيب التهذيب: ۳۲۸/۹-۳۲۷سير أعلام النبلاء: ٤۳۷/۹.
[2] الجرح والتعديل: ۱۵/۸رقم الترجمة: ٤۰.
[3] تاريخ الخطيب: ۳۶۹/۲سير أعلام النبلاء: ٤۳۷/۹.
[4] تهذيب الكمال: ۵۷/۲۶.
[5] تهذيب الكمال: ۵۷/۲۶ خلاصة الخزرجى ص: ۳۵۰.
[6] طبقات ابن سعد: ۳۹۷/۶.
[7] تاريخ الخطيب: ۳۶۵/۲.
[8] طبقات ابن سعد: ۳۹۷/۶.
[9] ثقات ابن حبان: ٤٤۱/۷التاريخ الكبير: ۱۷۳/۱رقم الترجمة: ۵۱۸دارالكتب العلمية.
[10] سير أعلام النبلاء: ٤۳۸/۲تاريخ خليفة ص: ۵۷۲.
[11] خلاصة الخزرجى ص: ۳۵۰.
[12] كشف البارى: ۵۸۷/۲.

ابوزرعة: دا هرم بن عمر بن جریر بجلی رحمه الله دي. او د مشهور صحابي حضرت عبدالله بن جریر بجلی رضي الله عنه نمسی دي. د دوی تفصیلي تذکره (کتاب الإیمان باب الجهاد من الإیمان) لاندې تیره شوې ده. (۱)

**قوله: کنا مع النبي صلى الله عليه وسلم...... فنهس منها نهسة:** حضرت ابوهریره رضي الله عنه وائي مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په یو دعوت کښې شریك وو. نو د حضورپاك طرف ته د چیلئ څنګل وړاندې کړې شو او هغه د حضورپاك خوښ خوراك وو. حضورپاك په غاښونو سره دا شوکوله. بعض نسخو کښې د "فوقع" په ځائې "فرفعت" دي. سفاقسي وائي چه د رفعت روایت صحیح دې ځکه چه ذراع مؤنث دی. (۲)

صاحب مصابیح په دې باندې سخت رد کړې دې چه د سفاقسي قول بغیر د خبط نه بل هیڅ نه دی. صحیح دا دی چه ذراع مؤنث غیر حقیقي دې او د دې د پاره فعل مؤنث او مذکر دواړه استعمالول جائز دی. بیا هغه وائي که چرې تانیث دلته حقیقي وی نو بیا هم د دې د پاره فعل مؤنث راوړل واجب نه دی چه په مینځ کښې فاصل موجود دې. لکه (قام فی الدار هند) مثال دې. په دې کښې قام فعل مذکر دې او هند مؤنث حقیقي دې مګر چونکه په مینځ کښې فاصل دې په دې وجه فعل مؤنث راوړل واجب نه دی. (۳)

**قوله: فنهس نهسة:** نهس د ینهس په معنی کښې دی. د غاښونو په طرفونو غوښه شوکول. (۴) د ابوذر رحمه الله او اصیلي رحمه الله په روایت کښې (فنهش منها نهشة). نهش د ینهش په معنی کښې دې یو څیز د جامنو په غاښونو سره شوکول. (۵) یعنې حضورپاك په خله مبارکه باندې غوښه اوشوکوله.

**قوله: وقال أنا سيد القوم يوم القيامة:** او هغوی اوفرمائیل چه زه به د قیامت په ورځ د خلقو سردار یم. سردار او سید هغه وی د چا طرف ته چه په مصیبت او پریشانئ کښې خلق رجوع کوی. چونکه د قیامت د ورځې تباهئ او ویرې د وجې نه ټول بنیادم رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې سفارش کوی او د حضورپاك د جهنډې لاندې به راجمع کیږی په دې وجه ئې اوفرمائیل د قیامت په ورځ به د خلقو سردار یم. (۶)

دلته د سیادت تقیید کوم چه د قیامت ورځې سره شوې دې دا د حضورپاك د دیناوی سیادت منافي نه دې. بنکاره خبره ده چه کله د قیامت په ورځ حضورپاك د ټولو بنیادمو سردار وی نو په دې سره په دنیا کښې سید او سردار کیدل په طریقه اولی ثابتیږی. دویمه وجه د قیامت ورځې سره د دې سیادت تقیید دا ده چه حضورپاك د قیامت قصه بیانوله په دې وجه ئې په هغه ورځ د خپل سیادت ذکر هم اوکړو. (۷)

**په روایت باب باندې یو اشکال او د هغې جواب:** په نورو احادیثو کښې حضورپاك د انبیاء کرامو علیهم السلام په مینځ کښې د تفضیل او ترجیح ممانعت فرمائیلې دې. چنانچه په سنن ابی داؤد کښې د روایت الفاظ دادی: (لاتخیروا بین الأنبیاء) (۸) یعنې د انبیاء کرامو په مینځ کښې تفضیل مه کوئی.

---

(۱) کشف الباری: ۳۰۴/۲.
(۲) إرشاد الساری: ۲۵۰/۷.
(۳) إرشاد الساری: ۲۵۰/۷.
(۴) النهایة لابن الأثیر: ۸۱۱/۲
(۵) إرشاد الساری: ۲۵۰/۷.
(۶) عمدة القاری: ۳۰٤/۱۵.
(۷) عمدة القاری: ۳۰٤/۱۵.
(۸) سنن أبی داؤد کتاب السنة باب فی التخییر بین الأنبیاء رقم: ۴۶۶۸ ومصنف ابن أبی شیبة: ۳۶۶/۶ رقم الحدیث: ۳۱۷۹۸، ۳۱۸۳۷. مسند أحمد مسند أبی سعید الخدری رضی الله عنه رقم الحدیث: ۱۱۲۸۳، ۱۱۳۰٤.

په دویم روایت کښې نبی فرمائیلی «لاتفضلونی علی یونس»(۱) په یونس علیه السلام باندې ما ته فضیلت مه راکوئ حالانکه د باب په روایت کښې «أناسید الناس یوم القیامة» الفاظ سره په نورو انبیاء کرامو باندې د حضور پاک فضیلت ثابتیږي؟

شراح د دې جواب ورکړې دې چه کوم وخت حضور پاک د خپل تفضیل ممانعت اوفرمائیلو هغه وخت حضورپاک ته دا علم نه وو ورکړې شوې چه حضورپاک د ټول اولاد آدم سردار اوسید دې.(۲) د یونس علیه السلام باره کښې حضورپاک اوفرمائیل چه په هغوی باندې ماله فضیلت مه راکوئ. د دې جواب شراح دا ورکړې دې چه دا ممانعت حضورپاک د تواضع او انکسارئ د وجې فرمائیلې دې.(۳)

بعض حضراتو د دې دا جواب ورکړې دې چه دا ممانعت د ذات نبوت اورسالت سره متعلق دې چه په نبوت او رسالت کښې ټول انبیاء کرام په یو حد باندې قائم دی ځکه چه نبوت خو هم یو شئ دې په دې کښې تفاضل او تقابل څنګه کیدې شی؟ په نورو اوصافو کښې تفاضل ممکن دې کوم چه د نبوت نه خارج دی مثلاً بعض انبیاء کرامو ته مستحکم او وسیع سلطنت ورکړې شوې بعضو ته معجزات ورکړې شوې، بعض ته اوږد عمر ورکړې شوې او هغوی د توحید دعوت چلولو په نتیجه کښې د مخالفینو تکلیفونه برداشت کولو سره صبر اوتحمل کړې دې. دا اوصاف د نبوت نه خارج دی او په دې کښې تفاضل اوتفاوت کیدې شی.(۴)

بل حضرات انبیاء کرامو نه صرف حضرت یونس علیه السلام په خاص توګه ذکر کولې شی. ممکن دی چه دغه اوهام او خیالات باطله لرې کول مقصود وی چه د حضرت یونس علیه السلام د منزلت او مرتبت انحطاط و تنقیص سره متعلق د دغه خبرونه پیدا کیدې شی د کوم خبرداري چه الله تعالی اود هغه حبیب ﷺ ورکړې دې. مثلاً د الله تعالی ارشاد دې: ﴿فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ﴾ ﴿إِذْ أَبَقَ إِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ﴾ ﴿فَالْتَقَمَهُ الْحُوتُ وَهُوَ مُلِيمٌ﴾ ﴿لَوْلَا أَن تَدَارَكَهُ نِعْمَةٌ مِّن رَّبِّهِ لَنُبِذَ بِالْعَرَاءِ وَهُوَ مَذْمُومٌ﴾، هم دغه شان حضورپاک فرمائی «إن النبوة أثقالا وان یونس تفسخ منها الربع»، نو حضورپاک د دې خبرې ادراک کولو سره چه چرته داسې اوهام پیدا نه شی چه د حضرت یونس علیه السلام نبوت اورسالت مجروح کړی. ارشاد اوفرمائیلو چه ماته په حضرت یونس علیه السلام باندې فضیلت مه راکوئ اودا هم داسې ده لکه چه په یو موقع باندې حضورپاک خپلې بی بی حضرت صفیه رضی الله عنها سره ولاړو هلته یو انصاری صحابی تیریدو نو حضورپاک په اوچت آواز سره اوفرمائیل دا صفیه بنت حیی ده. په دې باندې صحابی عرض اوکړو سبحان الله یا رسول الله، یعنی دا د الله تعالی رسول ﷺ ستاسو باره کښې مونږ داسې سوچ څنګه کولې شو؟ نو حضورپاک اوفرمائیل چه شیطان د انسان په نفس کښې لکه د وینې منډې وهی.(۵)

**قوله: هَلْ تَدْرُونَ بِمَنْ يَجْمَعُ اللهُ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ........ وَيُسْمِعُهُمُ الدَّاعِي:** آیا تاسو پوهیږئ چه داسې ولې کیږی الله تعالی به وړاندې روستو ټول یو میدان کښې راجمع کوی چنانچه کتونکې به هغه لیدې شی او آواز کونکې به هغوی ته آواز اورولې شی.

یعنی د محشر میدان به بالکل هوار وی آواز کونکې به ټولو ته خپل آواز رسولې شی او کتلې به شی. په بل

---

(۱) جامع الأصول فی احادیث الرسول: ۵۲۶/۸فی شرح الغریب من الحدیث: رقم الحدیث: ۶۳۲۵بحر الفوائد المشهور بمعانی الأخبار: ۸۰/۱دار الکتب العلمیة.

(۲) الشفاء للقاضی أبی الفضل عیاض: ۱۴۲/۱.

(۳) الشفاء للقاضی أبی الفضل عیاض: ۱۴۳/۱.

(۴) الشفاء: ۱۴۴/۱-۱۴۳بحر الفوائد المشهور بمعانی الأخبار: ۸۰/۱

(۵) بحر الفوائد المسمی بمعانی الأخبار: ۸۰/۱دار الکتب العلمیة.

روايت كښې (فيبصرهم الناظر) په ځاني (وتدنوا منهم الشمس) الفاظ راغلى دى.[1] يعنى نظر به په ټولو كښې نفوذ اوكړې د اول نه به تر آخره پورې رسيږى.

بيا حضورپاك اوفرمائيل (وتدنوا منهم الشمس) چه نمر به هغوى ته رانيږدې شى. په دې موقع باندې به بعض خلق (نورو ته) وائى چه آيا ته نه ګورې چه په څنګه مصيبت اوتكليف كښې اخته يو. آيا تاته داسې څوك ښكارى چه ستاسو رب له ستاسو سفارش اوكړى؟ څه خلق به وائى آدم عليه السلام د ټولو پلار دې. دَدې مقصد د پاره هغه له ورتلل پكار دى. نو دا ټول خلق به هغه له راشى اوهغه ته به عرض كوى تاسو ابوالبشر يعنى الله تعالى تاسو په خپل لاسونو سره جوړ كړې يئى په تاسو كښې د خپل طرف نه روح اچولې دې او فرښتو ته ئى د سجدې حكم اوكړو نوهغوى تاته سجده اوكړه تاسو له ئى په جنت كښې استوګنه دركړه. آيا تاسو خپل رب ته زمونږ سفارش نه كوې. تاسو ګورئى نه چه مونږ په څنګه مصيبت كښې راګيريو او زمونږ دا تكليف تركومه حده پورې اورسيدو؟ آدم عليه السلام به وائى چه نن زما رب په داسې جلال كښې دې چه نه دَدې نه اول په داسې جلال كښې راغلې وو اونه به هغه ته د نن نه پس داسې جلال راشى اوهغه زه د ونې تلونه منع كړې ووم ليكن ما د هغه دا حكم پوره نه كړې شو نفسى نفسى (ماته خپل فكر دې) تاسو بل چاله لاړشئى.

**قوله: اذْهَبُوا إِلَى نُوحٍ فَيَأْتُونَ نُوحًا.......:** آدم عليه السلام به فرمائى (دَدې مقصد دَپاره) تاسو نوح عليه السلام له لاړشئى. نوخلق به نوح عليه السلام په خدمت كښې حاضر شى اوهغوى ته به عرض اوكړى: (أَنْتَ أَوَّلُ الرُّسُلِ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ وَسَمَّاكَ اللَّهُ عَبْدًا شَكُورًا) ته رومبې رسول ئى چه د زمكې والو طرف ته ليږلې شوې ئى اوالله تعالى ستاسو نوم شكور يعنى شكر كونكې بنده كيخودې دې.

**نوح عليه السلام ته اول الرسل وئيلو باندې اشكال اود هغې جواب:** دلته دا اشكال پيدا كيږى چه حضرت آدم عليه السلام شيث عليه السلام او ادريس عليه السلام ټول انبياء مرسلين وو اود نوح عليه السلام نه مخكښې تيرشوى دى نودلته نوح عليه السلام ته (أول الرسل) ولې اووئيلې شو؟

① دَدې يوجواب دا وركړې شوې دې چه حضرت آدم عليه السلام شيث عليه السلام او ادريس عليه السلام به مخ د زمكې د ټولو انسانانوطرف ته نه وو مبعوث كړې شوې. خو نوح عليه السلام په مخ د زمكې د ټولو انسانانوطرف ته پيغمبر جوړولوسره ليګلې شوې وو. هم په دې اعتبارسره هغه ته (أول الرسل) اوفرمائيل.[2]

② يو قول دادې چه نوح عليه السلام آدم ثانى او ابوالبشر دې. په دې وجه هغه ته (أول الرسل) اووئيلې شو.[3]

③ بعض حضراتو فرمائيلى چه نوح عليه السلام رومبې رسول دې د چاقوم چه د الله تعالى په عذاب باندې هلاك شوې وو او هم په دې اعتبارسره هغه ته (أول الرسل) وئيلې شوې.[4]

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** (فَيَقُولُونَ: يَا نُوحُ أَنْتَ أَوَّلُ الرُّسُلِ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ) د ترجمې غرض هم دغه جمله ده اود حديث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. په داسې معنى چه په دواړو كښې د حضرت نوح عليه السلام اود هغه د رسالت تذكره ده.[5]

دې روايت ته حديث شفاعت وائى. په دې باندې به نور مباحث كتاب التفسير كښې اوګورئى.[1]

---

[1] مصنف ابن أبي شيبة: ۵۶/۷ رقم: ۲۴۱۷۶.
[2] إرشادالساري: ۷/۲۵۱.
[3] عمدة القاري: ۳۰۴/۱۵.
[4] عمدة القاري: ۳۰۴/۱۵.
[5] فتح الباري: ۴۵۹/۸.

[۳۳۴۳] حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو أَحْمَدَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ «فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ» مِثْلَ قِرَاءَةِ الْعَامَّةِ [۳۱۶۳ ص ۱۷۰] [۳۱۶۷، ۳۱۹۶، ۴۵۸۸ - ۴۵۹۳] [۲]

## تراجم رجال

**نصر بن علي:** دَدوی تذکره اول تیره شوې ده.[۳]

**ابواحمد:** دا ابواحمد محمد بن عبدالله بن زبیر بن عمر بن درهم الزبیری رحمه الله دي.[۴]

**سفیان:** دا سفیان بن سعید الثوری رحمه الله دي.[۵]

**ابواسحاق:** دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله سبیعی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب الصلاة من الإیمان) لاندې تیره شوې ده.[۶]

**اسود بن یزید:** دا اسود بن یزید بن قیس نخعی کوفی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب من ترک بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس عنه) لاندې تیره شوې ده.[۷]

**أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَرَأَ (فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ) مثل قراءة العامة:** یعنی رسول الله ﷺ آیت (فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ) دَ عام اومشهور قرا ءت برابر اولوستلو.

"مدکر" ماده ذ، ک، ر ده اودَ باب افتعال "اذتکر" نه دَدې اسم فاعل "مذتکر" جوړیږي. دَ قاعدې مطابق تا دال سره بدل شو نو "اذدکر" جوړ شو بیا ذال په دال باندې بدل کیدو سره دال په دال کښې مدغم کړې شو نو ادکر جوړ شو. هم دغه مشهور قراءت دې او په روایت کښې هم دې طرف ته اشاره ده.[۸]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث باب ترجمة الباب سره مناسبت دَباب دویم آیت: ﴿ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ نُوحٍ ۘ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ إِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ مَقَامِي وَتَذْكِيرِي بِآيَاتِ اللَّهِ فَعَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْتُ فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ وَشُرَكَاءَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً ثُمَّ اقْضُوا إِلَيَّ وَلَا تُنْظِرُونِ ﴾ کښې دي. اوهغه داسې چه دواړو کښې تذکیر نصیحت اوعبرت نیولو ذکر دې او په حدیث

---

[۱] کشف الباری کتاب التفسیر ص: ۳۸۰-۳۷۲.

[۲] والحدیث أخرجه أیضاً في باب قول الله تعالی ﴿ وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ﴾ رقم: ۳۳٤٥ وفی باب ﴿ فَلَمَّا جَاءَ آلَ لُوطٍ الْمُرْسَلُونَ ۝ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُنْكَرُونَ ﴾ رقم: ۳۳۷٦ وفی کتاب التفسیر باب ﴿ تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا جَزَاءً لِمَنْ كَانَ كُفِرَ ﴾ رقم: ٤۸۷۰ وباب ﴿ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُنْقَعِرٍ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴾ رقم: ٤۸۷۲ وباب ﴿ فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ ۝ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ ﴾ رقم: ٤۸۷۲ وباب ﴿ وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُسْتَقِرٌّ ۝ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴾ رقم: ٤۸۷۳ ورقم: ٤۸۸٤ وأخرجه مسلم في كتاب الصلاة باب ما يتعلق بالقراءات رقم: ۳۱٦۳ وأبوداؤد في سننه كتاب الحروف والقراءات رقم: ۳۹۹٤ والترمذي في جامعه في كتاب القراءات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ومن سورة القمر رقم: ۲۹۳۷.

[۳] كتاب بدء الخلق باب إذا وقع الذباب في شراب أحدكم رقم: ۳۳۱۸.

[٤] كتاب الكسوف باب الركعة الأولى في الكسوف أطول رقم الحديث: ۱۰٦٤.

[۵] كشف الباري: ۲۷۸/۲.

[٦] كشف الباري: ۳۷۰/۲.

[۷] كشف الباري: ٥٥۳/٤.

[۸] عمدة القاري: ۳۰٦/۱٥.

باب کښې دي ﴿فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ﴾ دَدې مناسبت «تذکیري بآیات الله» سره دی.[۱] ځکه چه دَ آیت نه مراد دلته دَ نوح علیه السلام کشتنې ده.[۲] لکه دَدې حدیث په راوړلو سره امام بخاري رحمه الله دَ نوح علیه السلام دَ کشتنې یاد ورکول غواړي چه شته څوك دَ عبرت نظر لر ونکې چه دې واقعه نه عبرت حاصل کړي؟

## ۶- باب: ﴿وَإِنَّ إِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾

إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَلَا تَتَّقُونَ ۝ أَتَدْعُونَ بَعْلًا وَتَذَرُونَ أَحْسَنَ الْخَالِقِينَ ۝ اللَّهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ ۝ فَكَذَّبُوهُ فَإِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ ۝ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ۝ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ۝﴾ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: يُذْكَرُ بِخَيْرٍ ﴿سَلَامٌ عَلَى إِلْ يَاسِينَ ۝ إِنَّا كَذَلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ۝﴾/الصافات: ۱۲۳-۱۳۲/

**ماقبل سره ربط:** سابقه باب کښې دَقرآن مجید هغه آیت ترجمة الباب جوړ کړې شوې وو په کوم کښې چه دَحضرت نوح علیه السلام دَ قصې ذکر وو. اوس په دې باب کښې ترجمة الباب یو داسې آیات تړلې شوې دې په کوم کښې چه دَ حضرت الیاس علیه السلام ذکر دی.[۳]

**دَترجمة الباب مقصد:** امام بخاري رحمه الله دَدې ترجمة الباب لاندې دَحضرت الیاس علیه السلام حالات بیانول غواړي.[۴]

دَحضرت الیاس علیه السلام تذکره په قرآن مجید کښې په دوو سورتونو یعنې صافات او انعام کښې راغلې ده. دې دَ حضرت حزقیل جانشین وو او په بنواسرائیل کښې دَ ایلیا په نوم سره مشهور وو. په انجیل یوحنا کښې هم دَ دوی تصریح ده.[۵]

اکثر مؤرخین وائي چه حضرت الیاس علیه السلام دَ حضرت هارون علیه السلام دَ اولاد نه وو او دَهغوی نسب نامه داده: الیاس بن یاسین بن فنحاص بن یعزار بن هارون یا الیاس بن یاسین بن یعزار بن هارون.[۶]

امام قتیبه رحمه الله حکایت کړې دې چه حضرت الیاس علیه السلام دَحضرت یوشع علیه السلام دَ اولاد نه وو او طبري رحمه الله داحکایت کړې دې چه هغوی دَ حضرت یسع علیه السلام دَ تره خوئې وو. دَ علامه کرماني رحمه الله نه نقل دی چه هم دوی ذوالکفل علیه السلام دی. حضرت وهب رحمه الله فرمائي چه دَهغوی هم دَحضرت خضر علیه السلام په شان عمر وو او تر دنیا دَ ختمیدو پورې به باقي او حیات وي.[۷]

چنانچه دَ ابن عساکر رحمه الله روایت دې چه الله تعالی حضرت الیاس علیه السلام ته دَ صحراګانو او حضرت خضر علیه السلام ته دَ دریابونو او سمندرونو او دَ جزیرو معاملات حواله کړې دی او هر کال دَدې دواړو حضر اتو خپل مینځ کښې ملاقات کیږي.[۸]

بل امام حاکم رحمه الله دَحضرت انس رضی الله عنه نه دَحضور پاك صلی الله علیه وسلم دَحضرت الیاس علیه السلام او حضرت خضر علیه السلام سره په بعض سفرونو کښې ملاقات او په یوځائې باندې دَالله تعالی دَ طرف نه نازل کړې شوې دسترخوان نه خوراك کولو

---

[۱] عمدة القاري: ۳۰۵/۱۵ إرشادالساري: ۲۵۲/۷.
[۲] إرشادالساري: ۲۵۲/۷.
[۳] عمدة القاري: ۳۰۶/۱۵.
[۴] عمدة القاري: ۳۰۶/۱۵.
[۵] عمدة القاري: ۱۵/۳۰۶ تاریخ الأمم والملوك: ۴۶۱/۱ قصص القرآن: ۴۴۹/۱.
[۶] تاریخ الأمم والملوك للطبري: ۴۶۱/۱ والکشف والبیان فی تفسیر القرآن للثعلبي: ۲۲۷/۵.
[۷] تاریخ دمشق لابن عساکر: ۲۱۰/۹ دارالفکر، روح المعاني، سورة الصفات رقم الآیة: ۱۲۳، ۱۳۹/۲۳-۱۳۸ إدارة الطباعة المنیریة، ودارإحیاء التراث العربي.
[۸] تاریخ دمشق لابن عساکر: ۲۱۰/۹ دارالفکر، روح المعاني ۱۳۹/۲۳ إدارة الطباعة المنیریة، ودارإحیاء التراث العربي

روایت نقل کړې دې. اودې ته نې صحیح الاسناد وئیلې دې. لیکن امام بیهقي رحمه الله د امام حاکم رحمه الله ذکرکړې شوی د دغه حدیث تضعیف کړې دې. هغه فرمائی چه په دې روایت کښې ذکرکړې شوی حضرات انبیاء کرام علیهم السلام په معجزاتو کښې څه شك نشته دې چه هغه دالله تعالی د قدرت لاندې داخل دی مګر دا چه ددې روایت سند ډیر ضعیف دې.[1] امام ذهبي رحمه الله فرمائی چه داحدیث موضوعی دې اوزه دا ګمان نه شم کولې چه امام حاکم رحمه الله دې حدیث ته صحیح الاسناد وئیلې وی. داحدیث خو یا یزید البلوی د خان نه جوړکړې دې یا ابن سیار.[2]

**د مشهور بت بعل اوصاف:** هغوی د شام طرف ته مبعوث کړې شوی وو. د دې خائی اوسیدونکی د بت پرستئی په وبا کښې اخته وو اود بعل عبادت به ئې کولو اود هغه نه به ئې حاجتونه غوښتل. علامه آلوسی رحمه الله فرمائیلی چه دغه بت د سرو زرو وو شل ګزه د هغه قد وو اود هغه څلور مخونه وو. شیطان به په هغه کښې دننه داخلیدلو اود هغه عبادت کونکو اوخدمتګارانو سره به خبرې کولې. هغه خلقو به دغه خبرې راتلونکوخلقو ته خودلې په کوم سره چه به د هغوی عقیده نوره هم پخیدله.[3]

مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله فرمائی دا بت په مشرق کښې آباد د سامی اقوامو مشهور او د ټولونه زیات مقبول بت وو. دا بت مذکر وو اود زحل یا مشتری مثنی به ګڼړلې شو. فینیقی، کنعانی، موآبی او مدیانی قبائلو به په خاص توګه د دې بت عبادت کولو. په دې وجه د بعل دا عبادت د پخوانې زمانې نه راروان وو اوموآبی اومدیانی به د دې عبادت د حضرت موسی علیه السلام د زمانې نه کولو. چنانچه د شام مشهور ښار بعلبك هم دې نوم ته منسوب دې او حضرت شعیب علیه السلام په مدین کښې هم د دې عبادت کونکو سره مخ شو. د مؤرخینو خیال دې چه د حجاز مشهور بت هُبل په اصل کښې هم دغه بعل دې.[4]

**د بعل معنی:** په سامی اوعبرانی ژبو کښې د بعل معنی مالك سردار حاکم او رب راځی. په دې وجه اهل عرب خاوند ته هم بعل وائی. خوچه کله په بعل باندې الف لام راوړی یاې د یوشیئ طرف ته اضافت کولوسره یادوی نوهغه وخت صرف بت اومعبود مراد وی.[5] د حضرت الیاس په زمانه کښې هم په یمن اوشام کښې هم دغه بت محبوب معبود وو اود هغوی قوم د نورو بتانو سره سره په خصوصیت د دې عبادت کولو.[6]

امام بخاری چه د کومو آیاتونو ترجمه ترلې ده په دې کښې هم د دغه بعل ذکر دې: ﴿وَإِنَّ إِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ۝ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَلَا تَتَّقُونَ ۝ أَتَدْعُونَ بَعْلًا وَتَذَرُونَ أَحْسَنَ الْخَالِقِينَ ۝ اللَّهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ ۝ فَكَذَّبُوهُ فَإِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ ۝ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ۝ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ۝ سَلَامٌ عَلَىٰ إِلْ يَاسِينَ ۝ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ۝﴾ اوبیشکه الیاس د رسولانو نه وو. کوم وخت چه هغه خپل قوم ته اونیل آیا تاسو نه ویریږئی آیا تاسو بعل رابلئی اود ټولو نه بهتر جوړونکې (الله تعالی) پریږدئی، الله چه ستاسو رب دې اوستاسو د پلارانو نیکونو رب دې. نو هغوی هغه دروغ

---

[1] المستدرک للإمام حاکم کتاب التاریخ ، لقاء إلیاس مع النبی صلی الله علیه وسلم :۶۱۷/۲دارالمعرفة. ودلائل النبوة للإمام البیهقی باب ما روی فی التقاء النبی صلی الله علیه وسلم بإلیاس علیه السلام، وإسناد حدیثه ضعیف والله أعلم: ۴۲۲/۵-۴۲۱ دارالکتب العلمیة ودارالریان.

[2] تعلیقات الذهبی علی المستدرک کتاب التاریخ لقاء الیاس مع النبی صلی الله علیه وسلم: ۶۱۷/۲ وروح المعانی: ۱۳۹/۲۳دارإحیاء التراث العربی، وإدارة الطباعة المنیریة.

[3] روح المعانی:۱۸۵/۲۳عمدة القاری: ۳۰۶/۱۵وقصص القرآن:۴۵۱/۱.

[4] قصص القرآن:۴۵۱/۱-۴۵۰.

[5] قصص القرآن:۴۵۱/۱..

[6] قصص القرآن: ۴۵۱/۱.

اوكنړلو نو بيشكه هغوى به حاضرولي شى مګر كوم چه د الله تعالى خالص بنديګان دى او مونږ روستو راتلونكو كښې د هغوى باره كښې دا خبره پريخودله چه سلام دې وى په الياس، بيشكه مونږ هم دغه شان نيكانو ته بدله وركو. بيشكه هغه (الياس) زمونږ د ايماندارانو بنديګانو نه وو.

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُذْكَرُ بِخَيْرٍ.....

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ﴾ تفسير كړې دې او مطلب ئې دا بيان كړې دې چه د الياس عليه السلام تذكره به روستو راتلونكو خلقو كښې په خير سره كولې شى.

**د تعليق تخريج:** دا تعليق ابن جرير رحمه الله په خپل تفسير على بن ابى طلحه عن ابن عباس په طريق سره موصولاً نقل كړې دې.[1]

**قوله: سَلَامٌ عَلَى إِلْ يَاسِينَ:** الياسين هم د حضرت الياس عليه السلام نوم دې. عرب د كلمې په آخره كښې ياء او نون زياتوى په الياس كښې هم ياء او نون زياتولو سره وائى. لكه سينا سينين وائى. په آيت كښې د فواصل د رعايت د وجې نه الياسين راوړلې شو.[2]

علامه زمخشرى رحمه الله په يوقول كښې دا نقل كړى دى چه د الياسين نه الياس او دغه شان د يسين نه هم يس مراد دې، نوم هم يو دې البته الياسين او يسين هم يو لغت دې.[3] بعض حضرات د الياس الف مد سره او لام اضافت سره آل ياسين وائى. لكه آل ابراهيم، په دې صورت كښې به دا دوه جدا جدا حروف وى.[4] بعض حضرات همزه كسره سره لام سكون سره د ياسين ياء سره ملاووى الياسين ئې لولى. د هغوى په نيز دا د الياس جمع ده. د الياس عليه السلام متبعين او د اصحاب په اعتبار سره يعنى سلام دې وى د الياس عليه السلام په متبعينو باندې.[5]

**د علامه انورشاه كشميرى رحمه الله قول:** هم دغه رائې د علامه انور شاه كشميرى رحمه الله هم ده چه الياسين د الياس جمع ده او دې نه د الياس عليه السلام متبعين مراد دى. اروس د يو سړى نوم دې. هغه نوې مذهب شروع كړې وو د هغه متبعينو ته به اريسيين وئيلې شو. پخپله امام بخارى رحمه الله عليك إثم الأريسيين كښې اريسيين معنى اتباع اروس سره كړې ده. لكه چه د ريسيين په شان الياسين هم جمع ده او دې نه د الياس عليه السلام متبعين مراد دى.[6]

يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ وَابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ إِلْيَاسَ هُوَ إِدْرِيسُ

**د مذكوره تعليق تخريج:** د ابن مسعود رضي الله عنه قول عبدبن حميد او ابن ابى حاتم په سند حسن سره موصولاً نقل كړې دې. خو د ابن عباس رضي الله عنهما قول جويبر بن سعيد رحمه الله ضحاك عن ابن عباس په طريق سره موصولاً نقل كړې دې ليكن د دې سند ضعيف دې. او هم دغه وجه ده چه امام بخارى رحمه الله دا په جزم سره ذكر نه كړو.[7] امام بخارى په

---

[1] تفسر الطبرى سورة الصفات: ۵۶۱/۱۹ دارهجر للطباعة والنشر. فتح البارى: ۳۷۳/۶ دارالمعرفة. تغليق التعليق: ۹/۴ المكتب الإسلامى. إرشادالسارى: ۳۵۳/۷ دارالكتب العلمية.

[2] إرشادالسارى: ۲۵۳/۷.

[3] الكشاف للزمخشرى: ۶۳/۴ عمدة القارى: ۳۰۸/۱۵.

[4] إرشادالسارى: ۲۵۳/۷.

[5] إرشادالسارى: ۳۵۳/۷.

[6] فيض البارى: ۲۱/۴.

[7] تفسير ابن أبى حاتم سورة الأنعام رقم الآية: ۸۵. ۱۳۳۶/۴ رقم الحديث: ۷۵۵۶ مكتبة نزار مصطفى الباز فتح البارى: ۳۷۳/۶ عمدة القارى: ۳۰۸/۱۵ تغليق التعليق: ۹/۴ المكتب الإسلامى.

صيغه دَ تمريض سره دَ حضرت عبدالله بن مسعود اوحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهم قول تعليقاً نقل كړي دي.
دَدې حضراتو رائې داده چه الياس په اصل كښې ادريس عليه السلام دې لكه چه دا دَ يوسړي دوه نومونه دي.
هم دغه رائې دَ ابن العربي رحمه الله هم ده. دَهغوى په نيز ادريس عليه السلام دَ نوح عليه السلام په اجدادكښې نه وو بلكه هغه دَ بني اسرائيل نبي وو اودَ نوح عليه السلام نه ډيره موده پس مبعوث شوې. په دې وجه داخبره ثابته ده چه حضرت الياس عليه السلام دَ بنواسرائيل نبي وو اودَ مذكوره تعليق نه معلومه شوه چه حضرت الياس اوحضرت ادريس عليه السلام هم يو دې. لهذا حضرت ادريس عليه السلام دَحضرت نوح عليه السلام په اجدادكښې شميرل صحيح نه دي. دَهغوى رومبې استدلال دَ ابن مسعود اوابن عباس رضي الله عنهم دَ مذكوره روايت نه دې. دويم استدلال دَ حديث معراج نه دې چه كله په آسمان كښې دَ رسول الله ﷺ ملاقات حضرت ادريس عليه السلام سره اوشو نوهغوى (مرحباً بالنبي الصالح والأخ الصالح) ونيلو سره دَ حضورپاك استقبال اوكړو. كه چرې ادريس عليه السلام دَ حضرت نوح عليه السلام دَ اجداد نه وو نو په ځاني دَ أخ ونيلو به ئې الابن الصالح ونيل لكه چه حضرت آدم عليه السلام او حضرت ابراهيم عليه السلام حضورپاك ته الابن الصالح اوونيل.[1]
دَدې جواب دادې چه حضرت آدم عليه السلام حضورپاك ته ابن په دې وجه اوونيل چه هغه ابوالبشر دې او ابراهيم عليه السلام په دې وجه چه پخپله رسول الله ﷺ په احاديثوكښې دَ ابراهيم عليه السلام دَ پاره دَ أب لفظ استعمال كړې دې. دَ ابراهيم عليه السلام منشاء دا وه چه دا نسبت اُوت دغه شان شائع وذائع وي لكه څنګه چه دَ محمد خواهش دې چه هغه ماته أب وائي.[2]
خوادريس عليه السلام تواضعاً حضورپاك ته (الأخ الصالح) فرمانيلې دي چه انبياء عليهم السلام ټول په ټول دَ حضرت آدم عليه السلام اولاد دې په دې لحاظ په ټولوكښې داُخوت رشته هم ده. حافظ ابن حجر رحمه الله دا استدلال ضعيف ګرځولې دې چه اول خودا ممكن دى چه دَحديث معراج دَ طوالت دَ وجې نه راوى الفاظ پوره شان سره حفظ كړي نه وي. اودويمه خبره داهم كيدې شي چه دَ نبى اكرم دَ جلالت قدر او اوچتې مرتبې دَ وجې نه ادريس عليه السلام پدرى انتساب ښكاره كړې نه وي بلكه دَ تواضع دَ وجې نه ئې دَ رورولئى حيثيت ښكاره كړې وي.[3]
دريم استدلال دَ هغوى دا دې چه په مختلف رواياتوكښې دَ الياس او ادريس عليه السلام نومونه راغلې دي اودَدې باره كښې دا تصريح ده چه هغه آسمان ته اوچت كړې شوې وو. دَهغوى خيال دادې چه دَ واقعاتو دَ مشابهت نه دې خبرې ته تقويت ملاويږي چه الياس او ادريس هم دَ يو سړي دوه نومونه دي.
حقيقت دادې چه الياس اوادريس عليه السلام دوه جدا جدا پيغمبران دي. دَدواړو تذكره په قرآن مجيدكښې په داسې انداز كښې راغلې ده چه دَ هغې نه دَ دواړو قطعاً يو كيدل نه ثابتيږي. كه چرې الياس هم دَ ادريس عليه السلام نوم وې اودوه نومونه هم دَ يونبي وې نودَ قرآن دَ اسلوب او بيان نه اودَ قرائنو او آثار نه به ضرور دَدې تائيد كيدلو.
دَعلم الانساب ماهرينو دَحضرت الياس عليه السلام او حضرت ادريس عليه السلام دوه مختلف نسب نامې ذكركړې دي. په دې لحاظ سره دَدواړو په مينځ كښې تقريباً درې صدئى زمانه فاصل كيږي. نوداسې وينا كول څنګه صحيح كيدې شي چه دَ الياس او ادريس نه هم يو سړې مراد دې؟
دَ جمهورو محققينو رائې داده چه الياس او ادريس دَدوو مختلف انبياء كرام نومونه دي. حضرت الياس عليه السلام دَحضرت هارون عليه السلام دَ اولاد نه وو او بني اسرائيلي نبي وو. دَ حضرت يسع عليه السلام دَ تره څوئې وو. دَحضرت موسى عليه السلام نه پس اودَ حضرت زكريا عليه السلام اوحضرت يحيى عليه السلام نه مخكښې تيرشوې دى. خو ادريس عليه السلام دَ نوح عليه السلام دَ

[1] فيض الباري: ۲۱/٤عمدة القاري: ۳۰۸/۱۵.
[2] فيض الباري: ۲۱/٤.
[3] البداية النهاية: ۱۳٤/۱روح المعاني: ۱۳۹/۲۳-۱۳۸سورة الصفات رقم الآية: ۱۲۳.

اجداد نه وو.(١) حافظ ابن کثیر رحمه الله هم دې ته ترجیح ورکړې ده. د امام بخاري رحمه الله هم دغه رانې ده. هم دغه وجه ده چه هغوی د ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنهما قول (ویذکر) صیغه د تمریض سره نقل کولو سره د هغوی د قول تضعیف کړې دې.

علامه آلوسي رحمه الله فرمائی که د الیاس او ادریس نه مراد هم یو ذات وې او حال دادې چه د حضرت الیاس علیه السلام او حضرت ادریس علیه السلام نسب هم جدا جدا دې او د مؤرخینو مطابق حضرت الیاس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام نه پس او د حضرت هارون علیه السلام د اولاد نه دې او حضرت ادریس علیه السلام د نوح علیه السلام نه د وړاندې وخت دې بلکه د دواړو په مینځ کښې د زرګونو کالو فاصله ده نو په داسې صورت کښې د قرآن کریم آیت (وَتِلْكَ حُجَّتُنَا آتَيْنَاهَا إِبْرَاهِيمَ) الآية به مشکل شی ځکه چه (وَمِن ذُرِّيَّتِهِ) کښې موجود ضمیر خو به د حضرت ابراهیم علیه السلام طرف ته راجع کیږي ځکه چه تذکره د حضرت ابراهیم علیه السلام روانه ده یا بیا به ضمیر د قرب مکان د وجې نه حضرت نوح علیه السلام طرف ته راجع کیږي. په دواړو صورتونو کښې به دا لازم راځي چه حضرت الیاس علیه السلام (چه د کوم نه مراد حضرت ادریس علیه السلام دې) د ذریت ابراهیم علیه السلام او ذریت نوح علیه السلام نه وي خو حقیقت دادې چه حضرت الیاس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام نه ډیر پس او حضرت ادریس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام نه ډیر مخکښې پیدا شوې دې.(٢)

ترکومې چه د ابن العربي رحمه الله د استدلال تعلق دې نو د هغې جواب دادې چه د حالاتو او واقعاتو د مشابهت نه دا نه ثابتیږي چه د دواړو ذات هم یو وي لهذا دا استدلال صحیح نه دې.(٣) امام بخاري رحمه الله په حضرت الیاس علیه السلام او حضرت ادریس علیه السلام باندې دوه جدا جدا ابواب قائم کړي دي. که چرې دواړه یو شخصیت وې نو امام بخاري رحمه الله به د دواړو د پاره جدا جدا ابواب نه قائم کول.

## ٧- باب: ذِكْرِ إِدْرِيسَ عَلَيْهِ السَّلَامُ

**ماقبل سره ربط:** د دواړو ابوابو په مینځ کښې مناسبت واضح دې. په تیرشوي باب کښې د حضرت الیاس علیه السلام احوال بیان کړل او اوس به د حضرت ادریس علیه السلام د احوال بیان کیږي.(٤)

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې باب لاندې امام بخاري رحمه الله د حضرت ادریس علیه السلام حالات بیانول غواړي.

**وَهُوَ جَدُّ أَبِي نُوحٍ، وَيُقَالُ: جَدُّ نُوحٍ، عَلَيْهِمَا السَّلَامُ**

**ایا ادریس علیه السلام د نوح علیه السلام نیکه وو؟:** تیرشوي باب کښې موئږ خودلي دي چه حضرت ادریس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام د اجداد نه وو. د حافظ ابن حجر رحمه الله د قول مطابق بعض حضراتو په دې باندې اجماع هم نقل کړې ده.(٥) د نوح علیه السلام نسب نامه ده: لوح بن لمك بن متوشلخ ابن خنوخ..... إلخ.(٦) د خنوخ نه ادریس علیه السلام مراد دې. په دې لحاظ سره ادریس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام بلار لمك نیکه وو.(٧) لیکن دلته اشکال کیږي چه کله ادریس علیه السلام د حضرت نوح علیه السلام د نیکه ګانو نه وو نو د هغه ذکر د حضرت نوح علیه السلام نه اول کیدل پکار وو. لیکن د امام بخاري رحمه الله د ابواب ترتیب کښې د حضرت نوح ذکر وړاندې دې.

---

(١) المصدر السابق.

(٢) روح المعاني: ١٣٩/٢٣ دار إحياء التراث العربي وإدارة الطباعة المنيرية.

(٣) فيض الباري: ٢٤٨/٤ المكتبة الرشيدية.

(٤) عمدة القاري: ٣٠٨/١٥.

(٥) فتح الباري: ٤٦٢/٨.

(٦) فتح الباري: ٤٥٨/٨.

(٧) الأبواب والتراجم ص: ٢١٢.

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله رائي:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه داسې معلومیږي چه دَ امام بخاری رحمه الله په نیز حضرت ادریس علیه السلام دَ حضرت نوح علیه السلام دَ اجداد نه نه دي اوهم په دې وجه هغه دَ ابواب انبیاء په ترتیب کښې دَحضرت نوح علیه السلام ذکر مقدم کړې دې.[1]

هم دغه رائې دَشیخ الحدیث حضرت مولانا محمدزکریا رحمه الله ده هغوی فرمائی چه امام بخاری رحمه الله ځنګه په مسائل فقهیه کښې دَجمهورو خلاف رائې ورکوی دغه شان هغه په تاریخ کښې هم مستقل رائې لري. اودَ جمهور مؤرخینو دَ رائې پرواه نه کوی. دَجمهور مؤرخینو په نیز حضرت ادریس علیه السلام دَ حضرت نوح علیه السلام دَ اجداد نه دې لیکن امام بخاری رحمه الله دَ هغوی مخالفت کولوسره دَ ابواب انبیاء په ترتیب کښې دَ حضرت ادریس علیه السلام ذکر دَحضرت نوح علیه السلام نه پس کړې دې. کیدې شی چه دَهغوی استدلال دَ حدیث معراج نه وې چه حضرت ادریس علیه السلام حضورپاك ته «الأخ الصالح» اوونیل. که چرې ادریس علیه السلام دَ اجداد نوح نه وې نو په ځائې دَ «الأخ الصالح» ونیلو به نې «الابن الصالح» ونیل. والله اعلم.[2]

په دې باندې بیا اشکال کیږی چه کله دَ امام بخاری رحمه الله په نیزادریس علیه السلام دَ اجداد نوح علیه السلام نه نه دې نوبیا هغه دَ باب لاندې ولې اوفرمائیل: «هوجدأبي نوح ویقال جدنوح علیهما السلام» دَدې جواب دادې چه دا عبارت دَ صحیح بخاری په اکثرو نسخوکښې درج نه دې. شراح دَدې تصریح کړې ده.[3] دا اضافه روستو راتلونکو نساخ او ناقلین تصرف کیدې شی. حضرت شیخ الحدیث اوفرمائیل چه دَدې دا جواب هم کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله په دې عبارت سره دَ مخالفینو دَمشهور مسلك طرف ته اشاره کړې وی. دَهغوی مقصد دادې چه په خلقوکښې هم دا خبره مشهوره ده چه ادریس علیه السلام دَ حضرت نوح علیه السلام دَ اجدادنه دې. دا جمله لیکلو سره دا خبره لازم نه راځی چه دَامام بخاری رحمه الله رائې دې هم دغه وی لکه چه هغه دَ جمهورو رائې نقل کړې ده.[4]

**ویقال: جدَ نوح:** ادریس علیه السلام دَ نوح دَ پلار لمك نیکه دې. امام بخاری رحمه الله دَ بعضو قول نقل کړې دې چه دهغوی په نیز ادریس علیه السلام دَ نوح علیه السلام نیکه دې. ښکاره خبره ده چه دا قول غلط دې. ځکه چه دَنوح علیه السلام نیکه متوشلخ دې نه چه اخنوخ یعنی ادریس علیه السلام.[5]

داهم ممکن ده چه دَ جد اطلاق په نوح باندې مجازاً شوې وی ځکه چه دَ پلار نیکه هم نیکه وی. چنانچه دَ نوح علیه السلام دَ پلار نیکه دَ نوح علیه السلام نیکه شو، لکه چه دلته دَ جد اطلاق په نوح باندې مجازاً کړې شوې دې.[6]

**دَ مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله محقق رائې:** حقیقت دادې چه دَحضرت ادریس علیه السلام نوم اونسب کښې دَ اسلام دَمؤرخینو په رائې کښې سخت اختلاف دې اودَ کلك دلیل دَ نه موجود کید دَ وجې نه یوې رائې ته حتمی او راجح نه شی ونیلې کیدې. دَ انبیاء کرام علیهم السلام دَ حالات په حواله دَ مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله قصص القرآن یو مستند کتاب دې. هغه دَ تاریخ دَقدیم اوجدید کتابونونه استفاده کولوسره په ډیر ژور کوشش سره دَحضرات انبیاء کرام علیهم السلام محقق تفصیلی حالات نقل کړی دی. دَهغوی رائې هم دغه ده. دَحضرت ادریس علیه السلام باره کښې چه کوم اختلافی آراء دی دغه اختلافی وجوهات مخې ته په کیخودو سره یوفیصله کن یا کم نه کم راجح رائې نه شی قائمیدلې. وجه داده چه قرآن مجید خودَخپل مقصد رشد اودَ

---

[1] فتح الباری: ۴۶۰/۸.

[2] الأبواب والتراجم ص: ۲۱۳ قصص القرآن: ۴۵۱.

[3] عمدة القاري: ۳۰۸/۱۵ تحفة الباري: ۲۲/۴.

[4] الأبواب والتراجم ص: ۲۱۳.

[5] عمدة القاري: ۳۰۸/۱۵.

[6] عمدة القاري: ۳۰۸/۱۵ إرشادالساري: ۲۵۳/۷.

هدايت په رنړا كښې د تاريخى بحث نه ځانله صرف دهغوى نبوت د درجاتو اوچتوالى او دهغوى د اوچتو صفاتو ذكركړې دى. اودغه شان حديثى روايات هم دذې نه مخكښې نه څى. په دې سلسله كښې چه څه هم دى هغه اسرائيلى روايات دى اوهغه هم د تضاد او اختلاف نه معمور. يوجماعت وائى چه هغه د نوح عليه السلام جدامجد دې اود هغه نوم اخنوخ دې او ادريس ئې لقب دې. يا په عربى ژبه كښې ادريس اوعبرانى يا سريانى كښې دهغه نوم اخنوخ دى. د ابن اسحاق رحمه الله رجحان هم دې طرف ته دې. اود بل جماعت خيال دې چه هغه د انبياء بنى اسرائيل نه دې اوالياس اوادريس هم د يوهستئى نوم او لقب دې اودذې دواړو رواياتو په رنړا كښې بعض علماؤ دذې تطبيق وركولو كوشش كړې دې چه د جدنوح نوم اخنوخ دې اوادريس لقب اود بنى اسرائيل د پيغمبر نوم ادريس دې اوالياس لقب دې. ليكن دا رائې بې سند اوبې دليل ده بلكه د قرآن عزيز الياس او ادريس جدا جدا بيانول شايد دې ته متحمل كيدې نه شى.(١)

خلاصه دا چه د جمهور مؤرخينو په نيز الياس او ادريس دوه جدا جدا شخصيتونه دى. ادريس عليه السلام جد نوح عليه السلام اوالياس د انبياء بنى اسرائيل نه وو اود حضرت هارون د ټره څوئى وو. پخپله الياس عليه السلام هم په ذريت نوح كښې شميرلې كيږى.

**د حضرت ادريس عليه السلام بعض فضائل اوكمالات:** حضرات مفسرين رحمهم الله دحضرت ابوذر رضى الله عنه يو روايت نقل كړې دې چه دحضرت آدم عليه السلام نه پس حضرت ادريس عليه السلام هغه اولنې نبى دې په چاچه الله تعالى ديرش صحيفې نازل كړې.(٢)

بل مفسرين حضراتو ليكلى دى چه حضرت ادريس عليه السلام علم نجوم او علم حساب موجد دې او دا دواړه علوم هغوى ته د معجزې په توګه وركړې شوې دى. كپړې ګنډل هم هغوى ايجاد كړې دې. اول به خلقو د ځناورو څرمن اچوله. وزن او د تول آلات اووسله هم دهغوى اختراع دى. هغوى وسله جوړولو سره د بنوقابيل خلاف جهاد اوكړو. د كتابت د فن هم هغوى بانى دى.(٣) حضرت ادريس ته ادريس دكتاب الله په كثرت سره د لوستلو په وجه ونيلې شو اودهغوى اصل نوم اخنوخ وو.(٤)

وَقَوْلِ اللهِ عزوجل: ﴿وَرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾ ...: دا د سورت مريم آيت ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِدْرِيْسَ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا ۝ وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ۝﴾ (٥)او په دې كتاب كښې د ادريس هم ذكر اوكړئى بيشكه هغه ډير رښتونې نبى وو او مونږ هغه په اوچت مكان باندې اوچت كړو.

**ايا ادريس عليه السلام ژوندې اوچت كړې شوې دې؟:** په اوچت مكان باندې د اوچتولو څه مطلب دې؟ بعض مفسرينو فرمائيلى چه دذې مطلب دا دې چه مونږ هغه ته نبوت او رسالت اود بزرګئى لوړ مقام وركړې دې.(٦)

په رواياتو كښې دحضرت ادريس عليه السلام باره كښې دا نقل دى چه هغه آسمان ته اوچت كړې شوې وو په دې وجه د بعض حضراتو په نيز ﴿مَكَانًا عَلِيًّا﴾ يعنى اوچت مكان نه څلورم آسمان مراد دې.(١)په حديث معراج كښې تصريح ده

---

(١) قصص القرآن: ٦٨/١.

(٢) الجامع الأحكام القرآن للقرطبى: ٦٦/١٣؛ سورة مريم رقم الآية: ٥٦. الكشاف للإمام الزمخشرى: ٢٩/٤سورة مريم، رقم الآية: ٥٦.

(٣) روح المعانى: ١٠٥/١٦والجامع لأحكام القرآن: ٦٦/١٣؛ سورة مريم، رقم الآية: ٥٦.

(٤) الكشاف للزمخشرى: ٢٩/٤سورة مريم: ٥٦ الجامع الأحكام القرآن للقرطبى: ٦٦/١٣؛ سورة مريم: ٥٦.

(٥) سورة مريم: ٥٧-٥٦.

(٦) فتح القدير: ١٩/٣؛ روح المعانى: ١٠٥/١٦سورة مريم رقم الآية: ٥٧الكشاف للزمخشرى: ٢٩/٤سورة مريم، رقم الآية: ٥٧.

چه د رسول الله ملاقات حضرت ادريس عليه السلام سره په څلورم آسمان شوې وو. ليكن حافظ ابن كثير رحمه الله د دې نه انكار كوي هغه فرمائي چه په كومو رواياتو كښې د حضرت ادريس عليه السلام په آسمان باندې د اوچتولو تصريح ده هغه د اسرائيليات د قبيل نه دي او سنداً په دې كښې نكارت دې.(٢)

**د مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله رائې:** حكيم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمائي چه د قرآن مجيد مذكوره الفاظ بهرحال په دې خبره باندې صريح نه دي چه دلته د درجې اوچتيدل مراد دي كه ژوندې آسمان ته اوچتول مراد دي. په دې وجه انكار رفع إلى السماء قطعي نه دى او تفسير قرآن په دې باندې موقوف نه دې.(٣)

**د جمهورو رائې:** د جمهور علماؤ په نيز صحيح او مختار دادې چه په مذكوره آيت كښې د رفعت نه د مكان حسي اوچتوالي مراد دې د مرتبې اوچتوالي مراد نه دې. زمونږ استاذ حضرت مولانا ادريس كاندهلوي رحمه الله فرمائي چه په ظاهره قرآني الفاظو نه هم دغه متبادر كيږي چه الله تعالى هغه اوچت مكان يعني آسمان ته اوچت كړې او د مرتبې اوچتوالي هم په دې كښې زيات دې چه هغه آسمان ته اوچت كړې شوې دې. امام رازي رحمه الله فرمائي چه د مقام مدح هم دغه معنى مناسب ده. ځكه چه څوك د اوچتې مرتبې والا وى هم هغه آسمان ته اوچتولې شي.(٤) د مشهور مفسر حافظ ابن جرير رحمه الله خيال هم دې طرف ته دې چه په آيت كښې د رفع نه د مكان اوچتوالي يعني د آسمان طرف ته اوچتول مراد دى.(٥) حضرت شاه ولى الله رحمه الله هم په خپله ترجمه كښې هم دا معنى اختيار كړې ده.(٦)

**د امام بخاري رحمه الله رحجان:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله ﴿وَرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾ ترجمه قائم كړې ده او د دې لاندې ئې حديث اسراء ذكر كړې دې په كوم كښې چه د ادريس عليه السلام د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د ملاقات ذكر دې. لكه چه امام بخاري رحمه الله د ترجمة الباب آيت سره د حديث اسراء هغه مضمون طرف ته اشاره كړې ده چه په څلورم آسمان باندې حضرت ادريس عليه السلام سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم ملاقات او شو او ښكاره خبره ده چه په څلورم آسمان باندې ﴿مَكَانًا عَلِيًّا﴾ اوچت او لوړ مكان اطلاق د څه شك شبه نه بغير كيږي.(٧)

د حافظ ابن حجر رحمه الله په دې تقرير سره د امام بخاري رحمه الله رحجان هم متعين شو چه په مذكوره آيت كښې د مكان نه حسي مكان مراد دې او د هغوى په نيز هم د آيت مطلب دادې چه الله تعالى حضرت ادريس عليه السلام اوچت مكان يعني آسمان ته اوچت كړو.

**يو اشكال او د هغې جواب:** په دې باندې اشكال پيدا كيږي چه بعض انبياء د ادريس عليه السلام نه په اوچت مكان باندې دى. په دې لحاظ سره د ادريس عليه السلام مكان ته ﴿مَكَانًا عَلِيًّا﴾ وئيلو څه معنى ده؟ د دې جواب دادې چه دلته د حضرت ادريس عليه السلام د پاره مطلقاً د اوچت مكان تذكره ده د دې خبرې ذكر نشته دې چه هغوى د ټولو انبياء كرامو عليهم السلام نه په اوچت مقام باندې دې. لهذا دا اشكال هم نه دى وارد كيدل پكار.(٨)

---

(١) روح المعاني: ١٠٥/١٦ سورة مريم رقم الآية: ٥٧ الكشاف للزمخشري: ٢٩/٤ سورة مريم، رقم الآية: ٥٧.
(٢) البداية والنهاية: ١٣٤/١.
(٣) بيان القرآن: ١١/٢ مير محمد كتب خانه.
(٤) التفسير الكبير للرازي: ٢٣٣/٢١.
(٥) جامع البيان فى تفسير القرآن للطبري: ٧٢/١٦.
(٦) معارف القرآن للكاندهلوي: ٥٠٦/٤.
(٧) فتح الباري: ٤٦٢/٨ والأبواب والتراجم ص: ٢١٣.
(٨) عمدة القاري: ٣٠٨/١٥.

دَدې يو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه دَ ادريس عليه السلام نه بغير بل څوک ژوندی حالت کښې آسمان ته نه دې اوچت کړې شوې. په دې اعتبار سره دَ هغه مکان په اوچت خاني کيدل مراد دی ليکن ښکاره خبره ده چه دا جواب محل نظر دې د حضرت عيسی عليه السلام ژوندې آسمان ته اوچتيدل دَ احاديث صحيحه نه ثابت دی. خودَ ادريس عليه السلام په ژوندی حالت کښې آسمان ته اوچتيدل په يو مرفوع روايت سره هم ثابت نه دی. (۱)

خو حافظ ابن جرير طبري رحمه الله، حافظ ابن کثير رحمه الله او امام رازي رحمه الله يو روايت نقل کړې دې چه عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دَ کعب احبار نه ﴿وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا﴾ دَمطلب تپوس اوکړو نو کعب دَهغې تفسير کولو سره اووئيل: الله تعالی په حضرت ادريس عليه السلام باندې وحی نازل کړې چه اې ادريس اهل دنيا چه په يوه ورځ کښې څومره نيک اعمال کوې دَهغې ټولو په برابرئ کښې به تاته هره ورځ اجر درکولې شی. په دې سره دَحضرت ادريس عليه السلام په زړه کښې دا خواهش پيدا شو چه که چرې هغه ته اوږد عمر ورکړې شی نو په اعمالوکښې به ورځ په ورځ اضافه کيږي. حضرت ادريس عليه السلام دَالله تعالی دَوحی او دَخپل خواهش اظهار خپل رفيق فرښتې په مخکښې اوکړو. چنانچه رفيق فرښتې هغه په خپلو دواړو وزرو باندې کينولو اود آسمان طرف ته ئې والوزولو. څلورم آسمان ته چه اورسيدو نو ملك الموت دَزمکې طرف ته راکوزيدو په دغه ځائې باندې دَ دواړو ملاقات اوشو. رفيق فرښتې ملك الموت سره دَ حضرت ادريس عليه السلام دَ خواهش باره کښې خبرې اترې اوکړې نو ملك الموت اووئيل (وأين إدريس؟) او ادريس کوم ځائې دې؟ هغه په جواب کښې اووئيل چه هغه څوما سره دې. ملك الموت اووئيل (إن هذا الشيء عجيب، أمرت بأن أقبض روحه في السماء الرابعة، فقلت: كيف ذلك وهو في الأرض) يعنی څومره عجيبه خبره ده ماته دَ ادريس عليه السلام روح په څلورم آسمان باندې دَ قبض کولو حکم راکړې شو نوما وئيل چه دا څنګه ممکن کيدې شی چه ادريس خو په زمکه کښې دې؟ چنانچه هغه وخت ملك الموت دَ ادريس عليه السلام روح قبض کړو. دا واقعه نقل کولو نه پس کعب احبار ابن عباس رضي الله عنهما ته اوخودل چه دَدې آيت هم دغه مطلب دې. (۲)

ليکن حافظ ابن کثير رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا دَ اسرائيلی رواياتو نه دی او په دې روايت کښې سنداً نکارت دې. (۳)

هم دَدې رواياتو نه استدلال کولو سره بعض حضراتو اوفرمائيل چه آسمان ته دَ اوچتيدلو نه پس دَحضرت ادريس عليه السلام روح قبض کړې شو. خو بيا هم بعض حضراتو فرمائيلی چه (رفع إلى السماء) نه پس هغه دَ حضرت عيسی عليه السلام په شان تر اوسه پورې ژوندې دې او په هغه باندې مرګ نه دې راغلې. چنانچه علامه قسطلانی رحمه الله دَ ابن ابی نجيح رحمه الله په طريق سره دَ مجاهد رحمه الله قول نقل کړې دې: (أنه رفع إلى السماء ولم يمت كما رفع عيسى) (۴) يعنی ادريس عليه السلام دَ آسمان طرف ته اوچت کړې شوې او هغه مړ نه دې لکه چه عيسی عليه السلام اوچت کړې شوې او تر اوسه پورې ژوندې دې.

حافظ ابن کثير رحمه الله په دې باندې رد کولو سره فرمائی: (إن أراد أنه لم يمت إلى الآن ففيه نظر، وإن أراد أنه رفع حيا إلى السماء ثم قبض، فلا ينافي ما ذكره كعب أنه قبض في السماء الرابعة) (۵) يعنی که چرې دَمجاهد رحمه الله مقصد دا وی چه په ادريس عليه السلام باندې تر دغه وخته پورې مرګ نه دې راغلې، نو دا خبره محل نظر ده او که چرې دا خودل غواړی چه هغه آسمان ته

---

(۱) فتح الباري: ۴۶۳/۸ والأبواب والتراجم للكاندهلوي ص: ۲۱۳.

(۲) جامع البيان في تفسير القرآن للطبري: ۷۲/۱۶ دارالمعرفة، تفسير ابن كثير: ۱۲۷/۳ دارالفكر، والتفسير الكبير: ۲۳۳/۲۱ فتح الباري: ۴۶۳/۸.

(۳) تفسير ابن كثير: ۱۲۷/۳ فتح الباري: ۴۶۳/۸.

(۴) إرشاد الساري: ۶۵۴/۷

(۵) البداية والنهاية: ۱۳۴/۱ إرشاد الساري: ۶۵۴/۷

ژوندي اوچت کړي شوي بیا دَهغه روح قبض کړي شوي نو په دې صورت کښې دَهغه قول دَ کعب احبار دَ روایت معارض نه دی. په کوم کښې چه هغه په څلورم آسمان دَ ادریس علیه السلام دَ روح قبض کیدلو ذکر کړي دی.

[٣١٦٤] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، ح حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: قَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ كَانَ أَبُو ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ "فُرِجَ سَقْفُ بَيْتِي وَأَنَا بِمَكَّةَ، فَنَزَلَ جِبْرِيلُ فَفَرَجَ صَدْرِي، ثُمَّ غَسَلَهُ بِمَاءِ زَمْزَمَ، ثُمَّ جَاءَ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ، مُمْتَلِئٍ حِكْمَةً وَإِيمَانًا، فَأَفْرَغَهَا فِي صَدْرِي، ثُمَّ أَطْبَقَهُ، ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي فَعَرَجَ بِي إِلَى السَّمَاءِ، فَلَمَّا جَاءَ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا [ص: ١٣٦] قَالَ جِبْرِيلُ لِخَازِنِ السَّمَاءِ: افْتَحْ، قَالَ مَنْ هَذَا؟ قَالَ هَذَا جِبْرِيلُ قَالَ: مَعَكَ أَحَدٌ قَالَ: مَعِي مُحَمَّدٌ، قَالَ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ فَافْتَحْ، فَلَمَّا عَلَوْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا إِذَا رَجُلٌ عَنْ يَمِينِهِ أَسْوِدَةٌ، وَعَنْ يَسَارِهِ أَسْوِدَةٌ، فَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَمِينِهِ ضَحِكَ، وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ بَكَى، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالِابْنِ الصَّالِحِ، قُلْتُ مَنْ هَذَا يَا جِبْرِيلُ؟ قَالَ: هَذَا آدَمُ وَهَذِهِ الأَسْوِدَةُ عَنْ يَمِينِهِ، وَعَنْ شِمَالِهِ نَسَمُ بَنِيهِ، فَأَهْلُ اليَمِينِ مِنْهُمْ أَهْلُ الجَنَّةِ، وَالأَسْوِدَةُ الَّتِي عَنْ شِمَالِهِ أَهْلُ النَّارِ، فَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَمِينِهِ ضَحِكَ، وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ بَكَى، ثُمَّ عَرَجَ بِي جِبْرِيلُ حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الثَّانِيَةَ، فَقَالَ لِخَازِنِهَا: افْتَحْ، فَقَالَ لَهُ خَازِنُهَا مِثْلَ مَا قَالَ الأَوَّلُ فَفَتَحَ" قَالَ أَنَسٌ: فَذَكَرَ أَنَّهُ وَجَدَ فِي السَّمَوَاتِ إِدْرِيسَ، وَمُوسَى، وَعِيسَى، وَإِبْرَاهِيمَ وَلَمْ يُثْبِتْ لِي كَيْفَ مَنَازِلُهُمْ، غَيْرَ أَنَّهُ قَدْ ذَكَرَ: أَنَّهُ وَجَدَ آدَمَ فِي السَّمَاءِ الدُّنْيَا، وَإِبْرَاهِيمَ فِي السَّادِسَةِ، وَقَالَ أَنَسٌ: فَلَمَّا مَرَّ جِبْرِيلُ بِإِدْرِيسَ قَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالأَخِ الصَّالِحِ، فَقُلْتُ مَنْ هَذَا؟ قَالَ هَذَا إِدْرِيسُ، ثُمَّ مَرَرْتُ بِمُوسَى فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالأَخِ الصَّالِحِ، قُلْتُ مَنْ هَذَا؟ قَالَ هَذَا مُوسَى، ثُمَّ مَرَرْتُ بِعِيسَى فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالأَخِ الصَّالِحِ، قُلْتُ مَنْ هَذَا؟ قَالَ عِيسَى، ثُمَّ مَرَرْتُ بِإِبْرَاهِيمَ فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالِابْنِ الصَّالِحِ، قُلْتُ مَنْ هَذَا؟ قَالَ: هَذَا إِبْرَاهِيمُ" قَالَ: وَأَخْبَرَنِي ابْنُ حَزْمٍ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَأَبَا حَيَّةَ الأَنْصَارِيَّ، كَانَا يَقُولاَنِ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ثُمَّ عُرِجَ بِي، حَتَّى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى أَسْمَعُ صَرِيفَ الأَقْلاَمِ»، قَالَ ابْنُ حَزْمٍ، وَأَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَفَرَضَ اللَّهُ عَلَيَّ خَمْسِينَ صَلاَةً، فَرَجَعْتُ بِذَلِكَ حَتَّى أَمُرَّ بِمُوسَى، فَقَالَ: مُوسَى مَا الَّذِي فَرَضَ عَلَى أُمَّتِكَ؟ قُلْتُ: فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسِينَ صَلاَةً، قَالَ: فَرَاجِعْ رَبَّكَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لاَ تُطِيقُ ذَلِكَ، فَرَجَعْتُ فَرَاجَعْتُ رَبِّي فَوَضَعَ شَطْرَهَا، فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى، فَقَالَ: رَاجِعْ رَبَّكَ: فَذَكَرَ مِثْلَهُ، فَوَضَعَ شَطْرَهَا، فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ: رَاجِعْ رَبَّكَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لاَ تُطِيقُ ذَلِكَ، فَرَجَعْتُ فَرَاجَعْتُ رَبِّي، فَقَالَ: هِيَ خَمْسٌ وَهِيَ خَمْسُونَ، لاَ يُبَدَّلُ القَوْلُ لَدَيَّ، فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى، فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ، فَقُلْتُ: قَدِ اسْتَحْيَيْتُ مِنْ رَبِّي، ثُمَّ

انْطَلَقَ حَتَّى أَتَى بِي السِّدْرَةَ الْمُنْتَهَى، فَغَشِيَهَا أَلْوَانٌ لاَ أَدْرِي مَا هِيَ [ص:٣٠٧]، ثُمَّ أُدْخِلْتُ الْجَنَّةَ، فَإِذَا فِيهَا جَنَابِذُ اللُّؤْلُؤِ، وَإِذَا تُرَابُهَا الْمِسْكُ" [ص ۱۸۷ - ۱۸۸] [ر: ۳۴۲][۱]

ترجمه: حضرت ابوذر رضی الله عنه بيان کوی رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه (يوه شپه) زما دکور چت کولاو کړې شو هغه وخت زه په مکه کښې ووم، بيا (دغه کولاو چت نه) حضرت جبرائيل عليه السلام راکوز شو بيا هغه زما سينه اوخيرله، بيا هغه د زمزم په اوبو سره اووينځله. بيا نې سرو زرو يو رکيبنې راوړله، هغه رکيبنې د حکمت او ايمان نه ډکه شوې وه. (دغه فرښتې ايمان اوحکمت) زما په سينه کښې واچول او سينه نې بنده کړه. بيا (جبرائيل عليه السلام) زما لاس اونيولو، بيا نې زه واخستم او د دنيا د آسمان طرف ته نې اوخيژولم. بيا چه کله د دنيا آسمان ته اورسيدو نو جبرائيل عليه السلام په دروازه باندې مقرر څوکنې کونکي ته اووئيل دروازه کولاو کړه دې (څوکنې والا) اووئيل څوك؟ هغه جواب ورکړو (زه) جبرائيل يم. هغه تپوس اوکړو تا سره څوك بل هم شته؟ جبرائيل عليه السلام جواب ورکړو او ما سره حضرت محمد ﷺ دې. څوکيداري فرښتې تپوس اوکړو چه آيا هغوى ﷺ ته پيغام ليګلو سره راغوښتې شوې دې؟ جبرائيل عليه السلام جواب ورکړو او. بيا چه کله دروازه کولاو کړې شوه نو مونږ د دنيا آسمان ته پورته اوختلو نو هلته مونږ يو سړي اوليدلو چه ناست وو. دغه ښى طرف ته څه تت غونډې صورتونه وو او ګس طرف ته هم څه تت شان صورتونه وو. کله چه به هغه ښې ښى طرف ته کتل نو مسکې به شو او کله چه به نې ګس طرف ته او کتل نو په ژړا به شو. هغه (ماته په کتلو سره) اووئيل: (مرحبا بالنبى الصالح والابن الصالح) په خير راغلې اې صالح نبى او صالح خويه. ما د جبرائيل عليه السلام نه تپوس اوکړو دا څوك دې؟ هغه اووئيل دا آدم عليه السلام دې او دا د ده ښى او ګس طرف ته د ده د اولاد روحونه دى. ښى طرف ته د جنتيانو روحونه دى او ګس طرف ته د دوزخيانو روحونه دى. هم په دې وجه چه کله هغه خپل ښى طرف ته ګورى نو خاندى اوکله چه خپل ګس طرف ته ګورى نو ژاړى. تردې چه حضرت جبرائيل عليه السلام زه ځان سره دويم آسمان ته اوخيژولم. بيا نې د دويم آسمان څوکيدار ته اووئيل دروازه کولاو کړه نو دغه آسمان څوکيدارې فرښتې هم هغه شان سوال اوکړو لکه چه په اول آسمان کښې فرښتې کړې وو. بيا هغه دروازه کولاو کړه.

حضرت انس رضی الله عنه اوفرمائيل چه حضرت ابوذر رضی الله عنه اوفرمائيل چه نبى کريم ﷺ په آسمانونو کښې حضرت ادريس، حضرت موسى، حضرت عيسى اوحضرت ابراهيم عليهم السلام اوليدل (ليکن) هغوى د انبياء عليهم السلام (په آسمانونو کښې) منازل بيان نه کړل (چه کوم يو نبى په کوم آسمان باندې وو). (حضرت انس رضی الله عنه اوفرمائيل چه)، حضرت ابوذر رضی الله عنه داخبره ذکرکړه چه نبى کريم ﷺ د دنيا په آسمان حضرت آدم عليه السلام سره ملاقات اوکړو او په شپږم آسمان باندې حضرت ابراهيم عليه السلام سره.

حضرت انس رضی الله عنه بيان اوکړو چه کله حضرت جبرائيل عليه السلام نبى کريم ﷺ بوتلو او حضرت ادريس عليه السلام سره تيريدل نو هغوى: (مرحبا بالنبى الصالح والأخ الصالح)، يعنى په خير راغلې اې صالح نبى او اې صالح روره. ما تپوس اوکړو دا څوك دې؟ جبرائيل عليه السلام اووئيل دا حضرت ادريس عليه السلام دې بيا زه موسى عليه السلام سره تيريدم نو هغه ماته په کتلو سره اووئيل (مرحبا بالنبى الصالح والاخ الصالح)، ماتپوس اوکړو دا څوك دې؟ جبرائيل عليه السلام اوفرمائيل دا موسى عليه السلام دې. بيا زه حضرت عيسى عليه السلام سره تير شوم نو هغوى هم اووئيل (مرحبا بالنبى الصالح والاخ الصالح)، په خير راغلې اې صالح نبى او اې صالح روره. ماتپوس اوکړو دا څوك دې؟ حضرت جبرائيل عليه السلام اووئيل دا عيسى عليه السلام دې بيا زه ابراهيم عليه السلام سره تير شوم نو هغوى ماته کتلوسره اوفرمائيل (مرحبا بالنبى الصالح والابن الصالح)، په خير راغلې اې صالح نبى او صالح خويه ما د جبرائيل نه تپوس اوکړو دا څوك دې؟ نو جبرائيل عليه السلام جواب راکړو دا حضرت ابراهيم عليه السلام دې

[۱] والحديث مر تخريجه فى كتاب الصلاة باب كيف فرضت الصلاة فى الإسراء: رقم: ۳۴۹.

ابن شهاب رحمه الله بيان کوي چه ماته ابن حزم رحمه الله خبر راکړو چه ابن عباس رضي الله عنهما او ابوحبه انصاري رضي الله عنه واني چه بيا زه نور اوچت اوخيژولې شوم تردې چه زه يو داسې اوچت مقام ته اورسيدم چرته چه ما (د فرښتو) د قلمونو (کشارې) آوازِ واوريدو. ابن حزم رحمه الله د (خپل شيخ) نه حديث بيان کړو او انس بن مالك رضي الله عنه (د ابوذر رضي الله عنه په واسطه سره) بيان کړو چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو چه الله تعالى زما په امت باندې پنځوس مونځونه فرض کړل. چه کله ما دا فريضه واخسته واپس شوم اوحضرت موسى عليه السلام سره تيريدم نوهغوى تپوس اوکړو چه الله تعالى ستا په امت باندې څه فرض کړل؟ ما جواب ورکړو پنځوس مونځونه ئې فرض کړل. موسى عليه السلام دې اوريدو سره اووئيل تاسو خپل رب ته واپس تشريف يوسئې ځکه چه ستا امت په دومره اندازه باندې د عبادت طاقت نه لري. نوزه بيا واپس شوم. نو الله تعالى (دَغه عبادت) يو حصه معاف کړه بيا زه موسى عليه السلام له راغلم اومې خودل چه الله تعالى يوه حصه عبادت معاف کړو. حضرت موسى عليه السلام بيا هغه خبره اوکړه چه ته خپل رب ته رجوع اوکړه ستاسو امت دَدې هم طاقت نه لري. ما بيا رجوع اوکړه نو الله تعالى دَهغې يوه حصه نوره هم معاف کړه. بيا زه هغه ته راواپس شوم (او خبر مې ورکړ) نوهغوى اووئيل چه ته بيا خپل رب ته واپس اوګرځه ځکه چه ستاسو امت (دَدې هم) طاقت نه لري. چنانچه مابيا رجوع اوکړه نو الله تعالى ارشاد اوفرمائيلو (اوس) دا پنځه مونځونه (مقرر کولې شي) اودا (په حقيقت کښې د ثواب په اعتبار سره)پنځوس دي. زما په نيز خبره بدليدلې نه شي. بيا هم هلته موسى عليه السلام له واپس راغلم نوهغوى اووئيل چه خپل رب ته رجوع اوکړه ما اووئيل (چه اوس ماته د خپل رب نه (بارباروينا کولوسره) شرم راځي.

بيا جبرائيل امين زه سدرة المنتهى ته بوتلم. هغه (ونه) داسې مختلف رنګونو پټه کړې وه چه دَهغې متعلق ماته معلومه نه شوه چه دغه څه دي. دې نه پس ئې زه جنت ته بوتلم ما په جنت کښې د مرغلرو ګنبدونه اوليدل اودَ هغې خاورهٔ د مشك (په شان) وه.

## تراجم رجال

**عبدان:** دا دَعبدالله بن عثمان بن جبلة مروزى لقب دې. دَدوى تذکره (بدءالوحى) پنځم حديث لاندې تيره شوې ده.[۱]

**عبدالله:** دا مشهور محدث عبدالله بن مبارك رحمه الله دې. دَدوى تذکره (كتاب الايمان باب كيف كان بدءالوحى) لاندې تيره شوې ده.[۲]

**يونس:** دا يونس بن يزيد ايلى رحمه الله دې. دَدوى تذکره (كتاب العلم باب من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين) لاندې تيره شوې ده.[۳]

**زهري:** دا امام المحدثين ابن شهاب زهرى رحمه الله دې. دَدوى تذکره (بدءالوحى) لاندې تيره شوې ده.[۴]

**احمدبن صالح:** دا ابوجعفر احمدبن صالح رحمه الله دى.[۵]

**عنبسة:** دا ابوعثمان عنبسه بن خالد بن يزيد ايلى رحمه الله دې.[۶]

---

[۱] كشف البارى: ۴۶۱/۱.

[۲] كشف البارى: ۴۶۲/۱.

[۳] كشف البارى: ۲۸۲/۳.

[۴] كشف البارى: ۳۲۶/۱.

[۵] كتاب الصلاة باب رفع الصوت فى المسجد رقم الحديث: ۴۷۱.

[۶] كتاب الكسوف باب خطبة الإمام فى الكسوف رقم الحديث: ۱۰۴۶.

**یونس:** دا ابوزید یونس بن یزید ایلی قرشی رحمہ اللہ دي دَدوی تذکره (کتاب العلم باب من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین) لاندي تیره شوي ده.[1]

**ابن شهاب:** دا محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمہ اللہ دي. دَدوی تذکره (بدء الوحی) دَدریم حدیث لاندي تیره شوي ده.[2]

**انس بن مالک:** دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب: من الایمان أن یحب لغیره ما یحب لنفسه) لاندي تیره شوي ده.[3]

**ابوذر:** دا جندب بن جناده ابوذر غفاری رضی اللہ عنہ دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب المعاصی من أمر الجاهلیة) لاندي تیره شوي ده.[4]

دا روایت دَحدیث معراج په نوم سره مشهور دي او په دي باندي تفصیلي مباحث (کتاب الصلاة باب کیف فرضت الصلاة فی الإسراء) لاندي تیرشوی دی.[5]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث باب یوه جمله (فلما مر جبریل بإدریس) او دویمه جمله ده (وجد فی السماوات إدریس) په دي دواړو جملوسره دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دي چه په دواړو کښي دَحضرت ادریس علیہ السلام تذکره ده.[6]

## ۸- باب: ﴿وإلی عاد أخاهم هودا قال یا قوم اعبدوا الله﴾/الأعراف: ۶۵/.

**ماقبل سره ربط اودَ ترجمة الباب مقصد:** دَدي باب وړاندیني باب سره مناسبت واضح دي چه تیر باب کښي دَحضرت ادریس علیہ السلام تذکره وه او اوس دَ حضرت هود علیہ السلام ذکر کیږي.

دَ دي باب لاندي امام بخاری رحمہ اللہ دَحضرت هود علیہ السلام تذکره اودَ دي آیاتونو مبارکو تشریح بیانول غواړي په کوم کښي چه دَ قوم عادته دَ هغوی دعوت تبلیغ اوتلقین او تذکیر بیان دي.[7]

**دَحضرت هود علیہ السلام نسب او مختصر تذکره:** قرآن مجید کښي دَحضرت هود علیہ السلام تذکره په اووه مقاماتو کښي راغلي ده. هغوی دَ قوم عاددَنسل نه وو اوهم دَهغوی طرف ته مبعوث کړي شوي وو. حضرت قتاده رحمہ اللہ دَهغوی نسب نامه داسي بیان کړي ده. هودبن عبدالله بن رباح بن الخلود بن عاد بن عوص بن ارم بن سام بن نوح.[8] خو امام مجاهد رحمہ اللہ دهغوی نسب نامه عامر بن شالخ بن ارفحشد بن سام بن نوح نقل کړي ده. ابن هشام رحمہ اللہ وائي چه دهود علیہ السلام نوم عابر وو.[9] دَ جمهورو په نیز دَ دویمي قول راجح دي.[10]

---

[1] کشف الباری: ۲۸۲/۳.

[2] کشف الباری: ۳۲۶/۱.

[3] کشف الباری: ۴/۲.

[4] کشف الباری: ۲۳۸/۲.

[5] کشف الباری کتاب الصلاة باب کیف فرضت الصلاة فی الإسراء ص: ۸۵ — ۲۰۰.

[6] عمدة القاری: ۳۰۹/۱۵.

[7] عمدة القاری: ۳۱۰/۱۵.

[8] تاریخ للطبری: ۲۱۶/۱ دارالتراث بیروت.

[9] المنتظم فی تاریخ الملوک والأمم لأبی الفرج الجوزی: ۲۵۲/۱ تاریخ ابن خلدون: ۲۳/۲ دارالفکر بیروت. فتح الباری ۴۶۴/۸ عمدة القاری: ۳۱۰/۱۵.

[10] فتح الباری ۴۶۴/۸ عمدة القاری: ۳۱۰/۱۵.

دَحضرت هود عليه السلام تعلق خلود قبيلې سره وو اودا دَ قوم عادد َ ټولو نه مؤقر قبيله وه.([1]) رنګ ئې سور سپين وو ږيره وو او لويه ږيره ئې وه. ونيلى شى چه حضرت هود عليه السلام په بنيادمو كښې دَ حسن اوجمال په اعتبارسره آدم عليه السلام ته دَ ټولو نه نيزدې وو سوا دَ حضرت يوسف عليه السلام.([2]) اسحاق بن بشر رحمه الله او ابن عساكر رحمه الله دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل كړې دې چه دَ ټولو نه اول په عربى ژبه كښې خبرې حضرت هود عليه السلام كړى دى.([3])

**دَحضرت هود عليه السلام وفات اومدفن:** دَحضرت هود عليه السلام دَ وفات اومدفن متعلق دَ مؤرخينو اقوال مختلف دى دَ بعض حضراتو رائې ده چه هود عليه السلام دَ قوم عاد دَ هلاكت نه پس دَحضرموت طرف ته هجرت اوكړو اوهم هلته وفات اوتدفين اوشو.([4])

حضرت على رضي الله عنه په فرمائيل چه دَهغوى قبر حضر موت كښې كثيب احمر (سرې غونډئى) باندې دې اودَ هغه سر ته دَ جارې (كيكر) يا بيرې ونه ولاړه ده.([5]) دغه شان روايت دَ اسحاق بن عبدالله بن ابى فروة رحمه الله نه هم نقل دې چه دَ حضرت هود عليه السلام قبر مبارك په يمن كښې په يوغر باندې دې. حضرت عثمان بن ابى عاتكه رحمه الله فرمائى چه دَحضرت هود عليه السلام مدفن فلسطين كښې دې.([6]) دَ ابن سابط رحمه الله نه نقل دى حضرت نوح عليه السلام حضرت هود عليه السلام حضرت شعيب عليه السلام اوحضرت صالح عليه السلام قبرونه په مكه كښې مقام ابراهيم په مينځ كښې او ركن يمانى اوزمزم په مينځ كښې دَزمكې په تكره كښې دى.([7]) په دې مختلف اقوالوكښې قرين قياس دادې چه دَهغوى قبر مبارك په يمن كښې وى ځكه چه هم دغه دَهغوى آبادئى وې.([8])

**قوم عاد** عاد عربو دَ ټولو نه پخوانئى قبيله ده. دا دَ ډيرو سركشو اومتمرد انسانانو يوه ډله وه. دَ اوږد قد اومضبوط بدنونو مالكان وو. په صناعت او كاريگرئى كښې بې مثال وو. بت تراش وو اوهم دغه دَ هغوى مشهوره پيشه وه. په غرور كښې اخته او په خپل طاقت باندې مغروره وو. دَحضرموت دَ يو وادئى نوم احقاف دې. قوم عاد هم هلته آباد وو. دهغوى آبادى دَ عربو دَ ټولو نه بهترين مقامات حضر موت، يمن او خليج فارس دَ سواحلو نه دَ عراق حدود پورې خوره وه. يمن دَهغوى دارالحكومت وو.

عاد (دَچاطرف ته چه قبيله منسوب ده) دَهغوى دَ بادشاه نوم دې. دوى به دَ سپوږمئى عبادت كولو اودَهغه ډير اوږد او لونې عمر وو. زر خو صرف دَهغه ښځې وې دَ چا دَ خيټونه چه دَ عاد په ژوند كښې څلور زره بچى پيدا شو.([9]) دَ نوح عليه السلام وفات نه پس هغه په مخ دَ زمكې اولنې بادشاه وو اوهغه دَ ژوند دولس سوه سپرلى ليدلى.([10])

---

[1]) فتح البارى:٨/٤٦٤.

[2]) عمدة القارى: ١٥/٢١٠.

[3]) تفسير المنار: ٨/٤٣٧محمدرشيد رضا.

[4]) عمدة القارى:١٥/٣١٢.

[5]) مختصر تاريخ دمشق لابن عساكر: ٣٧/١٥٧دارالفكر. البداية والنهاية قصة هود عليه السلام:١/٣٠٣دارهجر للطباعة والنشر.

[6]) البداية والنهاية قصة هود عليه السلام:١/٣٠٣دارهجر. عمدة القارى: ١٥/٣١٢ مختصر تاريخ دمشق:٣٧/١٥٧.

[7]) مختصر تاريخ دمشق: ٣٧/١٥٧ دارالفكر.

[8]) رحلة ابن بطوطة المسماة: تحفة النظار فى غرائب الأمصار وعجائب الأسفار: ١/١٩٦قبيل ذكر التنبول. المطبعة الخيرية.

[9]) عمدة القارى: ١٥/٣١٠.

[10]) عمدة القارى: ١٥/٣١٠.

دَ انتقال نه پس دَعاد مشر خوئي شديد بن عاد په حکومت باندې کيناستو او ۵۸۰ کاله ئې دَ حکومت مزې واخستې. دَ شديد دَ مرګ نه پس دَ حکومت واګې دَهغه رور شداد بن عاد لاس ته راغلې چا چه أرم ذات العماد جوړ کړو.(۱)

مختصر دا چه قوم عاد دَ خپل بې شانه طاقت په زور باندې په مخ دَ زمکې حکومت اوکړو څه چه دَهغوی په زړه اودماغوکښې دَ غرور پوکې وهلوسره هغوی سرکش او طاغي جوړ کړل ونيل به ئې (من أشد منا قوة) زمونږ نه زيات طاقتور څوك دې؟ پوره قوم دَ بت پرستئ په وباکښې راګيرو. کله چه په سرکشئ عصيان اوتمرد کښې دَ حد نه زيات شو نوالله تعالى هم دَهغوی دَ قوم يوکس حضرت هود عليه السلام په رسالت سره سرفراز کړو اودَهغوی په نيغه لار باندې راوستلو اودَ توحيد دَ دعوت وركولوحكم ئې وركړو.

**قوله: وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا......:** يعنې مونږ عاد طرف ته دَهغوی رور هود عليه السلام (پيغمبر جوړولوسره) اوليګلو. هغه اوونيل اې زما قومه تاسو صرف دَ يو الله تعالى عبادت اوکړئ دَهغه نه بغيردَ ستاسو څوك معبود نشته دې آيا تاسو نه ويريږئ؟

**وَقَوْلِهِ: ﴿إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُ بِالْأَحْقَافِ - إِلَىٰ قَوْلِهِ - كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ﴾ /الأحقاف: ۲۱-۲۵/**

**إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُ بِالْأَحْقَافِ......:** پوره آيت داسې دې: ﴿وَاذْكُرْ أَخَا عَادٍ إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُ بِالْأَحْقَافِ وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ مِن بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝ قَالُوا أَجِئْتَنَا لِتَأْفِكَنَا عَنْ آلِهَتِنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ۝ قَالَ إِنَّمَا الْعِلْمُ عِندَ اللَّهِ وَأُبَلِّغُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ وَلَٰكِنِّي أَرَاكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ۝ فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ۚ بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُم بِهِ ۖ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِأَمْرِ رَبِّهَا فَأَصْبَحُوا لَا يُرَىٰ إِلَّا مَسَاكِنُهُمْ ۚ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ۝﴾ [سورة الأحقاف: آيت: ۲۱ - ۲۵]

**ترجمه:** او يادکړه دَ عاد رور هود کله چه هغه خپل قوم دَ احقاف(۲)

---

(۱) عمدة القاري: ۳۱۰/۱۵.

(۲) احقاف چرته چه دَعاد آبادئ وې په سوونو ميلونو باندې خور يو عظيم ريګستان دې نن صبا هغې ته الربع الخالي وائي. دلته چه کله دَ هواګانو تيزې اوخطرناکې چپې چلېږي نوزونـد مـشـکل شي. دَ شګې غرونه هباء منثور جوړيدو سره دَ هـوا پـه چپـو بانـدې الـوزي. اوچرتـه چـه هـغـه حـصاريږي هلتـه دَ شګـو لـونـي لـونـي ډيـرې جوړيږي. قافلې او کلي دَدې لاندې ښخيدو سره دَ مرګ نه وړاندې دَ خاورو ګولـه کيږي. کلـه چـه اتفاقـاً دَدغـه ځائې نه شګه اخواکيږي اودَ انساني هډوکـو اودَ ډډو ډانچـو قلعـه شـان ښکـاري. يـو انګريـز سـياح دَ عربـو پـه ريګستانونوکښې دَ دغه طوفان مشاهده کړې ده هغه ليکي: غرمه وه دَ جنوب دَ طرف نـه نـاڅاپـې دَ ګـرمې هـوا چپې راغلې دَ هوا تيزوالې په مزه مزه تيزيدو. زما عرب ملګرو خپل مخونه پـه کـپړو کـښې راپـټ کـړل او اوښان ئې په وهلو وهلوسره تيز کړل ليکن اوښانو به بار بـار دَ کيناسـتو کوشـش کولـو. مـا دَ ملګـرو نـه دَ واقعـه معلومات اوکړل ليکن هغوی دَ ډيرې ويرې پـه حالـت کـښې صـرف دومـره اوونيـل چـه کـه مخـامخ خيمـې تـه اورسيدو نو ځان به بچ شي. دې دوران کښې هوا نوره هم تيزه شوه ګـرمـي دومـره زياتـه شـوه چـه معلوميدلـه چـه دَ آسمان نه دوزخ راکوز شوې دې آخر کوشش کولوسره مونږ خيمې تـه اورسـيدلو. هلتـه يـوه ښـځـه مـخ پـټ کـړې پرمخې پرته وه. زمونږ اوښانودَ هوا نه مخ تـاوکړې پـوزه پـه شګـوکـښې ورخښـولـوسـره لګـه دَمړو پريوتـل. مونږ هم خيمې ته تلوسره مخ پـټ کـړو او پرمخې پريوتلو. تيـاره دومـره سـخته وه چـه شـپه معلوميدلـه. لـس مينټه هم دغه حالت وو. بيا په هوا اوګـرمئ کـښې کمې اوشو. کله چه مونږ پاسيدو نوزمـونږمخونـه مړزوانـدي شوې وو.(تاريخ ارض القرآن ص: ۱۷۸).

اوویرولو او ډیر ویرونکی دَهغوی نه وړاندې تیرشوی دی اودَهغوی نه شاته هم (دَ دې ټولو دا پیغام وو چه) دَالله تعالی نه بغیرد بل چا عبادت مه کوئی. ماته په تاسو ټولو باندې دَ هیبت ناکې ورځې دَ آفت اندیښنه ده. (هغه آفت څوك اخوا کولې نه شی اونه به په هغه ورځ دَ چا دوستی او سفارش په کار راځی) هغوی اوونیل: آیا ته مونږ له دَدې دَ پاره راغلې ئې چه مونږ دَ خپلو معبودانونه واړوې؟ که چرې ته رښتونې ئې نو راوله په مونږ باندې هغه (عذاب) دکوم چه ته دعوی کوې. (لهذا مونږ به دَ خپلو پلارانو نیکونو په طریقه باندې کلك ولاړ یو اوخپل معبودان به هیڅ کله نه پریږدو) هغوی اوفرمائیل: دا علم خو صرف هم الله تعالی سره دې چه هغه عذاب به کله راځی. ماته ئې چه کوم پیغام راکولوسره لیګلې شوې یم زه خو تاسو ته هم هغه پیغام دررسوم. تاسو له پکاردی چه تاسو په دې خبره باندې یقین اوکړئی، لیکن زه دا خامخا وینم چه تاسو دَ ناداننې خبرې کوئی ځکه چه ستاسو مطالبات بیشکه ستاسو دَ ناداننی او جهالت دلیل دې. دَالله تعالی پیغمبر ته نه دَ عذاب راکوزولو اختیار دې اونه قدرت اونه دَ دې خبرې علم دې چه عذاب به کله راځی؟ بیا چه کله هغوی دغه اوریځ اولیدله کوم چه دَهغوی دَ کندو طرف ته مخ کولو نوهغوی خوشحالیدلو ونیل دا اوریځې دی چه په مونږ باندې به باران راوروی. هغه کال اوچ کالې او قحط وو په دې وجه ئې اومیدونه تړل چه په اوریځو وریدو سره به ټولې کندې او نالئې ډکې شی او زمکه به آباده شی. نه، بلکه دا خو هغه څیز دې کوم چه تاسو زر غوښتلو. یوه سیلئی ده په کوم کښې چه دردناك عذاب دې. چه هرڅیز به دَ خپل رب په حکم باندې دَ بیخه راوباسی. چنانچه هغه اوریځو په خائی دَ خړوبوالی دَ الله تعالی عذاب جوړیدو سره په هغوی راوریدو او اووه اته ورځو پورې دا خطرناك طوفان اوسیلئی دَالله تعالی عذاب ورولو. کوم چه ونې دَ جرړو نه اوویستلې آبادئی ئې تباه برباد کړې لوئی لوئی طاقتور ځناور دَدې طوفان په مخکښې دَ معمولې ډکو خاشودَ حقیقت نه زیات نه وو. چنانچه کله سحر دوی پاسیدل نو هیڅ څیزنه ښکاره کیدلو سوا دَهغوی دَ مکانونو کوم چه دَ کنډراتو په شکل کښې ښکاریدل. مونږ نافرمان قوم ته داسې سزا ورکوو.

فِيهِ: عَنْ عَطَاءٍ وَسُلَيْمَانَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ. [ر: ۳۰۳۴، ۴۵۵۱]

امام بخاری رحمه الله دَ حضرت عطاء بن ابی رباح رحمه الله روایت بدء الخلق کښې (باب ذکر الریح) کښې موصولاً ذکر کړې دی او هلته دَحدیث شروع جمله (کان إذا رأی مخیلة أقبل وأدبر) نه او انتهاء په جمله (وما أدري لعله کما قال قوم عاد: ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ﴾ الآیة) باندې کیږی.

اودَحضرت سلیمان بن یسار رحمه الله روایت کتاب التفسیر کښې دَ سورة الأحقاف لاندې موصولاً نقل کړې دې. دَ روایت الفاظ دادی: (کان إذا رأی غیما أو ریحا عرف فی وجهه. قالت یارسول الله! الناس إذا رأوا الغیم فرحوا رجاء أن یکون فیه المطر، وأراك إذا رأیته عُرف فی وجهك الکراهیة؟ فقال: یاعائشة، ما یؤمنی أن یکون فیه عذاب، عذب قوم بالریح. وقد رأی قوم العذاب فقالوا: هذا عارض ممطرنا)[1]

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائې چه کله به رسول الله ﷺ اوریځ یا هوا لیدله نو پریشانی به دَهغوی دَ مخ مبارك نه ښکاره کیدله. عائشه رضی الله عنها عرض اوکړو یا رسول الله! کله چه خلق اوریځې وینی نو په دې امید باندې خوشحالیږی چه دې نه به دَ باران اوبه راوریږی لیکن چه زه تاسو ته ګورم چه دَ اوریځو په لیدلو سره ستاسو مخ مبارك نه فکر اوپریشانی معلومیږی. حضورپاك اوفرمائیل عائشه! ماته اندیښنه وی چه چرته په دې کښې

---

[1] صحیح البخاری کتاب التفسیر باب قوله: ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا﴾ (۴۸۲۹) وأخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب الصلاة باب التعوذ عند رؤیة الریح والغیم. والفرح بالمطر (۸۹۹) وأبوداؤد فی سننه فی کتاب الأدب باب مایقول إذا هاجت الریح، رقم: ۵۰۹۸.

عذاب نه وی. چنانچه یو قوم دَ طوفان په عذاب کښې راګیر کړې شوې او یو قوم عذاب (اوریځ) لیدلو سره وئیلې وو چه دا خو به په مونږ باندې راوریږي او مونږ به خړوب کړي.

## ۹- باب: قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ:
## ﴿وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ صَرْصَرٍ﴾

شَدِيدَةٍ ﴿عَاتِيَةٍ﴾ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: عَتَتْ عَلَى الْخُزَّانِ ﴿سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَثَمَانِيَةَ أَيَّامٍ حُسُومًا﴾ مُتَتَابِعَةً ﴿فَتَرَى الْقَوْمَ فِيهَا صَرْعَى كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ﴾ أُصُولُهَا ﴿فَهَلْ تَرَى لَهُمْ مِنْ بَاقِيَةٍ﴾ بَقِيَّةٍ /الحاقة: ۶ – ۸/.

امام بخاری رحمه الله دَ سورة الحاقة درې آیاتونه نقل کړې دی. په دې کښې دَ قوم عاد هلاکت او په هغوی باندې عذاب جوړیدو سره راتلونکې خطرناك طوفان تذکره ده.

**دَ ایات ترجمه:** پاتې شو عاد، نوهغوی په تیز او تند سیلئ سره هلاك کړې شو، الله تعالی دغه سیلئ (دَهغوی دَ تباهئ دَپاره) اووه شپې او اته ورځې (پوشان) مسلط اوساتله، چنانچه که تاسو (چرته هلته وئی نو) کتلو به مو چه هغه خلق هلته داسې پراته وو لکه دَ کهجورو ډډې تنې چه وی، نو آیا تاسو ګورئی چه په هغوی کښې څوك بچ کیدونکې شته.

بعض حضراتو اوفرمائیل چه سیلئ دَ قوم عاد دَ خیټونه هرڅه بهر رااویستل او ډډې کړل. سیلئ به هغوی په هوا کښې اوچتول او په زمکه باندې به ئې راغلاصولوسره دَهغوی سر چقنړې کول. دغه شان دَ هغوی دَ بدنونو نه سرونه جدا شو. په دې حالت کښې دهغوی مړه بدنونه په زمکه داسې پراته وو لکه دَ کهجورو ډډې ونې چه پرتې وی.[1]

قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: عَتَتْ عَلَى الْخُزَّانِ: امام بخاری رحمه الله دَ ابن عیینه رحمه الله قول نقل کولوسره لفظ دَ "عاتیة" تفسیر کړې دې. دَ "خزان" نه دَ هوا ذخیره کونکې فرښتې مراد دی. مطلب دا چه هوا دومره سخته وه چه په هغه ورځ دَ ذخیره کونکو فرښتو دَ قابونه بهر شوه.

ابن ابی حاتم رحمه الله دَ حضرت علی رضی الله عنه قول نقل کړې دې چه الله تعالی دَ یوې فرښتې په لاس باندې هوا تللونه پس رالیګی. خو چه په کومه ورځ په عادیانو باندې عذاب مسلط کړې شو په هغه ورځ بې حسابه هوا راؤلیګلې شوه. کومې فرښتې چه دَ هغې خازن او داروغه وې دهغوی دَ قابونه هم بهر شوه.[2]

[ ۳۱۶۵ ] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «نُصِرْتُ بِالصَّبَا، وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ» [ص ۲۰۰] [ر: ۹۸۸].[3]

### تراجم رجال

**محمدبن عرعرة:** دا محمد بن عرعره بن البرند قرشی بصری رحمه الله دې. دَ دوی تذکره (کتاب الایمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله) لاندې تیره شوې ده.[4]

---

[1]) إرشادالساري: ۲۵۹/۷.

[2]) فتح الباري: ۴۶۴/۸ إرشادالساري: ۶۵۹/۷

[3]) مرتخریجه فی کتالب الاستسقاء باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: نُصرتِ بالصَّبا رقم: ۱۰۳۵.

[4]) کشف الباري: ۵۵۷/۲.

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج العتكى الواسطى رحمه الله دي. دَ دوى تذكره (كتاب الإيمان باب من سلم المسلمون من لسانه ويده) لاندې تيره شوې ده.[1]

**الحكم:** دا الحكم بن عتيبه الكندى الكوفى رحمه الله دي. (كتاب العلم باب السمر فى العلم) لاندې تيره شوې ده.[2]

**مجاهد:** دا مجاهد بن جبر مكى رحمه الله دي. (كتاب العلم باب الفهم فى العلم) لاندې تيره شوې ده.[3]

**قوله: نُصِرْتُ بِالصَّبَا وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ:** دَ بادصبا په ذريعه زما امداد اوكړې شو او دَ دبور په ذريعه قوم عاد هلاك كړې شو. "صبا" ښكلي هوا ته وائي او "دبور" خطرناكې هوا ته وائي.[4]

**دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَباب سره دَ روايت مناسبت واضح دې په دې توګه چه په دواړو كښې دَ قوم عاد تذكره ده.[5] علامه عينى رحمه الله (قول الله عزوجل ﴿وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ﴾ الآية) دَ مستقل باب په توګه ذكر كړې دې.[6] لكه چه دَ علامه عينى رحمه الله دَ تحقيق مطابق سابقه باب بغير دَ حديث موصول نه دې اودلته ذكر كړې شوې مناسبت حديث تعلق (باب قول الله عزوجل ﴿وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ﴾ الآية) سره دې.[7]

۳۱۶۶- قَالَ: وَقَالَ ابْنُ كَثِيرٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: بَعَثَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذُهَيْبَةٍ فَقَسَمَهَا بَيْنَ الأَرْبَعَةِ الأَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ الحَنْظَلِيِّ، ثُمَّ المُجَاشِعِيِّ، وَعُيَيْنَةَ بْنِ بَدْرٍ الفَزَارِيِّ، وَزَيْدٍ الطَّائِيِّ، ثُمَّ أَحَدِ بَنِي نَبْهَانَ، وَعَلْقَمَةَ بْنِ عُلاَثَةَ العَامِرِيِّ، ثُمَّ أَحَدِ بَنِي كِلاَبٍ، فَغَضِبَتْ قُرَيْشٌ، وَالأَنْصَارُ، قَالُوا: يُعْطِي صَنَادِيدَ أَهْلِ نَجْدٍ وَيَدَعُنَا، قَالَ: «إِنَّمَا أَتَأَلَّفُهُمْ». فَأَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ العَيْنَيْنِ، مُشْرِفُ الوَجْنَتَيْنِ، نَاتِئُ الجَبِينِ، كَثُّ اللِّحْيَةِ مَحْلُوقٌ، فَقَالَ: اتَّقِ اللَّهَ يَا مُحَمَّدُ، فَقَالَ: «مَنْ يُطِعِ اللَّهَ إِذَا عَصَيْتُ؟ أَيَأْمَنُنِي اللَّهُ عَلَى أَهْلِ الأَرْضِ فَلاَ تَأْمَنُونِي» فَسَأَلَهُ

---

[1] كشف البارى: ۶۷۸/۱

[2] كشف البارى: ٤/٤١٤.

[3] كشف البارى: ۳/۳۰۷.

[4] فيض البارى باب غزوة الخندق: ٤/٩٩.

[5] عمدة القارى: ١٥/١٤.

[6] عمدة القارى: ١٥/١٤.

[7] والحديث أخرجه البخارى أيضاً موصولاً فى كتاب المناقب، باب علامات النبوة فى الإسلام رقم: ۳۶۱۰ وفى كتاب المغازى باب بعث على بن أبى طالب وخالد بن الوليد إلى اليمن قبل حجة الوداع رقم: ٤۳٥۱ وفى كتاب التفسير، سورة براءة باب: والمؤلفة قلوبهم وفى الرقاب، رقم: ٤۶۶۷ وفى كتاب فضائل القرآن باب إثم من راءى القرآن بقراءة القرآن، أو تأكل به، أو فجر به رقم: ٥٠٥٨ وفى كتاب الأدب باب ماجاء فى قول الرجل: ويلك: رقم: ۶۱۶۳ وفى كتاب استتابة المرتدين، باب قتل الخوارج والملحدين بعد إقامة الحجة عليهم، رقم: ۶۹۳۱ وباب من ترك قتال الخوارج للتألف ولئلا ينفر الناس عنه، رقم: ۶۹۳۳ وفى كتاب التوحيد، باب قول الله تعالى ﴿تَعْرُجُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ إِلَيْهِ﴾ رقم: ۷۴۳۲ وباب قراءة الفاجر والمنافق وأصواتهم وتلاوتهم لاتجاوز حناجر هم، رقم: ۷٥۶۲ ومسلم فى كتاب الزكاة باب ذكر الخوارج وصفاتهم رقم: ۲٤۲۶ وأبوداؤد فى سننه فى كتاب السنة باب فى قتال الخوارج رقم: ٤۸۶٤ والنسائى فى سننه فى كتاب الزكاة باب المؤلفة قلوبهم رقم: ۲٥۷۹ وفى كتاب المحاربة باب من شهر سيفه ثم وضعه فى الناس رقم: ٤۱۰۶ وابن ماجه فى سننه فى المقدمة باب فى ذكر الخوارج رقم: ۱۶۹.

رَجُلٌ قَتْلَهُ - أَحْسِبُهُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ - فَمَنَعَهُ، فَلَمَّا وَلَّى قَالَ: "إِنَّ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا، أَوْ: فِي عَقِبِ هَذَا قَوْمًا يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ، يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ، يَقْتُلُونَ أَهْلَ الْإِسْلَامِ وَيَدَعُونَ أَهْلَ الْأَوْثَانِ، لَئِنْ أَنَا أَدْرَكْتُهُمْ لَأَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ عَادٍ"

دي روايت سره متعلق تفصيلي بحث كتاب المغازى كښې راځي.([1])

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه يوقوم به راؤخي چه دَ قرآن پاك تلاوت به په ډيره تازګئي سره کوي اوهغه قرآن به دَهغوي دَ مرو ستوني نه ښکته نه خي. دا خلق به دَ دين نه داسې اوځي لکه چه غشي دَ ښکار نه چه اوځي. دا خلق به مسلمانان قتل کوي او بت پرست به پريږدي. بيائي اوفرمائيل (لَئِنْ أَدْرَكْتُهُمْ لَأَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ عَادٍ) كه چرې ما دوي اوليدل نوزه به هغوي دَ قوم عاد په شان قتل کوم. هم دغه جمله ترجمة الباب سره مطابقت لري.

**باب سره دَ حديث په مناسبت باندې اشكال اودَهغې جواب:** په دې مناسبت باندې اشكال كيږي چه حضورپاك خودَهغه خلقو دَ قتل كولو اراده ښكاره كړه خو قوم عاد خو خطرناكې هوا هلاك كړې وو. دَدې جواب دادې چه سره دَدې په تشبيه كښې عموم نشته ليكن دَ حضورپاك غرض دَ هغه خلقو بالكليه استيصال وو. يعنى طوفان قوم عاد تباه كولوسره دَهغوي بالكليه استيصال اوكړو دغه شان كه ما هم هغوي اوليدل نوتپول به قتل كولوسره دهغوي استيصال كوم.([2])

دويم جواب دادې چه دلته قتل عاد كښې موجود اضافت، اضافت الى الفاعل دَ قبيل نه دې اودَدې تائيد دَدې خبرې نه هم كيږي چه يو بل طريق كښې دَ قتل عاد په ځائي قتل ثمود وارد شوې دې او په داسې صورت كښې به مطلب داشي چه كه چرې ما دغه قوم اوليدلو نوزه به هغوي په سختنى سره قتل كوم لكه چه قوم عاد دَ طاقتور كيدو په سبب په سختنى او شدت سره قتل كوي.

[ ٣١٦٧ ] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقْرَأُ: {فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ} [القمر:١٥]
[ص ٢٠٣][ر: ٣١٦٣]([3])

## تراجم رجال

**خالد بن يزيد:** دا ابوهيثم خالدبن يزيد بن زياد الاسدى الكاهلى الكوفى رحمه الله دې. دَ فن قراءت ماهر وو او په خپله هم خوش آواز قاري وو.([4])

هغوي دَ اسرائيل بن يونس، ابوبكر بن عياش، حسن بن حسّى، قيس بن ربيع اوحمزه زيات رحمهم الله نه دَ حديث روايت كړې دې اودَهغوي نه امام بخارى، ابوشيبه، ابوحاتم رازى، ابوزرعه، محمد بن ادريس رازى او محمدبن حجاج ضبى غوندې اعلام حديث روايت دَ حديث كړې دې.([5])

---

[1]) كشف البارى كتاب المغازى ص: ٥٧١ – ٥٧٤.

[2]) عمدة القارى:١٥/٣١٤فتح البارى:٤٦٥/٨.

[3]) مرتخريجه فى كتاب الأنبياء، باب: الأرواح جنود مجندة، رقم: ٣٣٤١.

[4]) تهذيب الكمال: ١٩٣/٨.

[5]) دَ شيوخ اوتلامذه دَ تفصيل دَپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ١٩٢/٨.

ابوحاتم محمدبن ادریس رازی رحمه الله دَهغوی باره کښې فرمائي: صدوق.[۱] محمدبن حجاج ضبی رحمه الله فرمائي: (کان حُلواًمن القُرّاء)[۲] یعني ډیر خوش آوازقاري وو. امام دارقطني دَهغوی باره کښې فرمائي: (هوالطبیب لیس به بأس)[۳]

اسرائیل: دا ابویوسف اسرائیل بن یونس بن ابی اسحاق همداني کوفي رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم، باب من ترك بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس عنه فیقعوافی أشد منه) لاندې تیرشوې دی.[۴]

ابواسحاق: دا عمرو بن عبدالله بن عبید السبیعي رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان، باب الصلاة من الإیمان) لاندې تیره شوې ده.[۵]

الاسود: دا اسود بن یزید بن قیس نخعي کوفي رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم، باب من ترك بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس.....) لاندې تیره شوې ده.[۶]

عبدالله: دا مشهور صحابي رسول حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دې.[۷]

قوله: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم یَقْرَأُ: فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ: تیرشوی باب (قول الله تعالی: ﴿إِنَّآ أَرْسَلْنَا نُوحًا﴾) لاندې دَدې روایت تفصیل تیرشوې دې. امام بخاري رحمه الله دَباب لاندې دا روایت ځکه نقل کړې دې چه په دې کښې هغه خودل غواړي چه قرآن کوم قصص او واقعات بیانوي دَهغې نه عبرت حاصلول پکاردي آیا څوك دَعبرت حاصلونکې شته؟

## ۱۰ – باب: قِصَّةِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ

دَحافظ ابن حجر رحمه الله مخې ته چه کومه نسخه ده په هغې کښې دا باب نشته.[۸] خوزمونږ په هندوستاني نسخوکښې علامه قسطلاني رحمه الله شیخ الاسلام زکریا الانصاري رحمه الله اودَمصري نسخو په کوم کښې چه دَ مولانا سندهي رحمه الله حاشیه ده، دا باب موجود دې.[۹] دویمه خبره داده چه امام بخاري رحمه الله صرف آیت ذکرکولوباندې اکتفاء کړې ده څه حدیث ئې نه دې ذکرکړې. اوداَ امام بخاري طریقه ده چه هغه بعض وخت باب بغیرد حدیث نه راوړي. البته داخبره دَهندي اومصري نسخو په لحاظ سره ده ځکه چه په دغه نسخوکښې دَ دویم آیت نه وراندې دَ باب عنوان موجود دې. لهذا دَدې نسخو په لحاظ دا باب بغیرد حدیث نه دې. باقي دَعلامه عیني رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله وغیره په نسخوکښې چونکه دَ باب عنوان نشته دې په دې وجه دَدې حضراتو دَ نسخو

---

[۱] الجرح والتعدیل: ۳۵٤/۳.
[۲] تهذیب الکمال: ۱۹۳/۸.
[۳] إکمال تهذیب الکمال: ۱۵۹/٤
[٤] کشف الباري: ٥٤۶/٤.
[٥] کشف الباري: ۳۷۰/۲.
[۶] کشف الباري: ٥٥۳/٤.
[۷] کشف الباري: ۲٥۷/۲.
[۸] فتح الباري: ٤۷۱/۸.
[۹] عمدة القاري: ۳۱۹/۱۵ إرشادالساري: ۲۶۲/۷ تحفة الباري: ۶۶/٤

قراءت کونکوته دَ حدیث نه ذکرکیدو اشکال نه شی پیدا کیدې ځکه چه دَ دویم آیت نه پس امام بخاري رحمه الله دَ باب مناسبت سره احادیث ذکر کړی دی.(۱)

**ماقبل سره ربط:** دَدې باب مناسبت کتاب الانبیاء سره په دې صورت کښې ممکن دې چه کله ذوالقرنین نبي اومنلې شي. دَ امام بخاري رحمه الله دَ طریقې نه هم دغه معلومیږي چه دَهغه په نیز ذوالقرنین نبی وو. ګنې دَ ذوالقرنین تذکره به نې دَ حضرات انبیاء کرام علیهم السلام دَ تذکرو په مینځ کښې نه کوله. اودَ یاجوج ماجوج تذکره نې په دې وجه اوکړه ځکه چه دَ یاجوج ماجوج دَ قصې تعلق دَ ذوالقرنین قصې سره دې. لیکن په دې خبره باندې دا اشکال پیدا کیږي چه بیا خو په اصل کښې ترجمه دَ ذوالقرنین په عنوان سره کیدل پکار وو. اودَ یاجوج ماجوج قصه یا خودَ ذوالقرنین دَ ترجمې لاندې کولې کیده یا بیا دَ ذوالقرنین دَ قصې نه بس دَ یاجوج ماجوج دَ قصې دَپاره مستقل ترجمه قائم کول پکار وو. خو مونږ سره موجود نشخوکښې ترجمة الباب هم یاجوج ماجوج په ذکرسره معنون ده او شروع هم دَ یاجوج ماجوج دَ تذکرې نه کړې شوې ده. اوددوی دَ تذکرې نه پس دَ ذوالقرنین قصه بیان کړې شوې ده.

شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائي چه دَ دې اشکال جواب صرف هم دغه کیدې شي چه ممکن دې امام بخاري رحمه الله دَ یاجوج ماجوج قصه دَ ذوالقرنین دَ تذکرې دَپاره تمهید جوړ کړې وی اوهم په دې وجه نې دا دَ ذوالقرنین نه اول ذکر کړې وی.(۲)

اوامام بخاري رحمه الله دَ حضرت ابراهیم علیه السلام دَ ذکرنه وړاندې دَ ذوالقرنین تذکره په دې وجه اوکړه چه هغه په دې صنیع سره په هغه خلقو باندې ردکول غواړي چه په اسکندر یوناني او ذوالقرنین کښې فرق نه کوی بلکه دا دواړه هم یو سړې ګرځوی.(۳)

خو په دواړو شخصیتونو کښې دَ زماني، مذهب او اخلاق په هراعتبار سره فرق دې. دَ زماني په اعتبار سره فرق دادې چه ذوالقرنین دَ حضرت ابراهیم علیه السلام دَ زمانې وو او په هغې کښې دننه یوناني دَ حضرت عیسی علیه السلام سره نیزدې وو اودَ حضرت ابراهیم علیه السلام او حضرت عیسی علیه السلام په مینځ کښې دَ دوو زرو کالونه زیاته فاصله ده.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ شراح حدیث دَ کلام نه معلومیږي چه دَ امام بخاري مقصد ددې ترجمة الباب نه دَ ذوالقرنین دَ نبوت طرف ته اشاره کول دی یا بیا مقصد په هغه خلقو باندې رد کول دی چه اسکندر یوناني او ذوالقرنین په شخصیتونو کښې فرق نه کوی اوحال دادې چه په دواړو کښې په څومره وجوهاتوسره فرق دې.(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دَامام بخاري رحمه الله په دې ترجمة الباب سره مقصد دَ یاجوج ماجوج تذکره کول دی اودې طرف ته اشاره کول دی چه دَهغوی تعداد دومره زیات دې چه دا امت دَهغوی په مقابله کښې عشر عشیر هم نه دې او یاجوج ماجوج څه جدا مخلوق نه دې بلکه هغه هم دَ حضرت آدم علیه السلام دَ ذریت نه دی.(۵)

**یاجوج ماجوج اودَهغوی باره کښې افسانوی روایات:** مؤرخینوچه دَ یاجوج ماجوج سره متعلق کوم عجیبه او حیرانونکی روایات بیان کړی دی په هغې کښې یو څو پریخودوسره کوم چه ناقدینو دَ جرح اوتعدیل په کسوټئ کیخودو سره دَ ثقاهت درجه ورکړه. باقي ټول دَحدیث خرافه په ذیل کښې راځي. په کوم کښې چه یاجوج ماجوج غیر معمولي طویل القد او حیرانونکي بدني طاقت خاوندان ګرځولوسره دَ یو داسې طلسماتي مخلوق په توګه پیش کړې شوی دی لکه هغه دَ انساني جماعت نه ماوراني خلقت جدا جنس وی. مثلاً دا چه په هغوی

---

(۱) الکنزالمتواري: ۱۳/ ۲۷۰.

(۲) الکنزالمتواري: ۱۳/ ۲۷۱.

(۳) فتح الباري: ۱/ ٤۷۱.

(٤) فتح الباري: ۸/ ٤۷۱ عمدة القاري: ۱۵/ ۳۲۱الکنزالمتواري: ۱۳/ ۲۷۱.

(۵) فتح الباري: ۸/ ٤۷٦ دارالکتب العلمیة.

کښې به د بعض قد غیرمعمولي اوږد وی. بعض به طولاً او عرضاً څلور لاسه وی. د بعض قد به دوه لیشتې یا یو لیشت وی. د بعض خصوصیت به وی چه د یو غوږ نه به د اچولو او د بل نه د خوږولو کار اخلی. د نن صبا مادر پدر آزاد اهل یورپ په شان به ښځو سره په ملاپ کښې د هیڅ ضابطې او اخلاق پابند نه وی.

د دې خصوصیاتو باره کښې صاحب د بحر محیط ابوحیان اندلسی رحمه الله فرمائی: «وانه قد اختلف فی عددهم وصفاتهم ولم یصح فی ذلك شیء.» [1] یعنی د یاجوج ماجوج تعداد او د هغوی خصوصیات کښې اختلاف دې او په دې سلسله کښې هیڅ یوه خبره په صحیح روایت سره ثابته نه ده. دغه شان حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی: «من زعم أنهم علی أشکال مختلفة وأطوال متباینة جدا، فمنهم من هو کالنخلة السحوق، ومنهم من هو غایة فی القصر، ومنهم من یفترش أذنا من أذنیه ویتغطی بالأخری، فکل هذه أقوال بلا دلیل، ورجم بالغیب بغیر برهان.» [2]

د یاجوج ماجوج باره کښې دا غلط روایت هم مشهور دې چه هغه د حضرت آدم علیه السلام د صلب نه پیدا شو. بعض اسرائیلی روایاتو کښې دی چه حضرت آدم علیه السلام ته احتلام اوشو او د هغه نطفه په خاورو کښې ملاؤ شوه نو د هغې نه یاجوج ماجوج قوم پیدا شو. دا روایت امام نووی رحمه الله حکایت کړې دې. [3] مګر په حقیقت کښې دا واهیات روایت دې عقل او ذوق سلیم داسې واهیات روایات څنګه قبلولې شي؟ نقلاً هم داسې کیدل مستبعد دی ځکه چه د حدیث نه ثابت دی چه انبیاء کرامو ته هیڅ کله هم احتلام نه شي کیدې. [4]

**د امام نووی رحمه الله قول او په هغې باندې د حافظ ابن کثیر رحمه الله رد:** د حیرانتیا خبره دا ده چه د امام نووی رحمه الله غوندې محدث دا روایت د جمهور علماؤ طرف ته منسوب کړې دې. حافظ ابن کثیر رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې سخت رد کړې دې. حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی: «ومن زعم أن یأجوج ومأجوج خُلقوا من نطفة آدم حین احتلم، فاختلطت بتراب فخلقوا من ذلك، وأنهم لیسوا من حواء، فهو قول حکاه الشیخ أبوزکریا النواوی فی شرح مسلم وغیره وضعفوه، وهو جدیر بذلك، إذلا دلیل علیه، بل هو مخالف لما ذکرنا من أن جمیع الناس الیوم من ذریة نوح بنص القرآن، وهکذا من زعم أنهم علی أشکال مختلفة وأطوال متباینة جدا، فمنهم من هو کالنخلة السحوق، ومنهم من هو غایة فی القصر، ومنهم من یفترش أذنا من أذنه ویتغطی بالأخری، فکل هذه أقوال بلا دلیل ورجم بالغیب بغیر برهان، والصحیح أنهم من بنی آدم وعلی أشکالهم وصفاتهم.» [5]

یعنی د بعض خلقو رائې ده چه کله آدم علیه السلام ته احتلام اوشو او د هغه نطفه په خاورو کښې ملاؤ شوه نو د هغې نه یاجوج ماجوج پیدا شو او هغه د حواء د بطن نه نه دی. دا قول علامه نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې نقل کړې دې. د هغوی نه علاوه نورو علماؤ د دې قول تغلیط کړې دې او حقیقت دادې چه دا قول هیڅ کله د دې قابل نه دې چه په دې باندې د صحیح باور او کړې شي. ځکه چه د نص نه ثابته ده چه د موجوده انسانی مخلوق هر کس د حضرت نوح علیه السلام د اولاد نه دی. دغه شان دا قول هم بلا حجت دې چه یاجوج ماجوج د مختلف شکلونو او قد و قامت مخلوق دې چه بعض د کهجورو د اوږدې ونې په شان او بعض ټیټ قد والا دی. په دوی کښې بعض خپل یو غوږ خور کړې او بل اغوندی. حقیقت دادې چه هغوی د عام بنیادمو په شکل دی. او شکل او صورت او بدنی اوصاف کښې د عامو انسانانو په شان دی.

کعب احبار رحمه الله د اسرائیلی روایاتو او غرائب لونی عالم وو. دغه شان قصې به هغه د خلقو د خوشحالولو د پاره بیانولې. د یاجوج ماجوج باره کښې د پورته ذکر شوو غرائب سرچینه او بنیاد د کعب نقل کړې شوی روایات دی.

---

[1] البحر المحیط سورة الکهف، الآیة: ۸۳ – ۱۱۰، ۱٥٤/٦ دار الکتب العلمیة.

[2] البدایة والنهایة، ذکر أمتی یاجوج ومأجوج وصفاتهم....إلخ: ٥٥٣/٢ دار هجر للطباعة.

[3] شرح صحیح مسلم للنووی کتاب الإیمان باب کون هذه الأمة نصف أهل الجنة: ۹۸/۳ المطبعة المصریة بالأزهر.

[4] عمدة القاری: ۳۲۰/۱٥ دار الکتب العلمیة.

[5] البدایة والنهایة للحافظ ابن کثیر: ٤۹۸/٢ دار المعرفة بیروت، فتح الباری: ۱۰۷/۱۳ دار المعرفة.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «ووقع في فتاوي محي الدين: إن يأجوج ومأجوج من أولاد آدم لامن حواء عند جماهير العلماء فيكونون إخواننا لأب كذا قال، ولم نرهذا عن أحد من السلف إلا عن كعب الأحبار، ويرده الحديث المرفوع أنهم من ذرية نوح، ونوح من ذرية حواء قطعا» (۱) يعنی د علامه محي الدين نووي رحمه الله فتاوي کښې دی چه د جمهور علماؤ په نيز ياجوج ماجوج د حضرت آدم علیه السلام اولاد دي د حوا د بطن نه نه دی. دغه شان هغوی زمونږ علاتی رونړه جوړيږی. مګر مونږ د کعب احبار رحمه الله نه علاوه د اسلافو نه د چا نه دا روايت نقل کړی نه دي ليدلي. په يو مرفوع روايت سره د دې ترديد هم کيږی په کوم کښې چه دی چه ياجوج ماجوج د نوح علیه السلام د نسل نه دی او دا قطعي خبره ده چه حضرت نوح علیه السلام د حضرت حوا بی بی د نسل نه دی.

او په کوم روايت کښې چه دا ونيلی شوی دی چه حضرت آدم علیه السلام ته احتلام شوي او د هغه د منی ماده په خاورو کښې يو خائی شوي او د هغې نه ياجوج ماجوج تخليق شوی نو دا حقيقت دي چه دا روايت بالکل بې اصل دي. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله د دې ترديد کولو سره فرمائي: «هو قول منكر جدا لا أصل له إلا عن بعض أهل الكتاب». (۲)

**د ياجوج ماجوج د تسميه وجه:** د جمهور قراء او اهل لغت په نيز ياجوج ماجوج غير مهموز الفاظ دی. امام عاصم رحمه الله به دواړه مهموز لوستل. دا دواړه الفاظ «أجيج النار» نه اخستی شوی دی. أجيج اور ته ونيلی شی لکه چه ياجوج ماجوج د هغوی د کثرت او شدت او په خپل مينځ کښې د قتل مقاتلې د وجې نه اور سره تشبيه ورکړې شوې ده. (۳) د تاريخ مذهب او اديان په کتابونو کښې د هغوی نوم ګاګ ميګاګ، غوغ ماغوغ ملاويږی. چه د تصرف نه پس عربی ژبه کښې ياجوج ماجوج جوړ شو. (۴)

**د ياجوج ماجوج نسب:** حضرت وهب بن منبه رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله فرمائي: «يأجوج ومأجوج من ولد يافث بن نوح» (۵) يعنی ياجوج ماجوج دواړه قبيلې د يافث بن نوح د اولاد نه دی. حافظ ابن جوزی رحمه الله دا قول جزم سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما طرف ته منسوب کړی دي (۶) او د اکثر علماء متاخرين رائي هم دغه ده (۷)

د اکثر مؤرخينو په نيز منګوليا (ترک) د تاتاريانو او روسيانو تعلق د ياجوج ماجوج د نسل نه دی. دې قومونو په مخ د زمکې د وينو تويولو او قتل او تباهئی بازار ګرم کړی او د خپلو علاقو د حدود نه وتلو سره د نورو زمکې په کومه بې دردئی سره تباه او برباد کړی د هغې نه ثابتيږی چه دا هم د هغه ياجوجي جبلت نتيجه وه. علامه ابن اثير رحمه الله ليکي: «وقد اختلف الأقوال فيهم، والصحيح أنهم نوع من الترك، لهم شوكة، وفيهم شر، وهم كثيرون، وكانوا يفسدون فيما يجاورهم من

---

(۱) فتح الباري: ۱۰۷/۱۳ دار المعرفة.

(۲) فتح الباري: ۲۸۶/۲ دار المعرفة.

(۳) قال العلامة النووي: وأما يأجوج ومأجوج فهما غير مهموزين عند جمهور القراء، وأهل اللغة، وقرأ عاصم بالهمز فيهما، وأصله من أجيج النار، وهو صوتها وشررها، شبهوا به لكثرتهم وشدتهم واضطرابهم بعضهم فى بعض. انظر شرح النووى على مسلم كتاب الإيمان، باب فى قوله: يقول الله لآدم: أخرج بعث النار من كل ألف تسع، بيان كون هذه الأمة نصف أهل الجنة: ۹۸/۳ المطبعة المصرية بالأزهر.

(۴) فيض الباري: ۳۵٤/٤ مكتبة رشيدية.

(۵) تفسير الثعلبي سورة الكهف: ۱۵۲/٤ دار الكتب العلمية، وشرح النووى على صحيح مسلم، كتاب الإيمان باب قوله: (يقول الله لآدم: أخرج بعث النار من كل ألف تسع) بيان كون هذه الأمة نصف أهل الجنة: ۹۸/۳.

(۶) زاد المسير: ۱٤۰/۳ سورة الكهف الآية: ۹۲ – ۹۸ دار الكتب العلمية.

(۷) تفسير القرطبي: ۵۶/۱۱ دار الكتب المصرية بالقاهرة، وتفسير مقاتل بن سليمان: ۶۰۱/۲ تفسير الثعلبي: ۱۹۳/۶ فتح القدير للشوكاني: ۳۶۸/۳.

الأرض ويخربون ماقدروا عليه من البلاد، ويؤذون من يقرب منهم». [1] يعني د ياجوج ماجوج باره کښې مختلف اقوال نقل دي صحيح دا دي چه هغه د ترکيانو يو قسم دي. طاقتور دي او د شرفساد والا دي او په کنړ شمير کښې دي. د خاوندانو په زمکو کښې فساد خوروي او په کوم ملک چه قبضه اوکړي هغه برباد کوي. ګاونډيانو ته تکليف ورکوي هم دغه رائې د علامه ابن خلدون رحمه الله هم ده چه ياجوج ماجوج ټولې قبيلې د ترک خاندان نه دي [2] علامه انورشاه کشميري رحمه الله په عقيدة الاسلام کښې ليکلي دي چه اهل روس او اهل برطانيه هم د ياجوج ماجوج اولاد دي. [3]

**ايا د "سد" په ابادولوسره ياجوج ماجوج قيد کړې شوې وو؟**: دلته اشکال پيدا کيږي چه ذوالقرنين د ياجوج ماجوج مخې ته "سد" جوړولوسره د هغوی د راوتلو لار ختمه کړې وه نو ترک، چيک، روس او برطانيه پورې د هغوی قبائل څنګه اورسيدل؟

دا اشکال د مشهورې مغالطې د وجې نه پيدا شوې دي. سورت کهف کښې د "سد" ذوالقرنين باره کښې اوفرمائيل: ﴿فَمَا اسْطَاعُوا أَن يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا﴾ يعني ذوالقرنين د دوو غرونو په مينځ کښې د ياجوج ماجوج شر فساد او ظلم وستم نه نور خلق بچ کولو د پاره د هغوی د راوتلو لار بندولو د پاره چه کوم "سد" جوړ کړو ياجوج ماجوج نه په هغې باندې راختلې شو او نه ئې په هغې کښې سورې کولې شو. په هغې کښې د هيڅ قسم ردوبدل نه شو کولې. په دې آيت سره دا او ګڼړلې شو چه د سد په تعمير سره د ياجوج ماجوج د وتلو ټولې لارې بندې شوې او هغوی د يو مخصوص علاقې د حدود نه بهر نه شي وتلې حالانکه د سورت کهف په يو آيت کښې هم په صراحت سره يا په اشارې سره د دې خبرې ذکر نشته چه د سد ذوالقرنين د وجې نه ياجوج ماجوج په ځلور واړه طرفونو سره راګير کړې شوي دي.

حقيقت دا دې چه ذوالقرنين د ياجوج ماجوج د وتلو هغه لار بنده کړې وه چرته چه د ظلم ښکار قبائلو کلي آباد وو. دا قبائل د ياجوج ماجوج د حملونه ويريدلې وو هغوی د ياجوج ماجوج د شر فساد نه بچ کيدو د پاره ذوالقرنين ته درخواست کړې وو چه هغه دې زمونږ د حفاظت انتظام اوکړي. نو دا سد ذوالقرنين هم د هغوی په علاقه کښې نيزدې دره کښې قائم کړې وو. د نورو طرفونو نه د وتلو لارې هوارې وې. ياجوج ماجوج هم په دغه لارو باندې وخت په وخت وتلو سره د نورو علاقو طرف ته مخ کولو سره هلته آباديدل چنانچه علامه انورشاه کشميري رحمه الله اوفرمائيل چه د ياجوج ماجوج د خروج وخت په وخت په مختلفو ادوارو کښې کيدلو. «لهم خروج مرة بعد مرة». [4]

دغه شان ياجوج ماجوج نورو ملکونو کښې سکونت اختيارولو سره د هغه ځائې مهذب او متمدن قومونو سره مودو پورې د ګډون کيدو په وجه په هغوی کښې ضم کيدل او د هغوی د تهذيب او تمدن حصه جوړيدو سره خپل وحشت او فسادي کيدل هير کړل. لهذا لرې نه ده چه اهل برطانيه، اهل چين او روسيان د ياجوج ماجوج متمدن اولاد وي. ځوکه وحشي انسان هر څومره متمدن شي د هغه د جبلت رګ چه کله په بعض موقعو باندې ټوپ وهي نو د هغه خپل اصليت طرف ته راتلو کښې وخت نه لګي. روس، برطانيه او چين مشهور استعماري قومونه پاتې شوي دي. د استعمار په لاره هغوی په نورو ملکونو باندې قبضه کولو سره هلته د ظلم او استبداد کوم د وينو ډک تاريخونه ليکلي دي هغه د دوی په ياجوجي جبلت باندې ګواه دي

---

[1] الكامل في التاريخ ذكر الإسكندر ذي القرنين: ٢١٨/١ دار الكتب العلمية.

[2] تاريخ ابن خلدون: ١٠/٢ دار الكتب العلمية.

[3] رسائل العلامة الكشميري، عقيدة الإسلام: ٣٦٠/٢ فيض الباري: ٣٥٤/٤ مكتبة رشيدية.

[4] رسائل العلامة الكشميري، عقيدة الإسلام: ٣٦٣/٢.

**دَ مشهور مغالطي رد:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دَ ذوالقرنين ذكر دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دَ تذكري نه اول كړي دي. په دې سره امام بخاري رحمه الله دَهغه خلقو په رائې باندې ردكول غواړي. څوك چه دَ يونان سكندر مقدوني په ذوالقرنين باندې يادوي.[1]

چونكه اسكندر يوناني دَ حضرت عيسى عليه السلام دَ زمانې سره نيزدې وو په دې وجه بعض حضراتو ته مغالطه شوې او په قرآن پاك كښې چه دكوم ذوالقرنين ذكر دې دَهغې نسبت سكندر يونان مقدوني طرف ته كولوسره هم دې ذوالقرنين ګڼړي. حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې مغالطې مختلف وجوهات ذكركړي دي: ① په قرآن پاك كښې ذكرشوى ذوالقرنين دَ عظيم الشان او وسيع الاطراف مملكت حاكم پاتې دې اودَ سكندر يونان دَ سلطنت حدونه هم وسيع وو. ② بله وجه داده چه سكندر يونان په يووخت دَ روم اوفارس بادشاه پاتې دې په دې وجه ده له هم دَ ذوالقرنين لقب وركړې شو.

③ دريمه وجه هغوى دا خودلې ده چه دَمحمد بن اسحاق سيرت ته بې پناه شهرت حاصل دې هغه په خپل سيرت كښې دَ ذوالقرنين نوم سكندر نقل كړې دې په دې وجه دغه مغالطې ته شهرت حاصل شو.[2]

څه دَ تعجب خبره نه ده چه سكندر مقدوني ته هم ذوالقرنين وئيلې شي. پخواني عربي ادب كښې دَنورو بادشاهانو دَپاره هم دَ ذوالقرنين لقب استعمال شوې دې. دَعربو شاعرانو په شعرونوكښې دَ دې مختلف مثالونه ملاوېږي. دَ يمن بادشاهانو ته به تبع وئيلې شو لكه چه دَ روم اوفارس دَ بادشاه دَپاره به بالترتيب قيصر و كسرىٰ القابات استعماليدل. چنانچه دَ يمن تتابعه ته به عرب قوم دَ هغوى دَ حكومت دَ وسعت دَ وجې نه ذوالقرنين وئيل. پخپله دَ يمن يو بادشاه ابوكرب تبع خپل نيكه ته ذوالقرنين وئيلې دې. هغه په شعر كښې دَخپل نيكه تعريف كولو سره وائي: "قدكان ذوالقرنين جدي مسلما ملكاتدين له الملوك وتسجد". [3]

يعنې زما نيكه ذوالقرنين مسلمان وو اوداسې دَعظمت والا بادشاه وو چه نورو بادشاهان دَهغه دَ حكم منونكي اودَ هغه په مخكښې ښكته وو.

خلاصه دكلام دا چه سكندر يوناني ته دَهغه دَ ماهرانه خوبيانو او دَ ډيرو فتحو په بنياد باندې ذوالقرنين وئيلوكښې څه حرج نشته دې. ليكن په قرآن مجيد كښې راغلې ذوالقرنين ته سكندر يوناني وئيل په هيڅ شان صحيح نه دي. سكندر يوناني كافر اومنكر وو. دَ فساديانو په شان به حمله كونكي كيدلو اودهغوى مال اواسباب به ئې لوټ كول. خو ذوالقرنين يو مسلمان او دالله تعالى نه ويريدونكي بادشاه وو. په امن او آمان قائم كولو او په انصاف كولوكښې په خپله يومثال وو. بيا قرآن مجيد چه دَ ذوالقرنين كوم محاسن او مناقب بيان كړي دي دَهغې په رڼړاكښې سكندر يوناني ته قطعًا په قرآن مجيد كښې راغلې ذوالقرنين نه شي وئيلې. چنانچه حافظ ابن كثير رحمه الله فرمائي: «إن كثيرا من الناس يعتقدون أنهما واحد، وأن المذكور في القرآن هو الذي كان أرطاطاليس وزيره، فيقع بسبب ذلك خطأكبير، وفساد عريض طويل كثير، فإن الأول كان عبدا مؤمنا صالحا، وملكا عادلا، وكان وزيره الخضر، وأما الثاني فكان مشركا وكان وزيره فيلسوفا».[4]

علامه عيني رحمه الله حافظ عبدالبر رحمه الله او نورو مؤرخينو داسلام هم دَدې مغالطې سخت ترديد كولوسره فرمائيلي چه سكندر يوناني او په قرآن كښې راغلې ذوالقرنين دوه جدا شخصيات دي. ذوالقرنين مؤمن او سكندر يوناني

---

[1] فتح الباري: ۴۷۱/۸.
[2] فتح الباري: ۴۷۳/۸.
[3] الجامع الأحكام القرآن للقرطبي: ۴۹/۱۱ البداية والنهاية: ۱۱۳/۲.
[4] البداية والنهاية: ۱۱۴/۲-۱۱۴أخبار الأمم الماضيين. خبرذي القرنين. أنوار البيان. ص: ۵۲۵.

كافر وو. سكندر يونان دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام دَ زماني سړي وو اودَهغه وزير مشهور فيلسوف ارطاطاليس (ارسطو) وو خو ذوالقرنين دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَ زماني سړي وو اوحضرت خضر عليه السلام دَهغه وزير اومشير وو.[1]

قرآن مجيد دَ ذوالقرنين دَ سفر دَمشرق اومغرب صراحت کړي دي خودَ سكندر يونان سوانح او تاريخي كتابونو كښې دَهغه دَ مشرق اودَمغرب دَ سفرونو هيڅ تذكره نشته دي. حضرت انورشاه كشميري رحمه الله فرمائي چه سكندر يونان په سمرقند كښې وو. دارا سره دَهغه جنګ اوشو په كوم كښې چه دارا مړ شو. بيا هغه بالترتيب په اسكندريه او دَ بابل په زمكه باندې حمله اوكړه دواړه ئې فتح كړل اوكابل ته راغلو. دَ دَغه خائې نه راولپنډئي ته متوجه شو اولاړو په ټيكسلا كښې ډيره شو. په آخره كښې سنده ته راغلو او هم دلته په سنده كښې وفات شو.[2]

دَ اكثر متقدمين رائي داده چه ذوالقرنين عربى الاصل[3] اودَ حضرت ابراهيم عليه السلام دَزماني وو اوحضرت خضر عليه السلام دهغوى وزير اومشير وو.[4]

بعض حضراتو تردې خائې تصريح کړې ده چه ذوالقرنين دَحضرت ابراهيم عليه السلام په لاس باندې ايمان راوړې وو.[5] خودا رائې مخدوش ده ځکه چه دَ ذوالقرنين په شان عظيم السلطنت حكمران دَ ابراهيم عليه السلام باندې لاس باندې ايمان قبلول غير معمولي لويه واقعه ده. ولې دا خبره دَ حيراتيا نه ده چه قرآن مجيد دَ ابراهيم عليه السلام مخالف كافر بادشاه مخالفت اودَحق اوباطل په مينځ كښې جنګ اوجدل په پوره تفصيل سره ذكر اوكړې مګر دَ مشارق اومغارب په زمكه باندې حكمراني كونكي داسې بادشاه په دې سلسله كښې هيڅ ذكر اونه کړې شي چه په حضرت ابرهيم عليه السلام باندې ايمان راوړې اودَ هغه تابعدارى او فرمانبردارى كولوسره اظهار كولوسره دهغه مؤيد ثابت شى؟[6]

**دَ ذوالقرنين نوم:** دَ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه دَهغه نوم عبدالله بن ضحاك بن معد بن عدنان دې.[7] حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې حديث سند ضعيف ګرځولې دې اوفرمائيلې دى چه دا نسب دَهغه سابقه قول هم منافى دې دكوم نه چه معلوميږى چه ذوالقرنين دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَ زمانې وو. بالخصوص دَهغه حضراتو دَ قول مطابق چه دَ عدنان اوحضرت ابراهيم عليه السلام په مينځ كښې دَ څلويښت واسطو قائل دې ځكه چه ددې نسب په لحاظ سره به ذوالقرنين دَحضرت ابراهيم عليه السلام په ذريت كښې داخل شى نه چه دَهغه دَ زمانې به جوړيږى.[8]

دَ ابن هشام رحمه الله وغيره په نيز دَ ذوالقرنين نوم مصعب بن عبدالله بن قنان بن منصور بن عبدالله بن الزر بن عون بن نبت بن مالك بن زيد بن كهلان بن سبا بن قحطان حميرى دې.[9]

خوددې قول په رڼا كښې هم هغه دَ حضرت ابراهيم دَ زمانې نه شى كيدې ځكه چه ابن عبدالبر رحمه الله وائى چه: مصعب نه دَ قحطان پورې څوارلس پشت او دَ ابراهيم نه دَ فلج پورې اووه پشت دى حالانكه فلج او قحطان دواړه رونړه دى.[10]

---

[1] البداية والنهاية: ۱۱۳/۲عمدة القارى: ۳۲۱/۱۵دارالكتب العلمية.

[2] فيض البارى: ۲۵۳/٤.

[3] فتح البارى: ٤۷۲/۸.

[4] البداية والنهاية: ۱۱۳/۲أخبار الأمم الماضية، خبر ذى القرنين، دارالكتب العلمية.

[5] البداية والنهاية: ۱۱۳/۲أخبار الأمم الماضية، خبر ذى القرنين، دارالكتب العلمية

[6] قصص القرآن۱۱۷/۳.

[7] البداية والنهاية: ۱۱۳/۲-۱۱۲دارالكتب العلمية.

[8] فتح البارى: ٤۷۳/۸دارالكتب العلمية.

[9] فتح البارى: ٤۷۳/۸دارالكتب العلمية.

سهیل رحمه الله لیکلی دی چه یو قول دا هم دی چه د ذوالقرنین نوم مرزبان بن مرذبة دی. هم دغه قول ابن هشام رحمه الله د ابن اسحاق رحمه الله نه حکایت کړی دی. په یو بل مقام باندې ابن هشام رحمه الله د ذوالقرنین نوم صعب بن ذی مراثد لیکلی دی. د بعض حضرات وینا ده د ذوالقرنین نوم افریدون بن اسفیان دی. دار قطنی رحمه الله او ابن ماکولا رحمه الله د ذوالقرنین نوم هرمس یا هرویس بنقیطون بن رومی بن لنطی بن کسلوخین بن یونان بن یافث بن نوح لیکلی دی.[1]

د ذوالقرنین ثانی په نوم کښې اتفاق دې چه هغه اسکندر بن فیلبس بن مصریم بن هرمس بن هردس بن میطون بن رومی بن لنطی بن یونان بن ثافث بن یونة بن شرخون بن رومه بن شرفط بن توفیل بن رومی بن الاصفر بن الیقز بن العیص بن اسحاق بن ابراهیم الخلیل دی. حافظ ابن عساکر رحمه الله د ذوالقرنین ثانی (اسکندر یونانی مصری) نسب دغه شان تحریر کړی دې او هم دغه اسکندر ثانی د اسکندریه بانی دې.[2][3]

**د ذوالقرنین د تسمیه وجه:** د هغه لقب ذوالقرنین ولې مشهور شو؟ مؤرخینو د دې مختلف وجوهات بیان کړی دی. ① اول توجیه داده چه د قرن معنی د ښکر ده. عربو به دا د طاقت اوحکومت د پاره په توګه د استعاره استعمالوله. چونکه ذوالقرنین د دوو سلطنتو یعنی روم او فارس حکمران وو په دې وجه هغه ته ذوالقرنین وئیلې شو. دا توجیه غلطه ده ځکه چه د روم او فارس حکمران سکندر مقدونی وو په قرآن کښې راغلې ذوالقرنین نه وو. ښکاره خبره ده چه دواړه جدا جدا شخصیات دی. مګر دا توجیه د ذوالقرنین اطلاق په سکندر مقدونی باندې کولو په صورت کښې قائم کړې شوې ده.

② امام زهری رحمه الله فرمائیلی چه هغه فتوحات کولو سره د مشرق او د مغرب آخری سرته رسیدلې وو. په دې وجه ورته ذوالقرنین اووئیلې شو. دا توجیه هم صحیح نه ده. قرآن مجید کښې د ذوالقرنین د مشرقی او مغربی سفرونو د پاره مغرب الشمس ومطلع الشمس تعبیر راغلې دې. د دې نه دا اخذ کړې شو چه د ذوالقرنین حکومت د مشرق نه تر آخری مغرب پورې محیط وو. د تاریخ نه ثابت نه دی چه یو حکمران په پوره زمکه باندې حکمرانی کړې وی. په دې تعبیر سره د زمکې دواړه طرفونه مراد اخستل صحیح نه دی بلکه په دې سره د ذوالقرنین د حکومت حدود مغربی او مشرقی طرفونه مراد دی.[4]

③ بعض حضرات فرمائی چه ذوالقرنین نجیب الطرفین وو. د اظهار نجابت د پاره په قرنین سره تشبیه ورکړې شوه.

④ اوږد عمر نی وو او دوه قرن یعنی دوه سوه کاله ژوندې وو په دې وجه ورته ذوالقرنین وئیلی شو.[5]

⑤ یو قول دا دې چه ذوالقرنین ته ظاهری او باطنی دواړه علوم ورکړې شوې وو په دې وجه نې ورته ذوالقرنین اووئیل.[6]

⑥ بعض حضراتو فرمائیلی چه په روم او فارس باندې حکومت کولو د وجې نه هغه ته ذوالقرنین وئیلې شوې.[7] د دې دواړو توجیهاتو څه کلک سند نشته په دې وجه د اعتبار قابل نه دی.

---

[1] قصص القرآن: ۱۱۲/۳ دار الإشاعة.
[2] البدایة والنهایة: ۱۱۳/۲-۱۱۲ فتح الباری: ۴۷۳/۸.
[3] البدایة والنهایة: ۱۱۳/۲-۱۱۲.
[4] قصص القرآن: ۱۲۹/۳.
[5] فتح الباری: ۴۷۳/۸.
[6] فتح الباری: ۴۷۳/۸.
[7] فتح الباری: ۴۷۳/۸.

⑦ وهب بن منبه رحمه الله وائي دَهغه په سر کښې دوارو طرفو ته دَ ښکرو په شان دَ تانبې ښکرې شان راوتلې وې. دې توجيه ته حافظ ابن کثير رحمه الله ضعيف اوناقابل اعتماد وئيلې دې.([1])

⑧ دَ حسن بصري رحمه الله قول دې چه ذوالقرنين به هميشه خپل ويښته دوه حصې کول زلفې ئې اوږدې وې. دَ ويښتو پټئې جوړولوسره به ئې په دواړو اوړو باندې اچولې ساتلې. دې دواړو ته قرن سره تشبيه ورکړې شوې ده دې توجيه هم دَ قياس نه زيات حيثيت نشته دې.

⑨ حضرت علي رضي الله عنه فرمائي چه ذوالقرنين يو جابر حکمران ته دَ توحيد دعوت ورکړو په صله کښې بادشاه دَهغه په سر باندې يو طرف ته وار اوکړو زخم سخت وو په دې وجه جوړنه شو او وفات شو. بيا ژوندې کيدو سره ئې بيا دَ توحيد دعوت ورکړو نو بل طرف ته ئې وار اوکړو او شهيد ئې کړو. په دواړو ګذاروئوسره دَهغه دَ سر دواړو طرفو ته دَ زخم نشان وو په دې وجه ورته ذوالقرنين اووئيلې شو.([2])

حافظ ابن حجر رحمه الله دَحضرت علي رضي الله عنه طرف ته منسوب دَدې روايت په سند کښې عبدالعزيز نوم راوي ضعيف ګرځولې دې. خو په دې سند کښې ابوطفيل نومې يو بل راوي دې. سفيان بن عيينه رحمه الله (عن ابن أبي حسين عن أبي الطفيل) په طريق سره دَدې روايت متابعت نقل کړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې متابعت سند صحيح ګرځولې دې.([3])

**دَ ذوالقرنين دَ نبوت باره کښې دَ علماؤ رائې:** سفيان بن عيينه رحمه الله چه کوم متابعت نقل کړې دې نو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه په هغې کښې دَ ذوالقرنين متعلق دا اضافه هم موجود ده چه حضرت علي رضي الله عنه دَ ذوالقرنين باره کښې (لم يكن نبيا ولا ملكا) فرمائيلي، يعني ذوالقرنين نبي يا فرښته نه وو. ليکن په دې باندې اشکال کيږي چه هم دَدې حديث په شروع کښې دي (بعثه الله إلى قومه) په ظاهره دَدې ټکې نه معلوميږي چه ذوالقرنين نبي مبعوث وو. حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې اشکال لرې کولوسره فرمائي که بعث په نبوت باندې محمول نه کړې شي نو دا اشکال به باقې پاتې نه شي. يعني ذوالقرنين مبعوث خو وی البته نبي نه وی.([4]) دَامام بخاري رحمه الله دَ صنيع نه معلوميږي چه دَهغوی په نيزهم ذوالقرنين نبي مبعوث وو. امام فخرالدين رازي رحمه الله خو جزم سره فرمائيلي چه ذوالقرنين نبي وو.([5])

په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې دَعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه رائې داده چه ذوالقرنين نبي وو.([6]) حضرت ابوهريره رضي الله عنه دَ لاعلمئ اظهار کړې دې. دَهغوی قول دې (لاأدري ذوالقرنين كان نبيا أولا) يعني ما ته معلومه نه ده چه ذوالقرنين نبي وو که نه. دَحضرت علي رضي الله عنه قول تيرشوې دې چه هغه دَ ذوالقرنين دَ نبي مبعوث کيدو په صراحت سره نفي کړې ده. اوحافظ ابن حجر رحمه الله دا روايت صحيح هم ګڼړلې دې. چونکه حافظ ابن حجر رحمه الله دَ هغوی دَ نبوت قائل دې په دې وجه په دې قول سره هغه په مشکل کښې پريوتې دې. هغوی (بعثه الله إلى قومه) سره دَ ذوالقرنين په نبوت باندې استدلال کړې دې. بيا دَ روايت دَ دواړو جزونو دَ تعارض لرې کولو پاره دَ تکلف نه کار اخستلو سره داسې تطبيق ورکړې دې چه کله چرې آيت هم په دغه معنی باندې محمول کړې شي چه ذوالقرنين

---

[1] البداية والنهاية: ۱۱۲/۲.

[2] البداية والنهاية: ۱۱۲/۲.

[3] فتح الباري: ۴۷۲/۸.

[4] فتح الباري: ۳۷۲/۸.

[5] التفسير الكبير للإمام الرازي: ۱۶۵/۲۱.

[6] فتح الباري: ۳۷۲/۸ عمدة القاري: ۳۲۱/۱۵ البداية والنهاية أخبار أمم الماضيين، خبر ذي القرنين: ۱۱۱/۱۰ دار الكتب العلمية.

مبعوث من الله خو وی او نبی نه وی نو دَحضرت علی رضي الله عنه دَ روایت دَ اجزاوُ په خپل مینځ کښې چه کوم تعارض راځی هغه به لرې شی. خلاصه دا چه دَ ذوالقرنین په مرد مؤمن کیدو کښې خو هیڅ کلام نشته دې البته دَهغه په نبوت کښې اختلاف دې.[1]

علامه حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله فرمائی دَ ذوالقرنین نوم دَهغه دَ لقب دَ وجې تسمیه اودَ شخصیت دَ تعیین متعلق دَ علماؤ اقوال دومره مضطرب اومختلف دی چه هغه مخې ته کیخودو سره دَ ذوالقرنین دَ شخصیت پته لګول ناممکن کیږی. هم دغه حال دَهغوی طرف ته دَمنسوب واقعاتو او احوالو هم دې. مثلاً دا چه دَ ذوالقرنین دَحضرت ابراهیم علیه السلام په لاس باندې ایمان قبلول. بیا ابراهیم علیه السلام او اسماعیل علیه السلام سره دَ کعبه طواف کول. یو روایت کښې دی چه ابراهیم علیه السلام ته خبر اوشو نو دَ ذوالقرنین دَ استقبال دَپاره راؤوتلو اودَهغه دَپاره نې دَ برکت دعا اوکړه. مولانا صاحب وائی چه که ذوالقرنین دَ ابراهیم علیه السلام دَ زمانې داسې عظیم الشان شخصیت وې نو آیا دا خبره دَ حیرانتیا قابل نه ده چه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام مخالف کافر بادشاه مخالفت اودَ حق اودَ باطل په مینځ کښې معرکې خو دې قرآن پاک دَ شدومد سره ذکر اوکړې. مګر په مشارق او مغارب ارض باندې حکمران داسې بادشاه په دې سلسله کښې هیڅ ذکر نه وی چه دَ ابراهیم علیه السلام په لاس باندې ایمان راوړی اودَ هغه اطاعت او تابعدارئی اظهار کولو سره دَ هغوی مؤید جوړشی. په دې وجه به دا وینا بې ځایه نه وی چه قرآن مرفوع احادیث، تورات او تاریخ کښې په عهد ابراهیمی کښې دننه یا هغې سره نیزدې دَ یوداسې بادشاه ثبوت نه ملاویږی دَ کوم ذکر چه په سورت کهف کښې ذوالقرنین ونیلو سره کړې شوې دې او کوم اقوال او آثار چه په دې سلسله کښې ذکر دی هغه دَ دغه شخصیت دَ تاریخی حیثیت ثابتولو نه قاصر دی.[2]

باب قول الله تعالى: ﴿قَالُوا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ﴾.

قَوْلُ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَيَسْئَلُونَكَ عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ قُلْ سَأَتْلُوا عَلَيْكُمْ مِنْهُ ذِكْرًا ۝ إِنَّا مَكَّنَّا لَهُ فِي الْأَرْضِ وَآتَيْنَاهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا ۝ فَأَتْبَعَ سَبَبًا ۝ -- إِلَى قَوْلِهِ -- آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ﴾ وَاحِدُهَا زُبْرَةٌ وَهِيَ الْقِطَعُ ﴿حَتَّى إِذَا سَاوَى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ﴾ يُقَالُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: الْجَبَلَيْنِ، وَالسُّدَّيْنِ الْجَبَلَيْنِ ﴿خَرْجًا﴾ أَجْرًا ﴿قَالَ انْفُخُوا حَتَّى إِذَا جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ۝﴾ أَصُبُّ عَلَيْهِ رَصَاصًا، وَيُقَالُ: الْحَدِيدُ، وَيُقَالُ: الصُّفْرُ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: النُّحَاسُ. ﴿فَمَا اسْطَاعُوا أَنْ يَظْهَرُوهُ﴾ يَعْلُوهُ، اسْطَاعَ اسْتَفْعَلَ، مِنْ طُعْتُ لَهُ، فَلِذَلِكَ فُتِحَ أَسْطَاعَ يَسْطِيعُ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: اسْتَطَاعَ يَسْتَطِيعُ. ﴿وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا ۝ قَالَ هَذَا رَحْمَةٌ مِنْ رَبِّي فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ﴾ أَلْزَقَهُ بِالْأَرْضِ، وَنَاقَةٌ دَكَّاءُ لَا سَنَامَ لَهَا، وَالدَّكْدَاكُ مِنَ الْأَرْضِ مِثْلُهُ، حَتَّى صَلُبَ مِنَ الْأَرْضِ وَتَلَبَّدَ. ﴿وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ۝ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ﴾/الكهف: ۸۳-۹۹/. ﴿حَتَّى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُمْ مِنْ كُلِّ حَدَبٍ يَنْسِلُونَ ۝﴾/الأنبياء: ۹۶/.

پوره آیت دادې: ﴿وَيَسْئَلُونَكَ عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ قُلْ سَأَتْلُوا عَلَيْكُمْ مِنْهُ ذِكْرًا ۝ إِنَّا مَكَّنَّا لَهُ فِي الْأَرْضِ وَآتَيْنَاهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا ۝ فَأَتْبَعَ سَبَبًا ۝ حَتَّى إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَوَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا ۝ قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ إِمَّا أَنْ تُعَذِّبَ وَإِمَّا أَنْ تَتَّخِذَ فِيهِمْ حُسْنًا ۝ قَالَ أَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُ ثُمَّ يُرَدُّ إِلَى رَبِّهِ فَيُعَذِّبُهُ عَذَابًا نُكْرًا ۝ وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ جَزَاءً الْحُسْنَى وَسَنَقُولُ لَهُ مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا ۝ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ۝ حَتَّى إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَى قَوْمٍ لَمْ نَجْعَلْ لَهُمْ مِنْ دُونِهَا سِتْرًا ۝ كَذَلِكَ وَقَدْ أَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ۝ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ۝ حَتَّى إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِنْ دُونِهِمَا قَوْمًا لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ۝ قَالُوا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَى أَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ۝ قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ۝ آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ﴾

---

[1] إرشاد الساري: ۷/ ۲٦٤.

[2] قصص القرآن: ۳/ ۱۰۸-۱۹۷.

دآيت ترجمه: اوخلق تانه دَ ذوالقرنين باره کښې تپوس کوى. ورته اووايه چه زه اوس دَهغه څه حال تاسو ته اوروم. مونږ هغه ته په زمکه کښې حکمرانى ورکړې وه او هغه ته مو هر قسم سازوسامان ورکړې وو نوهغه يو سازوسامان تيارکړو تردې چه کله نمر دَ ډوبيدو ځائى ته اورسيدو نوهغه نى په يوه ګرمه چينه کښې ډوبيدو وسره اوليدلو اوهلته هغه ته يوقوم هم ملاؤ شو. مونږ (هغه ته) اووئيل اې ذوالقرنين! (تاسره دوه لارې دى) چه يا خودوى ته سزا ورکړه او يا ورسره ښه سلوك اوکړه. ذوالقرنين اووئيل چه کوم خلق ددذوى نه دَ ظلم په لار روان دى هغوى ته خو به مونږ هم سزا ورکوو بيا به هغه دَخپل رب طرف ته واپس راګرځولې شى. بيا به هغه دوى ته نوره هم سخته سزا ورکوى. البته څوك چه ايمان راوړى اونيك عمل کوى نوهغوى ته به هم نيکه بدله ملاويږى او مونږ هم خپل حکم ورکولوخت کښې دَ آسانتى خبره کوو. بيا هغه يو سازوسامان تيارکړو تردې چه کله هغه دَ نمر دَ راختو مقام ته اورسيدو. نوهغه نمر په يوقوم باندې راختلو سره اوليدلو دَچا دپاره چه مونږ دَ نمر نه اخوا څه آړ (پناه) نه وه ايخودې (يعنى دَ نمر شعاګانې په هغوى باندې مخامخ پريوتلې په دې وجه دَ دې ځائى خلق غير متمدن وو او په کولاؤ ميدانونوکښې اوسيدل. واقعه هم دغه شان ده اودَ ذوالقرنين دحال مونږ ته پوره خبر دى. بيا ذوالقرنين يو سازوسامان تيارکړو تردې چه کله هغه دَهغه دوو غرونو مينځ ته اورسيدو نوهغه ته دَ دغه غرونونه اول يو داسې قوم ملاؤ شو چه په خبره نه پوهيدل (يعنى يا خودَهغوى ژبه مختلف وه يا هډو پوهيدل نه په دې وجه وړاندې چه کومې خبرې اترې راځى نوهغه خو به يا دَ يوترجمان په ذريعه شوې وى يا به په اشارو سره شوې وى) هغوى اووئيل اې ذوالقرنين بيشکه ياجوج ما جوج په دې ملك کښې فساد کونکى خلق دى. آيا مونږ ستا دَ پاره څه خراج (ټيکس) مقررکړو په دې شرط باندې چه ته به زمونږ اودَهغوى په مينځ کښې يو ديوال اودروې؟ ذوالقرنين اووئيل زما رب چه ماته کوم اقتدار راکړې دې هم هغه (زما دپاره)بهتر دى. لهذا تاسو خلق (خپل بدنى) طاقت سره زما امداد اوکړئى چه زه ستاسو اودَهغوى په مينځ کښې يو مضبوط ديوال جوړکړم. ماله دَ اوسپنې تختې راوړئى.

**قوله: وَاحِدُهَا زُبْرَةٌ وَهِيَ الْقِطَعُ:** امام بخارى رحمه الله لفظ "زبر" مفرد بيانولوسره دَدې معنى هم بيان کړې چه زبرة قطعه او ټکړې ته وائى يعنى ذوالقرنين قوم ته دَ اوسپنې ټکړې يا تختې راوړلو دپاره اووئيل چه دَ ديوال په جوړولو کښې دَ خښتو يا کانړو په ځائى استعمال شى.[1]

**قوله: (حَتَّىٰ إِذَا سَاوَىٰ بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ):** يعنى تردې چه ذوالقرنين دَ دوو غرونو اوچتې حصې برابرې کړې. په يو روايت کښې سوې قراءت نقل دې. ابوعبيده صدفين معنى ناحيتين بيانوى يعنى دَ دوو غرونو پورتنئى حصې.[2] ابن عباس رضى الله عنهما دَدې تفسير الجبلين سره کړې دې. بل دَ سدين معنى هم جبلين ده. دا قول امام بخارى رحمه الله په صيغه دَتمريض نقل کړې دې. ابن ابى حاتم رحمه الله دا قول عن ابى طلحه عن ابن عباس په طريق سره موصولاً روايت کړې دى.[3] امام کسائى رحمه الله فرمائيلى چه سدين دَ سين فتحه او ضمه دواړو سره لوستل صحيح دى. ابوعمرو بن العلاء رحمه الله وائى که دَ سدين دَ صنعت نسبت دَالله تعالى طرف ته وى نو سين ضمه سره لوستل پکار دى اوکه چرې دَ سړى طرف ته وى نوفتحه سره لوستل پکار دى.[4]

---

[1]) فتح البارى: ۴۷۴/۸.

[2]) مجاز القرآن: ۴۱۴/۱الناشر مکتبة الخانجى بالقاهرة عمدة القارى: ۳۲۳/۱۵دار الکتب العلمية فتح البارى: ۴۷۴/۸.

[3]) تفسير القرآن العظيم لابن أبى حاتم سورة الکهف: ۲۲۸۹/۷رقم الحديث:۱۲۹۷۷ تغليق التعليق: ۱/۴المکتب الإسلامى فتح البارى: ۴۷۴/۸عمدة القارى: ۳۲۴/۱۵.

[4]) عمدة القارى: ۳۲۴/۱۵فتح البارى: ۴۷۵/۸.

(خَرْجًا) أجرًا: آيت دي: ﴿فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَىٰ أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا﴾ يعني خلقو ذوالقرنين ته اووئيل چه آيا مونږ ستاډپاره څه خراج (ټيکس) مقرر کړو په دې خبره باندې چه ته به زمونږ او دَ هغوی په مينځ کښې ديوال جوړ کړې امام بخاري رحمه الله دلته خرجاً تفسير أجراً سره کړې دې. چه دې نه اجرت اومعاوضه مراد دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه دې نه غير معمولي او درنه معاوضه مراد ده.[1]

(﴿قَالَ انفُخُوا ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا﴾ أَصْبُبْ عَلَيْهِ رَصَاصًا، وَيُقَالُ: الحَدِيدُ وَيُقَالُ: الصُّفْرُ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: النُّحَاسُ: دَ اوسپنې خښتې او تختې راوړلې شوې اوهغه ئې په ترتيب او طريقې سره يوځائې کړې دَ دوو غرونو په مينځ کښې ئې درې بندې کړې. دَ تختونه جوړ کړې شوې دا ديوال دومره لوئي او اوچت ووچه دَ دواړو غرونو دَ دواړو غاړو پورې ئې برابر کړو.

دَ حيرانتيا خبره داده چه دَ اوسپنې دومره درنې تختې په دومره اوچتوالي کښې دَ رسولوډپاره چه دَ پورته نه ښکته پورې تول اور وی به ئې څه انتظام کړې وی؟ دَدې تصريح په يوروايت کښې نشته دې. ممکن دی چه دا تختې ذوالقرنين په خپلو لاسونو باندې يوځائې کړې وی اودا دَهغه کرامت وی. والله اعلم. کله چه تختې يوځائې کولو سره ديوال جوړ شو نو په مذکوره آيت کښې دی "ذوالقرنين خلقو ته اووئيل چه په دې کښې اور بل کړئې کله چه اور بل کړې شو نوبيائې اووئيل اوس ماله تانبه (قطر) راوړئې دې دپاره چه په دې اوسپنه ئې واچوو" په تانبه کښې دَ اوسپنې نه زيات صلاحيت وی. بهرحال دَ اور په ګرموالي سره اوسپنه دګرميدونه پس په دې باندې ويلې کړې شوې تانبه واچوله او يو مضبوط ديوال جوړ شو. اودَدې نه بل طرف ته دَ ياجوج ماجوج دَ راوتلو لاره بنده شوه.

امام بخاري رحمه الله لفظ أفرغ معنی أصبب سره کړې ده اودَ قطر معنی ئې رصاص سره کړې ده. أصبب دَ صبَّ يَصُبُّ نه دَمتکلم صيغه ده دَ اوبو اړول دَ پاس نه اچول. نودَ أصبب معنی شوه "زه په دې کښې تانبه اړول غواړم" رصاص سيسې ته وائي. په راء باندې زير او زبر دواړه لوستل صحيح دی.[2]

يوقول دادې چه دَ قطر نه حديد يعني اوسپنه مراد ده او په يو قول کښې دَ قطر معنی صفر بيان کړې شوې ده يعني پيتل.[3] امام بخاري رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړې دې چه دَ قطر نه مراد نحاس يعني تانبه ده.

(﴿فَمَا اسْطَاعُوا أَن يَظْهَرُوهُ﴾ يَعْلُوهُ. آيت دې ﴿فَمَا اسْطَاعُوا أَن يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا﴾ يعنی ياجوج ماجوج نه په دغه ديوال دَ ختلو طاقت لرلو او نه ئې په هغې کښې چاؤدې کولې شو. امام بخاري رحمه الله دَ يظهروه معنی يعلوه سره کړې ده يعنی هغوی په دغې باندې نه شي ختلې. په عربي محاوره کښې دا لفظ دَ ورختلو په معنی کښې هم استعماليږي. وئيلې شي (ظهرت فوق الجبل).[4]

أَسْطَاعَ اسْتَفْعَلَ، مِنْ طُعْتُ لَهُ، فَلِذَلِكَ فُتِحَ أَسْطَاعَ يَسْطِيعُ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: أَسْطَاعَ يَسْطِيعُ. (﴿وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا﴾): مقصد دادې چه اسطاعوا مفرد اسطاع په فتحه دَ همزه او سکون دَ سين دې او طوع نه أجوف دَ واوي صيغه ده. دې نه دَاستفعال صيغه جوړولو سره تحقيقاً تا حذف کړې شوې ده اودَدې حرکت فتحه همزه ته ورکړې شوه نو اسطاع جوړ شو. فلذلك فتح نه هم دې طرف ته اشاره ده.[5] امام بخاري رحمه الله فرمائي چه بعض حضرات دَتاء حذف کولو نه بغير استطاع لولي.[1]

---

[1]) عمدة القاري: ١٥/٣٢٤.

[2]) عمدة القاري: ١٥/٣٢٤.

[3]) الجامع لأحكام القرآن سورة الكهف: ١٣/٣٨٨مؤسسة الرسالة عمدة القاري:١٥/٣٢٤.

[4]) عمدة القاري:١٥/٣٢٤فتح الباري: ٨/٤٧٥.

[5]) عمدة القاري: ١٥/٣٢٤.

قوله: ﴿قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي ۖ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ﴾: دَ ناقابلِ تسخر سد يعني ديوال دَ جوړولونه فارغيدونه پس ذوالقرنين د الله تعالى طرف ته متوجه كيدو سره وائي چه دا زما دَ رب دَ مهربانئي نتيجه ده خوچه كله دَ رب وعده راشي نوهغه به دا راګذار كړي او ټكړې ټكړې به ئې كړي.

اَلرَّقَةُ بِالْأَرْضِ: دا دَ جعله دكاء تفسير دي. لزق لزوقا په معنى كښي دي زمكې سره اينختل يا ملاويدل اودلته دَ افعال صيغه ده يعني اينخلول يا ملاوول يعني الله تعالى به دا ديوال راګذار كړي زمكې سره به ئې هوار كړي لكه چه په زمكه باندې هډو څه نشيب نه وي.[۲]

وَنَاقَةٌ دَكَّاءُ لَاسَنَامَ لَهَا: "دك يدك" په معنى كښي دي ټكول رانړول ورانول اوديكه وركول. دَكُّ الأرض: دَزمكې ښكته والي لرې كول اوهوارول.[۳] دا معنى ثابتولو دپاره امام بخاري رحمه الله محاوره نقل كړې ده چه دكومې اوښې خيټه هواره وي او په هغې باندې قب نه وي هغې ته ناقة دكاء ونيلى شي.

وَالدَّكْدَاكُ مِنَ الْأَرْضِ مِثْلُهُ، حَتّٰى صَلُبَ مِنَ الْأَرْضِ وَتَلَبَّدَ: دكداك هم دَدې نه دې يعني هغه زمكه چه هواره شوې وي اوسخته وي. علامه جوهري رحمه الله وائي (والدكداك من الرمل ماتلبد منه بالأرض ولم يرتفع)[۴] يعني دكداك هغه شګې ته وائي چه خاورې سره يوځائې شي اوكلكيدو سره دَ هوارې زمكې په شان شي.

(وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ۝ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ): دَ آيت اوله حصه ده: ﴿ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ ۖ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ۝﴾ يعني چه كله زما دَ رب وعده راشي نوهغه به دا ديوال راغورځوي او زمكې سره به ئې هوار كړي اوزما دَ رب وعده بالكل په حق ده هغه به پوره كيږي.

دلته دَ ذوالقرنين كلام ختميږي. دې نه مخكښې آيت كښې دي: ﴿وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ﴾ اوموږ به پريږدو بعض په هغه ورځ چه هغوى به دَ موجونو يعني چپو په شان يو بل سره جنګيږي. مطلب دا چه قرب قيامت كښې دحضرت عيسى عليه السلام دَ نزول نه پس ياجوج ماجوج به دَ سيلاب په شان راوځي اودَ هريو اوچت غر نه به په تيريږي راځي اودكثرت په وجه به دَ يوعظيم الشان فوج په شان وي. دَ يو بل نه دَ وراندې كيدو په كوشش كښې به ګډوډ كيږي.[۵] بعض حضراتو ونيلي دي چه دې نه دقيامت ورځ مراد ده چه په هغه ورځ به دَنفسي نفسي آوازونه راوچتيږي. هريو كس ته به خپل فكر وي اودَ ګربړ په حالت كښې به خلق اخوا ديخوا منډې وهي اوپه يو بل باندې به ګډوډ كيږي. اولنئ قول راجح او قرين قياس دې.[۶]

﴿حَتّٰى إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ ۝﴾: ترديې چه كله ياجوج ماجوج كولاؤ كړې شي اوهغه (دَ ديرزياتوالي دَ وجې) دَ هر اوچت ځائي (يعني غونډو او غرونو) نه راوتونكي (معلوميږي).

دَ إذا جواب څه شئ كيدې شي؟ په دې كښې مختلف اقوال دي. يو قول دادې. (واقترب الوعد الحق)، دَدې جواب دې او په شروع كښې واؤ زائده دې لكه چه (حتى إذا جاءوها وفتحت أبوابها) كښې واؤ زائده دې؟[۷] بعض حضراتو فرمائيلي

---

[۱]) إرشادالساري:۷/۲۶۵.

[۲]) عمدة القاري: ۱۵/۳۲۵فتح الباري:۸/۴۷۵.

[۳]) تاج العروس من جواهر القاموس: ۳۷/۱۵۰التراث العربي، مختار الصحاح: ۱/۲۱۸مكتبة لبنان بيروت.

[۴]) عمدة القاري:۱۵/۳۲۵.

[۵]) روح المعاني:۱۶/۴۷۴.

[۶]) عمدة القاري: ۱۵/۳۲۵.

[۷]) المرجع السابق.

دي چه په وړاندې آيت كښې دی ﴿يَاوَيْلَنَا﴾ په دې كښې يَاوَيْلَنَا دَ إذا شرطيه جواب دې اوتقدير عبارت دادې: (قَالُوا يَاوَيْلَنَا)([1]) يوقول دادې چه (فَإِذَا هِيَ شَاخِصَة) دَدې جواب دې.([2])

يوقراءت كښې فُتِحَت تشديد سره دې. دې سره دَ سد ذوالقرنين طرف ته اشاره ده چه قيامت سره نيزدې به ديوال مات شي. سره دَدې چه په هغې كښې دَ اول نه چاؤدې راغلي وې. ليكن كوم وخت چه الله تعالى ته منظور وی هغه به بالكل هوار شي او دَ ياجوج ماجوج راوتل به دومره په زيات مقدار كښې كيږي لكه چه دَهرې غونډئ او هر يو غر نه راؤخي راروان دې او په نورو آبادو باندې به ورحمله شي.

ينسلون دَ نسلان نه دې. أي: يسرعون يعني په تيزئ سره به تختى روان به وي.([3])

قرآن مجيدَ ياجوج ماجوج دَ راوتلو پيشنګوئي كړې ده. خودا مسئله دَ مغيبات نه ده. صرف په قياس ګمان او اندازې سره به دې باندې بحث نه شي كيدې. دَ ياجوج ماجوج سره متعلق دَ ذكرشوي آيت نه عموماً دا ګنړلي شي چه ذوالقرنين كوم ديوال جوړ كړې وو ياجوج ماجوج دَهغې دَ وجې نه بالكل راګيرشوي دی. او ديوال به دَ قيامته پورې مستحكم او قائم وی. البته دَ راوتلو وعده كړې شوې وخت به راخی او ذره ذره به شي. كوم حضرات چه په دې غلط فهمئ كښې راګير دی هغوی دَ ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ﴾ ترجمه داسې كړې ده تردې چه ياجوج ماجوج ديوال مات كړی كولاؤ كړې شي" او هم دې سره ﴿فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُۥ دَكَّآءَ﴾ يوځاى كړې شو. لكه چه اندكاك كونكي به هم ياجوج ماجوج وی. دا تفسير د سياق خلاف دې. مونږ دا آيات په يومختلف تناظر كښې ګورو او هم دغه دَ سياق مقتضى هم دې. اول دا اوګورئ چه دَ سد دَ تعمير نه پس دَ ذوالقرنين دَ خولې نه كومه جمله اووتله ﴿هَٰذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُۥ دَكَّآءَ﴾ يعنى دا ديوال خو ډير مستحكم دې په دې كښې څوك چاؤدې نه شي اچولې. ليكن زما دَ رب وعده چه راشي نودا ديوال به ذره ذره شي. دَ الله تعالى وعده په حق ده اودهغې خلاف كيدل محال دی.

په دې جمله كښې دَ ياجوج دَ راوتلو قطعاً ذكر نشته بلكه حقيقت دادې چه په دې كښې خو صرف دَ ديوال دَ استحكام او په دې باندې دَالله تعالى دَ شكر ذكر دې. دغه شان دَ سورت انبياء آيت كښې دَ خروج پيشنګوئی اندكاك سد سره تړل هم بالكل غلط دې. چه ياجوج ماجوج به ديوال ذره ذره كړی راؤخی به حالانكه په دې آيت كښې دَ سد ذره ذره كيدل او بيا دَدې دَ وجې نه ياجوج ماجوج دَ راوتلو هيڅ ذكر نشته دې. ياجوج ماجوج له دَ قيامت دَ قرب علامت بيانولو سره اهميت وركړې شوې په دې وجه دَهغوی راوتل دَ ديوال ماتيدو سره نه دی مقيدكړې شوی بلكه دَ ديوال هډو ذكر نشته. صرف دومره خبرداري نی وركړو چه دَهغوی دَ راوتلو دَ وخت وعده به راخی نو هغوی به په تيزئ سره دَ اوچتو خايونونه ښكته علاقوته راؤخی او ښاريو كښې به خوريږي.([4])

خلاصه دا چه ﴿فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُۥ دَكَّآءَ﴾ كښې وعده سره دَ ياجوج ماجوج خروج موعود مراد نه دې بلكه مقصد دادې چه داسې وخت به ضرور راخی چه دَ سد اندكاك به اوشي او هغوی به راخوشې شي اودَ سورت انبياء آيت ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ﴾ كښې دَ فتح نه دا مراد نه دې چه ديوال به مات كړی راؤبه خی بلكه مراد دادې چه هغوی به په كثرت سره دلې دلې راؤخی لكه چه چرته بند وو او ئن راخلاص كړې شو. عربی محاوره هم ددې مفهوم تائيد كوی. عربی كښې (فتح الجراد) اويلې شي نودَدې مطلب داوی چه ملخ چرته دَ غر په ګوټ كښې پروت

---

[1] ) المرجع السابق.

[2] ) المرجع السابق.

[3] ) عمدة القاري: ۳۲۶/۱۵.

[4] ) دتفصيل دَپاره اوګورئ قصص القرآن: ۱۵۳/۳-۱۴۹.

وو اوس ناڅاپې ډلې ډلې بهر راؤوتل. دَدې مطلب دا نه وی چه ملخان چرته واقعتاً یوځائی کښې راګیرو او اوس هغه خائی کولاؤ کړې شو.(۱)

ترکومې چه سنن ترمذی کښې دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ یومشهور روایت تعلق دې په کوم کښې چه دی یاجوج ماجوج روزانه دیوال کنی بیا چه کله څه حصه باقی باتې شی نو کورونو ته دې ویناکولوسره واپس کیږی چه صبا به مونږ باقی کار پوره کوو مګر انشاء الله تعالی نه وائی. بیا چه کله بله ورځ واپس راځی نو کنستلې شوې دیوال هم په هغه حال کښې وینی یعنی دَ کنستلو نه چه اول څنګه وو هم هغه شان به هغه وینی. داسې به دا سلسله جاری وی تردې چه یوه ورځ به په هغوی کښې دَ چا دَ خولې نه انشاء الله اوځی نو بیا چه کله سحر راځی نو دیوال به په کنستلې شوی حالت کښې وی. هم ددې نه پس به دغه دیوال راګذار کړی او په زمکه کښې به دَ فساد خوروړو لودَپاره راؤځی.(۲)

دَدې روایت صحت مخدوش دې او محدثینو په دې باندې کلام کړې دې. پخپله امام ترمذی رحمه الله دَدې روایت نقل کولونه پس فرمائی (هذا حدیث حسن غریب إنما نعرف من هذا الوجه مثل هذا)(۳) یعنی دا حدیث حسن غریب دې لو داسې حیرانونکې خبرې مونږ هم په دې طریق سند سره پیژنو.

حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې نه په زیات وضاحت سره په دې روایت باندې کلام کړې دې. دَهغوی په نیز دا روایت دَاسرائیلی روایاتو دَقبیل نه دې کوم چه به کعب احبار رحمه الله دَ خوشحالئی په خاطر نقل کول. حافظ ابن کثیر رحمه الله وائی دا حدیث منکر دې او دې ته مرفوع وئیل صحیح نه دی ځکه چه دَ ابوهریره رضی الله عنه دَدې روایت مضمون بعینه دَکعب احبار رحمه الله نه نقل دې.(۴) اندازه داسې ده چه ابوهریره رضی الله عنه به دَ کعب احبار رحمه الله نه اسرائیلی قصص اوریدل. کیدیشی چه دا روایت هم هغوی دَ کعب احبار رحمه الله نه اوریدلې وې او راوی داګنړلې وی چه داَبوهریره رضی الله عنه دا روایت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث دې. حقیقت دا دې چه دا بغیرد راوی دَ وهم نه بل هیڅ نه دی.

خواوس هم یودَ طالب علمئی اشکال پیدا کیږی که چرې دَخروج یاجوج تعلق اندکاک سد سره نه دې بلکه سد خو اول نه دَ اندکاک ښکار شوې دې نو بیا دَ صحیحین دَ دې روایت څه جواب کیدې شی کوم چه په صحیح بخاری کښې وراندې هم دَدې باب لاندې راځی چه یوځل رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ خوب نه بیداریدو سره اوفرمائیل: (لا إله إلا الله ویل للعرب من شر قد اقترب، فتح الیوم من ردم یأجوج ومأجوج مثل هذا وحلق بإصبعه الإبهام والتی تلیها) یعنی دَ عربو دپاره هلاکت دې دَهغه شر نه کوم چه نیزدې شوې دې. نن دَ یاجوج ماجوج دیوال داسې کولاؤ کړې شوې دې او په غټه ګوته باندې یوه ګوته کیخودو سره او ګول حلقه جوړولو سره ئې دَهغه سوری مقدار واضح کړو. په دې روایت کښې دَ یاجوج ماجوج په دیوال کښې دَ سوری کیدل او بیا دا فتح سره تعبیر کول په حقیقت کښې یو مثال دې چه دَحضور پاک دَ وفات نه پس به غیر معمولی فتنې خوریږی.(۵)

دَدې روایت تعلق رښتونی خوب سره دې دَ کوم تعبیر چه نه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نقل دې او نه دَ صحابه کرامو نه په صحیح سند سره ددې تعبیر نقل دې. په دې وجه اکثر محدثینو حضراتو دَدې تعبیر دا بیان کړې دې چه دَدې

---

(۱) قصص القرآن: ۱۵۱/۳-۱۵۰.
(۲) أخرجه الترمذی فی جامعه رقم الحدیث: ۳۱۵۳فی تفسیر سورة الکهف: ۱۴۸/۲ایچ ایم سعید.
(۳) جامع الإمام أبی عیسی الترمذی: ۱۴۸/۲فی تفسیر سورة الکهف ایچ ایم سعید.
(۴) البدایه والنهایه: ۱۲۱/۲.
(۵) البدایة والنهایة: ۱۲۰/۲.

روایت نه حقیقي چاؤدي مراد نه دي بلکه دا دَ شیوع فتن تشبیه او تمثیل دي. ښکاره خبره ده چه په خوب کښې څه خودلي کیږي او مطلب دَهغې څه بل څه وي. یعنې چه اوخودلي شي نو دي نه علم مراد وي.[1]

علامه عیني رحمه الله اوفرمائیل چه (ویل للعرب) نه دَ رسول الله ﷺ دَ وفات نه پس دَ راښکاره کیدونکو فتنو دَ شیوع طرف ته اشاره ده چه دحضورپاك دَ وفات نه فوراً پس فتنو سر اوچت کړو. دَ عربو اودَ قریشو دَ اقتدار داسې افسوس ناك انجام اوشو چه دَهغې اثرات په کلونو باندې روستو راتلونکو اُمتونو باندې پریوتلو.

قاضي عیاض رحمه الله اوفرمائیل په دې روایت کښې دَ یوې حلقې دَ ګوتې برابر چاؤدې هم دَ تقریب فهم دَپاره دي. په حقیقت کښې دَ چاؤدې واقع کیدو ذکر نه دې بلکه مقصد دادې چه دَ ذوالقرنین دَ اوسپنې دیوال اوس نړیدل شروع شوی دی اودَهغې دَ مضبوطیا موده ختمه شوې ده.[2]

هم دغه خبره حافظ ابن حجر رحمه الله هم فرمائي چه دَ رسول اکرم ﷺ دَ وفات نه پس دحضرت عثمان رضي الله عنه دَ قتل یو دَ خفګان نه ډکه واقعه اوبیا دَهغې نه پس دَ فتنو اوفسادونو نه ختمیدونکې سلسله شروع شوه. په حقیقت کښې دَ دې ربښتونی خوب نه هم دَدغه فتنو طرف ته اشاره ده اودا هم داسې دی لکه چه حضورپاك په یوحدیث کښې ارشاد فرمائیلې دي. (یوشك أن تداعی علیکم الأمم کما تداعی الأکلة علی قصعتها)[3]

خلاصه دا چه دَیاجوج ماجوج خروج تعلق اندکاك سره نه دې بلکه دَ سد اندکاك یوه جدا واقعه ده دَکوم خبر چه سورت کهف کښې ورکړې شوې دې چه ذوالقرنین دَ سد په استحکام باندې سرنه ترخپو پورې سراسر شکر جوړیدو سره اوفرمائیل چه اوس به یاجوج ماجوج ددې درې نه دې طرف ته آبادوکښې دَ فساد په غرض سره دَ راتلودَپاره نه په دې باندې ختلې شي او نه په دې کښې کندر کولې شي. البته که زما رب اوغوښتل نودا به ذره ذره کړې اودَ یاجوج ماجوج په قرب قیامت کښې راوتل دَ نورو آبادو طرف ته حمله کول یو مستقل واقعه ده دَ کوم پیشنګوئی چه سورة الأنبیاء کښې کړې شوې ده. هم دغه رائې دَ حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله هم ده.

هغوی فرمائی: (وینبغي أن یعلم أن قول ذي القرنین: ﴿هٰذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي ۖ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ ۖ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا﴾ قول من جانبه لا قرینة علی جعله من أشراط الساعة، ولعله لا علم له بذلك، وإنما أراد وعد إندکاکه، فإذن قوله تعالی بعد ذاك: ﴿وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ﴾ للاستمرار التجددي، نعم، قوله: ﴿حَتَّىٰ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ﴾ .... هو من أشراط الساعة، لکن لیس فیه للردم ذکر. فاعلم)[4]

یعنی په دې نکته باندې دَ پوهیدلو ضرورت دې چه ﴿هٰذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي﴾ دَ ذوالقرنین قول دې او په دې کښې دَ اندکاك ذکر دَقیامت په علامو کښې شمیر کولو باندې څه دلیل او قرینه موجود نه ده. ممکن دی چه پخپله ذوالقرنین ته هم علم نه وی چه خروج دَ یاجوج ماجوج دَ قیامت دَ نښونه دی بلکه ذوالقرنین خو ﴿وَعْدُ رَبِّي﴾ سره په یوه زمانه کښې دَ سد دَ اندکاك کیدل مراد اخستې وی. نو په دې صورت کښې دَ الله تعالی ارشاد ﴿وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ﴾ دَ استمرار تجددی دَپاره دې چه یاجوج ماجوج به دَ خروج موعود پورې په خپل مینځ کښې په جګړه وی البته ﴿حَتَّىٰ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ﴾ دَ قیامت دَ علامونه کیدلو کښې هیڅ شك نشته دې خو بیا هم په دې کښې دَ سد ذکر نشته لهذا په دواړو آیاتونو کښې دا فرق خامخا په خیال کښې ساتل پکار دی

دې نه پس شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه دَ قرآني نص نه ثابته نه ده چه سد دَ ذوالقرنین دَ هرطرف نه احاطه کولو سره هغوی راګیر کړی دی بلکه دیوال خو صرف په یوه غریزه دره باندې جوړ کړې شوې وو. دَ بل طرف درې خو کولاؤ وې دَ کوم څائی نه چه دَ یاجوج ماجوج دَ وتلو لارې هیڅ کله بندې نه وې. حقیقت دادې چه دهغوی راوتل دَ

---

[1] دجالي فتنه کے نمایاں خط وخال، ص: ۲۴۷ مولانا مناظر احسن گیلانی رحمة الله علیه.

[2] عمدة القاري: ۲۲۹/۲.

[3] فتح الباري کتاب الفتن باب یأجوج ومأجوج: ۱۳۳/۱۶.

[4] مجموعة رسائل الإمام الکشمیری عقیدة الإسلام: ۳۶۴/۲.

اول نه وخت په وخت دَ مختلف ډلو په شکل کښې کيږى کيږى او بيا به هم کيږى اود دې آيت نه دا معلوميږى چه کوم قبائل دَ سد ذوالقرنين نه بهر دى اوکوم چه دَ ئنه راګيردى دَهغوى په مينځ کښې پخپله هم خراب تعلقات دى او په يو بل باندې حمله هم کوى او دغه شان دَ هغې خروج هم دَ دغه علاقې نه وخت په وخت کيږى. چونکه آيت د استمرار تجدد دى دَپاره دې په دې وجه دَهغوى آخرى خروج به دَ عيسىٰ عليه السلام دَ نزول په وخت کيږى. (۱)

اوهم دَدې متعلق نى اوفرمائيل ﴿إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ﴾ دانى اونه فرمائيل چه ﴿اذافتحت الردم﴾ ددې نه معلومه شوه چه دَ استمرار تجدد دى سره چه دَهغوى دَ خروج کومه سلسله جارى ده اود هغوى چه کوم راوتل په مختلف ادوار کښې کيږى په دې آيت کښې هم دَهغه آخرى خروج ذکر دې. (۲)

**سدذوالقرنين چرته دې؟**: دَ ياجوج ماجوج شيطانتى او په نورو قبائلو باندې دَهغوى دَ حملو دَ وجې نه دَ تاريخ په مختلف ادوار کښې مختلف ديوالونه تعمير کړې شو. دَ چين ديوال هم دَ هغوى دَ حملو دَ بچاؤ په غرض سره دَخپل وخت بادشاه جوړ کړې وو. خودا هغه ديوال نه دې کوم چه ذوالقرنين جوړ کړې وو. په سد ذوالقرنين کښې دَ اوسپنې اوتانبې استعمال شوې وو دَ چين په ديوال کښې دا خصوصيات نشته دې. بل ديوال په وسط ايشياء کښې دَ بخارا او ترمذ په مينځ کښې واقع دې. هغې ته دربند وائى. دا ديوال مغل بادشاه تيمور لنګ په دور کښې موجود وو. دريم ديوال دربند او باب الابواب په نوم سره دَ روس په علاقه داغستان کښې موجود دې. په دې ديوال کښې دَ اوسپنې کار شوې دې په دې وجه هغې ته باب الحديد هم وائى. دَ عربو اکثر مؤرخينو وئيلى دى چه قرآن مجيد کښې دکوم سد ذکر دې هغه هم دغه دې. (۳)

معجم البلدان کښې علامه ياقوت حموى رحمه الله فرمائى چه واثق بالله خوب اوليدلو چه هغه دغه سد کولاؤ کړې دې. ددې خوب دَ وجې نه هغه فورى پنځوس سړو ته دَ لارې خرچ ورکولوسره دَتحقيق دَپاره روان کړل په لاره کښې هغوى يو غرته اورسيدل دَ کوم په مينځ کښې چه دَ يوې وادئى دره وه. دَ کوم پلنوالې چه يونيم سل لاسه وو هلته يو ديوال جوړشوې وو کوم چه وادى دَ دواړو طرفونو نه يوخائې کړې وه. په دغه ديوال کښې دَ اوسپنې او تانبې کار شوې وو. اوچتوالې ددې پنځوس لاسه وو. په هغې کښې دَ اوسپنې يوه دروازه وه کومه چه تاله کړې شوې وه. دَ اتو مياشتو دَ مودې دَ سفر نه په واپسئى باندې هغوى واثق بالله رحمه الله ته مذکوره ټول تفصيلات بيان کړل. خو علامه ياقوت حموى رحمه الله اوفرمائيل چونکه په رواياتو کښې ډيرزيات اختلاف دې په دې وجه ددې واقعې په صحت باندې يقين نه شى کيدې. (۴)

حافظ ابن کثير رحمه الله اوعلامه ابن خلدون رحمه الله هم ددې واقعې ذکر کړې دې خوعلامه آلوسى رحمه الله فرمائيلى دى چه ثقه مؤرخينو ددې واقعې تضعيف کړې دې اوزما په نيزهم دا قصه دَ خان نه جوړه شوې ده. ځکه چه په دې واقعه کښې کوم تفصيلات ذکر کړې شوې دى هغه دَ آيت مبارك دَ مضمون خلاف دى.

دَ سد ذوالقرنين دَ ځائې وقوع اود هغې دَ تاريخى حيثيت سره متعلق ډيره موزون او متوازن تجزيه علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله کړې ده هغوى فرمائى:

"دې وخت کښې دغه قوم کوم ځائى دې اود ذوالقرنين دَ اوسپنې ديوال کوم ځائى واقع دې؟ نوچه کوم سرې دغه ټول اوصاف په نظر کښې ساتى دکوم ثبوت چه ددغه قوم او دَ اوسپنې دَ ديوال متعلق دَ قرآن او احاديث صحيحه نه ملاويږى هغه به وائى دَ کومو قومونو ملکونو او ديوالونو خلقو په خپله رائې سره پته ورکړې ده دغه ټول اوصاف په يو کښې هم نه شى موندلې. لهذا هغه خيالات صحيح نه معلوميږى اود احاديث صحيحه انکار يا دَ

---

۱) مجموعة رسائل الإمام الكشميرى عقيدة الإسلام: ۲/۳۶۳-۳۶۲.
۲) مجموعة رسائل الإمام الكشميرى عقيدة الإسلام: ۲/۳۶٤.
۳) قصص القرآن: ۳/۱٤۱.
٤) المعجم البلدان: ۳/۲۰۰-۱۹۹والتفسير الكبير للإمام الرازى: ۲/۱۷۰-۱٦۹.

نصوص تاویلات بعیده اوډ دین خلاف دی. پاتې شو د مخالفینو دا شک چه مونږ تول زمکه اولتوله خو چرته هم دذې پته اونه لګیدله اوډ دې شک د جواب دپاره زمونږ مؤلفینو د پتې خودلو کوشش کړې دې. ددې صحیح جواب هغه دې کوم چه علامه آلوسی بغدادی رحمه الله ورکړې دې چه مونږ ته ددې موقع نه ده معلومه اوممکن ده چه زمونږ اوددې په مینځ کښې لوئی سمندرونه واقع وی اودا دعوی کول چه مونږ توله اوچه اولمده باندې محیط شوې دا واجب التسلیم نه ده. عقلاً جائز دی چه څرنګه د نن نه پنځه سوه کاله مخکښې مونږ ته دخلورم براعظم (امریکه) وجود معلوم نه وو نوچه اوس هم یو پنځم براعظم داسې موجود وی ترکوم پورې چه مونږ رسائی حاصله کړې نه وی اولږه موده پس مونږ هلته پورې یا هغه خلق مونږ ته راورسیدې شی. دسمندر عظیم دیوال چه د استریلیا شمال مشرقی ساحل باندې واقع دې. نن صبا برطانوی سائنسدان داکتر سی ایم سینګ د هدایت لاندې دهغې تحقیقات جاری دی. دا دیوال د زرو میلونه اوږد او په بعض مقاماتو باندې دولس میله پورې پلن او زر فټه اوچت دې. په کوم چه بې شمیره مخلوق اوسیږی. کوم مهم چه ددې کارډ پاره روان کړې شوې وو حال کښې اوس هغوی د یوکلیز تحقیقات ختم کړی دی. په کوم سره چه د سمندر عجیبه او حیرانونکې رازونه ښکاره شوی دی او انسان ته د حیرت او استعجاب یوه نوې دنیا معلومیږی. بیا څنګه دعوی کولې شی چه مونږ ته د اوچې اولمدې د ټول مخلوق مکمل انکشافات حاصل شوی دی.[1]

قَالَ قَتَادَةُ: حَدَبٍ أَكَمَةٍ، قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم: رَأَيْتُ السَّدَّ مِثْلَ الْبُرْدِ الْمُحَبَّرِ، قَالَ: (رَأَيْتَهُ).

د حضرت قتاده رحمه الله دا تفسیر محدث عبدالرزاق رحمه الله په خپل سند سره موصولاً نقل کړې دې دکوم الفاظ چه دادی: (أخبرنا معمر عن قتادة في قوله تعالى: ﴿ حَتَّىٰ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ ﴾ قال من كل أكمة).[2]

**قوله: حدب: أكمة**: حَدَبٌ: بتحريك الثلاثة: ما ارتفع وغلظ من الظهر، یعنی حدب په ملا کښې پیدا کیدونکې لوروالی او اوچتوالی ته وائی. او په حدیث یاجوج ماجوج کښې دحدب نه مراد لوړوالی او اوچتوالی دی[3] لکه چه حضرت قتاده رحمه الله لفظ حدب نه أكمة یعنی غونډئی سره تعبیر کړې دې[4] أكمة مفرد دې اوددې جمع إكام (په کسره د همزه) راځی. ددې معنی اوچتوالی ده.[5]

**قوله: قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم رَأَيْتُ السَّدَّ مِثْلَ الْبُرْدِ الْمُحَبَّرِ قَالَ رَأَيْتَهُ**: رسول الله صلى الله عليه وسلم ته یو سړی عرض اوکړو چه ما سد ذوالقرنین لیدلې، چه کرخو والا دنقش دار څادر په شان وو. حضورپاک اوفرمائیل تا یقینا چه هغه لیدلې دې.

**قوله: الْمُحَبَّرِ: مُحَبَّرٌ** یعنی څادر ته وئیلی شی په کوم کښې چه یوه کرخه د سپین تار او یوه د تور تار یاد سور تار نه جوړولې شوه.[6]

**دتعلیق تخریج**: دا تعلیق ابن ابی عمر رحمه الله د سعید عن قتاده په طریق سره موصولاً روایت کړې دې په دې کښې دی: (أنه قال للنبي صلى الله عليه وسلم: يا رسول الله! قد رأيت سد ياجوج وماجوج! قال: كيف رأيته؟ قال: مثل البرد المحبر طريقة حمراء وطريقة سوداء قال: قد رأيته).[1]

---

[1] تفسیر عثمانی ص:۴۰۵.

[2] تغلیق التعلیق: ۱۲/۴ المکتبة الأثریة.

[3] النهایة لابن الأثیر: ۳۴۲/۱.

[4] فتح الباری: ۳۷۵/۸.

[5] النهایة لابن أثیر: ۷۰/۱.

[6] لسان العرب: ۱۵۹/۴ دار صادر، بیروت، المعجم الوسیط ص:۱۵۱ - ۱۵۲ مکتبة الشروق الدولیة.

امام طبراني رحمه الله او بزار رحمه الله هم دا تعليق موصولاً نقل کړې دې. دَ امام طبراني رحمه الله په روايت کښې عن سعيد بن بشير عن قتاده په طريق سره نقل دې. په هغې کښې دي: «أن رجلاً أتى النبي صلى الله عليه وسلم، فقال: إني قد رأيته ـ يعني: السد ـ فقال: كيف هو؟ فقال: هو كالبرد المحبر، قال: قد رأيته. قال: وحدثناه عن قتادة أنه قال: طريقة حمراء من نحاس، وطريقة حمراء من حديد» (۲)

يعني يوسړي عرض اوکړو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ما دَ ذوالقرنين ديوال ليدلې دې. حضور پاک اوفرمائيل چه تا څنګه ديوال ليدلې؟ هغه عرض اوکړو کرخوالا دَ نقش دار څادر په شان. حضور پاک اوفرمائيل تا رښتيا اووئيل. حضرت قتاده فرماني چه دغه سړي دا هم اووئيل چه په هغې کښې يو دَ تانبې او يو يو دَ اوسپنې خښته يوځائې کړې شوې وې.

امام بزار رحمه الله دا روايت دَ يوسف بن ابى مريم الحنفى عن ابى بكرة په طريق سره روايت کړې دې. په هغې کښې دي: «أتيتُ رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: صفه لي، فقلت: كأنه البرد المحبر. فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من سره أن ينظر إلى رجل قد أتى الردم فلينظر إلى هذا» (۳)

يعني په آخره کښې امام بزار رحمه الله فرماني چه زمونږ دَ علم مطابق دا روايت حضور پاک بغير دَ ابوبکر رضى الله عنه نه بل چا نه نه دې روايت کړې اونه ددې روايت دَ ابوبکر رضى الله عنه دَ طريق نه علاوه څه بل طريق مونږ پيژنو.

**دَ تعليق مقصد:** دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په حواله سره وړاندې تيرشوی دی چه ددې باب لاندې ذکرکړې شوې آياتونو او احاديث او تعليق نه دَ امام بخاري رحمه الله مقصد دَ ياجوج ما جوج تذکره اودَ هغوی دَ کثرت طرف ته اشاره کول دی. بل په هغه خلقو باندې رد کول دی څوك چه ياجوج ما جوج په ذريت آدم عليه السلام کښې نه شمير کوی. (۴)

**دَ تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ تعليق ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې چه په ترجمة الباب کښې دَ ياجوج ما جوج تذکره ده او په تعليق کښې دَ هغوی دَ فسادونو اوشرونونه دَ بچ کيدو دَ پاره جوړ شوی ديوال تذکره ده.

[۳۱۶۸] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ، حَدَّثَتْهُ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ بِنْتِ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُنَّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، دَخَلَ عَلَيْهَا فَزِعًا يَقُولُ: «لاَ إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ، فُتِحَ اليَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ» وَحَلَّقَ بِإِصْبَعِهِ الإِبْهَامِ وَالَّتِي تَلِيهَا، قَالَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ: أَنَهْلِكُ وَفِينَا الصَّالِحُونَ؟ قَالَ: «نَعَمْ إِذَا كَثُرَ الخَبَثُ» [ص ۲۳۷] [۳۴۰۳، ۶۶۵۰، ۶۷۱۶] (۵)

---

(۱) تغليق التعليق: ۱۲/۴ فتح الباري: ۸۷/۸

(۲) مسند الشاميين للطبراني: ۷۱/۴ رقم الحديث: ۲۷۵۸ مؤسسة الرسالة.

(۳) مسند البزار، مسند أبي بكرة بقية أبي بكرة: ۱۱۹/۹ رقم الحديث: ۳۶۶۸ مكتبة العلوم والحكم.

(۴) فتح الباري: ۴۸۶/۸.

(۵) أخرجه البخاري أيضاً في المناقب، باب علامات النبوة في الإسلام، رقم الحديث: ۳۵۹۸ وفي الفتن باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: ويل للعرب من شر قد اقترب، رقم: ۷۰۵۹ وباب يأجوج ومأجوج: ۷۱۳۵ ومسلم في الفتن، باب اقتراب الفتن، وفتح ردم يأجوج ومأجوج، رقم الحديث: ۷۲۳۵ والترمذي في الفتن باب ماجاء في خروج يأجوج ومأجوج، رقم الحديث: ۲۱۸۷.

**ترجمه:** ام حبيبه بنت ابى سفيان دَحضرت زينب بنت جحش (ام المؤمنين رضي الله عنها) نه روايت كوي چه رسول الله ﷺ ويريدونكي شان هغې له راغلو (حضرت زينب رضي الله عنها له) په داسې حال كښې چه حضورپاك فرمائيل چه دَالله تعالى نه بغيريل څوك معبود نشته دې بيشكه دَ عربو خرابى په هغه آفت سره راتلونكې ده چه نيزدې رارسيدلې دې. نن دَ ياجوج ماجوج په ديوال كښې دومره سورې اوشو. حضورپاك دَ غتې ګوتې اودَ شهادت والا ګوتې نه حلقه جوړولو سره اوخودل. حضرت زينب رضي الله عنها فرمائى چه ما عرض اوكړو يا رسول الله! آيا مونږ به دَنيكانو خلقو په موجودګئى كښې هم هلاكولې شو؟ حضورپاك اوفرمائيل او! كله چه بدى (بدكارى، فسق اوفجور) زيات خواره شى.

## تراجم رجال

**يحيي:** دا ابوزكريا يحيى بن عبدالله بكير القرشى المخزومى رحمه الله دې. [1]

**الليث:** دا ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې. [2]

**عقيل:** دا عقيل بن خالد بن عقيل ايلى رحمه الله دې. [3]

**ابن شهاب:** دَدوى تذكره بدء الوحى لاندې تيره شوې ده. [4]

**عروة بن الزبير:** دا مشهور تابعى ابوعبدالله عروه بن زبيربن عوام بن خويلد قرشى اسدى مدنى رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه) لاندې تيره شوې ده. [5]

**زينب:** دادَ رسول الله ﷺ ربيبه زينب بنت ابى سلمه عبدالله بن عبد الاسدبن هلال مخزوميه قرشيه رضي الله عنها ده. دَدې تذكره (كتاب العلم باب الحياء في العلم) لاندې تيره شوې ده. [6]

**زينب بنت جحش:** دا ام المؤمنين حضرت زينب بن جحش اسديه رضي الله عنها ده. دَدې حالات (كتاب التهجد باب ما يكره من التشديد في العبادة) لاندې اوګورئى.

**دَ سندخصوصيات:** په دې روايت كښې دَ تحديث صيغه دوو ځايونوكښې جمع سره يوځائى افراد سره او پنځه ځل عنعنه سره راغلې ده. دغه شان په سند كښې دَ امام بخارى رحمه الله شيخ يحيى بن بكير رحمه الله او ليث بن سعد رحمه الله دواړه مصريان دى. عقيل ايلى دې او باقى ټول رواة مدنى دى. دَدې سند يو خصوصيت دادې چه په دې كښې درې راويانې صحابيات دى. [7]

روايت سره متعلق څه تفصيل مونږ شاته كړې دې او مخكښې كتاب الفتن كښې هم په دې باندې نور مباحث راځى.

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث اوترجمة الباب دواړو كښې دَ ياجوج ماجوج تذكره ده. [8]

---

[1] كشف البارى: ۳۲۳/۱.
[2] كشف البارى: ۳۲٤/۱.
[3] كشف البارى: ٤٥٥/۳.
[4] كشف البارى: ۳۲۶/۱.
[5] كشف البارى: ٤۳۶/۲.
[6] كشف البارى: ۶۱۰/٤
[7] عمدة القارى: ۳۲۷/۱۵.
[8] عمدة القارى: ۳۲۶/۱۵.

[٣١٦٩] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «فَتَحَ اللَّهُ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلَ هَذَا وَعَقَدَ بِيَدِهِ تِسْعِينَ» [ص ٢٣٩] [ر: ٦٧١٧] [1]

## تراجم رجال

**مسلم بن ابراهيم:** دا مسلم بن ابراهيم فراهيدى بصرى رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه) لاندې تيره شوې ده. [2]

**وهيب:** دا وهيب بن خالد بن عجلان باهلى بصرى رحمه الله دې [3]

**ابن طاؤس:** دا عبدالله بن طاؤس بن كيسان يمانى رحمه الله دې. دَدوى تذكره تيره شوې ده. [4]

**قوله: فَتَحَ اللَّهُ مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلَ هَذَا وَعَقَدَ بِيَدِهِ تِسْعِينَ:** يعنى ن الله تعالى دَ ياجوج ماجوج ديوال دومره اندازه باندې كولاؤ كړو او حضورپاك عقد انامل كولوسره دَ ٩٠ عدد جوړكړو. دا په حقيقت باندې محمول نه دې چه واقعتاً په دومره اندازه باندې دَ ياجوج په ديوال كښې چاؤدې اوشو. بلكه دا تمثيل دې چه په ديوال كښې چاؤدې كيدل شروع شوى دى او تقريباً دومره سورې په هغې كښې شوې دې. [5]

دې روايت سره متعلق تفصيلى مباحث به دَ كتاب الفتن لاندې راځى.

[٣١٧٠] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: "يَا آدَمُ، فَيَقُولُ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ، وَالخَيْرُ فِي يَدَيْكَ، فَيَقُولُ: أَخْرِجْ بَعْثَ النَّارِ، قَالَ: وَمَا بَعْثُ النَّارِ؟ قَالَ: مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَمِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ، فَعِنْدَهُ يَشِيبُ الصَّغِيرُ، وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا، وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى، وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ" قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَأَيُّنَا ذَلِكَ الوَاحِدُ؟ قَالَ [ص: ٣١٠]: "أَبْشِرُوا، فَإِنَّ مِنْكُمْ رَجُلًا وَمِنْ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ أَلْفًا. ثُمَّ قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، إِنِّي أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الجَنَّةِ" فَكَبَّرْنَا، فَقَالَ: «أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا ثُلُثَ أَهْلِ الجَنَّةِ» فَكَبَّرْنَا، فَقَالَ: «أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا نِصْفَ أَهْلِ

---

[1] أخرجه البخارى أيضاً فى الفتن باب يأجوج مأجوج رقم: ٣٣٤٧ ومسلم فى الفتن باب اقتراب الفتن، رقم الحديث: ٧٢٣٩ وجامع الأصول فى أحاديث الرسول: ٢٣٢/٢ رقم الحديث: ٧٠٩ مكتبة الحلوانى.

[2] كشف البارى ٤٥٥/٢.

[3] كشف البارى: ١١٨/٢.

[4] كتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الإفاضة رقم: ٣٢٩ ص: ٥٩٨.

[5] إرشادالسارى: ٢٦٨/٢.

الجَنَّةِ» فَكَبَّرْنَا، فَقَالَ: «مَا أَنْتُمْ فِي النَّاسِ إِلَّا كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَبْيَضَ، أَوْ كَشَعْرَةٍ بَيْضَاءَ فِي جِلْدِ ثَوْرٍ أَسْوَدَ» [ ص ۲۴۰][۴۴۶۴، ۶۱۶۵، ۷۰۴۵][1]

## تراجم رجال

**اسحاق بن نصر:** دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر البخارى السعدى رحمه الله دي. دَ دوى دَ والد نوم ابراهيم دي په روايت كښې دَهغه نسبت نيكه طرف ته كړې شوې دې.[2]

**اعمش:** دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى رحمه الله دي. دَاعمش په لقب سره مشهور دي.[3]

**ابوصالح:** دَدوى نوم ذكوان دي. ابوصالح كنيت او زيات دَهغه لقب دي. دَدوى تذكره «بدء الوحى» لاندې تيره شوې ده.[4]

**ابوسعيد الخدري:** دا سعد بن مالك بن سنان رضي الله عنه دي. دَدوى تذكره «كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن» لاندې تيره شوې ده.[5]

په روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه الله تعالى به ارشاد فرمائى اې آدم! آدم عليه السلام به عرض اوكړى حاضر يم ستا دَحكم په خاتى كولودپاره تولې ښيگړې ستا په قدرت كښې دى. بيا به الله تعالى ارشاد فرمائى چه كوم خلق په دوزخ كښې اچولې كيږى دى هغه رااوباسه. آدم عليه السلام به تپوس كوى په دوزخ كښې اچولى شوى څومره دى؟ الله تعالى به اوفرمائى په هريو زرو كښې يوكم زر. هغه وخت به ماشومان بوډاگان شى اوحامله ښځې به خپل حمل گذار كړى او تاسو به خلق دَنشې په حالت كښې محسوس كوئى. حالانكه هغوى به په حقيقت كښې دَ نشې په حالت كښې نه وى بلكه دَالله تعالى عذاب به سخت وى.

صحابه كرامو عرض اوكړو بيا به زمونږ نه يو سړې څوك وى؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل تاسو ته دې زيرې وى تاسو نه به هغه يوكس وى زر به دَ ياجوج ماجوج دَ قوم نه وى يعنى دوزخ ته تلونكى ياجوج ماجوج نه به يو زر وى اوتاسو نه به صرف يووى. بيا حضورپاك اوفرمائيل په هغه ذات باندې قسم دَ چا په قبضه دَ قدرت كښې چه زما خان دې تاسو به دَ اهل جنت يو په څلورمه حصه يئى.

حضرت ابوسعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى چه په دې باندې مونږ دَ الله تعالى لوئى بيان كړه. بيا حضورپاك اوفرمائيل زما اميد دې چه تاسو به دَ اهل جنت نيمه حصه يئى. په دې باندې مونږ دَ الله تعالى لوئى بيان كړه بيا حضورپاك اوفرمائيل تاسو به په خلقو كښې «دَمحشر په ميدان كښې دَ نورو امتونو په مقابله كښې» داسې يئى لكه تور وښته دَ سپين غوئى په بدن كښې يا سپين وښته دَ تور غوئى په بدن كښې.

**قوله: مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَمِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ:** دلته ئى اوفرمائيل چه په زرو كښې به يوكم سل دوزخيان وى او يو كس به جنت ته ځى. خو په كتاب الرقاق كښې يو روايت راځى په هغې كښې دى چه په سلو كښې به يوكم سن

---

[1] رواه أيضاً في تفسير سورة الحج باب قوله: وترى الناس سكارى رقم: ۴۷۴۱وفي الرقاق باب قول الله عزوجل: ﴿إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ﴾ رقم: ۶۵۳۰وفي التوحيد باب قوله الله تعالى: ﴿لَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ﴾ رقم:۷۴۸۳ومسلم في الإيمان باب قوله: يقول الله لآدم: أخرج بعث النار من كل ألف تسعمائة وتسعة وتسعين رقم: ۲۲۲.

[2] كتاب الغسل باب من اغتسل عرياناً وحده في الخلوة: رقم:۲۷۸.

[3] كشف البارى: ۲۵۱/۲.

[4] كشف البارى:۲۵۸/۱.

[5] كشف البارى:۸۲/۲

دوزخ ته ځي او يو به جنت ته ځي.[1] کله چه په سلوکښې يو جنت ته ځي نو په زرو کښې به لس جنت ته ځي. په ظاهره په دواړو کښې تعارض دې. دَدې دا جواب ورکړې شوې دې چه دلته روايات دَ ياجوج ماجوج په اعتبار سره دي او کتاب الرقاق والا روايت دَ نورو کافرانو او مشرکانو په اعتبار سره دې چه په هغوی کښې به يو کم سل دوزخ ته ځي او يو به مؤمن وي کوم چه به جنت ته ځي.[2]

**قوله: إِنِّي أَرْجُو أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ:** دا اضافه تدريجي ده اول حضور پاك ته دَ ربع، بيا دَ ثلث او بيا دَ نصف خبر ورکړې شو او دا هم ممکن دي چه دا تعداد مختلف وختونو او مختلف مراحل په اعتبار سره وي. دَ شروع په مرحله کښې دَ امت مسلمه تعداد به دَ ربع برابر وي. بيا به يوه زمانه روستو راځي چه دَ جنتيانو په شمير کښې به زياتوالې کيږي نو تعداد به دَ ثلث برابر شي او په دريمه مرحله کښې به تعداد دَ ثلث نه زياتيدو سره نصف شي.[3]
دَ جامع ترمذي په يو روايت کښې راځي په جنت کښې به شپږ شلې صفونه وي په دې کښې به اتيا صفونه دَدې امت وي او څلويښت به دَ باقي امتونو وي.[4] دې نه معلوميږي چه دَ رسول اکرم ﷺ دَ امت تعداد به جنت کښې دوه ثلث وي يعني دَ نصف نه زيات، دا به په حقيقت کښې څلورمه مرحله وي په کوم کښې چه تعداد دَ نصف نه زياتيدو سره دوو ثلث ته رسيږي.[5] علامه انورشاه کشميري رحمه الله فرمائي چه دوه ثلث کيدل دَ ترمذي دَ روايت په رڼا کښې دَدې امت دَ فضيلت علامت ګرځولې شوې دې. احناف هم دَ رسول الله ﷺ په امت کښې دوه ثلث دې کوم چه دَهغې دَ فضيلت علامت دې.[6]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** «فَإِنَّ مِنْكُمْ رَجُلٌ وَمِنْ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ أَلْفٌ» علامه قسطلاني رحمه الله او فرمائيل چه په دې جمله کښې دَ ياجوج دکثرت طرف ته اشاره ده او هم دغه جمله ترجمة الباب سره مناسبت لري.[7]

## ١١ - باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَاتَّخَذَ اللهُ إِبْرٰهِيمَ خَلِيلًا﴾ /النساء: ١٢٥/.

**ماقبل سره ربط:** سابقه باب کښې دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دَ زمانې دَ يو عظيم فرمان روا او وسيع سلطنت مالك ذوالقرنين تذکره وه او اوس په دې باب کښې دَحضرت ابراهيم عليه السلام احوال بيانولې شي.[8]

**دَترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې امام بخاري رحمه الله دَ حضرت ابراهيم عليه السلام حالات فضائل او مناقب بيانول غواړي. دَ مؤرخينو په نيز دَ هغوی سلسله دَ نسب داسې ده: ابراهيم بن آزر (دَهغوی نوم تارح هم نقل دې) ابن ناحور ابن شاروخ ابن راغو ابن فالغ ابن عبير ابن شالخ ابن ارفخشذ بن سام بن نوح.[9]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي په دې سلسله نسب کښې دَ چاهم اختلاف نشته، نه دَ اهل نسب او نه دَ اهل کتاب. البته دَ بعض نومونو په تلفظ کښې اختلاف دې او ابن حبان رحمه الله په خپل تاريخ کښې په دې نسب نامه کښې چه کوم اختلاف کړې دې هغه دَ شاذ په حکم کښې دې.[1]

---

[1] کتاب الرقاق باب الحشر رقم: ٦٥٢٩
[2] فيض الباري: ٢٠٩/٤.
[3] فيض الباري: ٢٠٩/٣.
[4] سنن الترمذي: ٨١/٢ کتاب صفة الجنة باب ماجاء في كم صف أهل الجنة رقم: ٤٥٤٦.
[5] إرشادالساري: ٢٦٩/٧م ٢٧٠.
[6] فيض الباري: ٢٠٩/٤.
[7] إرشادالساري: ٢٧٠/٧.
[8] عمدة القاري: ٣٣٠/١٥.
[9] فتح الباري: ٤٧٩/٨ عمدة القاري: ٣٣٠/١٥.

حضرت ابراهيم عليه السلام دَ هغه برګزيده او الوالعزم پيغمبرانو عليهم السلام نه دې دَ چا حالات صفات او مناقب چه په اجمال يا تفصيل سره دَ قرآن مجيد په مختلف آياتونو کښې بيان کړې شوي دي. دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَ پيدائش په ځائې او رهائش دَ مقام باره کښې اختلاف دې. يوقول دادې چه دهغوی دَ پيدائش ځائې ارض اهواز کښې مقام سوس دې. دويم قول دادې چه هغوی دَ عراق ښار بابل کښې پيدا شوې. دريم قول دادې چه هغوی په عراق کښې دَ مقام کوثی په اطراف کښې پيدا شوې. څلورم قول دادې چه هغوی په ورکاء کښې دَ زوابی په اطراف اودَ کسکر په حدودکښې پيدا شوې. دکوم نه پس چه دهغوی پلار هغوی کوثی اطرافو ته يوړو. پنځم قول دادې چه هغوی دَ پيدائش ځائې حزان دې ليکن بيا هغه پلار بابل ته منتقل کړې وو.(١)

مولانا حفظ الرحمن سيوهاروی دَ تورات په حواله سره ليکلی دی چه حضرت ابراهيم عليه السلام دَ عراق دَ يو کلی اذر اوسيدونکې وو. اهل فدان سره ئې نسبی رشته لرله(٢) دَ ابراهيم عليه السلام قوم په بت پرستنې کښې اخته وو اوهم دَدغه بت پرستنې په ماحول کښې دَهغوی وروکوالې تير شو لکه په داسې ماحول کښې سترګې کولاؤ کړې چه دَ شرک او بت پرستنې په تياروکښې ورډوب وو. چونکه الله تعالى هغوی لره دَ نبوت په منصب باندې لګول وو په دې وجه دَهغوی زړه اودماغ دَ رشد او بصيرت دَ انواراتو نه ډک کړې وو په دې وجه هم دَ وړوکوالی نه طبعاً دَ شرک نه ويزاره او نفرت ئې لرلو. چنانچه قرآن مجيد کښې دی. ﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ۝ اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِيْٓ اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ۝ قَالُوْا وَجَدْنَآ اٰبَآءَنَا لَهَا عٰبِدِيْنَ۝ قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ۝ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ اَمْ اَنْتَ مِنَ اللّٰعِبِيْنَ۝ قَالَ بَلْ رَّبُّكُمْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الَّذِيْ فَطَرَهُنَّ ۖ وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ۝﴾ يعنی بيشکه مونږه ابراهيم عليه السلام ته دَ موسی عليه السلام او هارون عليه السلام نه وړاندې هغه پوهه او عقل ورکړې وو دکوم چه هغه لائق وو. اومونږ هغه ښه پيژندلو. اوهغه وخت ياد کړه کله چه ابراهيم عليه السلام خپل پلار او خپل قوم ته اووئيل چه دا څه بتان دی دَ کوم په وړاندې چه تاسو (دَ عبادت دَپاره) ناست يئ. هغوی اووئيل چه مونږ خپل پلاران اوئيکونه دَدوی عبادت کونکی ليدلی دی. ابراهيم عليه السلام اووئيل دَدوی عبادت کولوسره بيشکه تاسو او ستاسو پلاران په ښکاره ګمراهئ کښې پراته ئې. هغوی جواب ورکړو ته مونږ ته واقعتاً حق خبره ښايئې يا هسې ګپ لګوې؟ ابراهيم عليه السلام اووئيل نه (دا بتان ستاسو رب نه دی) بلکه ستاسو پروردګار خو هغه دې چه دَ زمکې او آسمانونو مالك دې. چا چه دا ټول پيداکړې دی اوزه په دې خبره باندې ګواهی ورکوم.

﴿وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا﴾: دا دَ سورت نساء دَ آيت حصه ده پوره آيت دادې: ﴿وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۗ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا۝﴾ يعنې اودَ داسې سړی نه به بهتر دين دَ چاوی چه خپل مخ دَ الله تعالى طرف ته ټيټ کړی (په عمل اوعقيده کښې دَ الله تعالى تابعداری اختيار کړی) اودې سره هغه مخلص هم وی او هغه دَ ملت ابراهيمی (اسلام) اتباع اوکړی په کوم کښې چه يوه ذره کوږوالی نشته (ملت ابراهيمی اختيارول عين هدايت دې ځکه چه) الله تعالى حضرت ابراهيم عليه السلام خپل خاص دوست جوړ کړې وو.

خليل ډير همدرد او زړه پورې دوست ته وئيلې شی. دا لفظ دَ خُلّة نه مشتق دې. يعنې داسې محبت او دوستی چه دَ زړه دَ ژوروالی نه وی (الْخُلَّةُ بالضم: الصَّدَاقَةُ والمَحَبَّةُ التي تَخَلَّلَتِ القَلْبَ، فَصَارَتْ خِلَالَه أي: بَاطِنه)(٤) لکه چه دَ ابراهيم عليه السلام محبت اوعداوت به صرف هم دَالله تعالى دَ پاره وو.(٥)

---

(١) فتح الباري: ٤٧٩/٨.

(٢) تاريخ الرسل والملوك للطبري ذكر إبراهيم الخليل إلخ: ٢٣٣/١ دار المعارف بمصر.

(٣) قصص القرآن: ١٣٢/١دار الإشاعة.

(٤) النهاية في غريب الحديث والأثر: ٥٢٧/١فتح الباري: ٤٧٩/٨.

(٥) فتح الباري:٤٧٩/٨.

دَ بعض حضراتو په نیز لفظ خلیل دَ خَلّة (بضم الخاء) نه مشتق دي. دَ خَلّة معنی دَ فقر اوحاجت راخي. یعنی حضرت ابراهیم علیه السلام دَعلائق دنیا نه لري اودَ الله تعالی دَ رحمت لمن پوري اینختي اودَ فقر اوفاقه په حالت کښې صرف هم په هغه ذات باندې توکل کولو.(۱)

وَقَوْلِهِ: ﴿إِنَّ إِبْرٰهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا﴾/النحل: ۱۲۰/. وَقَوْلِهِ: ﴿إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ﴾/التوبة: ۱۱۴/. وَقَالَ أَبُو مَيْسَرَةَ: الرَّحِيمُ بِلِسَانِ الحَبَشَةِ.

پوره آیت دادې: ﴿إِنَّ إِبْرٰهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِيفًا ۖ وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ یعنی حضرت ابراهیم علیه السلام دَ الله تعالی تابعدار اوحکم منونکې وو. ټول پریخودو سره دَ یو الله تعالی طرف ته شوې وو او کله هم دَ مشرکانو نه وو شوې. دَ عربو مشرکانو به چونکه ابراهیم علیه السلام خپل مقتداء او پیشوا ګڼړلو. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه ابراهیم علیه السلام دَالله تعالی موحد او حکم منونکې بنده وو. معاذالله مشرك نه وو. لهذا دَ عربو دَ مشرکانو دا ګڼړل چه مونږ په ملت ابراهیمی باندې یو دَحقیقت خلاف دی. بلکه دَ ملت ابراهیمی اصل منونکې اوتابعدار خو محمد ﷺ دې که چرې تاسو دَ ملت ابراهیمی دَتابعدارئی په دعوی کښې کلك یئی نودَ محمد ﷺ حکم اومننئ. چنانچه قرآن مجید کښې دَالله تعالی ارشاد دې: ﴿قُلْ إِنَّنِي هَدَانِي رَبِّي إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ دِينًا قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرٰهِيمَ حَنِيفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾[الأنعام: ۱۶۱]

﴿إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ﴾: پوره آیت دادې: ﴿وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرٰهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ ۚ إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ﴾ اودَ ابراهیم علیه السلام دَ خپل پلار دَ پاره استغفار کول صرف په دې وجه وو چه هغه خپل پلار سره یوه وعده کړې وه. بیا چه کله ابراهیم علیه السلام ته دا خبره واضحه شوه چه هغه دَ الله تعالی دښمن دې نو دَهغه نه ویزارہ شو. بیشکه ابراهیم علیه السلام ډیر رحم دل او برداشت کونکې وو.

حضرت ابراهیم علیه السلام خپل پلار اذر ته دَ ایمان دعوت او دَ بت پرستنې پریخودو تلقین اوکړو نو هغه بت پرستی پریخودو نه انکار کولو سره الټه ابراهیم علیه السلام ته درکه ورکړه که ته دَ خپل عمل نه منع نه شوې نوزه به تا سنګسار کړم. ابراهیم علیه السلام دَ حلم نه کار واخستو اودَ شفقت دَ وجې نه نې دَ استغفار وعده هم اوکړه. کله چه دَ استغفار دَ فائدې امیدپاتې نه شو او یقین ئې اوشو چه زما پلار به دَ په کفر اوشرك باندې تر مرګه پورې برابر کلك ولاړ وی نوهغه ویزاری اختیار کړه.(۲)

ددې تفسیر نه پس دا اشکال هم ختمیږی چه دَ آیت په شروع کښې خودا دی چه دَحضرت ابراهیم علیه السلام دَ خپل پلار دَ پاره استغفار کول هغه سره دَ کړې شوې وعدې دَ وجې نه وو او دلته تفسیر دا اوکړې شو چه دَ استغفار وجه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام شفقت او دَ هغه رحمدلی وه. ځکه چه مراد دادې چه حضرت ابراهیم علیه السلام دَ خپل پلار دپاره استغفار کول دَ هغه شفقت او رحمدلئی دَ وجې نه وو په کوم سره چه قرآن مجید هغه موصوف کړې دې.(۳)

بل دَ آیت په آخری جز کښې ددې خبرې تاکید دې چه دَ کفر دَ وضوح نه پس دَ استغفار نه ډډه کول واجب دی. لکه چه دَ آیت مفهوم دادې چه کله دَ پلار کفر واضح شو اودَ ابراهیم علیه السلام په شان دَ نرې زړه والااو مشفق اوحلیم خوئی ویزاره شو نودَ هغوی نه دَ علاوه دپاره دَ دغه استغفار نه ډډه کولو حکم به دَ زیات شدت سره وی.(۴)

امام بخاری رحمه الله دَ آیات نقل کولونه پس ددې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه الله تعالی په خپل کلام کښې دَ حضرت ابراهیم علیه السلام ثنا اوتعریف فرمائیلې دې.(۱)

---

(۱) فتح الباری: ۴۲۹/۸ والنهایة فی غریب الحدیث والأثر: ۵۲۷/۱

(۲) روح المعانی سورة التوبة: ۴۹/۱۱ رقم الآیة: ۱۱۴ دار إحیاء التراث العربی.

(۳) روح المعانی: ۴۹/۱۱ دار إحیاء التراث العربی.

(۴) روح المعانی: ۴۹/۱۱ دار إحیاء التراث العربی.

[۳۱۷۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ النُّعْمَانِ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا، ثُمَّ قَرَأَ: { كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ } [الأنبياء: ۱۰۴]، وَأَوَّلُ مَنْ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ، وَإِنَّ أُنَاسًا مِنْ أَصْحَابِي يُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ، فَأَقُولُ أَصْحَابِي أَصْحَابِي، فَيَقُولُ: إِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ، فَأَقُولُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ": { وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي } [المائدة: ۱۱۷] - إِلَى قَوْلِهِ - { الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ } [البقرة: ۱۲۹] [ص ۲٤۸] [۳۲٦۳، ٤۳٤۹، ٤٦۲۵، ٤٦٤۰، ٦۱٥۹، ٦۱٦۱ - ٦۱٦۱] ([۱]) ([۲])

## تراجم رجال

**محمدبن كثير:** دا ابوعبيد محمد بن كثير عبدى بصرى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب العلم باب الغضب فى الموعظة والتعليم إذا رأى مايكره) لاندې تيره شوې ده. ([۳])

**سفيان:** دا مشهور محدث سفيان بن سعيد ثورى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب علامة المنافق) لاندې تيره شوې ده. ([٤])

**مغيرة بن نعمان:** دا مغيره بن نعمان النخعى الكوفى رحمه الله دې. دوى دَ سعيد بن جبير، عبدالله بن يزيد الاقنع الباهلى، على بن عمرو، مالك بن انس كوفى او ابوالزبير مكى وغيره رحمهم الله نه دَ حديث روايت كړې دې.
خود دوى په شاگردانو كښې سفيان ثورى، شريك بن عبدالله، شعبه بن حجاج، عنبسه بن سعيد اسدى، مسعر بن كدام او ابومالك النخعى رحمهم الله وغيره شامل دى. ([۵])
يحيى بن معين رحمه الله دَ دوى باره كښې فرمائيلى "ثقة". ([٦]) امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى "صالح". ([۷]) او په يو موقع باندې اوفرمائيل "ثقة". ([۸]) حافظ ابن حبان رحمه الله دَ هغوى ذكر ثقات كښې كړې دې. ([۹])

---

[۱]) فتح البارى: ٤۷۹/۸.

[۲]) أخرجه أيضاً فى نفس الكتاب تحت باب قوله الله تعالى: ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا﴾ رقم: ۳٤٤۷ وفى كتاب التفسير باب ﴿وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ وَأَنْتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ رقم: ٤٦۲٥ وفى سورة الأنبياء باب ﴿كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا﴾ رقم: ٤۷٤ وفى الرقاق باب الحشر رقم: ٦٥۲٤ ومسلم فى أبواب الجنة وصفة نعيمها وأهلها، فى باب فناء الدنيا وبيان الحشر يوم القيامة رقم الحديث: ۷۲۰۱ والترمذى فى أبواب القيامة باب ماجاء فى شأن الحشر رقم الحديث: ۲٤۲٥ والنسائى فى كتاب الجنائز باب البعث رقم الحديث: ۲۰۸٤.

[۳]) كشف البارى: ۵۳٦/۲.

[٤]) كشف البارى: ۲۷۸/۲.

[۵]) دَ شيوخ اوتلامذه دَ تفصيل دَپاره اوگورئى تهذيب الكمال فى أسماء الرجال: ٤۰٤/۲۸ تهذيب التهذيب: ۲۸۱/۱۰.

[٦]) تهذيب الكمال: ٤۰٤/۲۸ تهذيب التهذيب: ۲۷۱/۱۰.

[۷]) الجرح والتعديل لعبدالرحمن بن أبى حاتم: ۲٦۳/۸ رقم الترجمة: ۱۰٤۲.

[۸]) الجرح والتعديل لعبدالرحمن بن أبى حاتم: ۲٦۳/۸ رقم الترجمة: ۱۰٤۲.

**سعید بن جبیر:** دا مشهور تابعی سعید بن جبیر بن هشام اسدی کوفی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب السمر فی العلم) [2]

**قوله: قال: إنكم محشورون حفاة عراة غرلا، ثم قرأ: (كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ) الآية.**

**انسان به بربنډ اوناسنته اوچتولي شي:** روایت کښي دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی، تاسو خلق به دَ قیامت په ورځ په داسي حال کښي جمع کولي شئی چه بربنډي خپي بربنډ بدن او ناسنته به یئی. بیا حضورپاك دا آیت تلاوت اوفرمائیلو لکه څنګه چه مونږ دَ تخلیق شروع کړي وه هم هغه شان به مو واپس کوو مونږ دَدي وعده کړي ده کومه چه به مونږ پوره کوو.

لفظ غرلاً کښي دَدي خبرې طرف ته اشاره ملاوېږي چه دَانسان تخلیق په کوم صورت کښي شوي دي هم په هغه هئیت او صورت کښي به هغه دَ میدان حشر طرف ته بوتلي شی. هغه بربنډ پیدا شوي نوحشر به ئی هم بربنډ وي. ناسنته پیدا شوي نو په حشر کښي به هم ناسنته وي. [3]

**قوله: وَأَوَّلُ مَنْ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ:** دَټولو نه اول چه کوم کس ته لباس اچولي شي هغه به حضرت ابراهیم علیه السلام وي. ابراهیم علیه السلام ته به دا فضیلت ولې حاصل وي؟ یوقول دادې چه ابراهیم علیه السلام دَ الله تعالی په لار کښي بې لباس کړي شوي اور کښي اچولي شوي وو په دې وجه به دَ قیامت په ورځ هغوی سره دا خصوصی معامله کولي شی. [4]

شیخ الحدیث حضرت زکریا رحمه الله دَ دې خصوصیت یوه وجه داهم خودلې ده چه حضرت ابراهیم علیه السلام چونکه دَ ټولو نه اول سنت کیدو طریقه وضع کړې وه او په دې عمل کښي دَ یو اندام ښکاره کیدل کیږي په دې وجه دَ ټولو اول لباس به هم هغوی ته وراغوستلي شی. [5]

بعض شارحینو فرمائیلی چه دَ ټولو نه اول دَ ستر پټولو دَپاره پرتوګ استعمالول ابراهیم علیه السلام کړی نو هم په دې وجه به دَ قیامت په ورځ هغوی ته دا خصوصیت حاصل وي. [6] دَ قیامت په ورځ به دادَ حضرت ابراهیم علیه السلام خصوصیت اوفضیلت وي چه هغوی ته به دَ ټولو نه اول لباس اغوستلي شي. په دې خصوصیت سره دا نه لازمی کیږي چه ابراهیم علیه السلام دې دَ رسول الله ﷺ نه افضل وي. که چرې مفضول ته څه انفرادی فضیلت اوخصوصیت حاصل وي نو په دې سره دهغه فضیلت مطلقه نه ثابتیږي. خکه چه دَ قیامت په ورځ به دَ ټولو نه افضل رسول الله ﷺ وي. [7]

دویمه خبره دا ده چه ممکن ده دَ رسول الله ﷺ متذکره فضیلت کښي دَ اولیت اظهار دَ غیرمتکلم په اعتبار سره کړي وي دَ اهل اصول په نیز قاعده ده: (ان المتکلم لایدخل تحت عموم خطابه) یعنی پخپله متکلم دَخپل خطاب په عموم کښي شامل نه وي. شراح دَ دې قاعدي لاندې فرمائیلی چه ممکن دی پخپله حضورپاك ته دَ ټولو نه اول

---

[1] ثقات ابن حبان: ۴۶۶/۷.
[2] کشف الباری: ۴۱۸/۴.
[3] عمدة القاری: ۳۳۳/۱۵.
[4] فتح الباری: ۴۸۰/۸، عمدة القاری: ۳۳۴/۱۵، الکنز المتواری: ۲۷۹/۱۳.
[5] الکنز المتواری: ۲۷۸/۱۳.
[6] فتح الباری: ۴۸۰/۸، عمدة القاری: ۳۳۴/۱۵، الکنز المتواری: ۲۷۹/۱۳.
[7] فتح الباری: ۴۸۰/۸، عمدة القاری: ۳۳۴/۱۵، الکنز المتواری: ۲۷۹/۱۳.

لباس وروا غوندلې شي بلکه دَحضورپاك حشر خو به په خپل کفن کښې وي. البته متکلم يعنې دَ حضورپاك دَ ذات نه علاوه په نورو خلقو کښې دَ ټولو نه اول به حضرت ابراهيم عليه السلام ته لباس اغوستلې شي.(۱)

**قوله: وَإِنَّ أُنَاسًا مِنْ أَصْحَابِي يُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَأَقُولُ: أَصْحَابِي أَصْحَابِي:** زما څه صحابه به نيولو سره دَ ګس لاس طرف ته (دَ دوزخ طرف ته) بوتلې شي زه به وايم دا زما صحابه دي دا زما صحابه (دوي چرته بوځئ؟. دَ اصحابي لفظ دوه ځل راغلي دي. اول اصحابي مبتداء محذوف دَ هؤلاء خبر دي اوتقديرى عبارت دي (هؤلاء أصحابي) او دويم اصحابي دَ اول اصحابي دَ تاكيد دپاره دي.(۲)

دَ ابوذر رحمه الله او ابن عساكر رحمه الله په روايت کښې تصغير سره (أصيحابي أصيحابي) دي. په دې کښې دَهغه کسانو دَ کم شمير طرف ته اشاره ده چه داسې خلق به ډير کم وي چه په حضورپاك باندې ايمان راوړلو سره دَ رسول الله ﷺ په اصحاب کښې شامل شو اودَ حضورپاك دَ انتقال نه پس مرتد شو.(۳) چونکه دا خلق دَ رسول الله ﷺ نه پس مرتد شوي وو په دې وجه دَ حشر په ميدان کښې به دَ هغوي دَ جهنم طرف ته شړلو باندې حيرانتيا كولو سره دَ: لاعلمئ دَ وجې نه اصحابي اصحابي فرماني اودَهغوي دَ بچ كولو فكر به كوي.

په دې باندې اشكال كيږي چه په رسول الله ﷺ باندې به دَ خپل امت دَ ټولو كسانو اعمال پيش كولي شي او حضورپاك به دَ ټولو دَ اعمالو نه خبر وي نوبيا به دَ دغه مرتدينو اعمال دَ حضورپاك نه څنګه پټ پاتې شي؟ ددې جواب دادې چه رسول الله ﷺ ته به دَموحدينو اعمال پيش كولي شي مرتدين او مخالفين به ددې نه مستثنى وي.(۴)

**قوله: فيقول: إِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ:** الله تعالى به فرمانى چه كله تاسو دَدوى نه جدا شوئى دوى پوشان دَ دين نه واوړيدل. امام خطابى رحمه الله فرمانى چه دلته دَ ارتداد نه مراد (التأخرعن الحقوق اللازمة والتقصيرفيها) ليكن دَ امام خطابى رحمه الله دا قول مردود كړې شوي دي. دَدې وجه داده چه په عام توګه باندې دَ ارتداد نه مراد هم كفر وي. چنانچه آيت مبارك ﴿أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ﴾ كښې ارتداد هم دكفر په معنى كښې دې او﴿انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ﴾ معنى ده: (رجعتم الى الكفروالتارع) هم دغه وجه ده چه دَدې مفهوم دَ صحيح مسلم روايت كښې (لاتدري ما أحدثوابعدك) نه پس (بعدالهم وسحقا) جمله هم ده او ښكاره خبره ده چه داسې خبره دَ مسلمان په حق كښې نه شي كولې څكه چه دَ نبى كريم ﷺ شفاعت به هم دَ ګناهګارانو دپاره وي.(۵) ليكن ددې جواب دادې چه دَ ارتداد نه دكفر والا معنى هغه وخت مراد وي چه كله ارتداد بغيردَ تقييد نه مطلقًا ذكر كړې شي اودلته په حديث باب كښې ارتداد دَ ﴿عَلَى أَعْقَابِكُمْ﴾ قيد سره مقيد دې لهذا دلته به كفر مراد نه وي لكه (ارتدفلان على عقبه) مقوله هغه وخت وئيلې شي كله چه څوك شاته رجوع كوي. بلكه دلته دَ واجبى حقوق نه به دَ تخلف والا معنى مراد وي څكه چه بحمدالله دَ نبى كريم ﷺ په صحابه كرامو كښې څوك هم مرتدشوي نه دي. مرتد كيدونكو نه دلته مراد عيينه بن حفص په شان دَ عربو سخت بدوان او سخت مزاج خلق دي چه ترغيبًا اوترهيبًا دَ اسلام قبلولونه څه موده پس مرتد شوي وو.(۶)

---

(۱) فتح البارى: ۴۸۰/۸ الكنز المتوارى: ۲۷۹/۱۳.

(۲) عمدة القارى: ۳۳۵/۱۵.

(۳) إرشادالسارى: ۱۷۳/۷.

(۴) عمدة القارى: ۳۳۵/۱۵.

(۵) عمدة القارى: ۳۳۵/۱۵.

(۶) شرح الكرمانى: ۱۱/۱۴ دار إحياء التراث العربى.

ابوعمر رحمه الله فرمائی چه خوارج، روافض اوتول نفس پرست خلق چاچه په دین کښې ډیر بدعات راپیدا کړی، دَ حوض کوثر نه به لرې کولې شی. هم دغه شان حال دَ کبیره گناهونو دَ مرتکبین او ظالمانو خلقو به هم وی.(۱)

**قوله: غُرْلاً:** دَ غین ضمه سره دَ أغرل جمع ده. اودَ الأقلف په معنی کښې دې. یعنی ناسنته هغه سړی دَ چا ځرمن (قلفه) په سنت کولو کښې نه وی پرې شوې. غرلة او قلفة په عربی کښې هغه ځرمن ته وئیلی شی چه سنت کولو سره پرې کولې شی. دَ چاچه سنت نه وی شوې هغه ته اغرل او أقلف وائی.(۲)

ابوهلال عسکری رحمه الله وائی چه په عربی ژبه کښې راء او لام کله جمع کیږی نه البته څلور الفاظ داسې دی په کوم کښې چه دواړه جمع شوی دی: ① أرل: دَ یوغر نوم دې ② ورل: دَ ځناور نوم دې. ③ حرل: دَ کاڼړی یو قسم دې. ④ غرلة دې. لیکن علامه عینی رحمه الله په دې قول باندې رد کړې دې او فرمائیلی دی چه عربی ژبه ډیره وسیع ده اودَ دې ماده دَ الفاظ استقصاء چونکه متعسر او مشکل دی په دې وجه دا نه شی وئیلې کیدې چه په عربی کښې دَ دې ماده صرف هم دغه څلور الفاظ دی.(۳)

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** حدیث اوترجمة الباب کښې مناسبت دَ حدیث الفاظ (أول من یکسی یوم القیامة إبراهیم علیه الصلاة والسلام) نه واضح دې. ځکه چه په دواړو کښې دَ حضرت ابراهیم علیه السلام تذکره ده.(۴)

[۳۱۷۲] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَخِي عَبْدُ الْحَمِيدِ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَلْقَى إِبْرَاهِيمُ أَبَاهُ آزَرَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَعَلَى وَجْهِ آزَرَ قَتَرَةٌ وَغَبَرَةٌ، فَيَقُولُ لَهُ إِبْرَاهِيمُ: أَلَمْ أَقُلْ لَكَ لاَ تَعْصِنِي، فَيَقُولُ أَبُوهُ: فَالْيَوْمَ لاَ أَعْصِيكَ، فَيَقُولُ إِبْرَاهِيمُ: يَا رَبِّ إِنَّكَ وَعَدْتَنِي أَنْ لاَ تُخْزِيَنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ، فَأَيُّ خِزْيٍ أَخْزَى مِنْ أَبِي الأَبْعَدِ؟ فَيَقُولُ اللهُ تَعَالَى: "إِنِّي حَرَّمْتُ الْجَنَّةَ عَلَى الْكَافِرِينَ، ثُمَّ يُقَالُ: يَا إِبْرَاهِيمُ، مَا تَحْتَ رِجْلَيْكَ؟ فَيَنْظُرُ، فَإِذَا هُوَ بِذِيخٍ مُلْتَطِخٍ، فَيُؤْخَذُ بِقَوَائِمِهِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ" [ص ۲۵۳-۲۵۴] [۴۴۹۰، ۴۴۹۱](۵)

## تراجم رجال

**اسماعیل بن عبدالله:** دا ابوعبدالله اسماعیل بن ابی اویس عبدالله اصبحی مدنی رحمه الله دې. دَ (کتاب الإیمان باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال) لاندې دَدوی تذکره تیره شوې ده.(۶)

**عبدالحمید:** دا دَمذکوره راوی رور عبدالحمید بن ابی اویس عبدالله اصبحی مدنی رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب حفظ العلم) لاندې تیره شوې ده.(۷)

---

(۱) عمدة القاری: ۳۳۵/۱۵.
(۲) لسان العرب: ۵۸/۱۰النهایة لابن الأثیر:۳۰۳/۲ معجم الصحاح: ۷۷۳.
(۳) عمدة القاری: ۳۳۳/۱۵.
(۴) عمدة القاری: ۳۳۲/۱۵.
(۵) أخرجه أیضاً فی کتاب التفسیر سورة الشعراء باب ﴿وَلَا تُخْزِنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ﴾ رقم: ۴۷۶۸ – ۴۷۶۹ لعل البخاری رحمة الله علیه تفرد به. جامع الأصول فی أحادیث : ۵۴۳/۱۰رقم الحدیث: ۸۱۰۸
(۶) کشف الباری: ۱۱۳/۲.
(۷) کشف الباری: ۴۶۱/۴.

ابن ابي ذئب: دا امام محمد بن عبدالرحمن بن المغیره بن الحارث بن ابی ذئب قرشی عامری مدنی رحمه الله دی. دَدوی تذکره هم دَمذکوره کتاب او باب لاندې تیره شوې ده. [۱]

سعید المقبري: دا ابوسعید سعید بن ابی سعید کیسان المقبری المدنی رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب الایمان باب الدین یسر» لاندې تیره شوې ده. [۲]

کتاب التفسیر کښې دا روایت امام بخاری رحمه الله «عن سعید بن أبي سعید المقبري عن أبیه عن أبي هریرة» په طریق سره مختصراً روایت کړې دی. په هغې کښې دی: «إن إبراهیم علیه السلام یری أباه یوم القیامة علیه الغبرة والقترة» [۳]

هلته روایت سعید مقبری رحمه الله دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه دَ خپل پلار په واسطه سره نقل کړې دې اودلته دَ باب لاندې بلاواسطه نقل دی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ممکن ده سعید مقبری رحمه الله دا روایت یوځل دَخپل پلار نه او روستو نیغ په نیغه دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کړې وی. یا دا کتاب التفسیر والا مختصر روایت هغوی نیغ په نیغه دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه اوریدلې وی اودَدې باب تفصیلی روایت ئې دَ خپل پلار په واسطه سره اوریدلې وی. [۴]

**قوله: یَلْقَی إِبْرَاهِیمُ أَبَاهُ آزَرَ یَوْمَ الْقِیَامَةِ وَعَلَی وَجْهِ آزَرَ قَتَرَةٌ وَغَبَرَةٌ:** رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه دَ قیامت په ورځ به حضرت ابرهیم علیه السلام خپل پلار آذر سره په داسې حال کښې ملاویږی چه دَ آذر مخ به تور او په دورو باندې ککړوی. حضرت ابراهیم علیه السلام به «دا صورت حال لیدو سره دَ حسرت نه» وائی چه آیا «دنیا کښې» مې تاته دا نه وو ویلی چه زما نافرمانی مه کوه؟ دَهغوی پلار آذر به وائی زه به نن ورځ ستا نافرمانی نه کوم. حضرت ابراهیم علیه السلام به عرض کوی اې زما ربه تاما سره وعده کړې وه چه په هغه ورځ په کومه کښې چه خلق دوباره اوچتولې شی ته به ما ذلیل او رسوا کوې نه. زما دَ پلار دَ ذلت نه لوئی ذلت اورسوائی به زما دَپاره نور څه کیدې شی چه هغه ستا دَ رحمت نه لرې دې. الله تعالی به فرمائی چه ما جنت دَ کافر دَپاره حرام کړې دې. بیا به ابراهیم علیه السلام ته ویلې شی ښکته اوګوره ستا دَ خپو لاندې څه دی؟ ابراهیم علیه السلام به دَخپلو خپو لاندې اوګوری «دَهغه پلار» آذر دَ بجو «یوبدشکله ځناور دې» په شان خاوره او سوتو کښې لړلې پروت وی. بیا به آذر دَخپې نه اونیسی او دوزخ کښې به ئې واچوی.

دَابوسعید خدری رضی الله عنه دَ روایت الفاظ دادی: «فَیُحَوَّلُ فِي صُورَةٍ قَبِیحَةٍ وَرِیحٍ مُنْتِنَةٍ فِي صُورَةِ ضِبْعَانٍ» [۵] یعنی آذر به دَ بجو په شکل کښې بدل کړې شی ډیر بدشکل او بدبوئی دار به وی. دَ ابن منذر رحمه الله په روایت کښې دا اضافه هم ده: «فإذا رآه کذلك تبرأ منه، قال: لست أبي» [۶] یعنی چه کله ابراهیم علیه السلام خپل پلار آذر په دغه شکل اوصورت کښې اوګوری نو دَهغه نه به دَ براءت اظهار کوی او وائی به ته زما پلار نه ئې.

---

[۱] کشف الباری: ٤/٤٤٢.

[۲] کشف الباری: ۲/۳۳۶.

[۳] صحیح البخاری فی کتاب التفسیر سورة الشعراء باب ﴿وَلَا تُخْزِنِي یَوْمَ یُبْعَثُونَ﴾ رقم: ٤٧٦٨.

[٤] فتح الباری کتاب التفسیر: ٨/٦٢٤ دارالسلام.

[٥] أخرجه ابن أبی حاتم فی تفسیره: ٨/٢٧٨٢ بسنده عن قتادة رقم الحدیث: ١٥٧٢٦ والطبری فی تفسیره: ١٤/٥٢١ وابن حجر فی الفتح فی کتاب التفسیر: ١٠/٦٤١ وعزاه إلی أبی سعید، دارالکتب العلمیة.

[٦] فتح الباری کتاب التفسیر: ٨/٦٤١.

**دَ قيامت په ورځ دَآذر دپاره دَ رحمت درخواست كول:** ابراهيم عليه السلام باندې په دنيا كښې دَخپل آذر كفر ښكاره شوې وو او هغه په آخره كښې دَخپل پلار نه دَ برائت اعلان هم كړې وو. دلته اشكال پيدا كيږى چه كله ابراهيم عليه السلام په دنياوى ژوند كښې دَ برائت اعلان كړې وو نو بيا په قيامت كښې دوباره دَ خپل پلار دپاره دَ الله تعالى نه دَ رحمت درخواست ولې كوى؟ بعض شراح فرمائيلي دى چه په دنيا كښې كله په حضرت ابراهيم عليه السلام باندې دَ خپل پلار دكفر په حالت كښې مركيدل يقيني شو نوهغوى دَ ده نه دَ برائت اظهار كولو سره استغفار كول ترك كړل البته چه په ميدان حشر كښې هغه دَخپل پلار دَ عذاب كيفيت وينې نو دَ ابراهيم عليه السلام زړه به دَ پلار په مينه كښې ډك شى او په هغه باندې به رحم شروع شى نو دَ الله تعالى نه به دَ رحمت درخواست كوى. خود پلار وران كړې شوې صورت په ليدو سره به نااميده شى او دَ هميشه دپاره به برائت اوكړى.(۱)

بعض حضرات فرمائى چه ابراهيم عليه السلام په دنيا كښې دَ آذر ظاهرى اعمال كفريه ليدو سره دَ برائت اعلان كړې وو ليكن دَهغه يقين نه وو چه آذر به هم دَ كفر په حالت كښې مركيږى. «دَ ابراهيم عليه السلام دا اميد وو چه كيدې شى آذر دَ زړه نه ايمان راوړلې وى اومانه دَهغې خبر نه وى شوى. لكه چه دَ قيامت په ورځ دَ خپل پلار دپاره دَ الله تعالى نه دَ رحمت درخواست به هم په دغه اميد سره وى. خوچه كله آذر په وران شكل كښې وينى نويقين به كوى چه هغه هم دكفر په حالت كښې مرشوې دې په دې وجه به فورى توګه باندې برائت اوكړى.(۲)

**يواشكال اودَهغې جواب:** حضرت ابراهيم عليه السلام سره وعده كړې شوې وه چه هغه به دَ قيامت په ورځ نه شى رسوا كولې. په دې باندې اشكال كيدې شى چه دكفر په حالت باندې مركيدلو دَ وجې نه آذر په دوزخ كښې اچولو سره به رسوا كولې شى. ښكاره خبره ده چه دَ پلار رسوائى لكه چه هم دَ خوئى رسوائى ده. په دې سره خو دَ وعده خلاف لازم راځى او ښكاره خبره ده چه دَالله تعالى دَ طرف نه دَ وعدې خلاف محال دى. كه چرې آذر په دوزخ كښې وانچولې شى نو په دې سره به خلف فى الوعد لازم راځى ځكه چه الله تعالى جنت په كافرانو باندې حرام كړې دې. علامه كرمانى رحمه الله دَدې دا جواب وركړې دې چه دَ آذر دَبجو په شكل كښې كولو سره مجسم كولو كښې حكمت دا دې چه كه آذر هم په خپل صورت باندې په عذاب كښې راګير كړې شى نو دا به سبب شى دَ ابراهيم عليه السلام دَ ذلت او رسوائى. په دې وجه حضرت ابراهيم عليه السلام دَ رسوائى نه دَ بچ كولو دپاره آذر ته په خپل اصل صورت كښې عذاب نه شى وركولې. اوس دَ ابراهيم عليه السلام دَ رسوائى نه بچ كيدو په وعده باندې هم عمل اوشو او په كافرانو باندې دَ جنت دَ حرمت وعيد تكميل هم اوشو.(۳)

اسماعيلى دَدې حديث دَ صحت نه انكار كړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى چه دا حديث صحيح دې اودَدې نور شواهد هم موجود دى. چنانچه علامه طبرى رحمه الله دَدې تخريج «حبيب بن أبى ثابت عن سعيد بن جبير عن ابن عباس» په طريق سره كړې دې اودا سند صحيح دې.(۴)

**ترجمة الباب سره دَ حديث مناسبت:** په روايت باب كښې دَحضرت ابراهيم عليه السلام ذكر دې لهذا ترجمة الباب سره دَدې مناسبت ښكاره دې (۵)

[۳۱۷۳]- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، أَنَّ بُكَيْرًا، حَدَّثَهُ عَنْ كُرَيْبٍ، مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ:

---

(۱) فتح البارى كتاب التفسير: ۶۳۶/۸
(۲) فتح البارى كتاب التفسير: ۶۳۶/۸
(۳) شرح الكرمانى سورة الشعراء: ۳۲/۱۸.
(۴) فتح البارى: ۶۳۵/۸دارالسلام.
(۵) عمدة القارى:۳۳۶/۱۵.

دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ، فَوَجَدَ فِيهِ صُورَةَ إِبْرَاهِيمَ، وَصُورَةَ مَرْيَمَ، فَقَالَ «أَمَا لَهُمْ، فَقَدْ سَمِعُوا أَنَّ الْمَلَائِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ، هَذَا إِبْرَاهِيمُ مُصَوَّرٌ، فَمَا لَهُ يَسْتَقْسِمُ» [۳۱۷۲/ ص ۲۵۸] [1]

**ترجمه:** روایت کښې دی چه کله رسول الله ﷺ بیت الله ته دننه تشریف یوړو نو حضور پاك په هغې کښې دَحضرت ابراهیم اوحضرت مریم علیهما السلام شکلونه اولیدل. حضور پاك اوفرمائیل په قریشو څه اوشوی او هغوی په ښه شان سره اوریدلی دی چه فرښتې هغه کورته نه داخلیږی په کوم کښې چه بت وی. دا دَ ابراهیم علیه السلام تصویر دې په دوی څه شوی چه ستا فال راؤباسی.

## تراجم رجال

**یحیی بن سلیمان:** دا ابوسعید یحیی بن سلیمان بن یحیی بن سعید جعفی کوفی رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب کتابة العلم) لاندې تیره شوې ده. [2]

**ابن وهب:** دا مشهور امام حدیث وفقه ابومحمد عبدالله بن وهب بن مسلم قرشی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره (کتاب العلم باب من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین) کښې تیره شوې ده. [3]

**عمرو:** دا عمرو بن الحرث بن یعقوب انصاری رحمه الله دې. دَدوی حالات (کتاب الوضوء باب المسح علی الخفین) لاندې تیر شوی دی.

**بکیر:** دا بکیر بن عبدالله الأشج رحمه الله دې. دَدوی حالات (کتاب الوضوء باب من مضمض من السویق ولم یتوضأ) لاندې تیر شوی دی.

**کریب:** دا کریب بن ابی مسلم مدنی رحمه الله دې. دَدوی حالات (کتاب الوضوء باب التخفیف فی الوضوء) لاندې تیر شوی دی. [4]

**ابن عباس:** دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما حالات (بدء الوحی) څلورم حدیث لاندې او (کتاب الإیمان باب کفران العشیر وکفر دون الکفر) لاندې تیر شوی دی. [5]

## دَ حدیث تشریح

**قوله: فَمَا لَهُ يَسْتَقْسِمُ:** حضور پاك په حیرانتیا سره اوفرمائیل چه په ابراهیم باندې څه اوشو چه هغه په غشو باندې فالونه اوباسی. یعنی ابراهیم علیه السلام خو پیغمبر او موحد وو دَداسې بدعت اوشرك ارتکاب خودَهغه نه ډیره لرې خبره ده. دَ استفهام په معنی کښې دې دَ غشو په ذریعه سره قسمت معلومول. قسم دَ (قسمت) نه دَ باب استفعال صیغه ده یعنی قسمت طلب کول. دَ جاهلیت په زمانه کښې به مشرکانو دَعربو دَ کار دَ کولو یا نه کولو دَپاره په غشو باندې خسرې ویستلو او خپل قسمت به ئې معلومولو. په غشو باندې به مختلف عبارتونه لیکلې شوې وو. په یو غشی باندې (أمرنی ربی)، او په بل باندې (نهانی ربی)، وغیره لیکلې شوې وو. استقسام عرب به په سفر باندې تلل، واده کول یا داهم معلوماتو کولونه اول به ئې کولو. که په غشی باندې (أمرنی ربی) لیکلې شوې وو نوهغه به

---

[1] مر تخریجه فی کتاب الحج باب من کبّر فی نواحی الکعبة رقم:۱۶۰۱.
[2] کشف الباری: ۳۲۷/٤.
[3] کشف الباری: ۲۷۷/۳.
[4] کشف الباری: ۱۵٤/۳.
[5] کشف الباری: ٤۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

نی دَ خپل معبود بت مشوره گنړله اوهغه کار به ئي کولو. اوکه چرې (نهانی نهی) به ليکلې شوې وو نوهغه به ئي دَ خپل معبود نهی گنړله اوهغه کار به ئي نه کولو.(۱)

کله چه رسول الله ﷺ دَ فتح مکې نه پس بيت الله ته دننه داخل شو نو هلته ئي دَ ابراهيم عليه السلام په شکل بت اوليدلو دَ چا په لاس کښې چه غشې ورکړې شوې وو.(۲)

[۳۱۷۴]- حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا هِشَامٌ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص: ۳۰]، لَمَّا رَأَى الصُّوَرَ فِي البَيْتِ لَمْ يَدْخُلْ حَتَّى أَمَرَ بِهَا فَمُحِيَتْ، وَرَأَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ عَلَيْهِمَا السَّلاَمُ بِأَيْدِيهِمَا الأَزْلاَمُ، فَقَالَ: «قَاتَلَهُمُ اللَّهُ، وَاللَّهِ إِنِ اسْتَقْسَمَا بِالأَزْلاَمِ قَطُّ» [ص ۲۵۹ـ ۲۶۰] [ر: ۱۵۲۴]

## تراجم رجال

**ابراهيم بن موسٰی:** دامشهور محدث ابواسحاق ابراهيم بن موسٰی التميمی رحمه الله دې. دَدوی حالات (كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجيله) لاندې تيرشوی دی.(۳)

**معمر:** دا ابوعروة معمر بن راشد بصری رحمه الله دې. دَدوی حالات (بدءالوحی) پنځم حديث لاندې مختصر او (كتاب العلم باب كتابة العلم) لاندې تفصيلاً تيرشوی دی. (۴)

**ايوب:** دامشهور محدث ايوب سختيانی رحمه الله دې. دَ دوی حالات (كتاب الإيمان باب حلاوة الإيمان) لاندې تيرشوی دی.(۵)

**عكرمة:** مشهورامام حديث اوتفسير ابوعبدالله عكرمه مولٰی ابن عباس رحمه الله دې. دَدوی حالات (كتاب العلم باب قول النبی صلی الله عليه وسلم: اللهم علمه الكتاب) لاندې تيرشوی دی.(۶)

**ابن عباس:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حالات (بدءالوحی) څلورم حديث لاندې او (كتاب الإيمان باب كفران العشير وكفر دون الكفر) لاندې تير شوی دی. (۷)

**دَپورته ذکرشوې دواړو احاديثو ترجمة الباب سره مناسبت:** دواړو رواياتوکښې دَحضرت ابراهيم عليه السلام تذکره ده. ترجمة الباب نه دَدې مناسبت ښکاره دې. دَ دواړو روايتونو سره متعلق تفصيلی مباحث کتاب الحج کښې اوګورئ.

[۳۱۷۵]- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ: مَنْ أَكْرَمُ النَّاسِ؟ قَالَ: «أَتْقَاهُمْ» فَقَالُوا: لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ، قَالَ: «فَيُوسُفُ نَبِيُّ اللَّهِ ابْنُ نَبِيِّ اللَّهِ، ابْنِ نَبِيِّ اللَّهِ، ابْنِ خَلِيلِ اللَّهِ» قَالُوا: لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ، قَالَ: «فَعَنْ

---

(۱) النهاية فی غريب الحديث: ۴۵۵/۲ إرشادالساری: ۲۷۵/۷.

(۲) إرشادالساری: ۲۷۵/۷.

(۳) كشف الباری كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها ص: ۱۹۹.

(۴) كشف الباری: ۴۶/۱، ۳۲۱/۴.

(۵) كشف الباری: ۲۶/۲.

(۶) كشف الباری: ۳۶۳/۳.

(۷) كشف الباری: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُونِ؟ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الإِسْلاَمِ إِذَا فَقِهُوا» قَالَ: أَبُو أُسَامَةَ، وَمُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص ۴۶۱](۱)

## تراجم رجال

**علي بن عبدالله:** دا ابوالحسن علی بن عبدالله بن جعفر بصری رحمه الله دي. او دَ ابن المدینی په نوم سره مشهور دي دَدوی تذکره (کتاب العلم باب الفهم فی العلم) لاندې تیره شوې ده.(۲)

**يحيى بن سعيد:** دا یحیی بن سعید بن فروخ القطان رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه) لاندې تیره شوې ده. (۳)

**عبيدالله:** دا عبیدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب رحمه الله دي. (۴)

**سعيدبن ابي سعيد:** دا سعید بن ابی سعید بن کیسان المقبری المدنی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب الدین یسر) لاندې تیره شوې ده. (۵)

**عن ابيه:** دَسعید المقبری والد ابوسعید کیسان بن سعید المقبری المدنی رحمه الله دي. (۶)

حضرت ابوهریره رضی الله عنه وائی چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړې شو چه په خلقو کښې (دَ اعمالو په لحاظ سره) دَ ټولو نه زیات مرتبې والا څوک دي؟ حضورپاك اوفرمائیل چه څوك زیات پرهیزګاره وی. خلقو عرض اوکړو چه مونږ دا تپوس نه کوو. حضورپاك اوفرمائیل (که چرې دَ خاندانی شرافت باره کښې تپوس کوئی) نو یوسف دَ ټولونه افضل دي چه پخپله هم نبی وو، پلار ئې هم نبی وو نیکه هم نبی او غرنیکه ئې دَ الله تعالی خلیل دي. دَ پلار نه ئې نیکاره خبره ده چه حضرت یعقوب علیه السلام مراد دي دَ نیکه نه حضرت اسحاق علیه السلام او دَ غرنیکه نه حضرت ابراهیم علیه السلام یعنی مسلسل څلور پشته په نبوت باندې وو اودا شرف هیچاته حاصل نه دي.

خلقو ونیل مونږ دَدې باره کښې هم تپوس نه کوو. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (فعن معادن العرب تسألون؟) نو بیا تاسو دَ عربودَ خاندان باره کښې تپوس کوئی (چه په دوی کښې څوك افضل دي؟) نو په دوی کښې چه څوك دَ جاهلیت په زمانه کښې شریف وو هغه په اسلام کښې هم شریف دی په دې شرط چه هغه علم او تفقه حاصله کړی.

**معادن:** دَ معدن په کسره دَ دال جمع ده. دَدې معنی ده داسې ځائې دَچرته نه چه دَ زمکې جواهرات لکه سره زر سپین زر او تانبا وغیره راویستلې شی.(۱) چنانچه کوم سړې دَ خیر اوسخاوت سرچینه وی دهغه په ختم کښې

---

۱) رواه أيضاً فی نفس الکتاب باب قوله تعالی: ﴿لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِّلسَّائِلِينَ﴾ رقم: ۳۳۸۳ وباب ﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ﴾ رقم: ۳۳۷۴ وباب ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ﴾ رقم: ۳۴۹۰ وفی کتاب التفسیر فی تفسیر سورة یوسف باب قوله تعالی ﴿لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِّلسَّائِلِينَ﴾ رقم: ۴۶۸۹ ومسلم فی فضائل الصحابة باب خیار الناس رقم: ۲۵۲۶ وفی کتاب البر والصلة باب الأرواح جنود مجندة، رقم: ۲۶۳۸ وفی کتاب الإمارة، الناس تبع لقریش رقم: ۱۸۱۸ وأبوداؤد فی الأدب باب من یؤمر أن یجالس رقم: ۴۸۳۴.

۲) کشف الباری: ۳/۲۹۷.

۳) کشف الباری: ۲/۲.

۴) کتاب الوضوء باب التبرز فی البیوت رقم: ۱۴۸.

۵) کشف الباری: ۲/۳۳۶.

۶) کتاب الأذان باب وجوب القراءة للإمام والمأمون فی الصلوات کلها رقم: ۷۵۷.

نيکی او فياضی داخل وی هغه ته (معدن الخير والكرم) ونيلی شی. دلته دَ معادن نه خاندانی شرافت او نسبی علو مراد ده دَ چا طرف ته چه په نسبت کولوسره عرب فخر کوی. لفظ معادن په استعمال سره په استعداد او لياقت کښې دَ تفاوت طرف ته اشاره ده چه دَ بعض خلقو استعداد په اندازه دَ مرتبې معدنيات دَ الله تعالى فيوض قبلوی او دَ بعض استعداد دَ الله تعالى دَ فيوض اوبرکات دَ صلاحيت نه محروم وی څکه چه معدنيات دَ قدر و قيمت په لحاظ برابر نه وی په هغې کښې تفاوت ضرور وی. ښکاره خبره ده چه سره زر او سپين زر دواړه برابر کيدی نه شی.(۲)

علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه دَ جاهليت دَزمانې تفاوت دَ نسبت اوچتوالې دَ خاندانی شرافت په لحاظ سره دې او په دين اسلام کښې تفاوت دَعلم اوحکمت دَ استعداد په لحاظ سره دې. دواړه دَ شرافت علامات دې. فرق دادې چه رومبې شرافت موروثی دې اودَې بنياد په صالح نسب باندې دې او بل شرافت کسبی دې اودَ دې بنياد په نيک اعمالو باندې دې.(۳)

دويمه خبره دا ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم عربو ته معادن سره تشبيه ورکړه چه څنګه معادن دَ نفيس او قيمتی جواهراتو دَحفاظت مراکز دی دغه شان عرب هم دَ علوم اوحکمت خزانې دی.(۴)

علامه طيبی رحمه الله (أي الناس أكرم) دَدې استفهامی جملې تشريح فرمائی چه په دې کښې درې احتماله دی: ① اول احتمال دادې چه دَ اصحاب رسول صلى الله عليه وسلم سوال دَ نسبی شرافت نه قطع نظر صرف دَ نفس شرافت سره متعلق وو. ② دويم احتمال دادې چه دَ سوال تعلق حسبی اونسبی دواړو شرافتونو سره متعلق وو. ③ دريم احتمال دادې چه دَ سوال تعلق صرف حسبی شرافت سره متعلق وو. دَدې نه پس دريم احتمال راجح ګرځولوسره فرمائی چه دَنبی کريم صلى الله عليه وسلم ارشاد (فعن معادن العرب تسألون) نه معلوميږی چه دَ صحابه کرامو سوال صرف دَ حسبی شرافت سره متعلق وو مګر حضورپاک چه په جواب کښې کومه خبره ارشاد اوفرمائيله په هغې کښې دَحسبی اونسبی شرافتونو جمع کولوسره دَ (إذافقهوا) قيد هم اولګوو يعنی چه کوم يونسبی شرافت سره دَ جاهليت په زمانه کښې حسبی شرافت لکه همت اوبهادری صبر اوتحمل قابليت اوسيادت اوقيادت وغيره هم حامل پاتې دې. که چرې

---

(۱) النهاية لابن الأثير: ۱۶۹/۲.

(۲) عمدة القاري: ۳۳۸/۱۵ إرشادالساري: ۷/۲۷۷-۲۷۶ الكنز المتواري: ۲۸۱/۱۳.

(۳) شرح الطيبي: الجزء الأول: ۶۶۱ رقم: ۲۰۱ إرشادالساري: ۲۷۷/۷ فتح الباري: ۵۱۲/۸. قال القسطلاني: فإن الأفضل من جمع بين الشرف في الجاهلية والشرف في الإسلام، ثم أرفعهم مرتبة من أضاف إلى ذلك التفقه في الدين ويقابل ذلك من كان مشروفا في الجاهلية واستمر مشروفا في الإسلام فهذا أدنى المراتب، والثالث من شرف بالإسلام، وفقه، ولم يكن شريفا في الجاهلية، ودونه من كان ذلك، لكنه لم يتفقه، والرابع من كان شريفا في الجاهلية ثم صار مشروفا في الإسلام، فهذا دون الذي قبله، فالإيمان يرفع التفاوت المعتبر في الجاهلية، فإذا تحلى الرجل بالعلم والحكمة استجلب النسب الأصلي، فاجتمع شرف النسب مع شرف الحسب، ومفهومه أن الوضيع المسلم المتحلي بالعلم أرفع منزلة من الشريف المسلم العاطل، وما أحسن ما قال الأحنف:

كُلُّ عزّ إن لم يوطد بعلم — فإلى الذُّل ذات يوم يصير

وقال آخر:

ما الشرف الموروث لا درّ ردّه — لمحتسب إلا بآخر مكتسب

وقال الآخر:

إن السريّ إذا سرى بنفسه — وابن السري إذا سرى أسراهما [إرشادالساري: ۲۷۷/۷]

(۴) عمدة القاري: ۳۳۸/۱۵ إرشادالساري: ۲۷۷/۷ الكنز المتواري: ۲۸۱/۱۳.

دا صفتونه په اسلام کښې دَ داخلیدو نه پس هم باقي پاتې شي نو داسې سړي دَ ټولو نه زیات صاحب شرافت دي په دې شرط چه په هغه کښې دَ شریعت دَ علم پوهه هم وي.[1]

علامه رشید احمد گنګوهي رحمه الله فرماني چه رسول الله ﷺ دَ صحابه کرامو سوال دَ ټولو نه اول په دې صفاتو باندې محمول کړو کوم سره چه انسان نیك اعمال او دَ نیکو عاداتو په صورت کښې متصف وي. یعني: «الشرف الحاصل بالأعمال الصالحة والخصال المحمودة المكتسبة» باندې محمول کړل. لیکن چه کله صحابه کرامو حضراتو دا اوونیل چه دَ هغوی مراد دا نه دې نو په دغه خل حضور پاك دَ هغوی سوال په هغه صفاتو باندې محمول کړو چه په انسان کښې په فطری او خلقي توګه باندې موجود وي. لکه همت بهادري صبر اوتحمل قابلیت سیادت وغیره. دَ دې صفاتو مدار خو نه په اکتساب باندې وي او نه دا دَ بل دَ وجې نه منسوب کیږي. چنانچه حضور پاك په جواب کښې ارشاد او فرمائیلو: «خیارهم في الجاهلیة خیارهم في الإسلام» چه الله تعالی کوم فطری خصائل او عادات حسنه په خپلو بندیګانو کښې راپیدا کړي دي دَ هغې په وجه هغه بندیګان دَ جاهلیت او اسلام دواړو زمانو کښې دَ تعریف قابل ګرځولې شي. لکه فاروق او صدیق رضي الله عنهما کښې کوم دَ جاهلیت دَ زمانې صفات حسنه موجود وو هم هغه په اسلام کښې هم باقي پاتې شو او داسې دغه حضرات دَ دغه صفاتو په وجه هم په دواړو زمانو کښې دَ تعریف قابل پاتې شو.[1]

**قوله: إذا فقهوا:** دَ قاف کسره سره عَلِمَ یَعْلَمُ په وزن باندې سمع دَ باب نه وي نو فقه په معنی دَ پیژندلو او پوهیدلو راځي. یعني په دې شرط چه عرب پوهه او هوښیار جوړ شي. که چرې دَ قاف ضمه سره وي نو دَ شریعت په اصطلاح کښې دَ دې معنی ده فقیه جوړیدل او دَ شریعت دَ علم ماهر کیدل.[2] په دې صورت کښې «إذا فقهوا» مطلب دې په دې شرط چه عرب فقیه او دَ دین دَ علومو عالمان جوړ شي. په اول صورت کښې دا متعدی او په دویم صورت کښې لازم دې. والله اعلم.[3]

قَالَ أَبُو أُسَامَةَ وَمُعْتَمِرٌ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم. [۳۱۹۴، ۳۲۰۳، ۳۳۰۱، ۴۴۱۲]

**دَ تعلیق شرح:** دَ دې تعلیق نه دَ امام بخاري رحمه الله مقصد دا دې چه دَ باب مذکوره روایت یحیی بن سعید رحمه الله دَ «عن عبیدالله عن سعید بن أبي سعید عن أبیه عن أبي هریرة» په طریق سره نقل کړې دې لیکن ابواسامه حماد بن اسامه رحمه الله او معتمر بن سلیمان دَ یحیی بن سعید برخلاف روایت په سند کښې سعید بن ابی سعید او ابوهریره رضي الله عنه په مینځ کښې دَ ابوسیعد کیسان دَ واسطې نه بغیر عن سعید عن ابي هریرة په طریق سره نقل کړې دې.[5]

دَ ابواسامه تعلیق امام بخاري رحمه الله «باب قول الله تعالی: ﴿لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِّلسَّائِلِينَ﴾» لاندې او دَ معتمر بن سلیمان تعلیق دَ یعقوب علیه السلام په تذکره کښې «باب ﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ﴾» لاندې موصولاً روایت کړې دې.

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حدیث باب کښې خلیل الله یعني دَ ابراهیم علیه السلام ذکر دې. ترجمة الباب سره دَ دې مناسبت واضح دې.[6]

---

[1] ) الکنز المتواری: ۱۳/۲۸۲.

[2] ) الکنز المتواری: ۱۳/۲۸۱.

[3] ) عمدة القاری: ۱۵/۳۳۸، إرشاد الساری: ۷/۲۷۷.

[4] ) إرشاد الساری: ۷/۲۷۷.

[5] ) إرشاد الساری: ۷/۲۷۷ فتح الباری: ۸/۴۸۰ عمدة القاری: ۱۵/۳۳۹-۳۳۸.

[6] ) عمدة القاری: ۱۵/۳۳۸.

[۳۱۷۶]- حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا عَوْفٌ، حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ، حَدَّثَنَا سَمُرَةُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتِيَانِ، فَأَتَيْنَا عَلَى رَجُلٍ طَوِيلٍ، لاَ أَكَادُ أَرَى رَأْسَهُ طُولاً، وَإِنَّهُ إِبْرَاهِيمُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» [ص ۴۷۶] [ر: ۸۰۹] (۱)

**ترجمه**: سمرة بن جندب رضی الله عنه وائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل د شپې (خوب کښې) ماله دوه فرښتې راغلې اوزه نې یو اوږد سړی له بوتلم (دومره اوږد وو چه) نیزدې وه چه دهغه سر اونه وینم. هغه ابراهیم علیه السلام وو.

حضورپاك له راتلونکې دوه فرښتې حضرت جبرائیل علیه السلام اوحضرت میکائیل علیه السلام وو. (لاأكاد أري رأسه طولا) دتميز كيدو په وجه منصوب دې. (۲)

دا د یو اوږد حدیث جز دې. (كتاب الجنائز باب ماقيل في أولاد المشركين) لاندې تفصيل اوګورئ.

[۳۱۷۷]- حَدَّثَنِي بَيَانُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا النَّضْرُ، أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا وَذَكَرُوا لَهُ الدَّجَّالَ بَيْنَ عَيْنَيْهِ مَكْتُوبٌ كَافِرٌ، أَوْ: ك ف ر، قَالَ: لَمْ أَسْمَعْهُ، وَلَكِنَّهُ قَالَ: «أَمَّا إِبْرَاهِيمُ فَانْظُرُوا إِلَى صَاحِبِكُمْ، وَأَمَّا مُوسَى فَجَعْدٌ آدَمُ عَلَى جَمَلٍ أَحْمَرَ مَخْطُومٍ بِخُلْبَةٍ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ انْحَدَرَ فِي الوَادِي» [ص ۴۷۶] [ر: ۱۴۸۰] (۳)

## تراجم رجال

**بيان بن عمرو**: دا ابومحمد بيان بن عمرو العابد رحمه الله دې. ددوی تذکره (كتاب التهجد باب تعاهد ركعتي الفجر الخ) لاندې تيره شوې ده.

**النضر**: دامشهور محدث نضر بن شميل، ابوالحسن البصری ثم الکوفي رحمه الله دې. ددوی تذکره (كتاب الوضوء باب حمل العنزة مع الماء في الاستنجاء) لاندې تيره شوې ده. (۴)

**ابن عون**: دا عبدالله بن عون بن ارطبان مزنی بصری رحمه الله دې. د دوی کنیت ابوعون دې. ددوی تذکره (كتاب العلم باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: رب مبلغ أوعى من سامع) لاندې تيره شوې ده. (۵)

**مجاهد**: شیخ القراء والمفسرین ابوالحجاج مجاهد بن جبر مکی قرشی رحمه الله دې. ددوی تذکره (كتاب العلم باب الفهم في العلم) لاندې تيره شوې ده. (۶)

**قوله: ذكروا له الدجال بين عينيه مكتوب كافر أو كفر**: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته خلقو اوخودل چه د دجال د دواړو سترګو په مینځ کښې کافر يا (دې لفظ) حروف مقطعات "ك ف ر" به ليکلې شوې وي. دا په حقيقت باندې محمول دی چه د دجال د دواړو سترګو په مینځ کښې به کافر لیکلې شوې وي. دا دهغه دکافر او دجال کيدو

---

(۱) مرتخريجه فى كتاب الأذان باب يستقبل الإمام الناس إذا سلم رقم:۸۴۵.

(۲) فتح البارى:۵۴۶/۱۵.

(۳) مرتخريجه فى كتاب الحج باب التلبية إذا انحدر فى الوادى رقم: ۱۵۵۵.

(۴) ص: ۴۰۱.

(۵) كشف البارى: ۲۲۴/۳.

(۶) كشف البارى: ۳۰۷/۳.

حسى علامت به وى. هرمومن به دا علامت ليدلو سره دهغه پيژندګلو کوى که هغه ليکونکې لوستونکې وى اوکه نه وى.[1]

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه ما د رسول الله ﷺ نه نه دى اوريدلى (چه د دجال د دوارو سترګو په مينځ کښې به کافر ليکلې شوې وى) ليکن حضورپاک دا فرمائيلى دى چه که تاسو ابراهيم عليه السلام ليدل غواړئ نو خپل صاحب (يعنى ماته اوګورئ). مطلب دا چه زما صورت حضرت ابراهيم عليه السلام سره ډير ملاويږى اود موسى عليه السلام بدن کم او رنګ غنم رنګې، په سور اوښ باندې سور کوم ته چه پيزوان لګيدلې وى. دا پيزوان د کهجورې د اوچ پوستکى وو لکه چه زه هغه ته ګورم اوهغه په وادى (ازرق) کښې تکبير ويونکې راکوز شو.

دکتاب الحج په روايت کښې د تلبيه تصريح ده. په هغې کښې دى چه حضورپاک اوفرمائيل چه موسى عليه السلام ته مې اوکتل نوهغه د احرام په حالت کښې په يوه وادئ کښې تلبيه ونيلو سره راکوز شو.[2] دا واقعه خو يا په حقيقت باندې محمول کيدې شى چه حضورپاک هغه په ليلة الاسراء کښې ليدلې وى يا بيا ممکن ده چه په خوب کښې ليدلې وى اود انبياء خوب هم وحى وى.[3]

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** د روايت مطابقت ترجمة الباب سره ښکاره دې.[4]

**[٣١٧٨]- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقُرَشِيُّ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اخْتَتَنَ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلاَمُ وَهُوَ ابْنُ ثَمَانِينَ سَنَةً بِالقَدُومِ»، حَدَّثَنَا أَبُو اليَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، وَقَالَ «بِالقَدُومِ مُخَفَّفَةً»، تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، تَابَعَهُ عَجْلاَنُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَرَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ [ص ٢٦٨][5]**

**شرح حديث**

**قوله: جعد:** جعد د جيم فتحه اوعين سکون سره. علامه کرمانى رحمه الله ليکلى دى چه د دې لفظ په معنى کښې دوه احتماله دى: ① يو احتمال خودادې چه دې نه مراد جودة الجسم يعنى د بدن کمالې کيدل وى. ② اودويم احتمال دادې چه دې نه مراد جودة الشعر يعنى د ويښتو ګورګوچې کيدل وى، ليکن دلته مراد جودة الجسم دې ځکه چه په بعض رواياتو کښې دهغوى پاره کښې رجل الشعر تصريح موجود ده.[6] او رجل الشعر مطلب د ويښتو په څه اندازه باندې ګورګوچې کيدل دى اود ويښتو صفات سبوطة (د نرمو ويښتو والا کيدل) او جعودة مينځنې صفت دې.[7]

---

[1] إرشاد السارى: ٢٧٨/٧عمدة القارى: ٣٣٩/١٥.

[2] كتاب الحج باب التلبية إذا انحدر فى الوادى رقم: ١٥٥٥.

[3] إرشادالسارى:٢٧٨/٧.

[4] عمدة القارى: ٣٣٩/١٥.

[5] آخرجه الإمام البخارى فى كتاب الاستئذان باب الختان بعدالكبر، وتنف الإبط أيضاً، رقم الحديث:٦٢٩٨وورواه الإمام مسلم فى كتاب الفضائل باب من فضائل إبراهيم الخليل صلى الله عليه وسلم رقم الحديث:٦١٤١وجامع الأصول فى أحاديث الرسول: ٧٧٦/٤رقم الحديث: ٢٩٣٣.

[6] عمدة القارى: ٣٣٩/١٥إرشادالسارى: ٢٧٨/٧.

[7] النهاية لابن الأثير: ٢٤٠/١.

**قوله: آدم**: دا لفظ اُدمة نه ماخوذ دی او کله چه دا لفظ د انسانانو باره کښې وئیلې شی نو دې نه غنم رنګې مراد وی او کله چه د اوښ باره کښې وئیلې شی نو هغه وخت خاکی یا خړ رنګ مراد وی.[1]

**قوله: خلبة**: دا مفرد دې او دَدې جمع خُلَبٌ راځي دَدې معنی د کهجورې د ښاخ ده او دلته مراد داسې پیزوان دی چه د کهجورې د پوستکی نه جوړ کړې شوی وی.[2]

**د ابراهیم علیه السلام د سنتیدو بیان**: رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه ابراهیم علیه السلام د اتیا ؤ کالو په عمر کښې په قدوم سره سنت او کړو.

**قوله: قدوم**: د دال په تخفیف سره د یو آله نوم دې او په تشدید سره د یو کلی نوم دې کوم چه د شام ښار حلب کښې واقع دې. یعنی ابراهیم علیه السلام په مقام قدوم کښې سنت او کړو یا نی د قدوم آله استعمالولو سره سنت او کړو. د اکثر حضراتو په نیز دا تخفیف سره دې او دې نه آله مراد ده.[3]

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه لفظ قدوم د دال تخفیف سره او تشدید دواړو سره نقل دی. تخفیف سره د آله نوم دې او د کلی نوم کیدو په صورت کښې تخفیف او تشدید دواړه شان دی. لهذا کومو حضراتو چه تشدید سره روایت کړې دې نو هغه وخت مراد صرف کلې دې او چاچه تخفیف سره روایت کړې دې نو آله او کلې دواړه مراد کیدې شی. لیکن اکثر حضراتو تخفیف راجح ګرځولې دې او دې نه نې مراد آله ګرځولې ده.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله هم دې ته ترجیح ورکړې ده.[5] ددې تائید په یو بل روایت سره کیږی کوم چه ابو یعلی رحمه الله د علی بن رباح رحمه الله په طریق سره نقل کړې دې. د روایت الفاظ دا دی: (أمر إبراهیم بالختان، فاختتن بقدوم فاشتد علیه، فأوحی الله إلیه أن عجلت قبل أن نأمرك بآلته، فقال: یارب کرهتُ أن أوخر أمرك)[6] الله تعالی رب العزت حضرت ابراهیم علیه السلام ته د سنت حکم ورکړو، حکم ملاویدو سره حضرت ابراهیم علیه السلام قدوم په آله سره دهغې تعمیل او کړو مګر په دې عمل سره هغوی ته تکلیف محسوس شو. په دې باندې الله تعالی وحی نازل کړه چه تا د آله سره متعلق زمونږ د حکم بیانولو نه وړاندې دغه عمل پوره کړو د کوم په وجه چه ته تکلیف او سختئی سره مخ شوې. حضرت ابراهیم علیه السلام او فرمائیل ای زما ربه ستا د حکم ملاویدو نه پس په دې کښې تاخیر کول زما خوښ نه دی.

حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ: أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ: حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ: (بِالْقَدُومِ) مُخَفَّفَةً. تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ. وَتَابَعَهُ عَجْلَانُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وَرَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ. [۵۹۴۰]

د قدوم تشدید او تخفیف باره کښې دوه رائې وې. امام بخاری رحمه الله د تخفیف والا رائې له ترجیح ورکړه او دهغې په تائید کښې نې مذکوره روایت او دې متابعات ذکر کړی دی.

**د روایت مقصد**: دا روایت نقل کولو سره امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړې چه ابو الیمان رحمه الله دې نه اول روایت عن شعیب عن ابی الزناد په سند سره نقل کړې دې او د قدوم په تلفظ کښې د تخفیف تصریح کړې ده.[7]

---

[1] النهایة لابن الأثیر: ۴۶/۱ عمدة القاری: ۳۳۹/۱۵ إرشاد الساری: ۲۷۸/۷.

[2] النهایة: ۵۱۵/۱.

[3] فتح الباری: ۲۷۹/۷ إرشاد الساری: ۲۷۹/۷.

[4] شرح الکرمانی: ۱۵/۱۴ فتح الباری: ۴۸۱/۸ الکنز المتواری: ۲۸۳/۱۳.

[5] فتح الباری: ۴۸۱/۷.

[6] فتح الباری: ۴۸۱/۸ المطالب العالیة بزوائد المسانید الثمانیة: ۲۴۷/۲ رقم الحدیث: ۷۴ دار العاصمة دار الغیث.

[7] عمدة القاری: ۳۴۰/۱۵ دار الکتب العلمیة.

**تابعه عبدالرحمن بن اسحاق عن..... الخ** اولنې متابعت مسدد رحمه الله د بشر بن المفضل عن عبدالرحمن بن اسحاق په طريق سره موصولاً روايت كړې دې. د روايت الفاظ دا دي «اختتن إبراهيم بعد ما مرت به ثمانون واختتن بالقدوم»[1] دويم متابعت امام احمد بن حنبل رحمه الله د يحيى القطان عن ابن عجلان په طريق سره د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه موصولاً. د حضرت قتيبه رحمه الله پورته ذكرشوې روايت په شان نقل كړې دې.[2]

د شعيب بن ابى حمزه حمصى رحمه الله روايت امام بخارى رحمه الله نقل كولو سره اوفرمائيل چه هغوى په قدوم كښې د تخفيف تصريح فرمائيلې ده. دلته نې د دغه روايت متابعات ذكر كړې دى چه قدوم تخفيف سره روايت كولو كښې عبدالرحمن بن اسحاق د شعيب متابعت كړې دې بل متابعت عجلان رحمه الله «مولى فاطمه بنت عتبه بن ربيعه» دې هغه هم د تخفيف تصريح كړې ده. په دې دويم متابعت كښې لفظ تابعه ضمير مفعول يا خو د شعيب رحمه الله طرف ته راجع دې يا عبدالرحمن بن اسحاق رحمه الله طرف ته يعنى عجلان د شعيب بن ابى حمزه حمصى يا عبدالرحمن بن اسحاق متابعت كړې دې.[3]

**قوله: وَرَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ:** يعنى د حضرت ابوهريره رضي الله عنه كوم روايت چه د ابواليمان عن شعيب په طريق سره نقل دې هم دغه روايت د محمد بن عمرو عن أبي سلمة په طريق سره نقل دې او په هغې كښې هم لفظ قدوم كښې د دال د تخفيف تصريح ده. دا روايت ابويعلى رحمه الله په خپل سند كښې محمد بن عمرو عن ابى سلمه بن عبدالرحمن بن عوف عن ابى هريرة رضي الله عنه په طريق سره موصولاً روايت كړې دې.[4] د روايت الفاظ دا دي. «اختتن إبراهيم على رأس ثمانين سنة واختتن بالقدوم»[5]

**د پورته ذكرشوو دواړو متابعاتو مقصد:** ابوذر او ابوالوقت د نسخونه سوا ذكرشوى دواړه متابعات هم په دغه ترتيب سره درج دى. او د دې متابعاتو مقصد په قدوم كښې د تخفيف تائيد دې. خو د ابوذر او ابوالوقت په نسخو كښې ذكرشوى دواړه متابعات او «رواه محمد بن عمرو عن أبي سلمة»، د نورو نسخو برعكس «حدثنا أبو اليمان أخبرنا شعيب حدثنا أبو الزناد بالقدوم مخففة» نه اول درج دى. د دې دواړو نسخو په رڼا كښې مذكوره متابعات او د محمد بن عمرو رحمه الله د روايت تعلق قتيبه بن سعيد د روايت سره وى او مقصد به په دې صورت كښې دا شى چه د قتيبه بن سعيد په روايت كښې د سنت په وخت د حضرت ابراهيم عليه السلام عمر اتيا كاله نقل دې نو په دې باندې نور روايات هم متفق دى چه د ابراهيم عليه السلام سنت د اتياؤ كالو په عمر كښې شوى دې.[6]

خلاصه دا چه د مشهور ترتيب مطابق د عبدالرحمن بن اسحاق او عجلان متابعات او د محمد بن عمر د روايت تعلق «حدثنا أبو اليمان أخبرنا شعيب» سره به كيږى او مقصد د قدوم په تخفيف كښې د نورو رواياتو موافقت په نقل كولې شى. خو د ابوذر او ابوالوقت په نسخو كښې د ترتيب مطابق د هغې تعلق «حدثنا قتيبة بن سعيد» سره كيږى او مقصد «اختتن إبراهيم عليه السلام وهو ابن ثمانين» باندې د نورو رواياتو موافقت بيانول وى. دا فرق په ذهن كښې ساتل ضرورى دى.

---

[1] فتح الباري: ۸/۴۸۱؛ عمدة القاري: ۱۵/۳۴۱.

[2] مسند الإمام أحمد بن حنبل: ۱۵/۳۸۳ رقم الحديث ۹۶۲۲ مؤسسة الرسالة.

[3] إرشاد الساري: ۷/۲۷۹.

[4] عمدة القاري: ۱۵/۳۴۱ ومسند أبي يعلى الموصلي: ۱۰/۳۸۴ رقم الحديث: ۵۹۸۱ دار المأمون للتراث.

[5] تهذيب الكمال: ۱۱/۲۹ وتهذيب التهذيب: ۴/۷۱.

[6] عمدة القاري: ۵/۳۴۰ إرشاد الساري: ۷/۲۸۰-۲۷۹.

دا روایات په دې خبره باندې متفق دی چه د سنت په وخت د حضرت ابراهیم علیه السلام عمر مبارك اتیا کاله وو. خو د ابن حبان رحمه الله د تخریج کړې شوې روایت نه معلومیږی چه د سنت په وخت د هغوی عمر یوسل شل کاله وو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی په ظاهره د ابن حبان رحمه الله روایت کړې شوې روایت کښې څه عبارت ساقط شوې دې ځکه چه یوسل اوشل کاله د حضرت ابراهیم ټول عمر وو. بعض حضراتو په دواړه قسم روایاتو کښې داسې جمع ورکړې ده چه پورته ذکر شوی روایاتو کښې اتیا کاله مبدأ نبوت دې یعنی د نبوت په اتیایم کال باندې هغوی سنت کړې او د ابن حبان رحمه الله په روایت کښې مبدأ ولادت وی یعنی د پیدائش نه ۱۲۰ کاله پس هغوی سنت اوکړو (۱)

**[۳۱۷۹]- حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ تَلِيدٍ الرُّعَيْنِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ إِلَّا ثَلَاثًا» [ص ۲۷۳] (۲)**

## تراجم رجال

**سعيد بن تليد:** دا سعيد بن عيسى بن تليد الرعينى القتبانى رحمه الله دې په عام توګه د نیکه طرف ته نسبت کولو سره د دوی نوم سعید بن تلید لیکلې کیږی. (۳)

دوی د رشدین بن سعد، زبن بن شعیب المعافری، سفیان بن عیینه، عبدالله بن وهب، امام محمد بن ادریس شافعی او مفضل بن فضالة رحمهم الله غوندې اعلام الحدیث نه د حدیث روایت کړې دې. دوی نه امام بخاری، ابوبکر عبدالله بن محمد بن ابی شیبه، ابوحاتم محمد بن ادریس الرازی، ابوالنضر محمد بن حسن الفارسی، محمد بن حمید الرعینی، هاشم بن یونس القصار رحمهم الله احادیث روایت کړی دی. (۴)

ټولو ائمه جرح او تعدیل د دوی توثیق کړې دې. امام ابوحاتم رازی رحمه الله د دوی باره کښې فرمائیلی «ثقة لابأس به». (۵) ابن حبان د هغوی تذکره ثقات کښې کړې ده. (۶)

امام دارقطنی فرمائیلی «ثقة لابأس به». (۷) حافظ ذهبی رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله علامه مغلطائی حنفی رحمه الله هم د هغوی توثیق کړې دې (۸) امام بخاری رحمه الله د هغوی نه اته احادیث روایت کړی دی. (۹)

**ابن وهب:** دا مشهور امام حدیث وفقه ابومحمد عبدالله بن وهب بن سلم قرشی عصری رحمه الله دې. د دوی تذکره «کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر» کښې تیره شوې ده. (۱۰)

**جریر:** دا جریر بن حازم بن زید الازدی البصری رحمه الله دې. (۱۱)

---

(۱) فتح الباري: ۴۸۱/۸.

(۲) مر تخریجه فی کتاب البیوع باب شراء المملوک من الحربی وهبته وعتقه رقم: ۲۲۱۷.

(۳) تهذیب الکمال: ۲۹/۱۱ تهذیب التهذیب: ۷۱/۴.

(۴) د شیوخ او تلامذه د تفصیل د پاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۱۱/۳۰-۲۹ تهذیب التهذیب: ۷۱/۴.

(۵) الجرح والتعدیل: ۵۱/۴ رقم الترجمة: ۵۳۴۲.

(۶) ثقات ابن حبان: ۱۶۱/۱.

(۷) تهذیب التهذیب: ۷۱/۴.

(۸) تهذیب التهذیب: ۷۱/۴ إکمال تهذیب الکمال: ۳۳۸/۵.

(۹) إکمال تهذیب الکمال: ۳۳۸/۵.

(۱۰) کشف الباري: ۲۷۷/۳.

(۱۱) کتاب الصلاة باب الخوخة والممر فی المسجد رقم: ۴۶۷.

ايوب: دا ابوبكر ايوب بن ابى تميمه كيسان سختيانى بصرى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب حلاوة الايمان) لاندې تيره شوې ده.[1]

محمد: دامشهور تابعى ابوبكر محمدبن سيرين انصارى بصرى رحمه الله دي. دَ دوى تذكره (كتاب الايمان باب اتباع الجنائز من الايمان) لاندې تيره شوې ده.[2]

قوله: لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ إِلَّا ثَلَاثًا: ابراهيم عليه السلام په ژوند كښې كله هم دروغ نه دى وئيلى مگر درې ځل. په دې باندې تفصيلي بحث په راتلونكي حديث كښې راځي.

[۳۱۸۰] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ [ص:۳۱] بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ إِلَّا ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ، ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ فِي ذَاتِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، قَوْلُهُ {إِنِّي سَقِيمٌ} [الصافات:۸۹]. وَقَوْلُهُ: {بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا} [الأنبياء:۶۳]. وَقَالَ: بَيْنَا هُوَ ذَاتَ يَوْمٍ وَسَارَةُ، إِذْ أَتَى عَلَى جَبَّارٍ مِنَ الجَبَابِرَةِ، فَقِيلَ لَهُ: إِنَّ هَا هُنَا رَجُلًا مَعَهُ امْرَأَةٌ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ فَسَأَلَهُ عَنْهَا، فَقَالَ: مَنْ هَذِهِ؟ قَالَ: أُخْتِي، فَأَتَى سَارَةَ قَالَ: يَا سَارَةُ: لَيْسَ عَلَى وَجْهِ الأَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِي وَغَيْرَكِ، وَإِنَّ هَذَا سَأَلَنِي فَأَخْبَرْتُهُ أَنَّكِ أُخْتِي، فَلاَ تُكَذِّبِينِي، فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا فَلَمَّا دَخَلَتْ عَلَيْهِ ذَهَبَ يَتَنَاوَلُهَا بِيَدِهِ فَأُخِذَ، فَقَالَ: ادْعِي اللَّهَ لِي وَلاَ أَضُرُّكِ، فَدَعَتِ اللَّهَ فَأُطْلِقَ، ثُمَّ تَنَاوَلَهَا الثَّانِيَةَ فَأُخِذَ مِثْلَهَا أَوْ أَشَدَّ، فَقَالَ: ادْعِي اللَّهَ لِي وَلاَ أَضُرُّكِ، فَدَعَتْ فَأُطْلِقَ، فَدَعَا بَعْضَ حَجَبَتِهِ، فَقَالَ: إِنَّكُمْ لَمْ تَأْتُونِي بِإِنْسَانٍ، إِنَّمَا أَتَيْتُمُونِي بِشَيْطَانٍ، فَأَخْدَمَهَا هَاجَرَ، فَأَتَتْهُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي، فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ: مَهْيَا، قَالَتْ: رَدَّ اللَّهُ كَيْدَ الكَافِرِ، أَوِ الفَاجِرِ، فِي نَحْرِهِ، وَأَخْدَمَ هَاجَرَ" قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ تِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ [ص ۲۷۴-۲۷۵] [ر:۲۱۰۴][3]

## تراجم رجال

محمدبن محبوب: دا ابوعبدالله محمدبن محبوب البنانى البصرى رحمه الله دي.[4]

حماد بن زيد: داحماد بن زيد بن درهم الازدى البصرى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب المعاصى من أمر الجاهلية ولايكفرصاحبها...) لاندې تيره شوې ده.[5]

دَ ايوب سختيانى رحمه الله او محمدبن سيرين رحمه الله حواله دَ شاته حديث لاندې مونږ وركړې ده.

دَ ابراهيم عليه السلام ثلاث كذبات: (لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ إِلَّا ثَلَاثَ: ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ فِي ذَاتِ اللهِ عَزَّوَجَلَّ قَوْلُهُ: {إِنِّي سَقِيمٌ} وَقَوْلُهُ {بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا}).

---

[1] كشف البارى:۲/۲۶.

[2] كشف البارى:۲/۵۲۴.

[3] مرتخريجه فى كتاب البيوع باب شراء المملوك من الحربى وعتقه إلخ رقم:۲۲۱۷.

[4] اوگورئ كتاب الغسل باب تفريق الغسل والوضوء رقم:۲۶۵.

[5] كشف البارى: ۲/۲۱۹.

حضرت ابوهريره رضي الله عنه وائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي ابراهيم عليه السلام ټول عمر كښې دروغ نه دي وئيلي مګر درې ځل په دې كښې دوه ځل خو خالص د الله تعالى په ذات كښې وو. يو د هغوى دا وينا چه زه بيمار كيدونكې يم. دويم دا وينا كول چه دا د (نورو بتانو ماتولو) كار خودې غټ بت كړې دې

**قوله: كذبات.** ابو البقاء بغوي رحمه الله فرمائي چه ذال مفتوح لوستل ډير بهتر دى اودې واحد كذبة د ذال په سكون سره دې اودا (ضيعة وضيعات) په شان نه دې خكه هغه هم ساكن الاوسط دى مګر په جمع كښې به هم دا ساكن لوستلې كيږي.(١)

**د كذب اول بيان اود هغې توجيه:** حضرت ابراهيم عليه السلام د اختر د پاره د قوم سره تللو نه معذرت كړې وو اوفرمائيلې وو ﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ زه بيمار يم حالانكه بيمار نه وو. د سقم اطلاق په خپل نفس باندې صورتًا وو حقيقتًا نه وو اومقصدئي دا وو (اني سقيم القلب في الخروج معكم) يعنى زما زړه تاسو سره د وتلو د پاره تيار نه دې چه تاسو به هلته د كفريه اوشركيه اعمالو ارتكاب كوئى.(٢)

بعض حضراتو د دې دا مطلب بيان كړې دې چه سقيم دلته (سقيم الحجة) په معنى كښې دې اود ابراهيم عليه السلام مقصد دا وو چه (اني سقيم الحجة في الخروج معكم)(٣) زه سقيم الحجه يم زما سره ستاسو د تلو د پاره هيڅ دليل نشته د كوم په بنياد چه زه تاسو سره لاړ شم. كه چرې ابراهيم عليه السلام د نه تلو حقيقت دا وينا كولو سره خودلې وې چه تاسو به د اختر په ميلو كښې د شركيه شغلونو ارتكاب كوئى او زه دغه شرك كبيره ګناه ګنړم نو ښكاره خبره وه چه خلق به غصه كيدل اوحالات به يو ناخاپه د هغوى په حق كښې خرابيدل.

په دې كښې يو احتمال دا دې چه سقيم د فعيل په وزن باندې اسم فاعل په معنى كښې وى اواسم فاعل د مستقبل په معنى كښې په كثرت سره استعماليږي. په دې صورت كښې به ﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ د سأسقم په معنى كښې شى مطلب به داشى چه زه په راتلونكى وخت كښې بيماريدونكې يم. سړې بهر حال بيماريږى خو.(٤)

دا هم كيدې شى چه د سقم نه مرګ مراد وى د مرګ نه مفر نه وې كوم يو وخت هم راتلې شى. په دې صورت كښې به د سقيم نه د حضرت ابراهيم عليه السلام مقصد دا شى چه زما مرګ كوم يو وخت هم راتلې شى زه راتلونكى وخت كښې مړكيدونكې يم.(٥)

د سړى طبيعت اومزاج چه هروخت په اعتدال باندې وى داسې ډيركم كيږي. اكثر په طبيعت اومزاج كښې اعتدال نه وى. كيدې شى د ابراهيم عليه السلام طبيعت په اعتدال باندې نه وو اود مزاج د اعتدال نه وتلو كيفيت هغه په سقم سره تعبير كړې وى.(٦)

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په يو روايت كښې دى چه ابراهيم عليه السلام په بت خانه كښې وو. كله چه خلقو هغه ته د وتلو د پاره او وئيل نو ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل (اني مطعون) زه طاعون وهلې يم. په هغه زمانه كښې په نسبت د نورو بيمارو د طاعون مرض عام وو. په دې وجه هغه خلق د طاعون نه ډير ويريدل او په دې ويره نې هغه د ځان سره په بوتلو باندې تيار نه شو.(٧)

(١) للامع الصبيح بشرح الجامع الصحيح: ٩/٤٤٥.
(٢) فتح البارى: ٨/٤٨٢.
(٣) فتح البارى: ٨/٤٨٢.
(٤) فتح البارى: ٨/٤٨٢ شرح مسلم للنووى: ١٥/١٢٥ المطبعة المصرية بالأزهر.
(٥) فتح البارى: ٨/٤٨٢ إرشاد السارى: ٧/٢٨٢ شرح مسلم للنوى: ١٥/١٢٥ المطبعة المصرية بالأزهر.
(٦) إرشاد السارى: ٧/٢٨٢.
(٧) إرشاد السارى: ٧/٢٨٢.

علامه نووي رحمه الله دَ بعض حضراتو قول نقل كړي دي چه كوم وخت دا خبرې اترې كيدې هم هغه وخت په ابراهيم عليه السلام باندې تبه راروانه وه. لكه چه ابراهيم عليه السلام ته علم وو چه زه به په لږ ساعت كښې بيمار شم. په دې وجه ئې ﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ اوفرمائيل چه زه بيمار كيدونكې يم. دا قول ضعيف دې ځكه چه په دې صورت كښې دا نه صريح كذب دې اونه تعريض اوتلويح، بلكه دَ حقيقت واقعه اظهار دې (١)

**دَكذب ثاني بيان اودَهغې توجيه:** وقوله ﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا﴾.... دا دَدويم كذب واقعه ده. كله چه خلق دَ اختر دَميلې دَپاره لاړل نوابراهيم عليه السلام بت خانې ته لاړو تبرئې اوچت كړو او بتان ئې ټكړې ټكړې كړه او تبر ئې دَ غټ بت په اوږه باندې زوړند كړو. خلق چه راغله وئې كتل نو ټول بتان په سجده پراته وو نوهغوى سخت پريشانه شو او دَ غم اوغصې نه تاويدل هغوى ابراهيم عليه السلام نه تپوس اوكړو نوهغوى دَغټ بت طرف ته اشاره كولوسره اوفرمائيل ﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا﴾ داخودَ دغه غټ بت كار دې.

**يواشكال اودَهغې جواب:** دلته اشكار كيږي چه دَ بتانودَ ماتولو عمل خو ابراهيم عليه السلام پخپله كړې وو بيا دَدغه عمل نسبت دَ غټ بت طرف ته كولوڅه مطلب دې؟

دَدې جواب دادې چه دَ ﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ په شان ﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا﴾ كښې هم دا توريه ده اودا قول دَ ﴿إِن كَانُوا يَنطِقُونَ﴾ سره مشروط دې او تقديرى عبارت دادې چه «ان كانواينطقون فقدفعله كبيرهم هذا» مطلب دا چه كه چرې دوې ژوندي دي اودَ وينا صلاحيت لرى نوبيا خودې غټ دا كار كړې دې ګنې بيا بل چا دا حركت كړې دې (٢)

سبحان الله څه ښكلې تعريض دې. ابراهيم عليه السلام ته معلومه وه چه دَ دغه بتانودَحقيقت نه دا مشركان هم خبر دي چه هغه بې حس او بې حركته دي اودَدوى نه دَ يو عمل صادر كيدل ممكن نه دى په دې وجه ئې تعريض كولوسره اوفرمائيل چه كله دَدوى نه دَ يوكار كيدلو امكان معدوم دې نوزما نه علاوه دا كار بل څوك كولې شى هم ما خو كړې دې. نولكه چه ابراهيم عليه السلام دَ تعريض شانته دَدې عمل نسبت خپل ځان طرف ته كړې دې. دا علامه زمخشري رحمه الله په يو مثال سره خودلې دې چه دوه سړى دى يوسړې ښكلې خط ليكونكې دې اوبل كس په ليك لوست دَ سره پوهيږى نه. خطاط يو خط اوليكلو هغه بل سړې تپوس كوى چه دا چاليكلې دې؟ خطاط جواب وركړو چه هم تا خو ليكلې دې نو په دې جواب كښې دا خودل مقصود نه دى چه په حقيقت كښې دا هم تا ليكلې دې بلكه مخاطب پورې ټوقه مسخره كولوسره دَ تعريض شانته دغه خط ليكل هم خپل طرف ته منسوب كول مقصود دى. لكه چه په دې جملې سره دَخپل ذات طرف ته دَدې تحرير دَ نسبت نفى نه ده بلكه اثبات مقصود دې هم دغه شان حضرت ابراهيم عليه السلام هم دَ بتانو ماتولو نسبت هم دَخپل ذات دَپاره ثابت ونيلې دې چه دَ تپوس څه ضرورت دې كله چه دَدغه غټ نه دَ دې عمل دَ صادر كيدل نه كيدونكې خبره ده نو بيازما نه علاوه دا كار بل دَ چا كيدې شى.(٣)

بعض حضراتو دَدې دا جواب وركړې دې چه دَفعل نسبت ځنګه دَ هغې دَ فاعل طرف ته راګرځى هم دغه شان دَ دې په وجه دَمحرك طرف ته هم راګرځى. دَبتانو عبادت به كيدلو دَهغې تعظيم به كيدلو اودَ ټولونه زيات تعظيم به دَ دغه غټ بت كيدلو. ابراهيم عليه السلام به چه دغه بتانو ته كتل نوخفه كيدلو به. خاص كر دَ دغه غټ بت طرف ته به كتلو سره به ډير سخت خفه كيدلو او غصه كيدلو به چه دَ ټولو نه زيات تعظيم هم دَ ده كولې شى چونكه دغه لوئى بت دَ دې واقعه سبب اومحرك وو په دې وجه ابراهيم عليه السلام دَبتانو ماتولو نسبت دغه لوئى بت طرف ته كولوسره اوفرمائيل ﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا﴾.

---

١) فتح الباري: ٤٨٢/٨ إرشادالساري: ٢٨٢/٧ شرح مسلم للنوي: ٨٢٥/١٥ المطبعة المصرية بالأزهر.

٢) فتح الباري: ٤٨٢/٨.

٣) إرشادالساري: ٢٨٢/٧.

په دې كښې يوه توجيه دامام كسائي رحمه الله ده دعوى باره كښې راخى چه «بل فعله» باندې به ئې وقف كولو اودا به ئې مستقل جمله ګنړله او «كبيرهم هذا» به ئې په «بل فعله» باندې د وقف كولو نه پس لوستلو. په دې صورت كښې «كبيرهم هذا» به جمله مستانفه شي اوتقديرى عبارت به داسې شي «فعله من فعله، وكبيرهم هذا» يعنى دا كار چه چا كړې دې نو كړې دې اودې بتانو مشر دادې. حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه دا توجيه د تكلف نه خالى نه ده.(١)

**دكذب ثالث بيان اودهغې توجيه:** «بيناهو ذات يوم وسارة إذأتى على جبار من الجبابرة.......» دريم دا چه يوه ورځ حضرت ابراهيم عليه السلام اوبى بى ساره (دواړه په سفر كښې وو) چه د يوظالم بادشاه په خواكې تيريدل يعنى دهغه ملك نه اورسيدل. بادشاه ته اطلاع وركړې شوه چه دلته يو سړې راغلې دې يو روايت كښې «هذا رجل» الفاظ دى يعنى دا سړې دې. ده سره يوه ښائسته ښځه ده. بادشاه د ابراهيم عليه السلام د «راغوښتلو دپاره» پيغام اوليګلو اودهغه نه ئې تپوس اوكړو دا ښځه څوك ده؟

د مذكوره جابر بادشاه په نوم كښې شراح مختلف اقوال نقل كړى دى. ابن هشام رحمه الله اوسهيلى رحمه الله وائى دهغه نوم عمرو بن امرء القيس بن سبا وو اوداد مصر حاكم وو.(٢) ابن قتيبه رحمه الله وائى چه دهغه نوم صادق وو اود اردن بادشاه وو. (٣)دريم قول علامه ابن اثير رحمه الله دا نقل كړې دې دهغه نوم سنان بن علوان بن عبيد بن عريج بن عملاق بن لاود بن سام بن نوح وو.(٤)

**قوله: من أحسن الناس:** د صحيح مسلم حديث اسراء كښې دحضرت يوسف عليه السلام باره كښې راغلى دى: «أعطى شطر الحسن» (٥)

يعنى يوسف عليه السلام ته د حسن اوجمال نيمه حصه وركړې شوې وه. ابويعلى رحمه الله هم دا روايت نقل كړې دې او په هغې كښې دا اضافه هم شته: «أعطي يوسف وأمه شطر الحسن»(٦) يعنى يوسف عليه السلام اود هغه مور (ساره) ته د حسن اوجمال نيمه حصه وركړې شوې. ددې نه معلوميږى چه حضرت ساره د حضرت يوسف عليه السلام په شان په حسن اوجمال كښې خان له او بې مثاله وه. په يو روايت كښې دى چه ساره دملك حران بادشاه هاران لور وه. كله چه ابراهيم عليه السلام د خپل قوم د زمكې نه هجرت كولو سره حران ته تشريف يوړو نوساره سره ئې نكاح اوكړه.(٧) ابن قتيبه رحمه الله ونيلى چه ساره په اصل كښې د حضرت ابراهيم عليه السلام خورزه وه اودا څه ناجائز خبره نه وه ځكه چه دهغه

---

(١) فتح البارى: ٤٨٢/٨.

(٢) فتح البارى: ٤٨٣/٨ إرشادالسارى: ٢٨٣/٧.

(٣) فتح البارى: ٤٨٣/٨ إرشادالسارى: ٢٨٣/٧.

(٤) الكامل فى التاريخ: ٧٧/١ إرشادالسارى: ٢٨٣/٧.

(٥) صحيح مسلم: ٩١/١ كتاب الإيمان باب الإسراء برسول الله صلى الله عليه وسلم رقم: ٤١١.

(٦) فتح البارى: ٤٨٣/٨ حافظ ابن حجر رحمه الله د روايت د تخريج نسبت د محدث ابويعلى الموصلى رحمه الله طرف ته كړې دې خو په حقيت كښې دمحدث ابويعلى رحمه الله تخريج كړې شوې روايت كښې صرف دحضرت يوسف عليه السلام تذكره ده. دحضرت ساره رضي الله عنها تذكره دهغه په روايت كښې موجود نه ده. البته امام حاكم رحمه الله ددې روايت تخريج كړې دې او په هغې كښې دحضرت يوسف عليه السلام او دهغه دمور دواړو ذكر دې [مسند ابويعلى الموصلى مسند أنس بن مالك: ١٩٩/٣ رقم الحديث: ٣٣٦٠ دارالكتب العلمية المستدرك للإمام الحاكم كتاب تواريخ المتقدمين من الأنبياء والمرسلين: ٦٧١/٢-٦٧٠ رقم الحديث ٤١٤٠ دارالحرمين].

(٧) فتح البارى: ٤٨٣/٨.

وخت په شریعت کښې خورزې سره نکاح کول جائز وو.(١) لیکن ښکاره خبره ده چه دَدې قول مستبعد اوخلاف واقع کیدو کښې څه شك دې. بعض حضراتو وئیلي داد هغوی د تره لور وه.(٢)

**قوله: قال أختي، فأتي سارة قال.........أنك أختي، فلا تكذبيني.** ابراهيم علیه السلام جواب ورکړو چه دا زما خور ده. بیا حضرت ابراهیم علیه السلام حضرت ساره له راغلو وئې وئیل اې ساره دې وخت کښې په مخ دَ زمکې زما نه اوستانه بل هیڅوك مومن نشته دې. اودې ظالم بادشاه زمانه تپوس کړې دې چه دا ښځه څوك ده نوما ده ته اوخودل چه دا زما خور ده لهذا ته ما دروغژن نه کړې یعنی هم دغه ورته وایه چه ته زما خور ئې.

**متعارض روایات اودَ هغې تطبیق:** په دې روایت کښې تصریح ده چه بادشاه اول دَ ابراهیم علیه السلام نه دَ ساره باره کښې تپوس اوکړو نوهغه جواب ورکړو چه ساره زما خور ده او بیا حضرت ابراهیم علیه السلام ساره له راغلو ورته ئې وصیت اوکړو چه ته زما تصدیق اوکړه لیکن په یویل روایت کښې بادشاه سره دَملاقات ذکر روسته دې او ساره ته وصیت کولو مخکښې وارد شوی دی. چنانچه دَهشام بن حسان رحمه الله روایت دې چه حضرت ابراهیم علیه السلام ساره رضي الله عنها ته اوفرمائیل (إن هذا الجبار إن يعلم أنك امرأتي، يغلبني عليك، فإن سألك فأخبريه أنك أختي، وإنك أختي في الإسلام فلما دخل أرضه رآها بعض أهل الجبار، فأتاه فقال: لقد قدم أرضك امرءة لا ينبغي أن تكون إلا لك، فأرسل إليها)(٣)

یعنی که دغه جابر بادشاه ته معلومه شوه چه ته زما ښځه یئې نوهغه به تا په خپله قبضه کښې واخلي په دې وجه که هغه تانه تپوس اوکړی نوورته وایه زه دَابراهیم خور یم. ښکاره خبره ده چه ته زما دینی خور یئې، چنانچه ابراهیم علیه السلام دَ بادشاه په مملکت کښې داخل شو نودَ هغه پیژندونکو ملګرو ساره اولیدله او راغله بادشاه ته ئې اوونیل چه ستا په مملکت کښې یوه داسې ښځه راغلې ده چه صرف هم ستا دَ شان لائقه ده لهذا ته هغه راوغواړه.

په دواړو روایتونوکښې به تطبیق داسې اوشي چه ابراهیم علیه السلام ته به احساس شوې وی چه دَبادشاه دَطرف نه به دَ ساره مطالبه کیږی په دې وجه ئې دَ اول نه ساره ته وصیت اوکړو. بیا چه کله دَهغه دَ ګمان مطابق دَمطالبې واقعه پیښه شوه نودَهغه وصیت اعاده ئې اوکړه.(٤)

**ساره ته دَ خور وئیلوحکمت:** دَ بادشاه هم یومقصد وو چه ساره رضي الله عنها په څه طریقه سره حاصله کړی دَهغه دې خبرې سره هیڅ غرض نه وو چه هغه دَ ابراهیم علیه السلام ښځه ده یا خور ده. نو سوال دادې چه ابراهیم علیه السلام ولې ساره ته خور اوونیل؟

ددې یو جواب خودادې چه دَبادشاه عادت وو چه هغه به صرف دَ خلقو ښځې غصب کولې خونیندو سره به ئې غرض نه لرلو په دې وجه ابراهیم علیه السلام دَ توریه نه کار اخستو سره هغه خور ظاهره کړه. ښکاره خبره ده چه دا کذب نه وو ځکه چه ساره دَهغه دینی خور وه.(٥)

بعض حضراتو دا جواب ورکړې چه کیدې شی دَحضرت ابراهیم علیه السلام مقصد (أهون البلیتین) اختیارولوسره (أضر البلیتین) دفع کول وو چه دَ ساره دَ غصب کولو اراده خو بهرحال بادشاه کړې وه لهذا که چرې هغه ته معلومه شوه چه ساره دَ ده ښځه ده نوبادشاه به په غیرت کښې راتلوسره یا خو ما قتل کړی یابه مې قید کړی. دَدې په خلاف

---

(١) المرجع السابق.

(٢) المرجع السابق.

(٣) صحيح مسلم: ٢٦٦/٢باب من فضائل إبراهيم الخليل رقم: ٢٣٧١ والسنن الكبرى للبيهقي: ٥٩٩/٧كتاب الخلع والطلاق باب الرجل يقول لامرأته: يا أختي يريدالأخوة في الإسلام رقم: ١٥١٤٤.

(٤) فتح الباري:٤٨٤/٨.

(٥) فتح الباري:٤٨٣/٨عمدة القاري: ٣٤٤/١٥.

که بادشاه ته اووئیلې شی چه ابراهیم د هغې رور دې نو د غیرت دا غلبه به په خائی د بادشاه په رور (ابراهیم علیه السلام) باندې شی. په دې صورت کښې به بادشاه ته د رور پرواه نه وی او د بادشاه د طرف نه به د نقصان اندیښنه پاتې نه شی.[1]

بعض حضراتو وئیلی چه د دې جابر بادشاه په دین کښې د خور او رور نکاح نه صرف جائز وه بلکه د نورو په مقابله کښې د خور سره د رور د نکاح حق زیات هم وو. چنانچه عبدبن حمید رحمه الله په خپل تفسیر کښې د وهب بن منبه روایت نقل کړې دې: (من دین الملک أن الأخ أحق بأن تکون أخته زوجته من غیره، فلذلک قال هی أختی اعتمادا علی مایعتقده الجبار فلا ینازعه فیها) نو حضرت ابراهیم علیه السلام او فرمائیل چه دا زما خور ده او مقصد نی دا وو چه کله بادشاه ته معلومه شی چه ساره د هغه خور ده نو هغه به د خپلې عقیدې د وجې نه به د ساره په معامله کښې د انختلو کوشش نه کوی او مونږ به په مصیبت کښې د راګیریدو نه بچ شو.[2]

په دې باندې اشکال کیږی چه که چرې دا روایت ثابت وی نو بیا ابراهیم علیه السلام (هی أختی) باندې د اکتفاء کولو په خائی به ئی تصریح کوله چه (أختی وأنا زوجها) یعنی دا زما خور ده او زه د دې خاوند یم. شراح حدیث د دې دا جواب ورکړې دې چه بادشاه د واده په خائی د غصب نیت لرلو. دا تصریح به په هغه صورت کښې فائده منده وه چه کله د بادشاه اراده د واده وه.[3]

بهرحال په دریوارو مواقعو کښې حضرت ابراهیم علیه السلام توریه او تعریض اختیار کړې دې. توریه یا تعریض داسې ذوه معنی کلام ته وائی چه د یو تیک او صحیح مقصد د پاره او وئیلې شی. د متکلم مراد خو صحیح وی لیکن مخاطب په هغې باندې پوهه نه شی. د علم بدیع او معانی په اصطلاح کښې دې اسلوب کلام ته تعریض او توریه وغیره سره یادولې شی. خو که مخاطب په دماغو باندې زور واچوی او د غور او فکر نه کار واخلی نو هغه د متکلم مراد باندې پوهیدې شی.[4]

ابراهیم علیه السلام په دریوارو مواقعو کښې توریه او تعریض کړې دې. په دې کښې په یوه موقع باندې هم د هغه مخې ته ذاتی غرض او دنیاوی مفاد نه وو صرف د حمایت او دین د نصرت د پاره په دریوارو مواقع باندې د توریه او تعریض لار خپله کړې ده. چنانچه د شفاعت په حدیث کښې تصریح ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی (مامنها کذبة إلا ما حل بها عن دین الله)[5] یعنی د ابراهیم علیه السلام دریوارو کذبات نه هر یو صرف د الله تعالی د دین د مدافعت او حمایت د پاره او وئیلې شو. لیکن اشکال دا دې چه کله د دریوارو نه په یو باندې هم حقیقتاً د دروغو اطلاق نه کیږی نو بیا په حدیث کښې دې ته کذبات سره تعبیر کولو سره ولې بیان کړې شو. حافظ ابن حجر رحمه الله د دې دا جواب ورکړې

---

[1] فتح الباری: ۴۸۳/۸ إرشادالساری: ۳۸۳/۷ قال ابن حجر رحمة الله علیه: اختلف فی السبب الذی حمل إبراهیم علی هذه الوصیة مع أن ذلک یرید اغتصابها علی نفسها أختا کانت أو زوجة. فقیل: کان من دین ذلک الملک أن لا یتعرض إلا لذوات الأزواج. کذا قیل. ویحتاج إلی تتمة، وهو أن إبراهیم أراد دفع أعظم الضررین بارتکاب أخفهما. وذلک أن اغتصاب الملک واقع لا محالة. لکن إن علم أن لها زوجا فی الحیاة حملته الغیرة علی قتله وإعدامه أو حبسه وإضراره، بخلاف ما إذا علم أن لها أختا. فإن الغیرة حینئذ تکون من قبل الأخ خاصة. لا من قبل الملک فلا یبالی به.

[2] فتح الباری: ۴۸۴/۸.

[3] فتح الباری: ۴۸۴/۸.

[4] فتح الباری: ۴۸۲/۸.

[5] رواه الترمذی فی جامعه فی باب ومن سورة بنی إسرائیل رقم: ۲۴۴۱ شرح النووی للإمام مسلم: ۱۲۴/۱۵ المطبعة المصریة بالأزهر.

دي چونكه توريه ظاهراً او صورتاً كذب معلوميږي په دې وجه دَ ظاهر اعتبار كولوسره حديث كښې په دې باندې دَ كذب اطلاق كړې شوې دې.(١)

علامه مازرى رحمه الله فرمائى چه داسې دروغ چه دَهغې نسبت دَ الله تعالى دَ ذات طرف ته كولوسره اووئيلې شى دَ دې نه حضرات انبياء كرام عليهم السلام معصوم دى ليكن داسې دروغ چه دَالله تعالى طرف ته نسبت كولوسره نه وى وئيلې شوى لكه چه دَ دنيا دَ يوسپك غوندې عمل دَپاره يو خل دروغ وئيل نوداسې دروغ دَحضرات انبياء كرام نه صادر كيدوكښې متقدمين اومتاخرين نه دواړه شان اقوال مشهور دى. قاضى عياض رحمه الله فرمائى دَ دروغو دَ رومبى قسم تصور هم انبياء كرام عليهم السلام په نسبت سره ناممكن دى نه لږ اونه ډير. برابره خبره ده مونږ دَ صغائر صدور دَ انبياء كرام نه ممكن اوګرځوو يا ممتنع نو په دواړو صورتونوكښې دَ دې قسم وقوع دَ انبياء كرامو عليهم السلام په نسبت غير متصور ده ځكه چه دَ نبوت مقصد ډير اوچت منصب دې اودداسې دروغو دَ جواز مطلب دَ انبياء كرام عليهم السلام په خودلې شوو خبرو باندې عدم اعتماد دې پاتې شود دا خبره چه حضور پاك ولې اوفرمائيل «ثنتين في ذات الله تعالى وواحدة في شان سارة» نو جواب دادې چه په دې دريواړوكښې دَ دروغو اطلاق فهم مخاطب اودَسامع په اعتبار سره كړې شوې دې په حقيقت كښې يو كلام هم دروغ نه دې يو خودَ دې وجې نه چه حضرت ابراهيم عليه السلام توريه او تعريض استعمال كړې او بل دَ دې وجې نه چه كه دريواړو كلامونوته دروغ هم اووئيلې شى نودَ ظالم ظلم دفع كولودَپاره دروغ وئيل جائز بلكه بعض صورتونوكښې واجب كيږى. اوحقيقت دادې چه حضور پاك ددې كلام په ذريعه باندې په دې تنبيه كړې ده چه دا دروغ په هغه دروغوكښې شامل نه دى كوم چه كذب مذموم دې.(٢)

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دَ فقهاؤ په دې خبره باندې اتفاق دې چه بعض مقاماتوكښې دروغ وئيل واجب كيږى. دَ مثال په توګه كه يو ظالم يوسړى سره موجود وديعت غصب كول غواړى او مطالبه اوكړى نو صاحب وديعت باندې واجب دى چه دروغ اووائى. داسې اووائى چه ماته معلومه نه ده چه هغه څيز چرته كيخودې شوې دې بلكه په دې باندې دې قسم هم اوخورى.(٣)

**قوله: فأرسل إليها، فلما دخلت عليه ذهب يتناولها بيده فأخذ.....:** بادشاه ساره (په زور) راؤغوښتله. كله چه هغه بادشاه ته اورسيدله نوهغه په دې باندې لاس اچول غوښتل نوناڅاپى راګير كړې شو (اودَهغه لاس شل شو) وئى وئيل اې ښځې ته زما دَپاره دَ الله تعالى نه دعا اوكړه (چه زما لاس جوړشى نو) زه به تا نه تنګوم. ساره دعا اوكړه نودَهغه لاس خلاص كړې شو (يعنى ښه شو) ليكن هغه بيا (بده اراده سره) لاس وراندې كړو نوبيا هم هغه آفت په نوره زياته سختئى سره دَ هغه لاس اونيولو (يعنى لاس ئى شل شو يا دَدې نه هم سخته سزا وركړې شوه) بيائى اووئيل اې ښځې ته ماته دعا اوكړه زه به تا نه تنګوم. ساره دعا اوكړه نودَ هغه لاس بيا جوړ شو. بيا هغه دَ خپلو خدمتګارانو نه يوه ډله راؤغوښتله او ورته ئى اووئيل «انكم لم تأتونى بإنسان إنما أتيتمونى بشيطان» يعنى تاسو ماله انسان نه بلكه يو پيرى راوړلې راغلې يئ.

په نورو رواياتوكښې ثابتيږى چه جابر بادشاه كله هم بده اراده اوكړه هرځل باندې هغه ته مختلف سزا وركړې شوه. كله به دَ هغه مرئى خفه كولې شوه نو دَ سختئى دَ وجې نه اودَتكليف نه به ئى په زمكه ګيټئى مرلې او كله به په زمكه باندې راخلاصولې شو.(٤) داقسم خارق الامر واقعات دَدې زمانې خلق متمرد او سركش جنات طرف

---

(١) فتح البارى: ٤٨٢/٨، إرشادالسارى: ٢٨١/٧.

(٢) شرح مسلم للإمام النووى: ١٢٤/١٥.

(٣) عمدة القارى: ٣٤٣/١٥.

(٤) فتح البارى: ٤٨٤/٨.

ته منسوب کوی په دې وجه دَ ساره په نسبت هم هغه اووئیل چه دا چرته سرکشه جن دې. دَ شیطان نه دلته جن مراد دې.[1]

علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی راوی ته دَحدیث الفاظ (لم تناولها الثانية) کښې تسامح لاحق شوې دې ځکه چه دغه ظالم بادشاه ته دَ سره دَ لاس لګولو قدرت نه وو شوې. لاس لګول او تناول خو ډیره لرې خبره ده. البته دا ضرور دی چه دغه ظالم دَ لاس لګولو اراده کړې وه او وروراندې شوې وو مګر دَالله تعالی دَ عذاب سره مخ شوې وو.[2]

**قوله: فأخدم هاجر، فأتته وهو قائم يصلي، فأومأ بيده: مَهْيَم؟:** جابر بادشاه هاجره ساره ته حواله کړه چه دَدې خدمت کوه. ساره ابراهیم علیه السلام له راغله هغه وخت ولاړ وو مونځ ئې کولو. ابراهیم علیه السلام (هم په مانځه کښې) دَلاس په اشاره کولوسره تپوس اوکړو څه خبر دې؟. حضرت ساره رضی الله عنها دَحضرت اسحاق علیه السلام مور بی بی ده.[3]

دَ صحیح مسلم روایت کښې دی (فأخرجها من أرضي وأعطها آجر)[4] یعنی بادشاه اوئیل چه ساره زما دَ ملك نه اوباسه او آجر ددې حواله کړئې. دَ اعرج په روایت کښې هم دا نوم هم دغه شان ضبط شوې دې.[5] بهرحال په دواړو صورتونو کښې دا سریانی نوم دې. وئیلی شی چه هاجره دَمصر ښار حفن دَ یوقبطی بادشاه لور وه.[6]

ملاعلی قاری رحمه الله په قیل سره نقل کړی دی چه حضرت هاجره رضی الله عنها ته دَهاجره وئیلو وجه داده چه هغې دَ شام نه دَ مکې طرف ته هجرت کړې وو. بل دَ ابن الملك رحمه الله په حواله سره ئې لیکلی دی چه دَحضرت ابراهیم علیه السلام دَ ساره رضی الله عنها نه څه اولاد نه وو شوې نوحضرت ساره هاجره رضی الله عنها ابراهیم علیه السلام ته هدیه کړه اوونې وئیل چه امید دې چه الله پاك دَدې نه تاته اولاد درکړی. دغه وخت دَحضرت ابراهیم علیه السلام عمر سل کاله وو.[7] هاجر ته آجر دَهاء په ځائې همزه سره هم لوستلې شوې دې او دا دَ اسماعیل علیه السلام مور بی بی وه.[8]

مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی دَحضرت ابراهیم علیه السلام حضرت ساره رضی الله عنها او بادشاه (فرعون مصر) دَدې واقعې سره متعلق وارد شوی روایاتو نقل کولوسره لیکلی دی چه دَدې ټولو روایاتونه دومره په یقینی توګه سره معلومیږی چه حضرت ابراهیم علیه السلام خپلې بی بی حضرت ساره رضی الله عنها او دَخپل رور خوئی حضرت لوط علیه السلام سره مصر ته تشریف یوړو. دا هغه زمانه وه چه کله دَ مصر حکومت دَ یو داسې خاندان په لاس کښې وو چه سامی قوم سره ئې تعلق لرلو اودغه شان حضرت ابراهیم علیه السلام سره په نسبی سلسله کښې تړلې شوې وو. دلته په رسیدوسره دَ حضرت ابراهیم علیه السلام او فرعون مصر په مینځ کښې ضرور داسې واقعه پیښه شوې په کوم سره چه دَهغه یقین اوشو چه حضرت ابراهیم علیه السلام اودَهغه خاندان دَالله تعالی مقبول او برګزیده خاندان دې. دَدې په کتلو سره هغه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام او حضرت ساره رضی الله عنها ډیر اعزاز اواکرام اوکړو اوهغوی ته ئې هرقسم مال اواسباب ورکړو او

---

[1] فتح الباری:۴۸۵/۸عمدة القاری:۳۴۴/۱۵.

[2] فیض الباری: ۳۶۶/۴.

[3] اللمع الصبیح بشرح الجامع الصحیح: ۴۴۵/۹ الکنز المتواری:۲۸۴/۱۳.

[4] صحیح مسلم کتاب الفضائل باب من فضائل إبراهیم الخلیل علیه الصلاة والسلام رقم الحدیث:۶۱۴۵حافظ ابن حجر رحمه الله دَامام مسلم رحمه الله په نسبت لیکلی دی چه هغوی هاجر په ځائې آجر روایت کړې دې مګر مونږ ته په یو نسخه کښې آجر همزه سره نه دې ملاؤ شو.

[5] فتح الباری: ۴۸۵/۸.

[6] فتح الباری: ۴۸۵/۸ عمدة القاری: ۳۴۴/۱۵.

[7] مرقاة المفاتیح کتاب أحوال القیامة باب بدء الخلق: ۳۷۴/۱۰رقم الحدیث: ۵۷۰۴دارالکتب العلمیة.

[8] اللمع الصبیح بشرح الجامع الصحیح:۴۴۶/۹ عمدة القاری: ۳۴۴/۱۵ الکنز المتواری:۲۸۴/۱۳ - ۲۸۵.

صرف په دې باندې صبر نه شو بلکه خپله پخوانئ خاندانی رشته د مضبوط کولو او مستحکم کولو دپاره خپله لور هاجره هم دهغه په زوجیت کښې ورکړه چه دهغه زمانې د رسم او رواج په اعتبار سره د رومېې او مشرې ښځې خدمتګاره اوګرځی.(۱)

**قوله: مَهْيَمْ:** په اکثرو نسخوکښې دا لفظ هم دغه شان ضبط شوې دې بعض نسخوکښې مهیا او مهین ضبط شوې دې. په دریوارو صورتونوکښې دا حرف استفهام دې اوهم په یوه معنی کښې دې. یعنی «ماحالك؟وماشأنك،وما الخبر»(۲) ونیلې شی چه د ټولو نه اول دا لفظ حضرت ابراهیم علیه السلام استعمال کړې.(۳)

**قوله: قالت: رَدَّاللهُ كَيْدَ الكَافِرِأَوِالفَاجِرِفِي نَحْرِهِ وَأَخْدَمَ هَاجَرَ:** ساره رضي الله عنها اوونیل الله تعالی د دې کافر یا بدکار فریب اولټه کړو اوهاجره نې د خدمت دپاره راکړه.

**قوله: ثنتین منهن فی ذات الله:** ثلاث کذاب سره متعلق تفصیلی بحثونه تاسو اولوستل. اوس تاسو په دې خان پوهه کړنی چه د حدیث باب په شروع کښې چه داکوم فرمانیلې شوی «ثنتین منهن فی ذات الله تعالی» یعنی د دریو کذبات نه دوه کذبات خالص د الله تعالی دپاره وو نوهم دغه شان کذب ثالث نې هم د الله تعالی دپاره ونیلې وو. مګر چونکه ذاتی نفع ته هم متضمن وو اومقصد نې د خپلې بی بی پاکوالې بچ کول وو په دې وجه د دې ارخ اعتبار کولو سره صرف کذب اول اوثانی باره کښې نې تصریح اوفرمانیله چه هغې ته خالص لوجه الله اوونیلې شو.(۴)

خو د دې روایت په بل طریق کښې تصریح ده چه دریواړه کذبات نې د الله تعالی دپاره ونیلې وو. چنانچه د هشام بن حسان رحمه الله په روایت کښې دی «إن إبراهیم لم یکذب قط إلا ثلاث کذبات، کل ذلك فی ذات الله».(۵)دغه شان مسند احمد کښې د ابن عباس رضي الله عنهما روایت دې: «والله إن حاول بهن إلا عن دین الله»(۶)

**عربو ته بنوماء السماء وئیلو بیان:** «قال أبوهريرة: تِلْكَ أُمُّكُمْ يَابَنِي مَاءِ السَّمَاءِ.....» حضرت ابوهریره رضي الله عنه مذکوره روایت بیانولوسره په آخره کښې د هاجره رضي الله عنها طرف ته اشاره کولوسره اوفرمانیل د آسمان د اوبو والو هم دغه «هاجره» ستاسو مور وه. د حضرت ابوهریره رضي الله عنه مخاطب عرب وو. د عربو د ژمکې زیاته حصه په ځنګلاتو او بیابانونو باندې مشتمل وه او د هغوی وخت تیریدل به د باران په اوبو سره وو په دې وجه نې هغوی ته بنی ماء السماء اوونیل.(۷)

یوقول دا دې چه ماء السماء نه د زمزم اوبه مراد دی. الله تعالی د حضرت هاجره رضي الله عنها د پاره د ژمکې نه د زمزم چینه جاری کړه او په دې سره نې د حضرت اسماعیل علیه السلام تربیت اوپالنه اوکړه. اکثر عرب د حضرت اسماعیل علیه السلام د نسل نه دی په دې مناسبت سره هغوی ته بنو ماء السماء اوونیلې شو.(۸)

---

(۱) قصص القرآن: ۱۶۲/۱دارالإشاعة.

(۲) عمدة القاری: ۳٤٤/۱٥فتح الباری: ٤۸٥/۸.

(۳) المصدرالسابق.

(٤) فتح الباری: ٤۸۲/۸عمدة القاری: ۳٤۳/۱٥شرح مسلم للإمام النووی: ۱۲٥/۱٥المطبعة المصریة بالأزهر.

(٥) أخرجه البزار فی مسنده: ۳۰٥/۱۷(۱۰۰٥٤)مکتبة العلوم والحکم المدینة المنورة.

(٦) أخرجه أحمد بن حنبل فی مسنده: ۳۳۰/٤(۲٥٤٦)مؤسسة الرسالة بتحقیق شعیب الأرنؤوط.

(۷) شرح النووی: ۱۲٥/۱٥عمدة القاری: ۳٤٤/۱٥.

(۸) أعلام الحدیث للخطابی: ۱٥۳۸/۳عمدة القاری: ۳٤٥/۱٥.

دَدې قول تائيد دَ صحيح ابن حبان دَ روايت نه هم كيږي په هغې كښې دي: «كُلُّ مَنْ كَانَ مِنْ وُلْدِ إِسْمَاعِيلَ يُقَالُ لَهُ مَاءُ السَّمَاءِ، لِأَنَّ إِسْمَاعِيلَ وَلَدُ هَاجَرَ وَقَدْ رُبِّيَ بِمَاءِ زَمْزَمَ وَهِيَ مِنْ مَاءِ السَّمَاءِ»[1] يعنى دَ اسماعيل عليه السلام دَ اولاد نه چه څوك هم وى هغه ته به ماء السماء ونيلى شي ځكه چه اسماعيل عليه السلام دَ هاجره بى بى ځوئى دې او دَهغه تربيت او پالنه دَ زمزم په چينه سره شوې وه او دا چينه دَ آسمان دَ اوبونه وه.

يو احتمال دا هم دې چه دَماء السماء نه مراد عامر وى چه دَ اوس او خزرج نيكه وو او عامر ته به ماء السماء په دې وجه ونيلې كيدو چه كله به هم قحط راتلو نو هغه به په خپل مال سره دَخلقو امداد كولو يعنى دَهغه مال به دَ باران په شان كيدلو په دې وجه عامر ته ماء السماء ونيلې كيدو.[2] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا قول هم په دې وجه باندې دې چه عرب ټول په ټوله دَ حضرت اسماعيل عليه السلام اولاد نه دى.[3]

دلته اشكال كيدې شى چه حضرت لوط عليه السلام خو هم ايمان راوړلې وو بلكه هغه په خپله نبى هم وو نو بيا ابراهيم عليه السلام ولې او فرمائيل چه زما او ستا نه بغير په دې زمكه باندې څوك مومن نشته؟ ددې جواب دا دې چه حضرت لوط عليه السلام دَحضرت ابراهيم عليه السلام سره په دې سفر كښې نه وو. هغه په خپل كلى كښې وو. او ابراهيم عليه السلام دَ دغه مخصص علاقې په اعتبار سره دا خبره كړې وه چه دلته زما او ستا نه علاوه بل څوك مومن نشته.[4]

**دَحديث باب نه مستنبط فوائد:** ① دَ حديث باب نه معلومه شوه چه اخوت دينيه ثابت دى او تعريض او توريه مباح دى.[5]

② دَ غاصب او جابر غلط او جابرانه مطالبه نه منل عزيمت او منل رخصت دې. دَحديث باب نه معلومه شوه چه په رخصت باندې عمل كول ثابت دى.

③ دَ ظالم حكمران بدله او مشرك هديه قبلول جائز دى.[6]

④ كه چرې په خالص نيت سره دعا او غوښتلې شى نو هغه قبليږى. حضرت ساره رضي الله عنها په اخلاص سره دعا او كړه او قبوله شوه.[7]

⑤ دَصحيح مسلم روايت دې دَ دې سختئى په وخت كښې حضرت ابراهيم عليه السلام دَمانځه دَپاره ولاړ وو «فقام ابراهيم إلى الصلاة»[8] دغه شان «ابوالزناد عن الأعرج» په طريق سره چه كوم روايت نقل دې په هغې كښې دا اضافه ده: «فقام إليها، فقامت توضأ وتصلي»[9] يعنى بادشاه دَ حضرت ساره رضي الله عنها طرف ته اوراندې شو نو هغه پاسيده او دس ئى اوكړو او مونځ ئى كولو. ددې روايت نه شراح دوه آداب مستنبط كړى دى. يو خو دا چه ډيره دَ غم او مصيبت واقعه پيښه شي نو دَ آسانتى دَپاره صلوة حاجت كول پكار دى. بله خبره دا ثابته شوه چه اودس كول صرف دَ انبياء كرامو اود دې امت خصوصيت نه دې بلكه دا په امم سابقه كښې هم مشروع وو.[10]

---

[1] صحيح ابن حبان: ۴۷/۱۳ تحقيق شعيب أرنؤوط رقم: ۵۸۳۰ دارالنشر، مؤسسة الرسالة.
[2] إرشادالساري: ۲۸۵/۷ فتح الباري: ۴۸۶/۸ عمدة القاري: ۳۴۵/۱۵.
[3] فتح الباري: ۴۸۶/۸.
[4] فتح الباري: ۴۸۴/۸.
[5] عمدة القاري: ۳۴۵/۱۵ فتح الباري: ۴۸۶/۸.
[6] فتح الباري: ۴۸۶/۸ عمدة القاري: ۳۴۵/۱۵.
[7] صحيح مسلم كتاب الفضائل باب من فضائل إبراهيم: رقم: ۶۲۹۴
[8] صحيح مسلم كتاب الفضائل باب من فضائل إبراهيم: رقم: ۶۲۹۴
[9] انظر صحيح البخاري كتاب البيوع باب شراء المملوك من الحربي وهبته وعتقه رقم: ۲۱۰۴.
[10] فتح الباري: ۴۸۶/۸ عمدة القاري: ۳۴۵/۱۵.

[۳۱۸۰]- حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، أَوِ ابْنُ سَلَامٍ عَنْهُ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أُمِّ شَرِيكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ، وَقَالَ: كَانَ يَنْفُخُ عَلَى إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ" [ص ۲۹۱] [ر: ۳۱۳۱] (۱)

## تراجم رجال

**عبيدالله بن موسى:** دا عبيدالله بن موسى بن باذام عبسى كوفى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب أمور الدين) لاندې تيره شوې ده. (۲)

**ابن سلام:** دا محمد بن سلام سلمى بيكندى رحمه الله دي. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب قوله النبى صلى الله عليه وسلم أنا أعلمكم بالله) لاندې تيره شوې ده. (۳)

**ابن جريج:** دا عبدالملك بن عبدالعزيز بن جريج اموى رحمه الله دي. (۴)

**عبدالحميد بن جبير:** داعبدالحميد بن جريج بن شيبه بن ثمان رحمه الله دي. اوگورئ: (۵)

**سعيد بن المسيب:** دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب من قال: إن الإيمان هو العمل) لاندې تيره شوې ده. (۶)

**ام شريک:** دا غزيه يا غزيله بنت ودوان بن عمرو بن عامر رضي الله عنها ده. (۷)

**حدثنا عبيدالله بن موسى او ابن سلام عنه** دواړه دَامام بخارى رحمه الله شيوخ دي. خو دَعبيدالله بن موسى رحمه الله شمير دَهغوى په كبار شيوخ كښې كيږي. امام بخارى رحمه الله ته شك دې چه دا روايت ما دَعبيدالله بن موسىٰ نه اوريدلې دې كه نه؟ البته دَمحمد سلام رحمه الله نه دَدې حديث په سماع كښې هغه ته شك نه وو. په دې وجه ئې په لفظ أو سره دَشك اظهار اوكړو او بيائې په يقين سره اوفرمائيل چه دا روايت مونږ دَمحمد بن سلام رحمه الله نه اوريدلې دې او هغوى دَعبيدالله بن موسى رحمه الله نه (۸)

**كركټ (چمچور كئى) وژلو حكم:** (إن رسول الله صلى الله عليه وسلم أمر بقتل الوزغ.....) دَام شريک رضي الله عنها روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دَكركټ دَوژلو حكم اوكړو او وئې فرمائيل (كله چه ابراهيم عليه السلام په اور كښې واچولې شو نو دې بدبخت په ابراهيم عليه السلام باندې (اور) تيزولو دَپاره پوكى وهل او نورو تولو مرغانو او ځناورو دَهغې دَمړ كولو كوشش كولو. (۹)

---

(۱) مر تخريج الحديث في بدء الخلق باب خير مال المسلم غنم يتبع بها شعف الجبال رقم: ۳۳۰۸.
(۲) كشف البارى: ۶۵۷/۱
(۳) كشف البارى: ۹۳/۲.
(۴) كتاب الحيض باب غسل الحائض رقم: ۲۹۶ ص: ۲۰۴.
(۵) كتاب الصوم باب صوم يوم الجمعة رقم: ۱۹۸۴.
(۶) كشف البارى: ۱۵۹/۲.
(۷) كتاب بدء الخلق باب خير مال المسلم غنم ينبع بها شعف الجبال رقم: ۳۳۰۷.
(۸) عمدة القارى: ۳۴۵/۱۵ إرشادالسارى: ۲۸۵/۷ فتح البارى: ۴۸۶/۸.
(۹) إرشادالسارى: ۲۸۵/۷.

علامه دميري رحمه الله دَ حضرت عائشه رضي الله عنها روايت نقل كړي دي چه كله بيت المقدس سوزولې شو نو ډير كرګټان بوخاني شو او اور له به ئې دَتيزولو دَپاره پوكي وركول. (¹) كركټ ګونګا او ابرص يعني برګ مرض. دا ډير موذي خناور دي كه دَ خوراك څښاك په لوښي كښې خوله وركړي او يو انسان هغه استعمال كړي نو سخت جاني نقصان كيدو انديښنه ده. (²)

دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما يو روايت دي (اقتلوا الوزغ ولوفي جوف الكعبة) يعني چمچور كښې قتل كړئ اګرچه هغه په بيت الله كښې دننه وي. دا روايت طبراني رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعاً نقل كړې دې. (³) خو ددې په سند كښې عمر بن قيس مكي ضعيف راوي دي. (⁴)

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره دَ حديث دَ ټكړې (على ابراهيم عليه السلام) مناسبت ظاهر دې. (⁵)

[۳۱۸۱] - حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ {الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا} [الأنعام: ۸۲] إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ، قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّنَا لاَ يَظْلِمُ نَفْسَهُ؟ قَالَ: "لَيْسَ كَمَا تَقُولُونَ {لَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ} [الأنعام: ۸۲] بِشِرْكٍ، أَوَلَمْ تَسْمَعُوا إِلَى قَوْلِ لُقْمَانَ لِابْنِهِ يَا بُنَيَّ لاَ تُشْرِكْ بِاللَّهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ" [ص ۲۹۳-۲۹۴] [ر: ۳۲] (⁶)

## تراجم رجال

**عمر بن حفص:** دا عمر بن حفص بن غياث نخعي كوفي رحمه الله دي. (⁷)

**اعمش:** دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدي كوفي رحمه الله دي. اعمش په لقب سره مشهور دي. دَدوی تذكره (كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تيره شوې ده. (⁸)

**ابراهيم:** دا ابوعمران ابراهيم بن يزيد بن قيس بن الاسود نخعي كوفي رحمه الله دي. دَدوی تذكره هم مذكوره كتاب او باب لاندې تيره شوې ده. (⁹)

**عبدالله:** دا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دي. دَدوی تذكره هم مذكوره كتاب او باب لاندې تيره شوې ده. (¹⁰)

---

¹) إرشادالساري: ۲۸۵/۷.

²) إرشادالساري: ۲۸۵/۷.

³) المعجم الكبير للطبراني باب العين، أحاديث عبدالله بن العباس رقم الحديث: ۱۱۳۹۵ وأخرجه كمال الدين الدميري في حياة الحيوان الكبرى: ۵٤۵/۲ دار الكتب العلمية.

⁴) إرشادالساري: ۲۸۵/۷.

⁵) عمدة القاري: ۳۷۵/۱۵.

⁶) مرتخريجه في كتاب العلم باب ظلم دون ظلم رقم: ۳۲.

⁷) كشف الباري كتاب الغسل ص: ٤٦٤.

⁸) كشف الباري: ۲۵۱/۲.

⁹) كشف الباري: ۲۵۳/۲.

¹⁰) كشف الباري: ۲۵۷/۲.

لما نزلت ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ﴾ ........الخ: حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وائي چه كله دا آيت نازل شو: كومو خلقو چه ايمان راوړو اوهغوى په خپل ايمان كښې ظلم (شرك) شامل نه كړو، نو مونږ عرض اوكړو يارسول الله په مونږ كښې څوك داسې دي چاچه ظلم (څه ګناه) نه وى كړې؟ حضور پاك اوفرمائيل خبره دغه نه ده كومه چه تاسو ګڼړئى (آيت كښې) دَ ظلم نه مراد شرك دې. آيا تاسو په (قرآن كښې) خپل خوئى ته دَ لقمان وصيت نه دې اوريدلې چه بچيه الله تعالى سره شرك مه كوه ځكه چه شرك لوئى ظلم دې.

دَ سورت انعام آيت دې: ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ﴾ [1] يعنى كومو خلقو چه ايمان راوړو اوهغوى په خپل ايمان كښې شرك يوځائى نه كړو امن هم دَهغوى دپاره دې اوهم هغه په نيغه لار دى.

دَ ظلم مختلف مدارج او افراد دى اوهره لويه او وړه ګناه په دې كښې شامل ده. چونكه په آيت كښې نكره (ظلم) لاندې دَ نفى واقع شوې ده چه دَعموم فائده وركوى په دې وجه صحابه كرام اوويريدل چه زمونږ نه خو يو نه يو درجه كښې دَ ظلم ارتكاب به ضرور شوې وى اودَ آيت دَ مضمون مطابق هغوى دَ امن او هدايت نه محروم پاتې شو. په دې وجه رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارك اوفرمائيل چه دلته دَظلم نه دَدې فرد اعلى يعنى شرك مراد دې او په دليل كښې دَ سورت لقمان آيت تلاوت كړو كوم كښې چه شرك ته ظلم عظيم ونيلې شوې دې. په دې روايت باندې تفصيلى بحثونه كتاب الايمان كښې تيرشوى دى. [2]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت باندې اشكال اودَهغې جواب:** ترجمه دَ حضرت ابراهيم عليه السلام په حالاتو باندې ترلې شوې ده اودَ حديث باب مضمون ترجمة الباب سره په ظاهره باندې څه مناسبت نه لرى نو بيا سوال دادې چه امام بخارى رحمه الله دَترجمة الباب لاندې مذكوره روايت ولې نقل كړې دې؟

علامه قسطلانى رحمه الله دَدې دا جواب وركړې دې چه دَ سورت انعام آيت ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ﴾ په حقيقت كښې دَ ابراهيم عليه السلام قول دې. دَدې پس منظر دادې چه دَ آيت نه وړاندې ركوع كښې په شرك دَ رد بيان دې اودَدې په ضمن كښې دخپل پلار آزر او خپل قوم سره دَحضرت ابراهيم عليه السلام مكالمه پيش كړې شوې ده. ﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ لِأَبِيهِ آزَرَ أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا آلِهَةً﴾ دې نه پس په قوم باندې دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَ نكيربيان دې چه ابراهيم عليه السلام سره ئى حجت بازى كوله. ﴿أَتُحَاجُّونِّي فِي اللَّهِ وَقَدْ هَدَانِ ۚ وَلَا أَخَافُ مَا تُشْرِكُونَ بِهِ﴾ بيا دَ تنكيت په توګه فرمائى ﴿فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِالْأَمْنِ ۖ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ دَ فريقين نه مراد يخپله ابراهيم عليه السلام اودَ هغه مشرك قوم دې. په آيت كښې چه دَ دواړو فريقو كوم استفسار كړې شوې دې دَهغې په جواب كښې ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ﴾ په دې صورت كښې (الذين) اسم موصول مبتدا محذوف دَ (هم) خبر دې. (أي هم الذين آمنوا......) يعنى دَ ابراهيم اودَهغه په قوم كښې هم هغه خلق دى چه ايمان ئى راوړې دې او په خپل ايمان كښې ظلم (شرك) سره نه دې ملاؤ كړې. [3]

حضرت على رضي الله عنه فرمائى چه دا آيت دَ دې امت باره كښې نه دې نازل شوې بلكه دَ حضرت ابراهيم عليه السلام اودَهغه دَ اصحابو باره كښې نازل شوې دې. [4] دغه شان دَ آيت او روايت مناسبت ترجمة الباب سره واضح كيږى. [5]

---

[1] سورة الانعام آية: ۸۲

[2] كشف البارى كتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم: ۲/۲۶۸-۲۶۱.

[3] إرشادالسارى: ۷/۲۸۶فتح البارى: ۸/۴۸۷-۴۸۶.

[4] المصدر السابق.

[5] إرشادالسارى: ۷/۲۸۶.

علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه د روايت باب ترجمة الباب سره مناسبت د آيت مذکوره متصل بعد د موجود آيت په وجه باندې دې په کوم کښې چه د حضرت ابراهيم تذکره ده. آيت دې ﴿وَتِلْكَ حُجَّتُنَا آتَيْنَاهَا إِبْرَاهِيمَ عَلَى قَوْمِهِ﴾ (۱)
علامه عيني رحمه الله د دغه پورته ذکر شوو توجيهاتو د مناسبت د پاره ترديد کولوسره فرمائيلي دي چه مقصد دا وي چه په روايت باب کښې د ترجمة الباب د الفاظو ذکر وي سره د دې چه هغه الفاظ لږشان ولې نه وي. او د مذکوره بالا توجيهاتو نه د يونه هم دا مقصد نه حاصليږي. البته د دې روايت ترجمة الباب سره مناسبت په دې اعتبار سره ممکن دې چه امام بخاري رحمه الله په روايت کښې ذکر شوې آيت مبارك پيش کولوسره د حضرت علي رضي الله عنه د يو روايت طرف ته اشاره کړې ده کوم چه امام حاکم تخريج کړې دې. په هغه روايت کښې دي چه حضرت علي رضي الله عنه د آيت مذکور في الرواية تلاوت کولوسره ارشاد فرمائي چه دا آيت د دې امت باره کښې نه دې نازل شوې بلکه حضرت ابراهيم عليه السلام او د هغه د اصحابو سره متعلق نازل شوې دې. دغه شان په حديث او ترجمة الباب کښې مناسبت واضح کيږي. (۲)

## ۱۲- باب: ﴿يَزِفُّونَ﴾/الصافات: ۹۴/: النَّسَلَانُ فِي الْمَشْيِ.

دا باب (تنوين سره) بغير ترجمه دې او (كالفصل من الباب السابق) يعني د تير شوي باب تتمه ده. (۳)
په مخکښې باب کښې د حضرت ابراهيم عليه السلام حالات بيان کړې شو او اودلته د نورو حالاتو تذکره به د تکمله په توګه باندې وي. د مستملي په روايت کښې دا باب بغير ترجمه دې او حافظ ابن حجر رحمه الله دې ته ترجيح ورکړې ده. خود حموي او کشميهني په نسخو کښې دا باب ترجمه سره دې يعني (باب: ويزفون النسلان).
حافظ ابن حجر رحمه الله دې ته وهم وئيلوسره فرمائيلي چه (فإنه كلام لا معنى له) يعني (ويزفون النسلان) د باب ترجمه ګرځول يو بې معني خبره ده. (۴) زمونږ رائې داده چه په دې صورت کښې دا بې معني کلام نه دې بلکه مقصد دا دې چه دا باب د ابراهيم عليه السلام په حالاتو کښې د تير شوو حالاتو پوره والې هم دې او په دې سره د ابراهيم عليه السلام قصې سره متعلق د سورت صافات آيت ﴿فَأَقْبَلُوا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ﴾ تفسير هم مقصود دې. د علامه عيني رحمه الله په صنيع سره زمونږ د رائې تائيد کيږي. (۵) او د نسفي په روايت کښې د سرنه باب ساقط دې (۶) او علامه کرماني رحمه الله داسې باب ترلې دې (باب قوله الله تعالى: ﴿فَأَقْبَلُوا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ﴾) (۷)

**قوله: يزفون: النسلان في المشي:** زَفَّ يَزِفُّ زَفًّا وزُفُوفًا معنى ده تادى کول منډه وهل. امام بخاري رحمه الله د دې تفسير کړې دې النسلان في المشي تيز تلل په تلو کښې تادى کول. په لغت کښې النسلان اصلاً د ليوه تيز تګ ته وائي ليکن روستو د دې استعمال د نورو خيزونو د پاره اوشو. (۸)

---

(۱) شرح الكرماني: ۱۴/۱۸-۱۷.
(۲) عمدة القاري: ۱۵/۳٤٦.
(۳) إرشاد الساري: ۷/۲۸۶ عمدة القاري: ۱۵/۳٤۷ فتح الباري: ۸/٤۹۱.
(۴) فتح الباري: ۸/٤۹۱.
(۵) عمدة القاري: ۱۵/۳٤۷.
(۶) فتح الباري: ۸/٤۹۱ عمدة القاري: ۱۵/۳٤۷.
(۷) شرح الكرماني: ۱۴/۱۸.
(۸) لسان العرب: ۱۴/۱۲۸

دَ سورت صافات آيات كښې ابراهيم عليه السلام قصه اختصار سره بيان كړې شوې ده چه په سورت انبياء كښې تفصيل سره راغلې ده آيات دادي ﴿فَرَاغَ إِلَىٰ آلِهَتِهِمْ فَقَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ۝ مَا لَكُمْ لَا تَنطِقُونَ ۝ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِينِ ۝ فَأَقْبَلُوا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ ۝﴾ [1]

يعنى ابراهيم عليه السلام غلې غوندې دَهغوى معبودانو له راغلو اووئې ويل ولې تاسو نه خورئې په تاسو څه شوى دى تاسو خبرې ولې نه كوئى؟ بيا هغوى په ښه قوت سره متوجه كيدو سره وهل شروع كړه. ﴿فَأَقْبَلُوا إِلَيْهِ يَزِفُّونَ ۝﴾ نو هغه خلق هغه په منډه راغله كله چه مشركان دَ اختر دَ ميلې نه واپس راغله اومندر ته ئې اوكتل چه ټول بتان تراشلې شوې پراته دى نود تپوس پوښتنې دپاره يو دَ بله حضرت ابراهيم عليه السلام له راورسيدله اوهغه ئې اونيولو اود قوم گنړې مجمعې ته ئې پيش كړو.

طبرانى او ابن ابى حاتم رحمه الله دَ سدى رحمه الله په طريق سره روايت نقل كړې دې چه دغه خلقو كله ابراهيم عليه السلام هغه مجمعې ته وړاندې كړو نوهلته دَ لرگو يو لوئى ډيرې پروت وو اودهغې په راغونډولو كښې دَ قوم هريو كس تردې چه ښځو هم خپله حصه واچوله او په مرضونو كښې اخته ښځو نذرونه اومنل چه كه چرې الله هغوى روغ كړل نوهغوى به دَ ابراهيم عليه السلام دَ سوزولو دپاره لرگى راجمع كوى. كله چه قوم دَ لرگو ډيرې راجمع كړو اود ابراهيم عليه السلام دَ سوزولو اراده ئې اوكړه نو زمكې او آسمان فرښتو او غرونو په يو آواز كښې اوونيل «ربنا خليلك إبراهيم يُحرَق» يعنى اې زمونږ ربه ستا خليل ابراهيم سوزولې شى الله تعالى اوفرمائيل «أنا أعلم» ماته پته ده. خوچه كله ابراهيم تاسو ته آواز اوكړى نو تاسو ټول دَهغه امداد كوئى نو په دې موقع باندې ابراهيم عليه السلام دعا اوكړه. «اللهم انت الواحد فى السماء، وأنا الواحد فى الأرض، ليس أحد فى الأرض يعبدك غيري، حسبي الله ونعم الوكيل» [2] يعنى اې الله ته په آسمان كښې يو يئې او زه په مخ دَ زمكې باندې خان له يم زما نه علاوه په مخ دَ زمكه باندې زما نه علاوه بل څوك ستا عبادت كونكې بنده نشته.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى كه چرې باب ترجمه سره وى نو بيا زما خيال دادې چه امام بخارى رحمه الله هم دې واقعې طرف ته اشاره كړې ده. په كوم كښې «ربنا خليلك إبراهيم يُحرَق» الفاظ وارد دى اودې باب لاندې امام بخارى حديث دَشفاعت نقل كړې دې په هغې كښې «أنت نبى الله وخليله من الأرض» الفاظ راغلى دى اودې مناسبت «ربنا خليلك إبراهيم يُحرق» سره واضح دې [3]

[٣١٨٢]-بَابٌ: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا بِلَحْمٍ فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ يَجْمَعُ يَوْمَ القِيَامَةِ الأَوَّلِينَ وَالآخِرِينَ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ، فَيُسْمِعُهُمُ الدَّاعِي وَيَنْفُذُهُمُ البَصَرُ، وَتَدْنُو الشَّمْسُ مِنْهُمْ، - فَذَكَرَ حَدِيثَ الشَّفَاعَةِ - فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ فَيَقُولُونَ: أَنْتَ نَبِيُّ اللَّهِ وَخَلِيلُهُ مِنَ الأَرْضِ، اشْفَعْ لَنَا إِلَى رَبِّكَ، فَيَقُولُ، فَذَكَرَ [ص: ٣٢] كَذَبَاتِهِ، نَفْسِي نَفْسِي، اذْهَبُوا إِلَى مُوسَى" تَابَعَهُ أَنَسٌ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص ٢٩٩] [ر: ٣١٦٢، ٣٢٠٦، ٤٢٠٦] [4]

---

[1] الصافات: ٩٤.

[2] فتح البارى: ٨/٤٩٢-٤٩١.

[3] فتح البارى: ٨/٤٩٢.

[4] مرتخريجه فى نفس الكتاب تحت باب قول الله تعالى ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ﴾.

## تراجم رجال

**اسحاق بن ابراهيم:** دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر بخارى سعدى رحمه الله دى. (١)

**ابواسامة:** دا حماد بن اسامه بن زيد قرشى رحمه الله دى. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب فضل من علم وعلّم) لاندې تيره شوې ده. (٢)

**ابوحيان:** دا يحيى بن سعيد بن حيان تيمى كوفى رحمه الله دى. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب سؤال جبرائيل عليه السلام النبى صلى الله عليه وسلم عن الايمان والاسلام) لاندې تيره شوې ده. (٣)

**ابوزرعة:** دا هرم بن عمر بن جرير بجلي كوفي رحمه الله دى. دَدوى تفصيلى تذكره (كتاب الايمان باب الجهاد من الايمان) لاندې تيره شوې ده. (٤)

**قوله: أُتِيَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يَوْمًا بِلَحْمٍ....** حضرت ابوهريره رضي الله عنه وائى چه يوه ورځ دَ رسول الله ﷺ په خدمت كښې غوښه پيش كړې شوه. حضورپاك اوفرمائيل دَ قيامت په ورځ به الله تعالى وړاندې روستو ټول په يو ميدان كښې راجمع كوى. آواز كونكې به هغوى ته خپل آواز اوروِلې شى او كتونكې به هغوى ليدلې شى او نمر به هغوى ته رانيزدې كړې شى. بيا حضورپاك حديث شفاعت بيان كړو چه (ميدان حشر كښې) به خلق ابراهيم عليه السلام له راشى اوهغوى ته به وائى تاسو په زمكه كښې دَ الله تعالى خليل او نبى وې الله تعالى ته زمونږ سفارش اوكړه. ابراهيم عليه السلام به (كذبات ثلاثه يادولوسره) وائى نفسى نفسى، موسىٰ عليه السلام له لاړشئ.

مطلب دا چه ابراهيم عليه السلام ته به ثلاث كذبات يادېږى او فرمائى به چه زما نه خو دغه كوتاهئى شوې دى. ماله حيا راځى چه الله تعالى ته ستاسو دَپاره سفارش اوكړم. درېواړه خبرې سره دَدې چه په كذب كښې نه راځى ليكن ابراهيم عليه السلام به هغه دَ نبوت دَ شان خلاف ګڼړلوسره په خپل ځان باندې دَ خطاوار كيدو يقين كوى. (٥)

**قوله: تابعه أنس عن النبى صلى الله عليه وسلم:** دَحضرت انس رضي الله عنه دا متابعت امام بخارى رحمه الله كتاب التوحيد كښې په تفصيل سره موصولاً نقل كړې دې. (٦)

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ روايت باب دَ (باب اتخذ الله إبراهيم خليلا) سره مناسبت واضح دې ځكه چه په دواړو كښې دَحضرت ابراهيم عليه السلام تذكره ده. (٧)

**[٣١٨٣]- حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «يَرْحَمُ اللَّهُ أُمَّ إِسْمَاعِيلَ، لَوْلاَ أَنَّهَا عَجِلَتْ، لَكَانَ زَمْزَمُ عَيْنًا مَعِينًا»**

---

(١) كتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده رقم: ٢٧٨.

(٢) كشف البارى: ٤١٤/٣.

(٣) كشف البارى: ٥٨٧/٢.

(٤) كشف البارى: ٣٠٤/٣.

(٥) إرشادالسارى: ٢٨٧/٧.

(٦) صحيح البخارى كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار، رقم الحديث: ٦٥٦٥ وكتاب التوحيد باب كلام الرب تعالى يوم القيامة مع الأنبياء وغيرهم رقم الحديث: ٧٥١٠ وباب قول الله تعالى ﴿لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ﴾ رقم الحديث: ٧٤١٠ وباب قوله تعالى: ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾ رقم الحديث: ٧٥١٦.

(٧) عمدة القارى: ٣٤٧/١٥.

قَالَ الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَمَّا كَثِيرُ بْنُ كَثِيرٍ، فَحَدَّثَنِي قَالَ: إِنِّي وَعُثْمَانَ بْنَ أَبِي سُلَيْمَانَ، جُلُوسٌ مَعَ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، فَقَالَ: مَا هَكَذَا حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، وَلَكِنَّهُ قَالَ: أَقْبَلَ إِبْرَاهِيمُ بِإِسْمَاعِيلَ وَأُمِّهِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ، وَهِيَ تُرْضِعُهُ، مَعَهَا شَنَّةٌ لَمْ يَرْفَعْهُ ثُمَّ جَاءَ بِهَا إِبْرَاهِيمُ وَبِابْنِهَا إِسْمَاعِيلَ [۳۱۸۵/ص ۳۰۱] [۱]

امام بخاری هم یو روایت په مختلف طرق سره ذکر کړي دي. دَاحمد بن سعید والا طریق روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی چه الله تعالی دې داسماعیل علیه السلام په مور بی بی هاجره باندې رحم اوکړی که چرې هغې تادی نه وه کړې نو نن به زمزم یوه بهیدونکې چینه وه.

**ذکر الاختلاف الواقع في اسناد الحديث المذكور:** ① رواه ابن السكن والإسماعيلي من طريق حجاج بن الشاعر عن وهب بن جرير عن أبيه عن أيوب عن عبد الله بن سعيد بن جبير عن أبيه عن ابن عباس عن أبي بن كعب عن النبي صلى الله عليه وسلم..... زاد ابن السكن والإسماعيلي في روايتهما أبي بن كعب.

② الطريق المذكور في صحيح البخاري، أي: أحمد بن سعيد عن وهب عن جرير عن أيوب عن عبد الله بن سعيد عن ابن عباس الخ.

③ رواية النسائي عن أحمد بن سعيد شيخ البخاري المذكور عن وهب بن جرير عن أبيه عن أيوب عن سعيد بن جبير عن ابن عباس عن أبي بن كعب. أسقط الإمام النسائي في هذا الطريق عبد الله بن سعيد بن جبير، وزاد أبي بن كعب.

④ رواية الإمام النسائي عن أحمد بن سعيد عن وهب بن جرير عن حماد بن زيد عن أيوب عن عبد الله بن سعيد بن جبير عن أبيه عن ابن عباس، ولم يذكر أبي بن كعب.

دَ امام نسائی رحمه الله په روایت کښې دی چه وهب بن جریر رحمه الله فرمائی چه زه سلام بن ابی مطیع رحمه الله ته حاضر شوم او دَهغوی په وړاندې مې مذکره حدیث دَ حماد بن زید والا په طریق سره بیان کړو نو هغوی په دې باندې سخت نکیر اوفرمائیلو او تپوس ئې اوکړو چه ستا پلار (جریر) څنګه روایت کوی؟ ما ونیل چه هغه خو دَ ایوب عن سعید بن جبیر په طریق سره روایت کوی. سلام بن ابی مطیع رحمه الله دَ حیرانتیا اظهار اوکړو او وئې فرمائیل چه په حقیقت کښې دَ ایوب او سعید بن جبیر په مینځ کښې عکرمه بن خالد واسطه ده. [۲]

دَنسائی رحمه الله دَ ذکر کړې شوې طریق نه معلومه شوه چه وهب بن جریر رحمه الله کله دا حدیث دَخپل پلار جریر رحمه الله نه روایت کوی نو دَ ایوب رحمه الله او سعید بن جبیر رحمه الله په مینځ کښې دَ عبد الله بن سعید رحمه الله واسطه نه ذکر کوی البته په آخره کښې دَ ابی بن کعب رحمه الله اضافه کوی او کله چه وهب بن جبیر رحمه الله دا حدیث دَ حماد بن زید رحمه الله په طریق سره نقل کوی نو بیا دَ ایوب رحمه الله او سعید په مینځ کښې دَعبد الله بن سعید رحمه الله واسطه هم نقل کوی او په آخره کښې دَ ابی بن کعب رحمه الله اضافه نه کوی. خو سلام بن ابی مطیع رحمه الله دَ ایوب رحمه الله او سعید بن جبیر رحمه الله په مینځ کښې دَ عکرمه بن خالد رحمه الله دَ واسطې قائل دی. [۳]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه عین ممکن دی ایوب رحمه الله ته دا حدیث په مختلف طرق سره حاصل شوې وی څکه چه اسماعیل بن علیه چه دَ کبار حفاظ نه دې دا حدیث دَ ایوب عن سعید بن جبیر عن ابن عباس په طریق سره هم روایت کوی په دې سند کښې خو نه دَعبد الله بن سعید رحمه الله تذکره شته او نه دَ ابی بن کعب رحمه الله اضافه او دَ اسماعیل بن علیه رحمه الله دا روایت دَ امام بخاری رحمه الله تخریج کړې شوې روایت دَپاره مؤید هم دې. څکه چه امام بخاری رحمه الله هم ابی بن کعب رحمه الله اضافه نه ده ذکر کړې.

---

[۱] مر تخریجه فی کتاب الحرث والمزارعة باب المزارعة بالشطر ونحوه رقم: ۲۳۲۸.

[۲] عمدة القاری: ۳۴۸/۱۵ فتح الباری: ۴۹۲/۸.

[۳] فتح الباری: ۴۹۲/۸ دار الکتب العلمیة.

د اسماعيل بن عليه رحمه الله نه دا روايت اسماعيلي رحمه الله په دوه شان سره روايت کړې دې. يوخو هم دغه طريق دې په کوم کښې چه د ايوب او سعيد بن جبير په مينځ کښې واسطه نشته او دويم طريق هغه دې په کوم کښې چه د دواړو په مينځ کښې د عبدالله رحمه الله واسطه ده. د اسماعيل بن عليه رحمه الله په شان معمر رحمه الله هم دا حديث د ايوب عن سعيد په طريق سره بلاواسطه نقل کړې دې لکه څنګه چه امام بخاري رحمه الله په دويم طريق کښې ذکر کړې دې اسماعيلي رحمه الله په امام بخاري رحمه الله باندې مذکوره حديث د ايوب په طريق سره نقل کولو وجې نه اعتراض کړې دې چه هغوی مضطرب سندسره د روايت تخريج ولې کړې دې ليکن د سياق حديث نه معلوميږي چه امام بخاري رحمه الله په تخريج کړې شوی حديث کښې معمر عن کثير بن کثير عن سعيد بن جبير په طريق باندې اعتماد کړې دې سره د دې چه د ايوب رحمه الله طريق سره ملاؤشوې دې.

الحاصل ايوب رحمه الله حديث د سعيد بن جبير رحمه الله نه بغير د واسطې روايت کړې دې يا د سعيد بن جبير خوني عبدالله په واسطه سره نقل کړې دې او په دواړو صورتونو کښې څه عيب نشته دې ځکه چه ټول په ټول ثقه دی او داسې اختلاف چه په ثقات حفاظ باندې متفرع وی مضر نه وی. اوس که چرې د ايوب رحمه الله او سعيد بن جبير رحمه الله په مينځ کښې د عبدالله واسطه ده او په آخره کښې د ابی بن کعب رحمه الله زياتوالې هم دې نو هيڅ کلام نشته دې او که چرې واسطه نشته دې اونه د ابی بن کعب رحمه الله اضافه نو د واسطې نه کيدل په دې وجه مضر نه دی ځکه چه د ايوب رحمه الله سماع د سعيد بن جبير رحمه الله نه ثابته ده او د ابی بن کعب رحمه الله اضافه نه کيدو په صورت کښې که چرې ابن عباس رضي الله عنهما دا حديث د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه اوريدلې دې نو بيا خو دا حديث متصل او مسند دې او که چرې نه وی اوريدلې نو دا حديث د مراسيل صحابه نه دې.[1]

قَالَ الْأَنْصَارِيُّ: حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ: أَمَّا كَثِيرُ بْنُ كَثِيرٍ، فَحَدَّثَنِي قَالَ: إِنِّي وَعُثْمَانَ ابْنَ أَبِي سُلَيْمَانَ جُلُوسٌ مَعَ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، فَقَالَ: مَا هٰكَذَا حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، وَلٰكِنَّهُ قَالَ: أَقْبَلَ إِبْرَاهِيمُ بِإِسْمَاعِيلَ وَأُمِّهِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ وَهِيَ تُرْضِعُهُ، مَعَهَا شَنَّةٌ - لَمْ يَرْفَعْهُ - ثُمَّ جَاءَ بِهِمَا إِبْرَاهِيمُ وَبِابْنِهِمَا إِسْمَاعِيلَ.

دلته روايت مختصر دې. ازرقی رحمه الله د مسلم بن خالد الزنجي عن ابن جريج په طريق سره دا روايت مفصلاً نقل کړې دې. په دې کښې کثير بن کثير رحمه الله وائی چه زه او عثمان بن ابی سليمان او عبدالله بن عبدالرحمن بن ابی حسين د شپې د جمات په چت باندې سعيد بن جبير رحمه الله سره ناست وو سعيد بن جبير رحمه الله اووئيل (سَلُونِي قَبْلَ أَنْ لَا تَرَوْنِي) نو خلقو د سوالونو باران جوړ کړو په هغې کښې يو سوال دا وو: (أَحَقٌّ مَا سَمِعْنَا فِي مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ أَنَّ إِبْرَاهِيمَ حِينَ جَاءَ مِنَ الشَّامِ حَلَفَ لِامْرَأَتِهِ أَنْ لَا يَنْزِلَ بِمَكَّةَ حَتَّى يَرْجِعَ، فَقَرَّبَتْ إِلَيْهِ امْرَأَةُ إِسْمَاعِيلَ الْمَقَامَ، فَوَضَعَ رِجْلَهُ عَلَيْهِ حَتَّى لَا يَنْزِلَ) آيا دا واقعه صحيح ده چه ابراهيم عليه السلام يو ځل شام نه تشريف راوړو نوهغه ساره ته قسم کولوسره راغلې وو چه زه به مکه کښې نه کوزيږم تردې چه نيغ به واپس راځم چنانچه د حضرت اسماعيل عليه السلام بی بی مقام ابراهيم هغوی ته رانيزدې کړو نو ابراهيم عليه السلام په هغې باندې خپه مبارکه کيخوده چه په زمکه باندې کوزيدل رانه شی.

سعيد بن جبير رحمه الله اوفرمائيل (مَا هٰكَذَا حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ) يعنی ابن عباس رضي الله عنهما ماته دا حديث داسې نه دې بيان کړې دې (داسې څه خبره ثابته نه ده) بلکه هغوی داسې وئيلی چه ابراهيم حضرت اسماعيل عليه السلام او د هغه مور هاجره واخستل (د مکې زمکې ته راغلل) هغه وخت هاجره بی بی اسماعيل عليه السلام له پينې ورکول هغې سره يو زوړ مشک وو.[2]

**قوله: شَنَّةٌ:** اوچه او زوړه مشکيزه.

**قوله: لَمْ يَرْفَعْهُ:** يعنی دا روايت ابن عباس رضي الله عنهما موقوفاً نقل کړې دې مرفوعاً ئې نه دې نقل کړې. وړاندې د مذکوره روايت دريم طريق دې.

---

[1]) فتح الباري: ۴۹۲/۸.

[2]) فتح الباري: ۴۹۳/۸ نور اوګورئی تفسير ابن کثير: ۳۰۴/۱ دارالکتب العلمية.

[۳۱۸۴]- وحدّثني عبدُ اللهِ بنُ محمّدٍ، حدّثنا عبدُ الرّزّاقِ، أخبرنا معمرٌ، عن أيّوبَ السّختيانيّ، وكثيرِ بنِ كثيرِ بنِ المطّلبِ بنِ أبي وداعةَ، يزيدُ أحدُهما على الآخرِ، عن سعيدِ بنِ جبيرٍ، قال ابنُ عبّاسٍ: أوّلَ ما اتّخذَ النّساءُ المنطقَ من قبلِ أمّ إسماعيلَ، اتّخذت منطقًا لتعفّيَ أثرَها على سارةَ، ثمّ جاءَ بها إبراهيمُ وبابنها إسماعيلَ وهي ترضعُه، حتّى وضعهما عند البيتِ عند دوحةٍ، فوقَ زمزمَ في أعلى المسجدِ، وليس بمكّةَ يومئذٍ أحدٌ، وليس بها ماءٌ، فوضعهما هنالك، ووضع عندهما جرابًا فيه تمرٌ، وسقاءً فيه ماءٌ، ثمّ قفّى إبراهيمُ منطلقًا، فتبعته أمّ إسماعيلَ فقالت: يا إبراهيمُ، أين تذهبُ وتتركُنا بهذا الوادي، الّذي ليس فيه إنسٌ ولا شيءٌ؟ فقالت له ذلك مرارًا، وجعل لا يلتفتُ إليها، فقالت له: آللهُ الّذي أمرك بهذا؟ قال: نعم، قالت: إذن لا يضيّعُنا، ثمّ رجعت، فانطلق إبراهيمُ حتّى إذا كان عند الثّنيّةِ حيثُ لا يرونه، استقبل بوجهه البيتَ، ثمّ دعا بهؤلاءِ الكلماتِ، ورفع يديه فقال: ربّ {إنّي أسكنتُ من ذرّيّتي بوادٍ غيرِ ذي زرعٍ عند بيتك المحرّمِ} [إبراهيم: ۳۷]- حتّى بلغ- {يشكرون} [إبراهيم: ۳۷] "وجعلت أمّ إسماعيلَ ترضعُ إسماعيلَ وتشربُ من ذلك الماءِ، حتّى إذا نفد ما في السّقاءِ عطشت وعطش ابنُها، وجعلت تنظرُ إليه يتلوّى، أو قال يتلبّطُ، فانطلقت كراهيةَ أن تنظرَ إليه، فوجدتِ الصّفا أقربَ جبلٍ في الأرضِ يليها، فقامت عليه، ثمّ استقبلتِ الواديَ تنظرُ هل ترى أحدًا فلم ترَ أحدًا، فهبطت من الصّفا حتّى إذا بلغتِ الواديَ رفعت طرفَ درعِها، ثمّ سعت سعيَ الإنسانِ المجهودِ حتّى جاوزتِ الواديَ، ثمّ أتتِ المروةَ فقامت عليها ونظرت هل ترى أحدًا فلم ترَ أحدًا [ص: ۱۴۳]، ففعلت ذلك سبعَ مرّاتٍ، قال ابنُ عبّاسٍ: قال النّبيّ صلّى اللهُ عليه وسلّم: «فذلك سعيُ النّاسِ بينهما» فلمّا أشرفت على المروةِ سمعت صوتًا، فقالت صهٍ- تريدُ نفسَها- ثمّ تسمّعت، فسمعت أيضًا، فقالت: قد أسمعتَ إن كان عندك غواثٌ، فإذا هي بالملَكِ عند موضعِ زمزمَ، فبحث بعقبِه، أو قال بجناحِه، حتّى ظهر الماءُ، فجعلت تحوّضُه وتقولُ بيدِها هكذا، وجعلت تغرفُ من الماءِ في سقائِها وهو يفورُ بعد ما تغرفُ. قال ابنُ عبّاسٍ: قال النّبيّ صلّى اللهُ عليه وسلّم: "يرحمُ اللهُ أمّ إسماعيلَ، لو تركت زمزمَ- أو قال: لو لم تغرف من الماءِ- لكانت زمزمُ عينًا معينًا" قال: فشربت وأرضعت ولدَها، فقال لها الملَكُ: لا تخافوا الضّيعةَ، فإنّ ها هنا بيتَ اللهِ، يبني هذا الغلامُ وأبوه، وإنّ اللهَ لا يضيعُ أهلَه، وكان البيتُ مرتفعًا من الأرضِ كالرّابيةِ، تأتيه السّيولُ، فتأخذُ عن يمينِه وشمالِه، فكانت كذلك حتّى مرّت بهم رفقةٌ من جرهمَ، أو أهلُ بيتٍ من جرهمَ، مقبلين من طريقِ كداءٍ، فنزلوا في أسفلِ مكّةَ فرأوا طائرًا عائفًا، فقالوا: إنّ هذا الطّائرَ ليدورُ على ماءٍ، لعهدُنا بهذا الوادي وما فيه ماءٌ، فأرسلوا جريًّا أو جريّين فإذا هم بالماءِ، فرجعوا فأخبروهم بالماءِ فأقبلوا، قال: وأمّ إسماعيلَ عند الماءِ، فقالوا: أتأذنين لنا أن ننزلَ عندكِ؟ فقالت: نعم، ولكن لا حقّ لكم في الماءِ، قالوا: نعم، قال ابنُ عبّاسٍ: قال النّبيّ صلّى اللهُ عليه وسلّم: «فألفى ذلك أمّ إسماعيلَ وهي تحبّ الإنسَ» فنزلوا وأرسلوا إلى أهليهم فنزلوا معهم، حتّى إذا كان بها أهلُ أبياتٍ منهم، وشبّ الغلامُ وتعلّم العربيّةَ منهم، وأنفسَهم وأعجبَهم

حِينَ شَبَّ، فَلَمَّا أَدْرَكَ زَوَّجُوهُ امْرَأَةً مِنْهُمْ، وَمَاتَتْ أُمُّ إِسْمَاعِيلَ، فَجَاءَ إِبْرَاهِيمُ بَعْدَمَا تَزَوَّجَ إِسْمَاعِيلُ يُطَالِعُ تَرِكَتَهُ، فَلَمْ يَجِدْ إِسْمَاعِيلَ، فَسَأَلَ امْرَأَتَهُ عَنْهُ فَقَالَتْ: خَرَجَ يَبْتَغِي لَنَا، ثُمَّ سَأَلَهَا عَنْ عَيْشِهِمْ وَهَيْئَتِهِمْ، فَقَالَتْ نَحْنُ بِشَرٍّ، نَحْنُ فِي ضِيقٍ وَشِدَّةٍ، فَشَكَتْ إِلَيْهِ، قَالَ: فَإِذَا جَاءَ زَوْجُكِ فَاقْرَئِي عَلَيْهِ السَّلَامَ، وَقُولِي لَهُ يُغَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِهِ، فَلَمَّا جَاءَ إِسْمَاعِيلُ كَأَنَّهُ آنَسَ شَيْئًا، فَقَالَ: هَلْ جَاءَكُمْ مِنْ أَحَدٍ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، جَاءَنَا شَيْخٌ كَذَا وَكَذَا، فَسَأَلَنَا عَنْكَ فَأَخْبَرْتُهُ، وَسَأَلَنِي كَيْفَ عَيْشُنَا، فَأَخْبَرْتُهُ أَنَّا فِي جَهْدٍ وَشِدَّةٍ، قَالَ: فَهَلْ أَوْصَاكِ بِشَيْءٍ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ السَّلَامَ، وَيَقُولُ غَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِكَ، قَالَ: ذَاكِ أَبِي، وَقَدْ أَمَرَنِي أَنْ أُفَارِقَكِ، الْحَقِي بِأَهْلِكِ، فَطَلَّقَهَا، وَتَزَوَّجَ مِنْهُمْ أُخْرَى، فَلَبِثَ عَنْهُمْ إِبْرَاهِيمُ مَا شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ أَتَاهُمْ بَعْدُ فَلَمْ يَجِدْهُ، فَدَخَلَ عَلَى [ص: ١٤٣] امْرَأَتِهِ فَسَأَلَهَا عَنْهُ، فَقَالَتْ: خَرَجَ يَبْتَغِي لَنَا، قَالَ: كَيْفَ أَنْتُمْ؟ وَسَأَلَهَا عَنْ عَيْشِهِمْ وَهَيْئَتِهِمْ، فَقَالَتْ: نَحْنُ بِخَيْرٍ وَسَعَةٍ، وَأَثْنَتْ عَلَى اللَّهِ، فَقَالَ: مَا طَعَامُكُمْ؟ قَالَتِ اللَّحْمُ، قَالَ فَمَا شَرَابُكُمْ؟ قَالَتِ الْمَاءُ. قَالَ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي اللَّحْمِ وَالْمَاءِ، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ يَوْمَئِذٍ حَبٌّ، وَلَوْ كَانَ لَهُمْ دَعَا لَهُمْ فِيهِ». قَالَ: فَهُمَا لَا يَخْلُو عَلَيْهِمَا أَحَدٌ بِغَيْرِ مَكَّةَ إِلَّا لَمْ يُوَافِقَاهُ، قَالَ: فَإِذَا جَاءَ زَوْجُكِ فَاقْرَئِي عَلَيْهِ السَّلَامَ، وَمُرِيهِ يُثْبِتُ عَتَبَةَ بَابِهِ، فَلَمَّا جَاءَ إِسْمَاعِيلُ قَالَ: هَلْ أَتَاكُمْ مِنْ أَحَدٍ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، أَتَانَا شَيْخٌ حَسَنُ الْهَيْئَةِ، وَأَثْنَتْ عَلَيْهِ، فَسَأَلَنِي عَنْكَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَسَأَلَنِي كَيْفَ عَيْشُنَا فَأَخْبَرْتُهُ أَنَّا بِخَيْرٍ، قَالَ: فَأَوْصَاكِ بِشَيْءٍ، قَالَتْ: نَعَمْ، هُوَ يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ، وَيَأْمُرُكَ أَنْ تُثْبِتَ عَتَبَةَ بَابِكَ، قَالَ: ذَاكِ أَبِي وَأَنْتِ الْعَتَبَةُ، أَمَرَنِي أَنْ أُمْسِكَكِ، ثُمَّ لَبِثَ عَنْهُمْ مَا شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ جَاءَ بَعْدَ ذَلِكَ، وَإِسْمَاعِيلُ يَبْرِي نَبْلًا لَهُ تَحْتَ دَوْحَةٍ قَرِيبًا مِنْ زَمْزَمَ، فَلَمَّا رَآهُ قَامَ إِلَيْهِ، فَصَنَعَا كَمَا يَصْنَعُ الْوَالِدُ بِالْوَلَدِ وَالْوَلَدُ بِالْوَالِدِ، ثُمَّ قَالَ يَا إِسْمَاعِيلُ، إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي بِأَمْرٍ، قَالَ: فَاصْنَعْ مَا أَمَرَكَ رَبُّكَ، قَالَ: وَتُعِينُنِي؟ قَالَ: وَأُعِينُكَ، قَالَ: فَإِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أَبْنِيَ هَا هُنَا بَيْتًا، وَأَشَارَ إِلَى أَكَمَةٍ مُرْتَفِعَةٍ عَلَى مَا حَوْلَهَا، قَالَ: فَعِنْدَ ذَلِكَ رَفَعَا الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ، فَجَعَلَ إِسْمَاعِيلُ يَأْتِي بِالْحِجَارَةِ وَإِبْرَاهِيمُ يَبْنِي، حَتَّى إِذَا ارْتَفَعَ الْبِنَاءُ، جَاءَ بِهَذَا الْحَجَرِ فَوَضَعَهُ لَهُ فَقَامَ عَلَيْهِ، وَهُوَ يَبْنِي وَإِسْمَاعِيلُ يُنَاوِلُهُ الْحِجَارَةَ، وَهُمَا يَقُولَانِ: {رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ} [البقرة: ١٢٧]، قَالَ: فَجَعَلَا يَبْنِيَانِ حَتَّى يَدُورَا حَوْلَ الْبَيْتِ وَهُمَا يَقُولَانِ: {رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ} [البقرة: ١٢٧] [ص ٣٠٤-٣٠٦]

ترجمه: حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه په ښځو کښې د ټولو نه اول حضرت هاجره د ملا پټئې تړلې ده دې د پاره چه هغه د ساره د پاره د خپو نښې باقي پاتې نه کړي. بيا ابراهيم عليه السلام هاجره او د هغې خوئي اسماعيل عليه السلام (مکې) ته راوستل. هغه وخت به هاجره اسماعيل عليه السلام له پيئې ورکول. حضرت ابراهيم عليه السلام هغوی د يوې لوئې وئې لاندې کينول. دا وئه مقام زمزم باندې بالکل د پاسه د جمات اوچت طرف کښې وه. هغه وخت به مکه کښې هيڅ يو انسان نه وو او نه هلته اوبه وې. نو ابراهيم عليه السلام دواړه هلته پريخودل او هغوی سره ئې د کهجورو يوه تهيلئې او د اوبو يوه مشکيزه کيخودو سره پريخودل او بيا چه کله واپس (د شام طرف) ته روان شو (چرته چه حضرت ساره وه) نو حضرت هاجره هغه پسې شاته راغله وئې وئيل ابراهيم! ته چرته ځې؟ مونږ په يوداسې وادئې کښې پريږدې اوځې په کوم کښې چه انسان او نه بل څه څيز موجود دې. هاجره بي بي دا خبره څو ځل اوکړه ليکن

ابراهیم علیه السلام په هغې باندې هیڅ توجو ورنه کړه (جواب ورکول خو لرې خبره ده چه وني هم نه کتل) آخر هاجره بي بي اووئیل (الله الذي أمرك بهذا؟) آیا الله تعالی تاته ددې هجرت حکم درکړې دې؟ ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل او په دې باندې هاجره بي بي اووئیل (إذن لا يضيعنا) بیا خو به الله تعالی مونږ نه هلاکوي

(دې وینا کولو سره) واپس شوه او ابراهیم علیه السلام په سفرباندې روان شو تردې چه کله هغه هغه غرته اورسیدو د کوم ځائي نه چه هاجره او اسماعیل علیه السلام هغه نه شو لیدلې نو هغه د کعبې طرف ته مخ کړو (چرته چه اوس کعبه آباده ده هم هلته هغه هاجره او اسماعیل علیه السلام پریخودو سره راغلي وو) او دواړه لاسونه اوچتولو سره ئې دعا اوکړه (رَبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ رَبَّنَا لِيُقِيمُوا الصَّلَاةَ فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِي إِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُم مِّنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ) یعنی اې زما ربه! ما خپل بال بچ په یو داسې وادئي کښې پریخودل چه بې اوبو او بې وښو ده (هلته د ژوند ظاهري آثار ناپید دي) ستا دعزت کور سره، اې زمونږ ربه، دې دپاره چه هغه خلق د مونځه اهتمام اوکړي (چونکه دغه وخت دا خالي زمکه ده او وروکي شان میدان دې) نو ته د څه خلقو زړونه ددوی طرف ته مائل کړې (دې دپاره چه هغوی دلته آباد شي اود ژوند بناست قائم کړي) اوهغوی له د خوراك د پاره میوې ورکړه دې دپاره چه دا خلق (ستا دنعمتونو) شکرادا کړي

تردغه ځائي پورې ابراهیم علیه السلام دعا اوکړه اوبل طرف ته حضرت هاجره بي بي اسماعیل علیه السلام ته پیئ ورکوي او د مشك نه ئې اوبه څښلې (واقعه داسې ده چه بیت الله طواف کولو سره کله خلق ښکاري نو ناخاپي د حضرت ابراهیم علیه السلام دعا طرف ته ذهن ورښدلیږي او په آیت کښې چه کوم مضمون ذکرکړې دې زړه بې اختیاره د هغې طرف ته متوجه کیږي) کله چه اوبه ختمې شوې نو پخپله هم تږې شوه اودهغې بچې (اسماعیل علیه السلام) ته هم تنده اولګیدله هغې به په داسې حال کښې بچي ته کتل چه هغه د تندې د لاسه ښکته پورته کیږي اوترقیږي هغه په دې وجه دهغه ځائي نه روانه شوه چه د بچي داحال اونه ویني (مور د زړه د تکړې داحال نه شو لیدلې) چنانچه د صفا غونډئي نې نیزدې اولیدله او په هغې باندې اوختله بیا د وادئي طرف ته متوجه شوه او وئې کتل چه چرته څوك سرې به اووینې (چه دهغه نه اوبه اوغواړي) لیکن هغې هیڅوك اونه لیدل په دې وجه د هغه ځائي نه راکوزه شوه کله چه د وادئي پورې اورسیدله نود خپل قمیص یو طرف ئې اوچت کړو اوبیائې داسې منډه کړه لکه چه یو مصیبت وهلې انسان منډه وهي آخر هغه د وادئي نه واوختله بیا مروه غونډئي سره راغله په هغې باندې اوختله (هلته ئې هم) اوکتل چه څوك به اووینې لیکن هغې ته څوك په نظر رانغله چنانچه دغه شان هغې اووه چکرې اووهلې

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه هم دغه هغه سعی د صفا اومروه په مینځ کښې ده چه (په حج) کښې خلق کوي کله چه هاجره (په اووم چکر) په صفا اوختله نو هغې یو آواز واوریدو اوخپل ځان ئې مخاطب کړو وئې وئیل چپ شه. چه غوږ ئې کیخودو نو بیا هم هغه آواز راغلو هاجره ونیل (قد أسمعت إن كان عندك غواث) تا خو خپل آواز واورولو که څه امداد کولې شې (نو مخې ته راشه اوزما امداد اوکړه) وئې کتل چه د زمزم په مقام باندې د الله تعالی فرښته (جبرائیل علیه السلام) دې هغه ځائي باندې خپله خپه یا پونده اووهله تردې چه دهغې نه اوبه راوخوټکیدې هاجره د هغې نه دحوض په شان (څلور طرف ته پوله) جوړه کړه اودغه شان په لاس باندې بندیره شان جوړه کړه او اوبه ئې په لپه باندې اخستلې او په مشکیزه کښې اچولې یو شان لپې د کولو نه پس به اوبو نور هم جوش وهلو.

ابن عباس رضي الله عنهما وائي رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (يرحم الله أم إسماعيل لو تركت زمزم عينا معينا أو قال لو لم تغرف من الماء لكانت زمزم عينا معينا) الله تعالی دې د اسماعیل علیه السلام په مور باندې رحم اوکړي که هغې زمزم په خپل حال باندې پریخودې وې یا حضورپاك داسې اوفرمائیل که چرې هغې لپې د کولوسره (مشك کښې اوبه) نه څکلې نوزمزم (به د کوهي په شکل کښې نه وو بلکه) یو بهیدونکې زبردست چینه به وه.

بهرحال حضرت هاجره اوبه اوڅکلې اوخپل بچي اسماعيل عليه السلام ته ئې پيئې ورکول نو فرښته (جبرائيل) هاجره ته اووئيل (لاتخاف الضيعة) ته د (ځان) د هلاکت ويره او انديښنه مه ساته. (فَإِنَّ هٰهُنَا بَيْتُ اللهِ يَبْنِي هٰذَا الْغُلَامُ وَأَبُوهُ فَإِنَّ اللهَ لَا يُضِيعُ أَهْلَهُ) دې ځائې کښې دا بيت الله دې دا بچې اود ده پلار (دواړه به يوځائې) دَدې کور آبادې کوي په دې وجه الله تعالى دَدې کور (تعمير) کونکي نه هلاک کوي. دَ بيت الله (ځائې دَ مخ) دَ زمکې نه پورته (ښکاره) وو لکه غونډئ ليکن په دې باندې دَ ښي او ګس طرف نه دَ سيلاب اوبه راتلې (اودا حصه به ئې هواروله).

هاجره بي بي (يوه موده) داسې اوسيدله (چه دَ خوراك دَپاره کومې کهجورې حضرت ابراهيم عليه السلام ورکړې وې هغه به ئې خوړلې يا به دَ زمزم اوبه دَ خوراك اوڅښاك دَپاره کافي کيدلې) تردې چه (دغه موده کښې) بنوجرهم يوه ډله يا دَ جرهم کور والا دَمقام کدا دَ طرف نه (چه په اوچت ځائې باندې واقع دې) راتلو کښې هغوى سره تيريدل نوهغه خلق دَمکې په ښکته حصه کښې راکوز شو هغوى يوه مرغئي اوليدله چه (په هوا کښې) ګرځيدله وئې وئيل (إِنَّ هٰذَا الطَّائِرَ لَيَدُورُ عَلَى مَاءٍ لَعَهْدُنَا بِهٰذَا الْوَادِي وَمَا فِيهِ مَاءٌ) دا مرغئې خامخا په اوبو باندې ګرځي ليکن مونږ خودَدې وادئ نه واقف يو دلته خو اوبه نشته. هغوى يو يا دوه کسان (دَخبر اخستلو دَپاره) اوليګل. لږساعت کښې هغوى دَ اوبو سره وو. بيا خپلو خلقو ته راواپس شو هغوى له ئې دَ اوبو خبر ورکړو نوهغه ټول دلته راغله

رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ام اسماعيل اوبوسره نيزدې (ناسته) وه. هغوى اوئيل آيا ته به مونږ ته اجازت راکړې چه مونږ تاسوسره حصار شو؟ هاجره بي بي اووئيل او (دلته حصاريدې شئې) (لاحق لکم في الماء) مګر په اوبو کښې ستاسو هيڅ حق نشته. يعنى په اوبو کښې دَ ملکيت حصه دار کيدې نه شئې. اهل جرهم (دا خبره په خوشحالئ قبلولو سره) اووئيل صحيح ده. (اوهلته مقيم شو).

ابن عباس رضي الله عنهما وائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل (فَأَلْفَى ذٰلِكَ أُمَّ إِسْمَاعِيلَ وَهِيَ تُحِبُّ الْأُنْسَ) دَ جرهم قيام په ام اسماعيل باندې ښه اولګيدل. هغې پخپله انس (اودوستي) غوښتله (چه څوك دلته راشي مقيم شي په دې وجه هغې په خوشحالئ سره جرهم ته دَقيام اجازت ورکړو). بهرحال جرهم هلته مقيم شو اوخپل خپلوانو ته ئې کسان اوليګل هغوى هم دلته (راغله) مقيم شو. تردې چه په مکه کښې ډير کورونه جوړ شو. (وَشَبَّ الْغُلَامُ، وَتَعَلَّمَ الْعَرَبِيَّةَ مِنْهُمْ وَأَنْفَسَهُمْ وَأَعْجَبَهُمْ حِينَ شَبَّ)، او اسماعيل عليه السلام ځوان شو اودَ جرهم نه ئې عربي ژبه زده کړه (ځکه چه دَهغه لوړې توقي او سيدل دَجرهم قبيلې دَ هغه دَ عمر هلکانوسره وو). اسماعيل عليه السلام خپل ځان دَهغوى په نظر کښې مانوس اومرغوب کړو اوکله چه ځوان شو نو جرهم ئې (دَخپل حسن صورت اوسيرت) خوښ کړې شوې جوړ کړو. بيا چه کله بالغ شو نوهغوى دَ خپل خاندان يوه ښځه هغه ته واده کړه. دَهغه مور (هاجره رضي الله عنها) وفات شوه.

کله چه اسماعيل عليه السلام واده اوکړو نودَ دې نه پس حضرت ابراهيم عليه السلام خپل شاته پريخودې شوى بچي دَ کتلو دَپاره تشريف راوړو. (کور کښې دننه داخل شو) اسماعيل عليه السلام ئې اونه ليدلو. هغه دَ اسماعيل عليه السلام باره کښې دَ هغه دَ بي بي (اينګور) نه تپوس اوکړو (ستاخاوند چرته دې؟) اينګورئې اووئيل (خَرَجَ يَبْتَغِي لَنَا) زمونږ دَپاره دَ رزق په لټون کښې وتلې دې. بيا ابراهيم عليه السلام دَ اسماعيل عليه السلام دَ بي بي نه دَهغوى دَ معاش او نور حال احوال باره کښې تپوس اوکړو (چه دَ وخت تيريدو موڅه حالت دې؟) اينګور ئې اووئيل (نَحْنُ بِشَرٍّ نَحْنُ فِي ضِيقٍ وَشِدَّةٍ) مونږ په خراب حالت کښې يو اومونږ دَ تنګدستيا او مصيبت په حالت کښې يو. هغه ته ئې ښه ګيلې اوکړې. ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل (فَإِذَا جَاءَ زَوْجُكِ فَاقْرَئِي عَلَيْهِ السَّلَامَ وَقُولِي لَهُ يُغَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِهِ)، کله چه ستا خاوند راشي هغه ته زما سلام ورداندې کړه او ورته اووايه چه دَخپلې دروازې دا چوکاټ دې بدل کړه. کله چه اسماعيل عليه السلام (کور ته دننه) راغلو نوهغه څه محسوس کړل (يعنى دَ ابراهيم عليه السلام دَ انوار او دَ نبوت دَبرکاتو اثرات ئې محسوس کړل). يو روايت کښې دي: (فَلَمَّا جَاءَ إِسْمَاعِيلُ وَجَدَ رِيحَ أَبِيهِ)، کله چه اسماعيل عليه السلام راغلو نودَ پلار خوشبوئې محسوس کړه، او وئې وئيل (هَلْ جَاءَكُمْ مِنْ أَحَدٍ؟) آيا تاله څوك راغلې وو؟ هغې دَ (استخفاف په توګه) اووئيل (نَعَمْ جَاءَنَا شَيْخٌ كَذَا وَكَذَا) اودَ داسې داسې شکل يو بوډا سړې مونږ کره راغلې وو. ستا باره کښې تپوس اوکړو نو ما ورته اووئيل اومانه ئې تپوس اوکړو چه زمونږ

معاش څنګه دي؟ نوما هغه ته اوخودل چه مونږ په مشقت او مصیبت کښې یو. اسماعیل علیه السلام ورته اووئیل چه څه وصیت نې هم تاته کړې؟ هغې وئیل او هغه ماته اووئیل چه تاسو ته (د هغه سلام) پیش کړم او (پلار تاته دا) وائي چه د خپل کور د دروازې چوکاټ بدل کړه.

اسماعیل علیه السلام اووئیل (ذَاكِ أَبِي وَقَدْ أَمَرَنِي أَنْ أُفَارِقَكِ الْحَقِي بِأَهْلِكِ) هغه زما پلار وو هغه ماته حکم راکړې دې چه زه تا جدا کړم لهذا ته خپل موربلار کره لاړه شه نو اسماعیل علیه السلام هغې ته طلاق ورکړو اود جرهم قبیلې یوې بلې ښځې سره نې نکاح اوکړه. بیا چه الله تعالی ته څومره منظور وه ابراهیم علیه السلام (د شام په ملك کښې) د هغوی نه جدا اوسیدو. د هغې نه پس بیا راغلو او اسماعیل علیه السلام نې (کور کښې) اونه لیدلو. نو د هغه بې بې له نې تشریف راوړو اود هغې نه نې د اسماعیل علیه السلام باره کښې تپوس اوکړو هغې وئیل زمونږ د پاره د رزق په لټون کښې وتلې دې. ابراهیم علیه السلام د هغوی د معاش او حالت باره کښې تپوس اوکړو نو هغې جواب ورکړو مونږ په خیر اوفراخئی سره یو اود الله تعالی ثنا نې بیان کړه (چه د الله تعالی شکر او احسان دې). ابراهیم علیه السلام تپوس اکړو (طعامکم) ستاسو خوراکه څه ده؟ هغې وئیل غوښه. ابراهیم علیه السلام تپوس اوکړو (فماشرابکم) اوستاسو څښاك څه دې؟ هغې وئیل اوبه په دې باندې ابراهیم علیه السلام دعا اوکړه: (اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي اللَّحْمِ وَالْمَاءِ) یعنی اې الله د دوی په غوښه او اوبو کښې برکت واچوه.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي په هغه ورځ هغوی سره غله نه وه که چرې غله وه نو ابراهیم علیه السلام به د هغوی د پاره په غله کښې هم د برکت دعا کوله. حضور پاك (دا هم) اوفرمائیل چه (دا صرف د مکې خصوصیت دې چه) که چرې څوك غیر مکی اوسیدونکې صرف په غوښه او اوبو باندې ګذاره اوکړي نوهغه به د ده د پاره ناموافق وي. (اوبیماري به پیدا کوي). ابراهیم علیه السلام خپل اینګور ته اووئیل چه کله ستا خاوند راشي نوهغه ته زما د طرف نه سلام وایه اوهغه ته دا وصیت اوکړه چه د خپل کور چوکاټ دې په خائې اوساته. (د دې وصیت کولو نه پس ابراهیم علیه السلام واپس روان شو). کله چه اسماعیل علیه السلام کور ته راغلو نو (د پلار خوشبوئي پیژندلو) سره نې اووئیل آیا څوك راغلې وو بې بې اووئیل او (شَيْخٌ حَسَنُ الْهَيْئَةِ) د ښکلې شکل او صورت والا یو بوډا راغلې وو اود ابراهیم علیه السلام صفت اوتعریف نې اوکړو. هغوی ستا باره کښې تپوس اوکړو ما ورته اووئیل (د رزق په لټون کښې وتلې دې) هغه ماته تپوس اوکړو چه ستاسو وخت څنګه تیریږي؟ نوما ورته اووئیل مونږ په ښه حالت کښې یو. اسماعیل علیه السلام اووئیل چه د څه خبرې وصیت نې کړې دې. هغې اووئیل او تاته نې سلام وئیلو او حکم نې درکولو چه د خپلې دروازې چوکاټ په خائې اوساته. اسماعیل علیه السلام اووئیل (ذَاكِ أَبِي وَأَنْتِ الْعَتَبَةُ أَمَرَنِي أَنْ أُمْسِكَكِ) هغه زما پلار وو اود چوکاټ (نه مراد) ته نې هغه ماته حکم راکړې چه زه تا په (خپله نکاح) کښې اوساتم.

په روایت کښې دې بیا چه څومره الله تعالی ته منظوره وه ابراهیم علیه السلام (د شام ملك ته واپس) شو د هغوی نه جدا اوسیدو. د دې نه پس نې چه تشریف راوړو نو اسماعیل علیه السلام (په کور کښې موجود وو). د زمزم خواکې یوې ونې لاندې ناست خپل غشئی نې تیك کول. کله چه هغه خپل پلار اولیدلو نو د هغه د پاره اودریدو او دواړو داسې اوکړه لکه څنګه چه پلار د خوئي سره او خوئي د پلار سره کوي (یعنی غاړه ورکول لاس ملاوول او لاسونه ښکلول). [1]

بیا ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل (يَا إِسْمَاعِيلُ إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أَبْنِيَ هَاهُنَا بَيْتًا) اې اسماعیل ماته الله تعالی حکم راکړې دې چه زه په دې مقام باندې یو کور جوړ کړم اودې نه چاپیره نې یوې غونډئې طرف ته اشاره اوکړه. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه دغه وخت دواړو د دې کور بنیادونه اوچت کړل. اسماعیل علیه السلام به کاڼي راوړل او ابراهیم علیه السلام به جوړول. تردې چه کله دیوالونه اوچت شو (او په زمکه اودریدو سره د دیوالونو په اوچتوالي کښې د تعمیر کار

---

[1] فتح الباري: ۸/۵۰۰.

ناممکن شو) نو اسماعيل علیه السلام دغه کانړي (کوم ته چه مقام ابراهيم وائي) راوړلو راغلو اودائي ابراهيم علیه السلام سره کیخودو ابراهيم علیه السلام به په دې باندې اودريدو او ديوال به ئې جوړولو او اسماعيل علیه السلام به هغه له کانړي ورکول او (دواړو به د سورت بقره دا آيت لوستلو) ﴿رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ۖ إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾.

**د مذکوره روايت د بعض جملو تشريح:**

**قوله: أول ما اتخذ النساء المنطق:** يعني په ښځو کښې د ټولونه اول حضرت هاجره رضي الله عنها د ملاپټه استعمال کړې روستو بيا نورو ښځوهم دا استعمالول شروع کړه. حضرت هاجره رضي الله عنها ولې د ملا پټه استعمال کړې وه؟

① بعض شراح حديث فرمائيلي دي چه حضرت هاجره رضي الله عنها د حضرت ساره رضي الله عنها ملکيت وو او هغه حضرت ساره د حضرت ابراهيم علیه السلام په خدمت کښې د هبه په توګه پيش کړې وه. کله چه د هاجره رضي الله عنها نه حضرت اسماعيل علیه السلام پيدا شو نو حضرت ساره رضي الله عنها ته غيرت راغلو ځکه چه د هغې څه اولاد نه وو. هغې قسم اوخوړلو چه زه به د هاجره درې اندامونه پرې کوم. هاجره پريشانه شوه او تختيده او په ملائې پټه اوتړله او لنګ ئې اوږد کړو دې دپاره چه د خپو د تلو نشانې پټې شي او حضرت ساره رضي الله عنها ته معلومه نه شي چه هغه دې وخت کښې چرته ده او په کوم طرف باندې تللې ده. دې حضراتو «لتعفى أثرها» د قدم آثار ختمولو په معنى کښې اخستې دي.[1]

ونيلې شوې دي چه حضرت ابراهيم علیه السلام د حضرت هاجره رضي الله عنها په حق کښې حضرت ساره رضي الله عنها ته سفارش هم کړې وو او د قسم پوره کولو نې ورته دا صورت خودلې وو چه حضرت ساره دې د حضرت هاجره په دواړو غوږونو کښې سورې اوکړي او د هغې سنت دې اوکړي.[2]

② علامه کرماني رحمه الله وائي چه د ملا پټه تړل د خادمانو طريقه ده. حضرت هاجره رضي الله عنها د خادمانو هيئت اختيارولو سره خپل ځان د حضرت ساره په وړاندې د خادمه په حيثيت سره پيش کول غوښتل دې دپاره چه د حضرت ساره په طبيعت کښې نرمي پيدا شي او د زړه نه ئې د غم او خفګان اثر ختم شي. ليکن د هغې نسواني غيرت ختم نه شو خفګان ئې هم هغه شان وو تردې چه حضرت ابراهيم علیه السلام هغه د شام نه مکې مکرمې ته راوستله.

په دې صورت کښې «لتعفى أثرها» مطلب دا شو چه د ساره په زړه کښې کوم د خفګان اثر وو هاجره هغه ختمول غوښتل «يقال: عفى على ماكان منه إذا أصلح بعد الفساد»[3] يعني د خرابئ او فساد اصلاح کول.

**قوله: منطق:** بكسر أوله وفتح ثالثه هو النطاق، والجمع مناطق.[4] د ميم زير نون سکون او طاء فتحه سره د دې معنى ده د ملا پټه (کمربند)، په ملا باندې د تړلو پټئ.

**قوله: لتعفى أثرها** يعني د ملا پټه ئې اوتړله دې دپاره چه د خپو چاپونه ئې پټ شي. عفا عَفوًا وعُفوًا معنى ده نښې ختمول. عفا الشيء پټيدل[5] دلته د باب تفعيل نه متعدى استعمال شوې دې.

اسماعيلي رحمه الله د ابن عليه رحمه الله په طريق سره يو روايت نقل کړې دې. په هغې کښې دي: «أول ما اتخذت العرب جر الذيول عن أم إسماعيل»[1] يعني لمن په زمکه باندې راښکلو سره د ټګ طرز عربو د ټولو نه اول د ام اسماعيل حضرت هاجره نه زده کړې.

---

[1] عمدة القاري: ۳۵۲/۱۵ إرشاد الساري: ۲۹۰/۷ البداية والنهاية: ۳۵۶/۱ دار هجر للطباعة والنشر والتوزيع.
[2] فتح الباري: ۳۹۳/۸ عمدة القاري: ۳۵۲/۱۵.
[3] شرح الكرماني: ۱۹/۱۴ إرشاد الساري: ۲۹۰/۷ عمدة القاري: ۳۵۲/۱۵ فتح الباري: ۳۹۳/۸.
[4] النهاية لابن الأثير: ۷۵۹/۲.
[5] النهاية لابن الأثير: ۲۳۰/۲.

**داهل مکه دپاره دحضرت ابراهیم علیه السلام دعا اودهغې برکات:** حَتّٰی إِذَا كَانَ عِنْدَ الثَّنِيَّةِ حَيْثُ لَا يَرَوْنَهُ....... دَعَا بِهٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ..... مطلب دا دې چه کله ابراهیم علیه السلام د غر په هغه غونډئی باندې اورسیدلو کوم خائې چه ئې هغوی دواړه د نظر نه پټ شو نوحضرت ابراهیم علیه السلام هغه طرف ته مخ کړو کوم طرف ته چه اوس کعبه قائم ده او لاس اوچتولوسره ئې مذکوره دعا اوغوښتله. د ابوذر په نسخه کښې د کلمات په ځائې دعوات لفظ ضبط شوې دې.

د ابراهیم علیه السلام د دعا الفاظ د سورت ابراهیم په آیات کښې هم دی. په دې دعاکښې د مکې سرزمین ته «وادٍ غیر ذي زرع» وئیلې شوې ده. مطلب دا چه مکه د کرکیلې قابل نه ده. په آیت کښې د زرع نفی کړې شوې ده او زرع نکره په صورت د نکره سیاق نفی کښې واقع دې اومفید عموم دې. علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دا الفاظ مبالغه باندې محمول دی ځکه چه په دې کښې د زرع نفی دې خبرې ته مستلزم ده چه د مکې زمکه د کرکیلې صلاحیت نه لری.([2])

ابراهیم علیه السلام دا دعا هم فرمائیلې «وارزقهم من الثمرات». د دې په شرح کښې علامه زمخشری رحمه الله فرمائی دمکې زمکه د کرکیلې قابله نه ده، دلته د میوو او دانو مقامی پیداوار بالکل نشته لیکن د ابراهیم علیه السلام د دعا په برکت سره دلته د بلاد شرق اوغرب نه په هرموسم کښې انواع او اقسام بې شمیره میوې رارسیږی. چنانچه د مکې په ګرم موسم کښې د نورو علاقونه د یخ موسم میوې رارسیږی او په یخ موسم کښې د ګرموښاریو میوې رسیږی. لکه چه د ابراهیمی دعا په اثر سره دلته په یووخت هم په یوموسم کښې دهر موسم هرقسم میوې موجود وی.([3])

**د ولږې تندې نه د حضرت اسماعیل علیه السلام ترقیدل:**

**قوله: يتلوى أو قال يتلبط:** «لوىَ الشیء والتوی» معنی ده کږیدل خم دار کیدل یعنی اسماعیل علیه السلام به د ولږې اوتندې د سختئی نه په زمکه باندې اوختو راوختو او تاویدلو به. دویم لفظ یتلبّط دې. لبط فلانًا لبطًا معنی ده په زمکه راغورزول، په زمکه راپرزول.

دلته د باب تفعیل نه لازم استعمال شوې دې اودې معنی ده په زمکه باندې راپریوتل، راخلاصیدل، په زمکه باندې راتلل ترقیدل.([4]) تاسو به کتلې وی چه ماشوم ته تکلیف وی یا دهغه ضد نه پوره کیږی نوهغه خپل ځان په زمکه راخلاص کړی او خپې لاسونه وهی. په روایت کښې هم دغه کیفیت بیان کړې شوې دې. الله اکبر څنګه ازمیښت وو. مور او پینی روونکې بچې دواړه ځان له خالی میدان چه تر لرې لرې پورې د یو انسان وجود نه وی د خوراک څښاك غله دانه نه وی، د مور نه د خپل ځیګر ددې ټکرې داسې زړه له تکلیف ورکونکې حالت کوم خائې لیدلې کیدې شو؟ په دې وجه دهغه ځائې نه لاړه او د اوبو په لټون کښې لګه د لیونو د صفا نه مروه او د مروه نه صفا طرف ته اووه ځل منډې اووهلې. الله تعالی ته دا طریقه دومره خوښه شوه چه دا سنت ئې په روستو راتلونکو باندې لازم اوګرځولو چه هرکال به د حج اوعمرې په موسم کښې په زرګونو حاجیان او معتمرین د دغه ښکلې طریقې یاد تازه کوی.

**قوله: إن كان عندك غواث:** جزاء محذوف ده: فأغثني یعنی که چرې تاسره امداد وی نوزما مدد اوکړه. داکثر په نیز غواث دغین فتحه سره د اسماء اصوات د قبیل نه دې.([5]) خوبعض خلقو وئیلی دی چه دغین کسره سره دې.([1])

---

[1]) فتح الباري: ۴۹۳/۸ إرشادالساري: ۲۹۰/۷.

[2]) إرشادالساري: ۲۹۶/۷.

[3]) تفسير الكشاف سورة ابراهيم: ۳۸۶/۲ إرشادالساري: ۲۹۱/۷.

[4]) مشارق الأنوار للقاضي عياض: ۵۷۴/۱

[5]) فتح الباري: ۴۹۵/۸ إرشادالساري: ۲۹۲/۷.

اسماء اصوات هميشه دَ ضد يا كسر سره راځي لكه بكا، دغا، ندا اوصياح وغيره. خو غواث فتحه سره دې اوددا شاذ دي.(٢)

**قوله: وَتَقُوْلُ بِيَدِهَا هَكَذَا:** يعنى دَ اوبو راخوټكيدو نه پس حضرت هاجره په لاس سره دَهغې نه چاپيره پوله جوړول شروع كړه. دلته دَ لاس دَ فعل دَپاره دَ قول لفظ استعمال شوې دې. دا «إطلاق القول على الفعل» دَ قبيل نه دې.(٣)

**قوله: فَقَالَ لَهَا الْمَلَكُ:** دَ جبرائيل عليه السلام دَهغې سره خبرې اترې په دې خبره باندې دلالت كوى چه دَغير نبى سره هم دَ فرښتو كلام كيدې شى.

**قوله: فَأَرْسَلُوا جَرِيًّا أَوْ جَرِيَّيْنِ:** يعنى جرهم دَ اوبودَ لټون دَپاره يو يا دوه پيغام رسونكى اوليږل. دې ته جرى ځكه وائى چه دې دَ خپل مرسل په خودلې شوې لاره باندې دَهغه قائمقام جوړيدو سره ځى «جرى كوى» يا ورته په دې وجه جرى وائى چه هغه دَ خپل مرسل حكم په ځائى راوړلو دَپاره منډه وهى. (٤) په جريا او جريين كښې لفظ أو دَ شك دَپاره دې راوى ته شك دې چه پيغام رسونكې يو وو كه دوه وو.(٥)

**قوله: أَتَأْذَنِيْنَ لَنَا أَنْ نَنْزِلَ:** جرهم دې ځائى كښې دَ قيام اجازت اوغوښتلو. حضرت هاجره په خوشحالئى سره اجازت وركړو ليكن دا شرط ئې اولګولوچه دَ زمزم په اوبو كښې به ستاسو هيڅ حصه نه وى. هغوى دا شرط منظور كړو اوهلته ئې ډيره واچوله. دلته دا سوال پيدا كيږى چه هاجره ځان له يوه ښځه وه اودَهغې په غيږ كښې يو وړوكې ماشوم وو او جرهم يو لوئى جماعت وو دومره لوئى جماعت داسې شرط څنګه منظوركړو حالانكه كه چرې هغوى غوښتل نودې ځان له ښځې سره ئې زبردستى هم كولې شوه؟

ددې جواب دادې چه جرهم اخلاقى او دَنيك طبيعت والاخلق وو كله چه هغوى اوكتل چه په دغه ځائى باندې دَ هاجره دَ اول نه قبضه ده نودَ اوچت خونى او ښكلې اخلاقو مظاهره كولوسره ئې نه صرف هاجره نه اجازت واخستو بلكه دَ هغې شرط ئې هم منظوركړو.

دويمه اهم وجه داده چه هاجره رضي الله عنها دَحضرت ابراهيم عليه السلام غوندې دَ جليل القدر پيغمبر موطوءة وه په غيږكښې چه كوم خونى وو هغه دَ خاتم الانبياء رسول اكرم ﷺ جد امجد اسماعيل عليه السلام وو. په دې مقام باندې دواړه دَ الله تعالى په حكم سره رسولې شوې وو. دَدې وجوهاتو په وجه الله تعالى هغوى ته دَ عظمت اوهيبت شان وركړې وو په دې وجه جرهم دَ څه زبردستئى اراده پورې هم اونه كړه او شرط ئې قبول كړو. والله اعلم.

**قوله: فَأَلْفَى ذَلِكَ أُمَّ إِسْمَاعِيلَ:** ذلك فاعل او ام إسماعيل مفعول دې. ذلك نه دَ جرهم استئذان طرف ته اشاره ده. او تقديرى عبارت داسې دې. «فألفى استئذان جُرْهُمَ بِالنُّزُوْلِ أُمَّ إِسْمَاعِيْلَ»(٦) لفظى ترجمه ده دَ حصاريدو دَپاره دَ جرهم استئذان ام اسماعيل پيدا كړه.

دې نه پس په روايت كښې دى «وهى تحب الأنس» داجمله حاليه ده يعنى ام اسماعيل پخپله هم انس اورفاقت خوښولو چه دلته څه خلق راشى او آباد شى په دې وجه هغې په خوشحالئى سره جرهم ته دَ قيام اجازت وركړو.

---

(١) فتح البارى: ٤٩٥/٨ إرشادالسارى: ٢٩٢/٧.

(٢) مشارق الأنوار: ٢٣٣/٢ فتح البارى وعمدة القارى: مصابيح الجامع: ١٢٥/٧ التوضيح: ٣٩٦/١٩.

(٣) إرشادالسارى: ٢٩٣/٧.

(٤) عمدة القارى: ٣٥٧/١٥ إرشادالسارى: ٢٩٣/٧.

(٥) عمدة القارى: ٣٥٤/١٥.

(٦) إرشادالسارى: ٢٩٤/٧.

هغوی دَ خاندان نور خلق هم راؤغوښتل اودلته ئې كورونه جوړ ولوسره اووسيدل. دادَ اسماعيل عليه السلام دَ وړوكوالی زمانه وه. هغه دَخپل عمر دَ جرهم قبيلې هلكانوسره ګرځيدلو او لويو توقو كښې حصه واخسته اودَ هغوی نه ئې عربی ژبه زده كړه.

**يو اشكال اودَهغې جواب:** وَتَعَلَّمَ مِنْهُمُ الْعَرَبِيَّةَ..... دَحديث باب په دې عبارت كښې تصريح ده چه اسماعيل عليه السلام دَ قبيله جرهم نه عربی زده كړه. دَدې نه په بديهی توګه دا معلومه شوه چه عربی هغه وخت يو رائج زبان وو اودَ اسماعيل عليه السلام دَ پيدا كيدو نه مخكښې دَخلقو په مينځ كښې دَ اظهار ذريعه وه. په دې باندې اشكال وارد كيږی چه دَ ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كښې تصريح ده چه دَ ټولو نه اول كوم سړی په عربی ژبه كښې خبرې اوكړې هغه اسماعيل عليه السلام وو. دَ روايت الفاظ دی: (أَوَّلُ مَنْ نَطَقَ بِالْعَرَبِيَّةِ إِسْمَاعِيلُ) دا روايت حاكم په خپل مستدرك كښې نقل كړې دې.([1]) په ظاهره په دواړو رواياتو كښې تعارض ښكاری.

① شراح په دواړو روايتونو كښې تطبيق وركولوسره فرمائی چه دَ ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كښې دَ اوليت نه اوليت مطلقه مراد نه دې بلكه دا اوليت دَ خاندان ابراهيمی سره متعلق دې اومطلب دادې چه دَ ابراهيم عليه السلام په اولاد كښې دَ ټولو نه اول اسماعيل عليه السلام په عربی ژبه كښې خبرې اترې اوكړې. ([2])

② زبير بن بكّار دَحضرت علي رضي الله عنه يو روايت نقل كړې دې: (أَوَّلُ مَنْ فَتَقَ اللهُ لِسَانَهُ بِالْعَرَبِيَّةِ الْمُبِينَةِ إِسْمَاعِيلُ)([3]) يعنی الله تعالی په فصيح عربی باندې دَ ټولو نه اول چه دَ كوم سړی ژبه روانه كړې هغه اسماعيل عليه السلام دې. دَدې روايت نه ثابته شوه چه دَ ابن عباس رضي الله عنهما په روايت كښې اوليت مطلقه نه بلكه اوليت بالفصاحة مراد دې اومطلب دادې چه عربی كښې خبرې اترې كونكی خودَ اول نه موجود وو ليكن دَهغوی ژبه غير فصيح وه فصيح عربی دَ ټولو نه اول اسماعيل عليه السلام نه اوخودلې شوه. ([4])

**قوله: وَأَنْفَسَهُمْ:** دا لفظ دَ أَنْفَسَ نفاسة نه دَماضی صيغه ده. يعنی حضرت اسماعيل عليه السلام په حسن صورت او سيرت سره خپل خان دَهغوی په نظرونو كښې نفيس جوړ كړو په كوم سره چه دَهغوی په زړونو كښې رغبت پيدا شو اودَ اسماعيل عليه السلام سره ئې دَ مصاهرت رشته قائمه كړه.([5]) دَ اسماعيلی په روايت كښې دَ أنفسهم په ځائې أَنْسَهُمْ وارد دې يعنی هغوی ئې مانوس كړه.([6])

**قوله: زَوَّجُوهُ امْرَأَةً مِنْهُمْ:** مطلب دا چه جرهم دَخپل خاندان يوه ښځه اسماعيل عليه السلام نه واده كړه. ابن اسحاق رحمه الله دَهغې نوم عماره بنت سعد بن اسامه نقل كړې دې. علامه سهيلی رحمه الله فرمائيلی دَهغې نوم جدی بنت سعد وو.([7]) عمر بن شيبه رحمه الله فرمائی دَهغې نوم حبی بنت أسعد وو. والله اعلم ([8])

**قوله: يُطَالِعُ تَرِكَتَهُ:** يعنی دَ اسماعيل عليه السلام دَ واده نه پس ابراهيم عليه السلام دَ خپلې تركه خيال ساتلو او پالنې دَپاره تشريف راوړو. تركه دَ راء په كسره سره دَ شترمرغ هګئی ته وائی. شترمرغ دَ هګو اچولونه پس هغه پريږدی او ځی

---

[1] أخرجه الحاكم فی المستدرك: ٦٠٢/٢وقال: هذا حديث صحيح الإسناد: ٤٠٢٩لم يخرجاه.

[2] إرشادالساری: ٢٩٤/٧والتوشيح علی الجامع الصحيح للسيوطی: ٣٣٥/٣.

[3] فتح الباری: ٤٠٧/٨إرشادالساری: ٢٩٤/٧.

[4] فتح الباری: ٤٠٧/٨إرشادالساری: ٢٩٤/٧.

[5] إرشادالساری: ٢٩٤/٧.

[6] إرشادالساری: ٢٩٤/٧.

[7] الروض الأنف للسهيلی: ٤٧/١دار إحياء التراث العربی بيروت: ١٤٢١هجری.

[8] فتح الباری: ٤٩٨/٨أرشادالساری:٢٩٤/٧والتوشيح علی الجامع الصحيح: ٣٣٦/٣.

دَ هګو په لټون کښې واپس راځي نو چه کومه هګئی هم ملاؤ شي په هغې باندې کيني. سره دَدې چه که هغه هګئی دَ دَه خپله هم نه وي په دې وجه دَ شتر مرغ هګئی ته التريکة وائي. يو شاعر دا دَ مَتل په توګه په يو شعر کښې وئيلې دي:

كتاركة بيضها بالعراء وحاضنة بيض أخرى صباحا ([1])

بعض حضراتو دَدې نه استدلال کړې دې چه ذبيح حضرت اسحاق عليه السلام وو. ابراهيم عليه السلام خو اسماعيل عليه السلام دَ رضاعت په عمر کښې پريخودې وو تلې وو اوچه کله نې واپس تشريف راوړو نوهغه وخت خوان او واده نې کړې وو او هاجره بي بي وفات شوې وه. په مينځ کښې دَ څه بل ملاقات تصريح نشته دې اودَ ذبح واقعه په وړوکوالي کښې اودَ حضرت هاجره بي بي په ژوند کښې راپيښه شوې وه. که چرې اسماعيل عليه السلام ذبيح وې نو په مينځ کښې به دَ ذبح دَ واقعه ذکر ضرور کيدو لهذا دَدې نه ثابته شوه چه ذبيح اسماعيل عليه السلام نه بلکه اسحاق عليه السلام دې.

ددې جواب دادې چه په روايت کښې اختصار دې په دې کښې سره دَدې چه دَدې واقعې تصريح نشته دې ليکن بعض رواياتو کښې تصريح شته چه ابراهيم عليه السلام دَهغوی دَ خيال ساتلو دَ پاره په براق باندې کيناستو او هره مياشت به راتلو. بله خبره داده چه که دَ اختصار دَ وجې نه په حديث کښې دَ واقعه ذکر نه دې کړې شوې نو نفی هم نه ده کړې شوې. ([2])

**قوله: فَقَالَتْ خَرَجَ يَبْتَغِي لَنَا:** مطلب دادې چه کله حضرت ابراهيم عليه السلام دَ خپل بال بچ دَ خير خيريت معلومولو دپاره څه موده پس مکې ته تشريف راوړو اودَ اينګور نه نې دَ اسماعيل عليه السلام باره کښې سوال اوکړو چه هغه چرته دې نوهغې اووئيل چه دَ رزق په لټون کښې وتلې دې. دَ ابن جريج په روايت کښې تصريح ده چه اسماعيل عليه السلام ښکار دَ کسب په توګه دَ معاش ذريعه جوړ کړې وو. ([3]) دَ ابوجهم رحمه الله په روايت کښې دي چه اسماعيل عليه السلام به څاروی څرول. دَ کور نه به وتو به نې لينده په اوږه کړه او په غشو سره به نې ښکار کولو. ([4])

**قوله: قُولِي لَهُ يُغَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِهِ:** عتبه دَ دروازې چوکاټ ته وائي اودلته دا دَ ښځې دپاره کنايه ده. په ښځه باندې دعتبه اطلاق عتبه سره په بعض صفاتو کښې مماثلت دَ وجې نه کړې شوې. چوکاټ دَ دروازې او دکور دننه څيزونو دَ حفاظت ذريعه ده دادَ څپو لاندې کولې شي. ښځه هم دَ خاوند په غير موجودګئ کښې دَ کور حفاظت کوي اودَ هغه موطوءة وي ([5])

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي زمونږ شيخ امام بلقيني رحمه الله مونږ ته اوخودل دا لفظ دَ کنائي طلاق نه دې او که چرې وينا کونکې دَ طلاق نيت اوکړونو په دې سره به طلاق واقع شي. مثلاً که چرته چا اووئيل «غَيَّرْتُ عَتَبَةَ بَابِي» يا «عَتَبَةُ بَابِي مُغَيَّرَةٌ» اودې سره نې دَ طلاق نيت اوکړو نو طلاق به واقع کيږي. والله اعلم. ([6])

**قوله: وَتَزَوَّجَ مِنْهُمُ امْرَأَةً أُخْرَى:** رومبې بي بي ته دَ طلاق ورکولو نه پس اسماعيل عليه السلام هم دَ قبيله جرهم يوې ښځې سره نکاح اوکړه. دهغې په نوم کښې مختلف اقوال دي علامه واقدي رحمه الله اودَ هغه په اتباع کښې مسعودی او سهيلي رحمه الله فرمائي سامه بنت مهلهل بن سعد وو. ([1]) يو قول دادې چه دَ هغې نوم عاتکه وو. ([2])

---

[1]) فتح الباري: ٤٩٨/٨.

[2]) فتح الباري: ٤٩٨/٨ أرشادالساري: ٢٩٤/٧ عمدة القاري: ٣٥٢/١٥.

[3]) فتح الباري: ٤٩٨/٨.

[4]) المصدر السابق.

[5]) فتح الباري: ٤٩٩/٨.

[6]) فتح الباري: ٤٩٩/٨.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د عمر بن شبيبه رحمه الله د "كتاب مكة" يو قديم نسخه زما د نظر نه تيره شوې په هغې كښې د اسماعيل عليه السلام د دويمې بی بی نوم بشامه بنت مهلهل بن سعد بن عوف تحرير وو.(۳)

بعض حضراتو جدة بنت الحارث بن مضاض نوم خودلې دې. خو ابن سعد رحمه الله د ابن اسحاق رحمه الله په حواله سره د هغې نوم رعله بنت مضاض بن عمرو نقل كړې دې. ابن كلبي رحمه الله او سهيلي وائي سيده بنت مضاض د هغې نوم وو. د ابوجهم رحمه الله په روايت كښې د بی بی د نوم تصريح نشته البته په دې كښې د پلار نوم مضاض راغلې دې. محمدبن سعيد جوانی رحمه الله وائي چه دويمه بی بی هاله بنت حارث وه. بعض حضراتو حنفاء او سلمى نوم هم نقل كړې دې.(۴)

**قوله: فَهُمَا لَا يَخْلُو عَلَيْهِمَا أَحَدٌ بِغَيْرِ مَكَّةَ إِلَّا لَمْ يُوَافِقَاهُ**: يعنى چه غير مكى سړې په غوښه او اوبو باندې اكتفا كوى نو دا دواړه څيزونه به د هغه د پاره غير موافق وى او هغه به په بيمارئى كښې اخته كيږى. (خلا على الشئ خلاءً معنى ده په يو څيز باندې اكتفاء كول. (خَلَا عَلَى اللَّحْمِ أَوْعَلَى اللَّبَنِ: أَيْ لَمْ يَخْلِطْ بِهِ شَيْئًا غَيْرَهُ) يعنى هغه صرف په پيئو يا غوښه باندې اكتفاء اوكړه او په هغې كښې بل يو څيز ملاو ولو سره اونه خوړلو.

د حديث ابوجهم رحمه الله الفاظ دى: (لَيْسَ أَحَدٌ يَخْلُو عَلَى اللحم والماء بغير مكة إلا اشتكى بطنه) يعنى كه څوك هم غير مكى سړې په غوښه او اوبو باندې اكتفاء اوكړى نو د هغه هاضمه به خرابيږى. (۵) هم دې حديث ابى جهم رحمه الله كښې دا اضافه هم ده: (فقالت: أنزل -رحمك الله- فاطعم واشرب، قال: إني لا أستطيع النزول، قالت: فإني أراك أشعث، أفلا أغسل رأسك وأدهنه؟ قال: بلى إن شئت. فجاءته بالمقام، وهو يومئذ أبيض مثل المهاة، وكان في بيت إسماعيل ملقى، فوضع قدمه اليمنى، وقدمت إليه شق رأسه وهو على دابته، فغسلت شق رأسه الأيمن، فلما فرغ، حولت له المقام حتى وضع قدمه اليسرى، وقدمت إليه برأسه، فغسلت شق رأسه الأيسر، فالأثر الذي في المقام من ذلك ظاهر، فيه موضع العقب والأصبع)(۶)

يعنى اينګورئى اووئيل تاسو د سورلئى نه راكوز شئى څه خوراك څښاك اوكړئى. ابراهيم عليه السلام اووئيل زه نه شم كوزيدې. اينګور ورته اووئيل ستاسو ويښته خيرن دى آيا ستاسو سر اونه وينځم او په دې كښې تيل اونه لګوم؟ وئى فرمائيل چه كه ته دا خدمت كول غواړې نو ولې نه. اينګور هغه مقام ابراهيم ته راوستلو چه هغه وخت د شيشې په شان سپين وو او د اسماعيل عليه السلام په كور كښې پروت وو. چنانچه ابراهيم عليه السلام په هغې باندې ښې خپه كيخوده او هم په سورلئى باندې په ناسته نى د خپل سر يو طرف د اينګور طرف ته راټيټ كړو، اينګور د هغه د سر ښې طرف وينځلو نه فارغ شوه نو مقام ابراهيم نى راؤګرځولو بل طرف ته نى راوړو ابراهيم عليه السلام په هغې باندې ګسه خپه كيخوده د سر ګسه حصه نى د اينګور طرف ته راټيټه كړه هغې د ابراهيم عليه السلام د سر ګسه حصه اووينځله. په مقام ابراهيم كښې چه د خپې كوم نقش دې هغه هم په دې وجه سره دې په كوم كښې چه د پوندې او ګوتو نښې واضحه ښكارى.

**قوله: فَإِنَّ اللهَ أَمَرَنِي أَنْ أَبْنِيَ هَا هُنَا بَيْتًا**: كله چه ابراهيم عليه السلام راغلو نو هغوى اسماعيل عليه السلام سره غاړه ملاؤ كړه اوخنګه چه د پلار او خوئى ملاقات كيږى او په هغې كښې د مينې اظهار كيږى دغه شان د دواړو طرفونه د مينې اظهار اوشو. بيا ابراهيم عليه السلام اوفرمائيل چه الله تعالى حكم دې چه زه په دې ځائى باندې بيت الله جوړ كړم. دواړه

---

(۱) فتح البارى: ۸/۴۹۹. ارشاد السارى: ۷/۲۹۴.

(۲) المصدر السابق.

(۳) فتح البارى: ۸/۴۹۹.

(۴) د تفصيل د پاره اوګورئى فتح البارى: ۸/۴۹۹.

(۵) أخبار مكة للفاكهي: ۵/۸۵ دار خضر بيروت.

(۶) أخبار مكة للفاكهي: ۵/۸۵ دار خضر بيروت فتح البارى: ۸/ ۵۰۰-۴۹۹ ارشاد السارى: ۷/۲۹۵.

یوخائی شو او بیت الله ئی جوړ کړو. یو روایت کښې دی چه د بیت الله په جوړولو کښې دواړو سره نور خوک شریک نه شو حالانکه د جرهم والادلته آباد وو او د اسماعیل علیه السلام مجاورین هم وو.(۱) په حدیث ابی جهم رحمه الله کښې دی چه د تعمیر کعبه په وخت د حضرت ابراهیم علیه السلام عمر سل کاله او د حضرت اسماعیل علیه السلام عمر دیرش کاله وو.(۲)

**قوله: وکان البیت مرتفعا من الأرض کالرابیة:** جبرائیل علیه السلام حضرت هاجره ته زیری ورکړو چه (إنّ هٰهنا بیتُ الله یَبْنی هذا الغلام وأبوه، وإن الله لایُضیّع أهلَه) په دې خائی کښې بیت الله دې کوم چه به دا ماشوم او د ده پلار دواړه یوخائی تعمیر کوی. په دې وجه به الله تعالی د بیت الله دا جوړونکی نه ضائع کوی او نه به ئې هلاکوی. د روایت په مذکوره جمله کښې اوفرمائیل چه په دې وخت کښې بیت الله په کوم مقام باندې دې دا خائې د غونډئې په شان د مخ د زمکې د پاسه اوښکاره وو. ابن ابی حاتم رحمه الله د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رضی الله عنهما روایت نقل کړې دې (لما کان زمن الطوفان رُفع البیت، وکان الأنبیاء یحجّونه ولا یعلمون مکانه حتی بوّأه الله لإبراهیم وأعلمه مکانه)(۳)

یعنی د طوفان په زمانه کښې بیت الله شریف اوچت کړې شوې وو. چنانچه انبیاء کرام به د حج بیت الله په نیت سره راتلل لیکن هغوی ته مقام بیت الله معلوم نه وو تردې چه الله تعالی حضرت ابرهیم علیه السلام په دغه مقام باندې اودرولو او هغه ته ئې د بیت الله خائې اوخودلو.

امام بیهقی رحمه الله د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دا روایت په دویم طریق سره مرفوعاً نقل کړې دې کښې دی: (بَعَثَ اللهُ عزّوجلّ جبریل إلی آدم فأمره ببناء البیت، فبناه آدم، ثم أمره بالطواف به، وقیل له أنت أول الناس، وهذا أول بیت وُضِع للناس)(۴) مطلب دادې چه الله تعالی د جبرائیل علیه السلام په ذریعه حضرت آدم علیه السلام ته د کعبې د تعمیر حکم ورکړو. کله چه آدم علیه السلام د حکم تعمیل اوکړو او د کعبې د تعمیر نه فارغ شو نو بیائی هغه ته د بیت الله نه چاپیره د طواف حکم ورکړو او هغه ته ئې اووئیل چه ته اولنې انسان ئې او دا ړومبې کور دې د کوم بنیاد چه د انسانانو د عبادت د پاره کیخودې شو.

- دغه شان په مصنف عبدالرزاق کښې عن ابن جریج عن عطاء په طریق سره روایت دې: (.....اهبط إلی الأرض، فابن لی بیتا ثم احفف کما رأیت الملائکة تحف بیتی الذی فی السماء فیزعم أنه بناه من خمسة أجبل: حراء ومن لبنان، والجودی، ومن طور زیتا، وطور سیناء وکان ربضه من حراء، فکان هذا بناه آدم، ثم بناه إبراهیم علیه السلام) د دې دواړو روایتونو نه دا معلومیږی چه د بیت الله اولین جوړونکې حضرت آدم علیه السلام دې. د وهب بن منبه رحمه الله روایت دې چه د بیت الله اولنې جوړونکې شیث بن آدم علیهما السلام دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی اولنې روایت راجح دې چه بیت الله په اول خل حضرت آدم علیه السلام جوړ کړې دې.(۵)

**قوله: رفعا القواعد من البیت:** یعنی ابراهیم علیه السلام او اسماعیل علیه السلام دواړو د دغه کور بنیاد کیخودو. حافظ ابن حجر رحمه الله په دې سلسله کښې مختلف روایات نقل کړی دی د کوم خلاصه چه داده. د بیت الله ړومبې بنیاد حضرت آدم علیه السلام کیخودې دې او هغه ته هغه مقام ملائکه خودلې وو چرته چه کعبه تعمیر کول وو. مګر د زرګونو کالو حادثاتو مودې اوشوې چه هغه بې نشانه کړې وه. البته اوس هم دغه غونډئې د راوچتې شوې زمکې په صورت کښې موجود وه. دا خائې د الله تعالی د وحې په ذریعه ابرهیم علیه السلام ته اوخودلې شو نو هغه د اسماعیل علیه السلام په امداد سره هغه کنستل شروع کړه. د کنستلو دوران کښې د مخکښې تعمیر بنیادونه ښکاره شو او هم په هغه بنیادونو باندې د بیت الله تعمیر اوکړې شو.(۶)

---

(۱) فتح الباری: ۵۰۱/۸.
(۲) فتح الباری: ۵۰۰/۸.
(۳) فتح الباری: ۴۹۶/۸.
(۴) دلائل النبوة للبیهقی: ۴۵/۲ باب ماجاء فی بناء الکعبة. دار الکتب العلمیة، ودار الریان للتراث.
(۵) فتح الباری: ۴۹۶/۸.
(۶) فتح الباری: ۵۰۱/۸.

روایاتو کښې دي چه کله دَ بیت الله دیوالونه اوچت شو نو په ابراهیم علیه السلام باندې ضعف او کمزورې شروع شوه او دَ کاڼو اوچتولو نه عاجز راغلو نو یو کاڼې ئې موړه کړو. اسماعیل علیه السلام به دغه کاڼې له په لاس سره سهارا ورکوله او ابراهیم علیه السلام به په هغې باندې ختلو سره تعمیر کولو. هم دغه مبارک کاڼې دې چه نن دَ مقام ابراهیم په نوم سره یو عظیم یادګار په توګه باندې محفوظ دې. نن صبا چه حجر اسود په کوم ځائې لګیدلې دې کله چه تعمیر تر دغه حده پورې اورسیدو نو جبرائیل علیه السلام هغوی ته لار خودنه اوکړه او حجر اسود ئې دَ هغوی په مخ کښې دَ یوغر نه راؤویستلو ورکړو. دې ته دَ جنت نه راوړلې شوې کاڼې وئیلې شي. جبرائیل علیه السلام هغوی ته دا کاڼې دَ لګولو دَپاره ورکړې وو.[1]

[۳۱۸۵]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ عَبْدُ المَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، قَالَ: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَافِعٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: لَمَّا كَانَ بَيْنَ إِبْرَاهِيمَ وَبَيْنَ أَهْلِهِ مَا كَانَ، خَرَجَ بِإِسْمَاعِيلَ وَأُمِّ إِسْمَاعِيلَ، وَمَعَهُمْ شَنَّةٌ فِيهَا مَاءٌ، فَجَعَلَتْ أُمُّ إِسْمَاعِيلَ تَشْرَبُ مِنَ الشَّنَّةِ، فَيَدِرُّ لَبَنُهَا عَلَى صَبِيِّهَا، حَتَّى قَدِمَ مَكَّةَ فَوَضَعَهَا تَحْتَ دَوْحَةٍ، ثُمَّ رَجَعَ إِبْرَاهِيمُ إِلَى أَهْلِهِ، فَاتَّبَعَتْهُ أُمُّ إِسْمَاعِيلَ، حَتَّى لَمَّا بَلَغُوا كَدَاءً نَادَتْهُ مِنْ وَرَائِهِ: يَا إِبْرَاهِيمُ إِلَى مَنْ تَتْرُكُنَا؟ قَالَ: إِلَى اللَّهِ، قَالَتْ: رَضِيتُ بِاللَّهِ، قَالَ: فَرَجَعَتْ فَجَعَلَتْ تَشْرَبُ مِنَ الشَّنَّةِ وَيَدِرُّ لَبَنُهَا عَلَى صَبِيِّهَا، حَتَّى لَمَّا فَنِيَ المَاءُ، قَالَتْ: لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ لَعَلِّي أُحِسُّ أَحَدًا، قَالَ فَذَهَبَتْ فَصَعِدَتِ الصَّفَا فَنَظَرَتْ، وَنَظَرَتْ هَلْ تُحِسُّ [ص: ۱۴۵] أَحَدًا، فَلَمْ تُحِسَّ أَحَدًا، فَلَمَّا بَلَغَتِ الوَادِيَ سَعَتْ وَأَتَتِ المَرْوَةَ، فَفَعَلَتْ ذَلِكَ أَشْوَاطًا، ثُمَّ قَالَتْ: لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ مَا فَعَلَ، تَعْنِي الصَّبِيَّ، فَذَهَبَتْ فَنَظَرَتْ فَإِذَا هُوَ عَلَى حَالِهِ كَأَنَّهُ يَنْشَغُ لِلْمَوْتِ، فَلَمْ تُقِرَّهَا نَفْسُهَا، فَقَالَتْ: لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ، لَعَلِّي أُحِسُّ أَحَدًا، فَذَهَبَتْ فَصَعِدَتِ الصَّفَا، فَنَظَرَتْ وَنَظَرَتْ فَلَمْ تُحِسَّ أَحَدًا، حَتَّى أَتَمَّتْ سَبْعًا، ثُمَّ قَالَتْ: لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ مَا فَعَلَ، فَإِذَا هِيَ بِصَوْتٍ، فَقَالَتْ: أَغِثْ إِنْ كَانَ عِنْدَكَ خَيْرٌ، فَإِذَا جِبْرِيلُ، قَالَ: فَقَالَ بِعَقِبِهِ هَكَذَا، وَغَمَزَ عَقِبَهُ عَلَى الأَرْضِ، قَالَ: فَانْبَثَقَ المَاءُ، فَدَهَشَتْ أُمُّ إِسْمَاعِيلَ، فَجَعَلَتْ تَحْفِزُ، قَالَ: فَقَالَ أَبُو القَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ تَرَكَتْهُ كَانَ المَاءُ ظَاهِرًا». قَالَ: فَجَعَلَتْ تَشْرَبُ مِنَ المَاءِ وَيَدِرُّ لَبَنُهَا عَلَى صَبِيِّهَا، قَالَ: فَمَرَّ نَاسٌ مِنْ جُرْهُمَ بِبَطْنِ الوَادِي، فَإِذَا هُمْ بِطَيْرٍ، كَأَنَّهُمْ أَنْكَرُوا ذَاكَ، وَقَالُوا: مَا يَكُونُ الطَّيْرُ إِلَّا عَلَى مَاءٍ، فَبَعَثُوا رَسُولَهُمْ فَنَظَرَ فَإِذَا هُمْ بِالْمَاءِ، فَأَتَاهُمْ فَأَخْبَرَهُمْ، فَأَتَوْا إِلَيْهَا فَقَالُوا: يَا أُمَّ إِسْمَاعِيلَ، أَتَأْذَنِينَ لَنَا أَنْ نَكُونَ مَعَكِ، أَوْ نَسْكُنَ مَعَكِ، فَبَلَغَ ابْنُهَا فَنَكَحَ فِيهِمُ امْرَأَةً، قَالَ: ثُمَّ إِنَّهُ بَدَا لِإِبْرَاهِيمَ، فَقَالَ لِأَهْلِهِ: إِنِّي مُطَّلِعٌ تَرِكَتِي، قَالَ: فَجَاءَ فَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَيْنَ إِسْمَاعِيلُ؟ فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: ذَهَبَ يَصِيدُ، قَالَ: قُولِي لَهُ إِذَا جَاءَ غَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِكَ، فَلَمَّا جَاءَ أَخْبَرَتْهُ، قَالَ: أَنْتِ ذَاكِ، فَاذْهَبِي إِلَى أَهْلِكِ، قَالَ: ثُمَّ إِنَّهُ بَدَا لِإِبْرَاهِيمَ، فَقَالَ لِأَهْلِهِ: إِنِّي مُطَّلِعٌ تَرِكَتِي، قَالَ: فَجَاءَ، فَقَالَ: أَيْنَ إِسْمَاعِيلُ؟ فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: ذَهَبَ يَصِيدُ، فَقَالَتْ: أَلاَ تَنْزِلُ فَتَطْعَمَ وَتَشْرَبَ، فَقَالَ: وَمَا طَعَامُكُمْ وَمَا شَرَابُكُمْ؟ قَالَتْ: طَعَامُنَا اللَّحْمُ وَشَرَابُنَا المَاءُ، قَالَ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي طَعَامِهِمْ وَشَرَابِهِمْ، قَالَ:

[1] قصص القرآن: ۱۶۸/۱.

فَقَالَ أَبُو القَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «بَرَكَةٌ بِدَعْوَةِ إِبْرَاهِيمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِمَا وَسَلَّمَ» قَالَ: ثُمَّ إِنَّهُ بَدَا لِإِبْرَاهِيمَ، فَقَالَ لِأَهْلِهِ: إِنِّي مُطَّلِعٌ تَرِكَتِي، فَجَاءَ فَوَافَقَ إِسْمَاعِيلَ مِنْ وَرَاءِ زَمْزَمَ يُصْلِحُ نَبْلًا لَهُ، فَقَالَ: يَا إِسْمَاعِيلُ، إِنَّ رَبَّكَ أَمَرَنِي أَنْ أَبْنِيَ لَهُ بَيْتًا، قَالَ: أَطِعْ رَبَّكَ، قَالَ: إِنَّهُ قَدْ أَمَرَنِي أَنْ تُعِينَنِي عَلَيْهِ، قَالَ: إِذَنْ أَفْعَلَ، أَوْ كَمَا قَالَ: قَالَ فَقَامَا فَجَعَلَ إِبْرَاهِيمُ يَبْنِي، وَإِسْمَاعِيلُ يُنَاوِلُهُ الحِجَارَةَ وَيَقُولاَنِ: {رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ العَلِيمُ} [البقرة:١٢٧]. قَالَ: حَتَّى ارْتَفَعَ البِنَاءُ، وَضَعُفَ الشَّيْخُ عَنْ نَقْلِ الحِجَارَةِ، فَقَامَ عَلَى حَجَرِ المَقَامِ، فَجَعَلَ يُنَاوِلُهُ الحِجَارَةَ وَيَقُولاَنِ: {رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ العَلِيمُ} [البقرة:١٢٧] [ص ٣٢٥-٣٢٧][ر: ٢٢٣٩]

دلته امام بخاري رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما حديث په دريم طريق سره ذكر كړې دې. دې سره متعلق تشريحات او ضروري مطالب د تيروشورو روايتونو په ضمن كښې تيرشوي دي.

**د احاديث ترجمة الباب سره مناسبت**: د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل شوې مذكوره روايت په دريو طرق سره امام بخاري رحمه الله ذكر كړې دې او د دې ټولو ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې خكه چه د ټولو تعلق د حضرت ابراهيم عليه السلام قصې سره دې.[1]

علامه عيني رحمه الله فرمائيلى چه دا باب هم «باب قوله الله: ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾» تتمه ده.[2]

[٣١٨٦]- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَاحِدِ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا ذَرٍّ [ص: ٣٦٠] رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّ مَسْجِدٍ وُضِعَ فِي الأَرْضِ أَوَّلَ؟ قَالَ: «المَسْجِدُ الحَرَامُ» قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ «المَسْجِدُ الأَقْصَى» قُلْتُ: كَمْ كَانَ بَيْنَهُمَا؟ قَالَ: «أَرْبَعُونَ سَنَةً، ثُمَّ أَيْنَمَا أَدْرَكَتْكَ الصَّلاَةُ بَعْدُ فَصَلِّهْ، فَإِنَّ الفَضْلَ فِيهِ» [ص ٣٢٧][٣٢٢٤][3]

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعيل**: دا ابوسلمه موسى بن اسماعيل تبوذكى رحمه الله دې. د دوى تذكره «كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا في المسجد» لاندې تيره شوې ده.[4]

**عبدالواحد**: دا عبدالواحد بن زياد بصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره «كتاب الايمان باب الجهاد من الايمان» لاندې تيره شوې ده.[5]

**الاعمش**: دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى رحمه الله دې. د دوى تذكره «كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيره شوې ده.[1]

[1] عمدة القاري: ١٥/٣٤٨ دار الكتب العلمية.

[2] عمدة القاري: ١٥/٣٦٠.

[3] أخرجه أيضاً فى نفس الكتاب باب قول الله تعالى ﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمَانَ نِعْمَ الْعَبْدُ إِنَّهُ أَوَّابٌ﴾ رقم: ٣٤٢٥ والنسائى فى سننه، فى كتاب المساجد باب ذكر أى مسجد وضع أولاً رقم: ٦٩١ وابن ماجه فى سننه، فى كتاب المساجد والجماعات، باب أى مسجد وضع الأول رقم: ٧٥٣ وأحمد فى سننه: ٥/١٦٠، ١٥٦، ١٥٠.

[4] كشف البارى: ٣/٤١٣.

[5] كشف البارى: ٢/٣٠١.

**ابراهیم التیمي:** دا ابراهیم بن یزید بن شریك تیمي رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لا یشعر) لاندې تیره شوې ده. [۲]

**عن ابیه.** دا دَدوی والد یزید بن شریك تیمي رحمه الله دي. [۳]

**قوله: فقلت: یارسول الله! أي مسجد وضع في الأرض أول.....:** حضرت ابوذر غفاری رضي الله عنه وائی چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه دټولو نه اول په زمکه باندې کوم یو جمات جوړ شوې دې؟ حضور پاك اوفرمائیل مسجد حرام. ما عرض اوکړو بیا کوم یو؟ حضور پاك اوفرمائیل مسجد اقصٰی. ما عرض اوکړو ددواړو په (تاسیس یعنی بنیاد کیخودو) کښې دَ څومره مودې فاصله ده؟ حضور پاك اوفرمائیل څلویښت کاله. بیا چه چرته دَمونځ وخت پیدا کړې هم هلته مونځ کوه ځکه چه فضیلت هم دَ مانځه په کولو کښې دې.

**مختلف ادوار وکښې دَکعبة الله دَ تعمیر بیان: أي بیت وضع.....** دلته دَ بیت نه مطلق بیت مراد نه دې بلکه بیت العبادت مراد دې. یعنی سوال دَعام کور متعلق نه وو دَعبادت دَ کور سره متعلق وو چه په مخ دَ زمکې دَ ټولو نه اول کومه یوه عبادت خانې بنیاد کیخودې شوې. اسحاق بن راهویه رحمه الله دَ حضرت علي رضي الله عنه یو روایت په صحیح سند سره نقل کړې دې. په هغې کښې دَ بیت العبادة تصریح ده: (کانت البیوت قبله، ولکنه کان أول بیت وضع لعبادة الله) [۴] یعنی عام کورونه دَدې نه وړاندې هم موجود وولیکن دَ عبادت دَپاره کعبة الله اولنې کور دې دکوم بنیاد چه کیخودې شو.

دکعبة الله بنیاد دټولو نه اول حضرت آدم علیه السلام کیخودې او بیا ابراهیم علیه السلام، عمالقه اوجرهم په ترتیب مختلف ادوارکښې دَدې تعمیر کړې. دې نه پس دَرسول الله ﷺ دَ ځوانئې په زمانه کښې قریشو دَدې تعمیر کړې. بیا عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه په خپل دورخلافت کښې دا تعمیر کړو. حجاج بن یوسف چه راغلو دا ئې وړانه کړه او جدید تعمیرئې اوکړو. تردغه وخته پورې هم هغه تعمیر راروان دې او په دې کښې هیڅ بدلون نه دې کړې شوې.

ونیلې شی چه هارون الشید دَ حجاج بن یوسف طرز تعمیر نړلوسره کعبة الله دوباره دَحضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه په طرز باندې جوړول غوښتل. په دې سلسله کښې هارون الرشید دَ امام مالك رحمه الله نه تپوس اوکړو نو امام مالك رحمه الله اوفرمائیل: (نشدتك الله یاأمیرالمؤمنین أن تجعل هذا البیت لعبة للملوك لایشاء أحد إلانقضه وبناه، فتذهب هیبته من صدور الناس) [۵]

یعنی اې امیرالمؤمنین تاسو ته دَالله تعالی واسطه درکوم وایم چه دا کور دَ حکمرانانودَپاره دَلوبې اوتماشې بوخیز مه جوړوه. ګنې چه څوك هم راځی هغه به دا وړانولو سره تعمیر کوی. دغه شان به دَ دې هیبت او وقار دَ زړونو نه اوچت شی.

**دَ اقصٰی دَ تسمیه وجه: المسجد الأقصی.....** دې نه بیت المقدس مراد دې. أقصٰی آخری، انتها اودَ لرې لرې معنی کښې استعمالیږی. بیت المقصد ته المسجد الأقصٰی ونیلو څه وجه ده. په دې کښې مختلف اقوال دی:

---

[۱] کشف الباری: ۲/۲۵۱.
[۲] کشف الباری: ۲/۵٤٤.
[۳] کتاب فضائل المدینة باب حرم المدینة رقم: ۱۸۷۰.
[٤] فتح الباری: ٨/٤.٥ کنز العمال: ۲/۳۷۸ رقم الحدیث: ٤۲۹۷ مؤسسة الرسالة، تفسیر ابن أبی حاتم، سورة آل عمران قوله تعالی: ﴿إن أول بیت وضع للناس﴾ الآیة ۹٦، ص: ۷۰۷ رقم الحدیث: ۳۸۲۷ مکتبة نزار مصطفی.
[٥] فتح الملهم: ۱/۳٤۱.

① يوقول دادې چه بيت المقدس اوكعبة الله په مينځ كښې فاصله ډيره زياته اوږده ده په دې وجه دې ته اقصیٰ ونيلى شي.
② بعض حضراتو ونيلى دى چه بيت المقدس پسې شاته د عبادت بل څه خانى نشته دې په دې وجه دې ته اقصیٰ ونيلى شي.
③ يوقول دادې چه (بُعدعن الأقذار والخبائث) د وجې نه دې ته اقصیٰ ونيلې شوې.[1]

**كعبة الله او مسجداقصیٰ په مينځ كښې د زمانې دمسافت تحقيق:** أربعون سنة...... حافظ ابن جوزي رحمه الله فرمائيلى دلته اشكال وازد كيږي د كعبة الله بانى حضرت ابراهيم عليه السلام دې او دبيت المقدس بانى حضرت سليمان عليه السلام دې. او د دواړو په مينځ كښې يو زركاله نه زياته موده فاصل ده حالانكه په مذكوره روايت كښې رسول الله ﷺ فرمائى چه د دواړو تعميرد څلويښتو كالو په فرق سره شوې دې. بيا هم پخپله د دې اشكال جواب وركوى:
(أن الإشارة فى الحديث إلى أول البناء ووضع أساس المسجد وليس إبراهيم أول من بنى الكعبة، ولا سليمان أول من بنى بيت المقدس، فقد روينا أن أول من بنى الكعبة آدم، ثم انتشر وَلَدُه فى الأرض، فجائز أن يكون بعضهم قد وَضَعَ بيت المقدس ثم بنى إبراهيم الكعبة).[2]
يعنى په دې روايت كښې په اصل د دواړو مساجدو او اول بناء طرف ته اشاره ده. حقيقت دادې چه ابراهيم عليه السلام د كعبة الله اولنې بانى نه دې او سليمان عليه السلام هم د بيت المقدس اولنې بانى نه دې بلكه دا روايت مونږ نقل كړې دې چه د كعبة الله بنياد اول د ټولو نه حضرت آدم عليه السلام كيخودې دې د هغوى نه پس د هغوى اولاد په زمكه كښې خواره شو نوممكن دى چه (سليمان عليه السلام نه علاوه) په هغوى كښې بل چا د بيت المقدس بنياد كيخودې وى او بيا د هغې نه پس ابراهيم عليه السلام د كعبة الله تعمير كړې وى.
يعنى كله چه آدم عليه السلام د كعبة الله بنياد كيخودو بيا د هغه په اولاد كښې بل چا د بيت المقدس بنياد كيخودو. نو ممكن ده چه د دې دواړو په مينځ كښې د څلويښتو كالو موده وى او په حديث كښې هم دغه اول ځل بنياد كيخودو ته اشاره وى.
د حافظ ابن جوزي رحمه الله رائې ته حافظ ابن حجر رحمه الله هم ترجيح وركړې ده او د دې په تائيد كښې د ابن هشام رحمه الله دا روايت نقل كړې دې چه كله آدم عليه السلام د كعبې د بنياد نه فارغ شو نوالله تعالى هغه ته د بيت المقدس د سيل كولو حكم وركړو چه هلته لاړ شه د هغې بنياد كيږده. چنانچه حضرت آدم عليه السلام د بيت المقدس بنياد كيخودو او بيانى په هغې كښې مناسك اداكړل. نوممكن ده چه د دواړو بنيادونو په مينځ كښې د څلويښتو كاله موده وى او په روايت باب كښې د دې اعتبار كړې شوې وى.[3]
بعض حضرات وائى چه د حضرت آدم عليه السلام د تخليق نه وړاندې دوه زره كاله مخكښې ملائكه د كعبة الله بنياد اول كيخودې وو او بيانى دې نه پس د بيت المقدس بنياد كيخودو. په روايت كښې د دغه دواړو بنيادونو په مينځ كښې څلويښت كاله خودلې شوې دى.[4]

**قوله: فإن الفضل فيه:** يعنى اصل فضيلت خو د مانځه د هغې په خپل وخت اداكولو كښې دې. يوروايت كښې دلته (والأرض لك مسجد) او بعض كښې (فإن الأرض كلها مسجد) اضافه هم نقل ده يعنى په مخ د زمكې هره يوه حصه باندې هم مونځ كول جائز دى.[5]

---

[1]) فتح البارى: ٥٠٤/٨ إرشادالسارى: ٣٠/٧.
[2]) فتح البارى: ٥٠٤/٨.
[3]) فتح البارى: ٥٠٥/٨.
[4]) فتح الملهم: ٣٤٢/١.
[5]) فتح البارى: ٥٠٥/٨.

[۳۱۸۷]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، مَوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، طَلَعَ لَهُ أُحُدٌ فَقَالَ: «هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ، اللّٰهُمَّ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ حَرَّمَ مَكَّةَ، وَإِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا» وَرَوَاهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص ۳۳۲][1]

## تراجم رجال

**عبدالله بن مسلمة:** داعبدالله بن مسلمه بن قعنب حارثی بصری رحمه الله دې. دَ دوی تذکره (کتاب الإیمان باب من الدین الفرار من الفتن) لاندې تیره شوې ده.[2]

**مالک:** دا امام دارالهجرة مالك بن انس رحمه الله دې. دَدوی تذکره (بدء الوحی) لاندې تیره شوې ده.[3]

**عمرو بن ابي عمرو:** داعمرو بن ابی عمرو میسره مولی المطلب بن عبدالله بن حنطب قرشی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره (کتاب العلم باب الحرص علی الحدیث) لاندې تیره شوې ده.[4]

**قوله: أن رسول الله صلی الله علیه وسلم طلع له أحد فقال........:** دَحضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دَ احد غر په نظر راغلو نوونئ فرمائیل دا هغه غر دې چه مونږ سره محبت کوی او مونږ ده سره محبت کوو. یا الله ابراهیم مکه حرم اوګرځولو او زه مدینه حرم ګرځوم چه دَ دوو کانړی ژنو زمکو په مینځ کښې واقع ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه امام بخاری رحمه الله حرم مدینه اوجبل احد سره متعلق دَحضرت انس رضي الله عنه روایت موصولاً اودَحضرت عبدالله بن زید رضي الله عنه روایت تعلیقاً ذکرکړې دې اومقصد دَحضرت ابراهیم علیه السلام تذکره کول دی چه هغه مکه مکرمه حرم ګرځولې دې.[5]

په دې حدیث باندې کتاب الحج کښې تفصیلی بحث شوې دې او وړاندې کتاب المغازی کښې هم راځی. انشاء الله.[6]

**دَحدیث ترجمةُ الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره دَ (ان إبراهیم حرم.....) مناسبت واضح دې.

**رَوَاهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم** [انظر: ۲۰۲۲، ۲۷۳۲]

یعنی مذکوره روایت عبدالله بن زید رضي الله عنه هم دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کړې دې. دا روایت امام بخاری رحمه الله (کتاب البیوع، باب برکة صاع النبی صلی الله علیه وسلم) لاندې (عن موسٰی عن وهب عن عمرو بن یحیٰی عن عباد بن تمیم الأنصاري عن عبدالله بن زید عن النبی صلی الله علیه وسلم) په سندسره موصولاً نقل کړې دې.[7]

[۳۱۸۸]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ، أَنَّ ابْنَ أَبِي بَكْرٍ، أَخْبَرَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ، زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

---

[1] مرتخریجه فی کتاب الصلاة باب مایذکر فی الفخذ رقم: ۳۷۱.
[2] کشف الباری: ۸۰/۲.
[3] کشف الباری: ۲۹۰/۱.
[4] کشف الباری: ۵۱/٤.
[5] فتح الباری: ۵۰۵/۸.
[6] کشف الباری کتاب المغازی ص: ۲۵۳-۲۵۲.
[7] عمدة القاري: ۳۶۲/۱۵.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «أَلَمْ تَرَيْ أَنَّ قَوْمَكِ لَمَّا بَنَوُا الكَعْبَةَ اقْتَصَرُوا عَنْ قَوَاعِدِ إِبْرَاهِيمَ»، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلاَ تَرُدُّهَا عَلَى قَوَاعِدِ إِبْرَاهِيمَ؟ فَقَالَ: «لَوْلاَ حِدْثَانُ قَوْمِكِ بِالكُفْرِ»، فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ: لَئِنْ كَانَتْ عَائِشَةُ سَمِعَتْ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَا أُرَى أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، تَرَكَ اسْتِلاَمَ الرُّكْنَيْنِ اللَّذَيْنِ يَلِيَانِ الحِجْرَ، إِلَّا أَنَّ البَيْتَ لَمْ يُتَمَّمْ عَلَى قَوَاعِدِ إِبْرَاهِيمَ" وَقَالَ إِسْمَاعِيلُ: عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ [ص ۳۳۳] [1]

## تراجم رجال

**عبدالله بن یوسف:** داابومحمد عبدالله بن یوسف تنیسی کلاعی رحمه الله دي. دَ دوی تذکره (کتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب) لاندې تیره شوې ده. [2]

**مالک:** دا امام مالك بن انس رحمه الله دي.

**ابن شهاب:** دَدوی تذکره (بدءالوحی) لاندې تیره شوې ده. [3]

**سالم بن عبدالله:** دا ابوعمر یا ابوعبدالله سالم بن عبدالله بن عمر بن الخطاب قرشي عدوی رحمه الله دي. دَ دوی تذکره (کتاب الإیمان باب الحیاء من الإیمان) لاندې تیره شوې ده. [4]

**ابن ابي بکر:** دا دَ حضرت ابوبکر رضی الله عنه نمسې عبدالله بن محمدبن ابی بکر رضی الله عنه دي. دَ دوی حالات (کتاب الحج باب فضل مکة وبنیانها) لاندې اوګورئ.

**قوله: ألم تر أن قومك بنوا الكعبة.......:** رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت عائشه رضی الله عنها ته اوفرمائیل آیا تااونه لیدل چه ستا قوم دَ کعبې تعمیراوکړو اودَ حضرت ابراهیم علیه السلام دَبنیادونونه ئې دا تعمیر کم کړو. حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړویارسول الله! تاسو هغه دَ ابراهیم علیه السلام په بنیادونو باندې ولې نه راواپس کوئی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (لولاحدثان قومك بالکفر) یعنی که ستاقوم نوې مسلمان شوې نه وې. په بل روایت کښې دلته دَ (لفعلت) تصریح ده. یعنی ما به ضرور دا دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په بنیادونو باندې تعمیر کړې وه.

قریش نوی مسلمانان شوی وواودَ کفردَ زمانې دَ نفسیاتو نه لادغه وخته پورې پوره نه وو وتلې. که دَ کعبې په تعمیر کښې ردوبدل کولوسره دَحضرت ابراهیم علیه السلام په بنیادونو باندې ددې تعمیر کړې وې نودَ قریشو په زړونوکښې به شکوك او شبهات پیدا کیدې شو.

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه که چرې حضرت عائشه رضی الله عنها دا خبره دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې ده (او یقیناً ئې اوریدلې ده) نوزما په خیال رسول اکرم صلی الله علیه وسلم رکنین: رکن عراقی او یمانی بنکلول هم په دې وجه ترك کړې وو چه کعبة الله دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په بنیادونوباندې نه وه جوړه کړې شوې. حطیم سره متصل دَعراق اوشام طرف ته دَ کعبة الله دَ دیوالونو چه کوم ګوټونه دی دې ته رکن عراقی اورکن شامی ونیلې شی. حضورپاك

---

[1] مرتخریجه فی کتاب العلم باب من ترك بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس عنه فیقعوا فی أشد منه رقم:۱۲۶.

[2] کشف الباری: ۱۱۳/٤.

[3] کشف الباری: ۲۲٤/۱.

[4] کشف الباری: ۲۸/۲.

دَدې استلام په دې وجه ترک کړې وو چه دا دواړه کونړونه دَ حضرت ابراهیم دَ تعمیر کړې شوې عمارت دَ کونړونو په ځائې نه وو. دا روایت (کتاب الحج باب بیان فضل مکة وبنیانها) لاندې تفصیل سره تیر شوې دې.

وَقَالَ إِسْمَاعِيلُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ. [ر: ۱۲۶]

دَ اسماعیل نه اسماعیل بن ابی اویس رحمه الله مراد دې دَ امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه دَ روایت باب په سند کښې دَ ابن ابی بکر نه بل څوك مراد نه دې بلکه عبدالله بن محمد بن ابی بکر صدیق رضی الله عنه مراد دې. ځکه چه دا روایت اسماعیل بن ابی اویس رحمه الله هم نقل کړې دې او په دې کښې دَ عبدالله بن محمد رحمه الله تصریح ده. دَ اسماعیل روایت امام بخاری رحمه الله (کتاب التفسیر باب: وإذ يرفع إبراهيم القواعد من البيت وإسماعيل ربنا تقبل منا إنك أنت السميع العليم) لاندې نقل کړې دې.[1]

[۳۱۸۹] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، أَخْبَرَنِي أَبُو حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُمْ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قُولُوا: اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ" [ص ۳۳۵-۳۳۶] [۵۹۹۹][2]

## تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا ابومحمد عبدالله بن یوسف کلاعی تنیسی رحمه الله دې. (کتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد الغائب) لاندې دَدوی تذکره تیره شوې ده.[3]

**مالك بن انس:** دَتیرشوی حدیث سند اوګورئ.

**عن ابيه:** دَدې نه دَهغوی والد ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم انصاری خزرجی رحمه الله مراد دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب کیف یقبض العلم) لاندې تیره شوې ده.[4]

دَ ابوحمید ساعدی رضی الله عنه روایت دې چه صحابهٔ کرامو عرض اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ په تاسو باندې څنګه درود اولیږو؟ حضور پاك اوفرمائیل داسې وایئ: (اللهم صلى على محمد وأزواجه، وذريته، كما صليت على آل إبراهيم وبارك على محمد، وأزواجه، وذريته، كما باركت على إبراهيم إنك حميد مجيد) په عام توګه مشبه به اقوی وی او داسې په تشبیه کښې ناقص دَ کامل سره ملحق کولې شی. مګر دلته دا دَ ناقص دَ کامل سره دَملحق کولو دَ قبیل نه او نه ګڼړلې بلکه دا دَ غیر معروف حال دَ معروف دَ حال په ذریعه دَ بیان کولو دَ قبیل نه دې ځکه چه په ابراهیم علیه السلام باندې دَ رحمت کیدو

---

[1] رقم الحديث: ٤٤٨٤ فتح الباري: ٥٠٥/٨ عمدة القاري: ٣٦٢/١٥.

[2] رواه البخاري في الدعوات باب: هل يصلى على غير النبي صلى الله عليه وسلم، رقم الحديث: ٦٣٦٠ ومسلم في الصلاة باب الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم بعد التشهد، رقم الحديث: ٩١١ وأبوداؤد في الصلاة باب الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم بعد التشهد، رقم الحديث: ٩٧٩ والنسائي في السهو، نوع آخر من الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحيث: ١٢٩٤ جامع الأصول في أحاديث الرسول: ٤٠٤/٤ رقم الحديث: ٢٤٧١.

[3] كشف الباري: ١١٣/٤.

[4] كشف الباري: ٦٩/٤

تذکره دَ هغه دَ متقدم کیدو دَ وجې نه معروف دې. کوم چه آیت مبارک ﴿وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ ۚ إِنَّهُ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ﴾ کښې موجود دی.[1]

[۳۱۹۰] - حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالاَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ حَدَّثَنَا أَبُو فَرْوَةَ مُسْلِمُ بْنُ سَالِمٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عِيسَى، سَمِعَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: لَقِيَنِي كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ، فَقَالَ: أَلاَ أُهْدِي لَكَ هَدِيَّةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقُلْتُ: بَلَى، فَأَهْدِهَا لِي، فَقَالَ: سَأَلْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ الصَّلاَةُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ البَيْتِ، فَإِنَّ اللَّهَ قَدْ عَلَّمَنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكُمْ؟ قَالَ: "قُولُوا: اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ، وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، اللَّهُمَّ بَارِكْ [ص:۱۴۷] عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ، وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ" [ص ۳۳۷][۴۵۱۹، ۵۹۹۶][2]

## تراجم رجال

**قیس بن حفص**: دا ابومحمد قیس بن حفص بن قعقاع تمیمی رحمه الله دی. (کتاب العلم باب قول الله عزوجل: ﴿وَمَا أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا﴾ لاندې دَدوی تذکره تیره شوې ده.[3]

**موسىٰ بن اسماعیل**: دا ابوسلمه موسىٰ بن اسماعیل تبوذکی رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس) لاندې تیره شوې ده.[4]

**عبدالواحد**: داعبدالواحد بن زیاد بصری رحمه الله دې.دَدوی تذکره (کتاب الإيمان باب الجهاد من الإيمان) لاندې تیره شوې ده.[5]

**ابوفروة مسلم بن سالم**: دا ابوفروه مسلم بن سالم النهدی الکوفي رحمه الله دې. دوی دَ حسن بصری، عبدالله بن عُکَیم جهنی، عبدالرحمن بن عیسیٰ بن ابی لیلی، عبدالرحمن بن ابی الیلی او ابوالاحوص الجُشَمی رحمهم الله نه دَحدیث روایت کړې دې. اودَدوی نه دَ جلیل القدر محدثینو یو لوئی جماعت روایت کړې دې په هغوی کښې

---

[1] عمدة القاری:۳۶۳/۱۵إرشادالساری: ۳۰۲/۷.

[2] أخرجه البخاری فی کتاب التفسیر أیضاً. فی باب قوله تعالی ﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ﴾ رقم الحدیث: ۴۷۹۷وفی کتاب الدعوات، باب الصلاة علی النبی رقم الحدیث:۶۳۵۷والإمام مسلم فی کتاب الصلاة باب الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم بعد التشهد رقم الحدیث:۹۰۸والإمام الترمذی فی کتاب الصلاة باب صفة الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم رقم الحدیث: ۴۸۳والإمام أبوداؤد فی الصلاة باب الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم بعد التشهد رقم الحدیث: ۹۷۶والإمام النسائی فی السهو نوع آخر من الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم رقم الحدیث: ۱۲۹۰جامع الأصول فی أحادیث الرسول: ۴۰۲/۴رقم الحدیث: ۲۴۶۷.

[3] کشف الباری: ۵۲۶/۴.

[4] کشف الباری: ۴۷۷/۳.

[5] کشف الباری: ۳۰۱/۲.

يو څو ښكاره نومونه دادي: جعفر بن زياد الاحمر، سفيان ثوري، سفيان بن عيينه، شريك بن عبد الله، شعبه بن حجاج، عمران بن عيينه، مسعر بن كدام او ابوعوانه رحمهم الله. [1]

يحيى بن معين رحمه الله دَدوي باره كښې فرمائيلي ثقة [2] ابوحاتم محمد بن ادريس رحمه الله دَدوي باره كښې فرماني «صالح الحديث ليس به بأس» [3] يعقوب بن سفيان رحمه الله دَدوي باره كښې فرماني «لابأس به» [4] ابن حبان رحمه الله ددوي ذكر ثقات كښې كړې دې. [5]

**عبدالله بن عيسى:** دا عبدالله بن عبدالرحمن بن ابى ليلى رحمه الله دې. [6]

**عبدالرحمن بن ابى ليلى:** دَدوي تذكره وړاندې تيره شوې ده. [7]

**كعب بن عجره:** دا كعب بن عجره بن اميه بن عدى القضاعى البلوى رضي الله عنه دې. [8]

**لقيني كعب بن عجرة فقال.....:** عبدالرحمن بن ابى ليلى رحمه الله وائي چه كعب بن عجره رضي الله عنه ماسره ملاؤ شو اوونې فرمائيل آيا زه تاته داسې هديه درنه كړم چه ما دَ رسول الله ﷺ دَ ژبې مباركې نه اوريدلې ده. ما ونيل ولې نه ضرور. نو كعب بن عجره رضي الله عنه اوونيل مونږ رسول الله ﷺ ته عرض اوكړو يارسول الله! مونږ په تاسو باندې او ستاسو په اهل بيت باندې څنګه درود اووايو؟ ځكه چه په تاسو باندې (په تشهد كښې) سلام ونيل خو مونږ ته الله تعالى خودلې دې. حضورپاك اوفرمائيل داسې وايئې: «اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم إنك حميد مجيد. اللهم بارك على محمد وعلى آل محمد كما باركت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم إنك حميد مجيد».

**دَ ال محمد نه څوک مراد دي؟:** دَ آل محمد نه څوك مراد دى؟ په دې سلسله كښې شراح مختلف اقوال نقل كړي دي:

① يو قول دادې چه دې نه هغه خلق مراد دى په كومو چه صدقه حرام كړې شوې ده. ② بعض حضراتو فرمائيلي دي نه اهل بيت مراد دي. ③ دريم قول دادې چه ازواج وذريت دواړه دَ آل محمد مصداق دى. [9]

حافظ ابن حجر رحمه الله او دَهغوى په اتباع كښې علامه قسطلانى رحمه الله دې قول ته ترجيح وركولوسره فرمانى چه دَدې نه په مخكښې روايت كښې دي «اللهم صلى على محمد وأزواجه وذريته» په دې كښې دَ ازواج او ذريت تصريح ده. اودا په دې خبره باندې دليل دې چه دَ آل محمد نه هم دغه دواړه مراد دى.

دَ حضرت عائشه رضي الله عنها په يو روايت كښې ازواج مطهرات باندې هم دَ آل محمد اطلاق شوې دې. دَ روايت الفاظ دادي: «ما شبع آل محمد من خبز مأدوم ثلاثة أيام» [1]

---

[1] دَ شيوخ او تلامذه دَتفصيل دَپاره اوګورئې: تهذيب الكمال: ۳۱/۱۰.

[2] تهذيب الكمال: ۵۱۶/۲۷ تهذيب التهذيب: ۳۱/۱۰.

[3] الجرح والتعديل: ص: ۸۰۸

[4] تهذيب التهذيب: ۱۳۱/۱۰.

[5] ثقات لابن حبان: ۳۹۵/۵.

[6] كتاب الصيام باب صيام أيام التشريق رقم: ۱۹۹۷، ۱۹۹۸.

[7] كتاب الأذان باب حد إتمام الركوع والاعتدال فيه رقم: ۷۹۲.

[8] كتاب المحصر، باب الإطعام فى الفدية نصف صاع رقم: ۱۸۱۶.

[9] إرشاد الساري: ۳۰۴/۷.

په دې باندې اشکال وارد کيږي چه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په يو روايت کښې صلاة بعد التشهد کښې ازواج ذريت او اهل بيت دريواړو تصريح ده.[۲] خو په روايت باب کښې صرف ازواج او ذريت ذکر دي. د دې اشکال يو جواب خودا دې په حديث کښې به د دريواړو ذکر شوې وي مګر د بعض راويانو نه چرته د يو ذکر ساقط شوې نوچه کومو راويانو ته ياد وو هغوي د دې تصريح اوکړه.[۳] دويم جواب دا دې چه صلاة بعد التهشد والا روايت کښې لفظ "آل" نه ازواج او هغه خلق مراد دی په کومو چه صدقه حرام کړې شوې ده. او (من حرمت عليهم الصدقة) کښې ذريت هم شامل دې. دغه شان په احاديثو کښې تطبيق اوشو.[۴] د دې روايت سره متعلق به نور ابحاث کتاب التفسير کښې راځي.[۵]

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دې روايت کښې ديرخل د ابراهيم عليه السلام ذکر شوې دې نو ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې.[۶]

[۳۱۹۱]- حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ الْمِنْهَالِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَوِّذُ الحَسَنَ وَالحُسَيْنَ، وَيَقُولُ: "إِنَّ أَبَاكُمَا كَانَ يُعَوِّذُ بِهَا إِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ: أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ، مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ، وَمِنْ كُلِّ عَيْنٍ لاَمَّةٍ" [ص ۳۴۱][۷]

## تراجم رجال

**عثمان بن ابي شيبة:** دا عثمان بن محمد بن قاضي ابوشيبه ابراهيم بن عثمان عبسى كوفى رحمه الله دې. په سند کښې د دوى نسبت د نيکه طرف ته کړې شوې دې.

**جرير:** دا جرير بن عبدالحميد بن قرط ضبى رازى رحمه الله دې.

**منصور:** دا ابوعتاب منصور بن المعتمر اسلمى الكوفي رحمه الله دې. د ذکرشو دريواړو حضراتو تذکره (کتاب العلم باب من جعل لأهل العلم أياما معلومة) لاندې تيره شوې ده.[۸]

**منهال:** دا منهال بن عمرو الاسدى رحمه الله دې. هغوى د يعلى، عبدالله بن حارث، زاذان الکندى، سويد بن غفله، محمد بن حنفيه، سعيد بن جبير، عبدالرحمن بن ابى ليلى، عباد بن عبدالله الاسدى، عائشه بنت طلحه وغيرهم رحمهم الله نه روايات اخستى دى. او د دوى نه د حديث روايت کونکو کښې عبدالرحمن بن ابى ليلى،

---

[۱] إرشادالساري: ۳۰٤/۷ والحديث أخرجه الإمام البخاري في كتاب الأطعمة باب ماكان السلف يدخرون في بيوتهم وأسفار هم من الطعام واللحم وغيره، رقم الحديث: ۵٤۲۳ وكذا العلامة محيى السنة البغوى رحمة الله عليه فى كتابه شرح السنة تحت كتاب الجمعة باب الأكل من الأضحية بعد ثلاث فإكثر رقم الحديث: ۱۱۳٤ المكتب الإسلامي.

[۲] أخرجه الإمام أبوداؤد في سننه في كتاب الصلاة باب الصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم بعد التشهد رقم: ۹۷۸.

[۳] إرشادالساري: ۳۰٤/۷.

[۴] إرشادالساري: ۳۰٤/۷.

[۵] كشف البارى كتاب التفسير ص: ۵۲۹.

[۶] عمدة القاري: ۳٦٤/۱۵.

[۷] رواه الإمام ترمذى فى الطب باب رقم: ۱۸ رقم الحديث: ۲۰٦۱ والإمام أبوداؤد في سننه باب في القرآن رقم الحديث: ۱۳۷٤ والإمام ابن ماجه في الطب باب ماعوذ به النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث: ۳۵۲۵ جامع الأصول في أحاديث الرسول: ۳٦۹/٤ رقم الحديث: ۲٤۱٤.

[۸] كشف البارى: ۲٦٦،۲٦۸،۲۷۰/۳.

اعمش، حجاج بن ارطاة، منصور بن معتمر، شعبة بن الحجاج، ربیعه بن عتبه الکنانی اولیث بن سلیم وغیرهم رحمهم الله شامل دي.[۱]

د حضرت انس رضی الله عنه نه هم دوي حدیث روایت کړي دي. که چرې دا روایت محفوظ وی نو بیا د هغوی سماع عن انس اعتبار کیږی ګڼی نه.[۲] علامه ذهبی رحمه الله فرمائی چه کبار تابعین نه د دوی سماع ثابته ده خود صحابه کرامو نه د دوی سماع نه ده ثابته.[۳] بعض ائمه جرح په منهال بن عمرو رحمه الله باندې کلام کړي دي.

چنانچه امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی یو ځل شعبه رحمه الله د هغوی نه قصداً د حدیث سماع اونه کړه. عبدالرحمن بن ابي حاتم رحمه الله د دې وجه دا بیان کړه چه شعبه رحمه الله یو ځل د هغوی کور ته لاړو نو د هغوی د کور نه طرب او غنا سره د قراءت آواز راتلو. په دې وجه د سماع کولو نه بغیر واپس شو.[۴] د غه شان علامه ابوجعفر عقیلی رحمه الله هم هغوی ضعیف ګرځولی دی.[۵] لیکن حقیقت دا دې چه منهال بن عمرو رحمه الله ثقه راوی دې. اکثر ائمه جرح والتعدیل د هغه توثیق کړي دي. یحیی بن معین، امام نسائی او امام احمد عجلی رحمهم الله هغه ته ثقه وئیلی دې.[۶] امام دارقطنی رحمه الله هغه صدوق ګرځولي دي.[۷] امام عجلی رحمه الله د هغوی تذکره ثقات کښې کړې ده.[۸] عقیلی رحمه الله هغه ضعیف ګرځولي دي نو عقیلی رحمه الله په جرح کښې تشدد سره متهم دې او کله د اعتدال نه تجاوز کوی په دې وجه د هغه د هرې یوې جرح اعتبار نشته دې. د شعبه رحمه الله چه کومه یوه قصه بیان کړې شوې ده په دې سره د منهال بن عمرو رحمه الله ثقاهت نه مجروح کیږی ځکه چه دا حقیقی جرح نه ده. بیا د دې قصې راوی هم ضعیف دی او د قیل اوقال نه زیات د دې قصې څه حیثیت کیدې شی. والله اعلم. که چرې دا روایات صحیح هم وی نو بیا هم د غه جرح مردود ده او قابل قبول نه ده. آخر د قرآن مجید تلاوت په طرب او ښکلي آواز سره لوستل کوم یو جرم دې چه شعبه رحمه الله په دې وجه هغه د سماع قابل اونه ګڼړلو. حقیقت خو دا دې چه رسول الله ﷺ په تحسین الصوت او تطریب بالقراءة باندې داد ورکړې دې.[۹]

علامه ذهبی رحمه الله فرمائی چه شعبه رحمه الله د هغوی په تلامذه حدیث کښې شمیرلې کیږی. د مذکوره واقعه د وجې نه هغوی د منهال رحمه الله نه سماع ترک کړې وه حالانکه داسې د معمولی نوعیت خبرې د شیخ د تنقیص سبب نه

---

[۱] د شیوخ او تلامذه د تفصیل د پاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۵۷۰/۲۸
[۲] تهذیب الکمال: ۵۶۸/۲۸ تهذیب التهذیب: ۲۱۹/۱۰.
[۳] میزان الاعتدال: ۱۹۲/٤.
[٤] الجرح والتعدیل رقم الترجمة: ۱٦۳٤.
[۵] الضعفاء الکبیر للعقیلی باب المیم: ۲۳٦/٤ رقم الترجمة: ۱۸۳۰ دار المکتبة العلمیة بیروت.
[٦] تهذیب الکمال: ۵۷۱/۲۸-۵۷۰ تهذیب التهذیب: ۳۲۰/۱۰.
[۷] تهذیب الکمال: ۵۷۱/۲۸ تهذیب التهذیب: ۳۲۰/۱۰.
[۸] معرفة الثقات للإمام العجلی: ۳۰۰/۲ رقم: ۱۸۰۰ مکتبة الدار.
[۹] یقول الدکتور بشار عواد حفظه الله فی تعلیقه علی هامش (تهذیب الکمال: ۵۷۰/۲۸) هذا جرح مردود، والله أعلم، وما أدری کیف جوز شعبة لنفسه أن یترکه، لأنه یطرب بالقراءة إن صح ذلک عنه. فقد ثبت عن المصطفی ﷺ ضرورة تحسین الصوت والتطریب بالقراءة، کما أثبتنا بالأدلة السامعة فی بحثنا: البیان فی حکم التغنی بالقرآن المنشور فی الإعجاز القرآنی.

جوریري. (وهذا لا یوجب غمز الشیخ)[1] بعض ناقدین حدیث دا واقعه دَ شعبه دَ تشدد ثابتولو دپاره دَ مثال په توګه پیش کوي.[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله منهال رحمه الله ته صدوق وئیلي دي. لیکن دې سره هغه دَ منهال رحمه الله دَ وهم صراحت هم کړې دې.[3] حقیقت دادې چه ائمه جرح کښې چاهم په هغه باندې دَ وهم تهمت نه دې لګولې.[4] دې ته پخپله دَ حافظ ابن حجر رحمه الله وهم وئیلې کیدې شي.

**سعیدبن جبیر:** دَ دوی تذکره (کتاب العلم باب السمر في العلم) لاندې تیره شوې ده.[5]

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم، حضرات حسنین رضي الله عنهما دَ الله تعالی په پناه کښې ورکول او فرمائیل به ئې ستاسو پلار (ابراهیم علیه السلام) به په دې الفاظو کښې خپل خامن اسمٰعیل علیه السلام او اسحٰق علیه السلام دَ الله تعالی په پناه کښې ورکول. هغه الفاظ دادي: (أعوذ بكلمات الله التامة من كل شيطان وهامة، ومن كل عين لامة) یعنی زه دَ الله تعالی دَدې کلماتو په ذریعه پناه غواړم چه تام دي دَهر شیطان (دَشر) نه، دَهر هلاک کونکي زهریلا ځناور نه اودَ هر نظر لګونکي سترګې نه.

کلمات الله کښې دوه احتماله دي. یودا چه په خپل عموم باندې وي اودې نه هره هغه کلمه مراد وي چه دَالله تعالی وي.[6] دویم دَدې کلماتو نه معوذتین مراد وي.[7] علامه هروي رحمه الله فرمائیلي چه دې نه پوره قرآن مجید مراد دې.[8] دې نه پس تامه دکلمات الله لازمي صفت دې په دې وجه چه ټول کلمات الله تام دي.[9]

**قوله: تامه:** په معنی کښې شراح مختلف اقوال نقل کړي دي. بعض وئیلي دي دا دَ الشفاعة په معنی کښې دې. دَ بعض په نیز النافعة اودَ بعض په نیز المبارکة په معنی کښې دې. علامه ابن التین رحمه الله فرمائي دَدې معنی ده (التام فضلها وبرکتها) یعنی داسې کلمات الله دکوم فضیلتونه اوبرکتونه چه تام دي.[10]

**قوله: وهامة:** دَمیم تشدید سره دَ هوام مفرد دې. یعنی هر هغه ځناور چه زهرژن وي اودَهغه په ټک ورکولو سره دَ انسان مرګ واقع کیږي. او سامة اطلاق په هر داسې زهرژن ځناور یا حشرات الارض باندې کیږي دَ کوم په ټک ورکولو سره چه مرګ نه واقع کیږي لکه مچئي اولړم وغیره. همّ دَ همّ په معنی دَ عزم کولو دې. دَمار غوندې زهرژن ځناور ته هامة په دې وجه وئیلي شي چه هغه دَ ضرر اونقصان رسولو دپاره عازم وي.[11]

---

[1] میزان الاعتدال: ١٩٢/٤.

[2] تعلیقات محمد عوامة علی الکاشف للذهبي: ٢٩٨/٢.

[3] تقریب التهذیب ص: ٥٨٧.

[4] تعلیقات محمد عوامة علی الکاشف للذهبي: ٢٩٨/٢.

[5] کشف الباري: ٣٣٦/٢.

[6] فتح الباري: ٥٠٦/٨ عمدة القاري: ٣٦٥/١٥ إرشاد الساري: ٣٠٤/٧.

[7] عمدة القاري: ٣٦٥/١٥ إرشاد الساري: ٣٠٤/٧.

[8] عمدة القاري: ٣٦٥/١٥.

[9] عمدة القاري: ٣٦٥/١٥ إرشاد الساري: ٣٠٤/٧.

[10] فتح الباري: ٥٠٦/٨ عمدة القاري: ٣٦٥/١٥ إرشاد الساري: ٣٠٤/٧.

[11] عمدة القاري: ٣٦٥/١٥.

**قوله: لامة:** کښې مختلف احتمالات دي. يو دا چه دَ مُلمّة په معنی کښې وي. مُلمّة آفت او مصيبت ته وائي. يعنی آفت رسونکې بد نظر. دلته هامّة په مناسبت سره مُلمّة په ځائی لامة ونيلې شوې دې.[1]
دويم احتمال دا دې چه لامة په خپله ظاهري معنی باندې محمول وي. لَمّ (ن) معنی ده يوځائی کول جمع کول.[2] يو روايت کښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي (اللهم الْمُمْ شعثنا)[3] اې الله زمونږ خواره شوي اجزاء راجمع کړه نو دَ ظاهري معنی اعتبار کولوسره لامة معنی به شي (جَامِعَةُ الشَّرِّ عَلَى الْمَعْيُوْنِ).
علامه خطابي رحمه الله فرمائيلي (لامة، ذات اللَّمَم) په معنی کښې دي. لَمَم ليونتوب جنوني کيفيت او هرې ترخې دوائي ته ونيلې شي.[4] په دې صورت کښې به دَ عين لامة معنی شي داسې نظر چه انسان دَ ليونتوب په آفت کښې راګير کړي.
روايت باب کښې موجود لفظ (ان اباكما) نه دَ حضرات حسنين جد اعلی حضرت ابراهيم عليه السلام مراد دې او داسې ترجمة الباب سره دَ دې مناسبت ښکاره دې.[5]

## ۱۳ – باب: قَوْلُهُ عَزَّوَجَلَّ: ﴿وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرٰهِيمَ﴾ /الحجر: ۵۱/: قَوْلُهُ: ﴿وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ﴾.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** په دې باب سره دَ حضرت ابراهيم عليه السلام نور حالات او واقعات بيانول مقصود دي. دَ آيت په نقل کولوسره امام بخاري رحمه الله دَ حضرت ابراهيم عليه السلام يو مشهورې واقعې طرف ته اشاره کړې ده.[6]
سورة حجر کښې دي: ﴿وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرٰهِيمَ ۝ إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلٰمًا قَالَ إِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُونَ ۝ قَالُوا لَا تَوْجَلْ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ ۝﴾ . په دې آياتونو کښې دَ حضرت ابراهيم عليه السلام دَ ميلمنو ذکر دې. په روايت کښې دي چه دا څلور فرښتې وې: جبرائيل، ميکائيل، اسرافيل او رفائيل. دې فرښتو حضرت ابراهيم عليه السلام ته دَ خونې زيرې ورکولو او دَ حضرت لوط عليه السلام قوم هلاکولو دپاره ليګلې شوې وې. ابراهيم عليه السلام دَ ښکلې او ښائسته خوانانو په شکل او صورت کښې راتلونکې فرښتې ميلمانه ګنړلو سره دَ هغوی په مخکښې دَ يو تازه وريت کړې شوې سخې دَ ميلمستيا په توګه کيخودو. ابراهيم عليه السلام ميلمه دوست وو خوراك به ئې هميشه دَ ميلمنوسره کولو. پنځلس ورځو نه هغه له څوك ميلمه نه وو راغلې. چونکه عادت ئې دَ ميلمنوسره دَ کيناستو او خوراك کولو وو. په دې وجه ئې ضيق محسوس کولو او دَ نوي ميلمانو په راتلو سره دَ هغه دَ ميلمنو شوق دَ خوشحالئې نه طبيعت ښه شوې وو. خکه چه داسې ښکلي او ښائسته ميلمانه ئې اول نه وو ليدلي.[7] فرښتو دَ خوراك طرف ته لاس نه وراندې کولو نو ابراهيم عليه السلام غلې غوندې شو او په زړه کښې ئې ويره محسوس کړه. ابراهيم عليه السلام دَ دې کيفيت په ژبه سره اظهار اوکړو. ﴿إِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُونَ﴾ مونږ تاسو نه ويريږو. ميلمنو اوونيل تاسو مه ويريږئې مونږ تاسو ته دَ يو داسې خونې زيرې درکوو چه صاحب علم به وي.

---

[1] عمدة القاري: ۳۶۵/۱۵.
[2] النهاية في غريب الحديث: ۶۱۶/۲.
[3] النهاية في غريب الحديث: ۶۱۶/۲ والفائق في غريب الحديث: ۲۱۳/۳.
[4] فتح الباري: ۵۰۶/۸ إرشاد الساري: ۳۰٤/۷.
[5] عمدة القاري: ۳۶۵/۱۵ فتح الباري: ۵۰۷/۸.
[6] عمدة القاري: ۳۶۵/۱۵.
[7] عمدة القاري: ۳۶۵/۱۵.

**دَ خور اک قیمت:** حافظ ابن حجر رحمه الله یو روایت نقل کړې دې چه کله ابراهیم علیه السلام وریته کړې شوې دَ سخی غوښه دَهغوی مخې ته راوړه کېخودله نوهغوی اوونیل مونږ قیمت اداکولونه بغیر خوراك نه کوو. ابراهیم علیه السلام اوونیل اودَ دې خوراك قیمت شته. فرښتو اونیل څه قیمت دې؟ ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل (تذکرون اسم الله علی أوله وتحمدونه علی آخره) یعنی دَ خوراك په شروع کښې دَ الله نوم واخلئی او په آخره کښې به دَهغه حمد اوثنا بیانوئی. په دې باندې جبرائیل دَ میکائیل طرف ته اوکتل بیائی اوفرمائیل (حق لهذا أن یتخذه ربه خلیلا)[1] یقیناً داکس دَدې مستحق دې چه الله تعالی دې خپل خلیل جوړ کړی.

﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتٰى ﴾ : دَ ابوذر په روایت کښې هم دغه آیت نقل دې اودَ کریمه په روایت کښې دَدې په ځانې باب سره متصلاً ﴿ وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي ﴾ درج دې. او ﴿ وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرٰهِيمَ ﴾ دَهغوی په نیز ساقط دې.[2] خودنسفی او کرمانی رحمه الله په نسخو کښې دواړه آیاتونه نشته دې بلکه دَهغه په نیز دَ باب تصریح هم نشته دې. په دې لحاظ سره حدیث دَ ابوهریره رضی الله عنه هم دَ باب سابق تکمله وی.[3]

په دې ایت سره امام بخاری رحمه الله دَحضرت ابراهیم علیه السلام یوې بلې واقعې طرف ته اشاره کړې ده. پوره آیت دې. ﴿ وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتٰى ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِنْ ۖ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي ۖ قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ۚ وَاعْلَمْ أَنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ [البقرة: ۲۶۰]

یعنی هغه وخت یادکړه کله چه ابراهیم علیه السلام عرض اوکړو ای زما ربه ماته اوښایه چه ته به (قیامت کښې) مړی څنګه ژوندې کوې؟ ارشاد اوفرمائیلې شو ولې ته (په دې باندې) یقین نه لرې څه؟ هغه عرض اوکړو یقین ولې نه لرم لیکن (دا درخواست مې دَ مشاهدې کولو) دَپاره څکه اوکړو چه زړه مې مطمئن شی. اوفرمائیلې شو ته څلور مرغان واخله بیا هغوی (مانوس کولو سره) خپل ځان له راوبله بیا (ټول ذبح کړه اوهغه قیمه کړه) په هریو غر باندې دَهغې نه یوه یوه حصه کېږده بیا هغه ټولو ته آواز اوکړه نو تاله به (ژوندی) په منډه منډه راشی او ښه یقین ساته ددې خبرې چه الله زبردست (قدرت والا) دې حکمت والا دې.

دلته سوال دادې چه ابراهیم علیه السلام ته دَ الله تعالی دَ راژوندی کولو په قدرت کښې شك وو؟ که شك ئی نه وو نوبیا ولې دَمړو دَ ژوندی کیدو مشاهده کولو درخواست ئی اوکړو؟ شراح دَدې مختلف جوابات ورکړی دی:

① دا دَ نبوت دَ وړاندې واقعه ده. که دَ نبوت نه وړاندې دَ قدرت علی الاحیاء دکیفیت متعلق دا سوال کړې شوې وی نو په دې کښې هیڅ مضائقه نشته دې.[4]

② امام طبری رحمه الله دا په ظاهری معنی باندې محمول کولوسره فرمائیلی دی چه دې نه شك مراد نه دې بلکه هغه وسوسه ده چه غیر اختیاری توګه باندې په زړه کښې راځی اوایمان متزلزل کولونه بغیر ختمیږی.[5]

③ بعض حضراتو وئیلی چه ابراهیم علیه السلام دا سوال څکه کړې وو چه پخپله دَ ابراهیم علیه السلام زړه په دې باندې مطمئن شی چه هغه خلیل الله دې. چنانچه په یو روایت کښې دی: (لیطمئن قلبی أنی خلیلك) یا بیا سوال دَدې دَپاره وو چه زما

---

[1]) فتح الباری: ۵۰۷/۸.

[2]) فتح الباری: ۵۰۷/۸.

[3]) فتح الباری: ۵۰۷/۸عمدة القاری: ۳۶۶/۱۵.

[4]) فتح الباری: ۵۰۸/۸.

[5]) المصدر السابق.

يقين اوشي چه ته زما دعا قبلوې. چنانچه په يو روايت كښې دى: «لأعلم أنك تجيبنى إذا دعوتك» دَ قاضى ابوبكر باقلانى رحمه الله ميلان هم دې آخرى توجيه طرف ته دې.[1]

④ يو قول دا هم نقل كړې شوې دې چه دَ ابراهيم عليه السلام اصل مقصد دا وو چه ما ته دَ احياء موتى قدرت راكړې شى او دا كرشمه يو ځل زما دَ لاس نه ښكاره شى ليكن هغه دَ ادب اوتعظيم دَ وجې نه دَ سوال طريقه بله اختيار كړه.[2]

⑤ پنځم جواب دادې چه ابراهيم عليه السلام ته په دې حقيقت كښې شك يا تردد هيڅ كله نه وو چه الله تعالى به دَ قيامت په ورځ مړى دوباره راژوندى كوى دَهغه يقين وو او په لفظ بلى سره ئې دَ هغې اظهارهم اوكړو ليكن هغه علم اليقين په عين اليقين سره بدلول غوښتل چه قدرت دَ خپل طرف نه دَدې كيفيت مشاهده كولو سره دَعين اليقين درجه هم راعطا كړى.

علامه قرطبى رحمه الله دَنكتې خبره فرمائيلې ده چه ابراهيم عليه السلام ته هيڅ كله تردد نه وو ځكه چه «إن الاستفهام بكيف إنما هوسؤال عن حالة شىء موجود متقرر الوجود عند السائل والمسؤل» دَ ابراهيم عليه السلام سوال په لفظ كيف سره وو اوكيف سره سوال دَهغه څيز حالت معلومولو دَپاره كولې شى. دَكوم موجود كيدل چه دَ سائل اومسؤل دواړو په مينځ كښې يقينى وى. چه انسان ته دَ يو څيز دَ وجود يقين وى ليكن تپوس پوښتنه كولو اوهغه دَ خپلو سترګو په وړاندې ليدلو دَپاره په هغه كښې اضطراب او بې آرامى وى كله چه هغه مشاهده كوى نو سكون او اطمينان ورته حاصل شى. ابراهيم عليه السلام ته يقين وو ليكن دَ غه سكون حاصلولو دَپاره هغه دَ مشاهدې درخواست كړې وو. دَ يو څيز دَ وجود يقين لرلو نه باوجود دَهغې ماهيت معلومول اوهغه دَخپلو سترګو په وړاندې دَتخليق دَمراحل نه تيريدونكى كتل دَ انسانى فطرت جذبه وى اودا مضطرب كونكې دا جذبه ترهغه وخته پورې په سكون كښې نه شى بدليدې ترڅوپورې چه هغه دَدغه څيز دَ تخليق مشاهده اونه كړى.[3]

⑥ بعض حضراتو وئيلى دى چه ابراهيم عليه السلام ته علم حصولى حاصل وو اودا دَ ايمان دَپاره كافى دې ليكن دَهغه خواهش وو چه علم حضورى هم ورته حاصل شى.[4]

[۳۱۹۲]- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "نَحْنُ أَحَقُّ بِالشَّكِّ مِنْ إِبْرَاهِيمَ إِذْ قَالَ: {رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِنْ قَالَ بَلَى وَلَكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي} [البقرة: ۲۶۰] وَيَرْحَمُ اللَّهُ لُوطًا، لَقَدْ كَانَ يَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ، وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ طُولَ مَا لَبِثَ يُوسُفُ، لَأَجَبْتُ الدَّاعِيَ" [ص ۳۴۹-۳۵۰][۳۱۹۵،۳۲۰۷،۴۲۶۳،۴۴۱۷،۶۵۹۱][5]

---

[1] المصدر السابق.

[2] فتح البارى: ۵۰۹/۸-۵۰۸.

[3] الجامع الأحكام القرآن للقرطبى: ۳۱۱/٤مؤسسة الرسالة فتح البارى: ۵۰۹/۸عمدة القارى: ۳۶۶/۱۵.

[4] التفسير الكبير: ٤١/۷عمدة القارى: ۳۶۶/۱۵.

[5] اخرجه البخارى: ٤۷۸/۱فى نفس الكتاب بعد أبواب فى باب ﴿وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ وَأَنْتُمْ تُبْصِرُونَ﴾ رقم: ۳۳۷۵و: ۴۷۹/۱باب قول الله تعالى: ﴿لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ﴾ رقم: ۳۳۸۷وفى كتاب التفسير: ۶۵۱/۲باب ﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى﴾ رقم: ۴۵۳۷و: ۶۸۰/۲باب: ﴿فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ﴾ رقم: ٤۶۹٤و: ۱۰۳۵/۲فى كتاب التعبير باب رؤيا أهل السجون والفساد والشرك رقم:

## تراجم رجال

**احمد بن صالح:** دا ابوجعفر احمدبن صالح مصری رحمه الله دي. [۱]

**ابن وهب:** دا ابومحمد عبدالله بن وهب وفهری مصری رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر) لاندې تیره شوې ده. [۲]

**یونس:** دا یونس بن یزید ایلی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب من یرد الله به خیراً یفقهه فی الدین) لاندې تیره شوې ده. [۳]

**ابن شهاب:** دَدوی تذکره (بدءالوحی) لاندې تیره شوې ده. [۴]

**ابوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف:** دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب صوم رمضان احتساباً من الإیمان) لاندې تیره شوې ده. [۵]

**سعید بن المسیب:** دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب من قال: إن الإیمان هو العمل) لاندې تیره شوې ده. [۶]

**قوله: نَحْنُ أَحَقُّ بِالشَّكِّ......:** دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی چه مونږ دَ ابراهیم علیه السلام په مقابله کښې دَ ډیر شک مستحق یو. کوم وخت چه ابراهیم علیه السلام عرض کړې وو ﴿رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَىٰ﴾. دَدې حدیث پس منظر دادې چه کله دَ سورت بقره آیت ﴿وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَىٰ﴾ نازل شو نوبعض صحابه کرامو اووئیل (شك إبراهيم ولم يشك نبينا) نورسول الله صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو (نحن أحق بالشك من إبراهيم).

امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دې جملې سره دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم منشاء دا وه چه دَ ابراهیم علیه السلام په زړه کښې شک او تردد پیدا کیدل محال وو ځکه چه دَ انبیاء کرام په زړونو کښې کله هم شک او شبه نه پیدا کیږی. اوفرض کړه که تسلیم کړې شی چه دَ انبیاء په زړونو کښې شکوك پیدا کیدې شی نودَ ابراهیم علیه السلام نه زیات زه مستحق ووم چه ماته شك پیدا شوې وې. هرکله چه ماته دَ الله تعالی په قدرت علی احیاء الموتی باندې شك اوتردد کله هم نه دې پیدا شوې نو ابراهیم علیه السلام ته خو په طریقه اولی شك نه دې شوې. [۷] علامه کرمانی رحمه الله فرمائیلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا جمله تواضعاً فرمائیلې ده. [۸]

---

۶۹۹۲ومسلم: ۸۵/۱أیضاً فی کتاب الإیمان باب زیادة طمأنینة القلب بتظاهر الأدلة رقم: ۱۵۱ و: ۲۶۵/۲وفی کتاب الفضائل باب فضائل إبراهیم الخلیل علیه السلام رقم:۱۵۱والترمذی فی جامعه: ۱۴۴/۲فی کتاب التفسیر باب ومن سورة یوسف رقم: ۳۱۱۶وابن ماجه فی سننه ص: ۲۹۱فی کتاب الفتن باب الصبر علی البلاء رقم:۴۹۲۶.

[۱] کتاب الصلاة باب رفع الصوت فی المسجد رقم: ۴۷۱.

[۲] کشف الباری: ۲۷۷/۳.

[۳] کشف الباری:۲۸۲/۲.

[۴] کشف الباری: ۳۲۶/۱.

[۵] کشف الباری: ۳۲۳/۲.

[۶] کشف الباری: ۱۵۹/۲.

[۷] إرشادالساری: ۳۰۶/۷.

[۸] شرح الکرمانی: ۴۳/۱۷.

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله تحقیق:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَ بعض اهل لغت په نیز أفعل وزن نفی المعنی عن الشیئین دَپاره راځی. دَ قرآن مجید آیت مبارک دی ﴿أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ﴾ دَدې مطلب دادې چه دواړه فریقین دَ خیرنه محروم دی. دغه شان که څوک اووائی (الشیطان خیر من فلان) نودَدې مطلب دا وی چه په دواړوکښې خیر نشته دی. نودَحدیث دَ مذکوره جملې مطلب دادې چه مونږ تولو انبیاء کرامو ته کله هم شک نه دې پیداشوې.[1] لیکن علامه قسطلانی رحمه الله په دې باندې رد کولوسره فرمائی چه دا توجیه دَ محققینو په نیز غیر معروف ده. والله اعلم.[2]

**قوله: وَيَرْحَمُ اللهُ لُوطًا لَقَدْ كَانَ يَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ** او الله تعالی دې په لوط علیه السلام باندې رحم اوکړی چه هغه دَ رکن شدید پناه اخستله. دې جملې سره متعلق تفصیلی بحث وړاندې راغی.

**قوله: وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ طُولَ مَا لَبِثَ يُوسُفُ لَأَجَبْتُ الدَّاعِيَ:** اوکه چرې زه دومره اوږده موده په جیل کښې پاتې شوې وې څومره چه یوسف علیه السلام پاتې وو نودرا غوښتونکی دعوت به مې زر قبلولو. دَ یو څو ابواب نه پس دحضرت یوسف علیه السلام په تذکره باندې مستقل باب راروان دې. مذکوره جملې سره متعلق تفصیل به هلته کوو.

## ۱۴ - باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ إِسْمٰعِيلَ إِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ﴾/مریم: ۵۴/.

**ماقبـل سـره ربـط:** تیرشوی بـاب کـښې دَحضرت ابـراهیم علیه السلام تـذکره وه اواوس دَهغـه دَ څـوئی حـضرت اسماعیل علیه السلام تذکره کیږی.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې دَحضرت اسماعیل علیه السلام تذکره کول مقصود دی. دَباب لاندې دَ سورت مریم آیت سره امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه اسماعیل علیه السلام دَ وعدې ربښتونې وو.[3]

انبیاء کرام خو ټـول دَ وعـدې ربـښتونی وو لـیکن دَ بعض انبیاء کرامو په تذکره کښې دَهغوی ښکاره اوصاف بیانولې شی اومطلب دا وی چه په دغه اوصافوکښې هغوی امتیازی شان لرلو. په مذکوره آیت کښې دَحضرت اسماعیل علیه السلام امتیازی صفت دا بیانولې شی چه هغه صادق الوعد وو. که چرې هغه الله تعالی سره دَ یودینی فریضې دَ اداکولو وعده کړې یائی څه نذر منلې یائی یو سړی سره څه وعده کړې نودَهغې وعدې حق ئی اداکړې.

ابن جریر طبری رحمه الله او نورو مفسرینو دَدې آیت لاندې دَ حضرت سهل بن عقیل رضی الله عنه یو روایت نقل کړې دې چه اسماعیل علیه السلام یوسړی سره په یوځائی کښې دَملاقات وعده اوکړه. اسماعیل علیه السلام په مقرره ځائی کښې دهغه سړی انتظار کولو. دَ ابن جریر رحمه الله په دې روایت کښې دی چه هغه سړې یوه ورځ تیریدونه پس راغلو او اسماعیل علیه السلام هلته انتظار کولو.[4]

بعض روایاتو کښې دی چه تر یو کال پورې اسماعیل علیه السلام دَهغه انتظار کښې وو.[5] تردې چه بیا جبرائیل علیه السلام هغوی له راغلو او وئې فرمائیل چه هغه فاجر سړې چاچه تاسره وعده کړې وه هغه ابلیس ملعون وو.[6]

---

[1] فتح الباری: ۵۰۹/۸.

[2] إرشادالساری: ۳۰۶/۷.

[3] عمدة القاری: ۳۶۹/۱۵.

[4] جامع البیان فی تفسیر القرآن للطبری: ۱۶/۷۲-۷۱والدر المنثور: ۵۱۶/۱۶دارالفکر، ۱۴۲۳هجری.

[5] روح المعانی: ۱۵۶/۱۶دارالفکر، لبنان ۱۴۱۷هجری.

[6] عمدة القاری: ۳۶۹/۱۵.

[۳۱۹۳] - حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا حَاتِمٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى نَفَرٍ مِنْ أَسْلَمَ يَنْتَضِلُونَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «ارْمُوا بَنِي إِسْمَاعِيلَ، فَإِنَّ أَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا ارْمُوا، وَأَنَا مَعَ بَنِي فُلَانٍ» قَالَ: فَأَمْسَكَ أَحَدُ الْفَرِيقَيْنِ بِأَيْدِيهِمْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا لَكُمْ لَا تَرْمُونَ». فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ نَرْمِي وَأَنْتَ مَعَهُمْ، قَالَ: «ارْمُوا وَأَنَا مَعَكُمْ كُلِّكُمْ» [ص ۳۵۳] [ر: ۲۷۴۳] [1]

**ترجمه:** سلمه بن اکوع رضی الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ دَ قبيله اسلم څه خلقو سره تيرشو هغه وخت دوی غشی ويشتل. رسول الله ﷺ اوفرمائيل اي بنو اسماعيل! دَغشو ويشتل کوئی ځکه چه ستاسو پلار هم غشی ويشتونکي وو. غشي ويشتل کوئی او زه فلانکي قبيلې سره يم.

راوی وائی چه دويم فريق خپل لاسونه بند کړل. رسول الله ﷺ اوفرمائيل څه چل اوشو؟ تاسو غشی ويشتل ولې نه کوئی؟ هغوی عرض اوکړو چه مونږ څنګه غشی ويشتل اوکړو تاسو خو دويم فريق سره ئي. په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل «ارموا وأنامعكم كلكم» غشي ويشتل کوئی زه تاسو ټولو سره يم. حضرت اسماعيل عليه السلام دَهغوی جد ابعد دې په روايت کښې په هغه باندې دَ "أب" اطلاق مجازاً کړې شوې دې. [2]

## تراجم رجال

**قتيبة بن سعيد:** دا ابورجاء قتيبه بن سعيد بن جميل بن طريف ثقفی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره (کتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإسلام) لاندې تيره شوې ده. [3]

**حاتم:** دا ابواسماعيل حاتم بن اسماعيل کوفی رحمه الله دې. [4]

**يزيد بن ابي عبيد، وسلمة بن الاکوع:** يزيد بن ابی عبيد او سلمه بن اکوع رضی الله عنهما تذکره (کتاب العلم باب إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم) لاندې تيره شوې ده. [5]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره دَ بنی اسماعيل مناسبت ښکاره دې. [6] په دې روايت تفصيلی بحث کتاب الجهاد کښې تيرشوې دې. [7]

## ۱۵ - بَاب: قِصَّةِ إِسْحَقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ.

**دَترجمة الباب مقصد:** دَدې باب لاندې دَحضرت اسحاق عليه السلام تذکره کول مقصود دی. حضرت اسماعيل عليه السلام دَهاجره دَ بطن نه وو او اسحاق عليه السلام دَ ساره دَ بطن نه وو او هغه وخت حضرت ساره دَ ۹۰ کالو وه او حضرت ابراهيم عليه السلام ۱۲۰ کالو وو. دَ ابن اسحاق رحمه الله دَ روايت مطابق هاجره او ساره رضی الله عنهما دَ دواړو حمل او وضع حمل په يو وخت

---

[1] مر تخريجه فی کتاب الجهاد باب التحريض على الرمی رقم الحديث: ۲۸۹۹.
[2] إرشادالساری: ۳۰۷/۷.
[3] کشف الباری: ۱۸۹/۲.
[4] کتاب الوضوء باب بلاترجمة بعد باب استعمال فضل وضوء الناس.
[5] کشف الباری: ۱۸۲/٤.
[6] عمدة القاری: ۳۶۹/۱۵.
[7] کشف الباری کتاب الجهاد حصه اول ص: ۵۹۹-۵۹٤.

کښې اوشو. دغه شان اسماعيل عليه السلام او اسحاق عليه السلام په يوخت خوانان شو. خو ابن کثير رحمه الله د اهل کتاب نه نقل کوي چه دحضرت اسماعيل عليه السلام ولادت د حضرت اسحاق عليه السلام نه ديارلس کاله پس اوشو او هغه وخت دحضرت ابراهيم عليه السلام عمر مبارك ۸۶ کاله وو.[1]

اسحق د عبراني ژبې لفظ "يضحق" معرب دې. په عربي کښې د دې معنی "يضحك" ده. کله چه حضرت ابراهيم عليه السلام او حضرت ساره ته د بوډاوالي په عمر کښې د خونی زيرې ورکړې شو نو ابراهيم عليه السلام حيران شو او ساره رضي الله عنها هم د دې اوريدو سره په خندا شوه چه په دې بوډنی توب کښې به هغه بچې راوړي. په دې وجه اسحق نوم کيخودې شو. "يضحق" د مضارع صيغه ده او د عرب په نيز د مضارع صيغه هم د نوم په توګه کيخودې کيږي.[2]

فِيهِ ابْنُ عُمَرَ وَأَبُو هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ. [ر: ۳۱۷۵، ۳۲۰۲]

**د باب لاندې حديث د سند سره د نه راوړلو وجه:**

**د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي لکه چه امام بخاري رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنهما د روايت نه د حضرت يوسف عليه السلام په تذکره کښې مذکور (الكريم ابن الكريم ابن الكريم يوسف بن يعقوب بن إسحاق بن إبراهيم) طرف ته اشاره کوي او په بل روايت سره دې باب سره متصل وړاندې باب کښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت طرف ته اشاره کول مقصود دي.[3]

**د ابن التين رحمه الله رائې او حافظ ابن حجر رحمه الله رائې:** د علامه ابن التين رحمه الله رائې دا ده چه امام بخاري رحمه الله ته د دې روايتونو سندونه نه دي ملاؤ شوي په دې وجه ئې دواړه مرسلاً ذکرکړي دي. تقريباً هم دغه رائې د علامه کرماني رحمه الله هم ده هغه فرمائي چه د ابن عمر رضي الله عنهما روايت د امام بخاري رحمه الله د شرط مطابق نه وو په دې وجه بعينه نقل کولو په ځائې د هغې طرف ته اجمالي اشاره باندې اکتفاء اوکړه.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله په دواړو باندې رد کولو سره او فرمائيل چه د امام بخاري رحمه الله د مقاصد او اسلوب نه ناواقف سړې هم دغه شان رائې قائم کولې شي. حقيقت هم دغه دې کوم چه ما بيان کړې دي.[5]

**د حافظ ابن حجر رحمه الله په رائې باندې د علامه عينی رحمه الله رد:** علامه عينی رحمه الله د ابن التين رحمه الله او علامه کرماني رحمه الله تائيد او حافظ ابن حجر رحمه الله باندې رد کولو سره فرمائي چه (فيه ابن عمر) الفاظ سره (الكريم ابن الكريم) والا روايت طرف ته اشاره کولو باندې هيڅ يوه توجيه نه شي موندلې نه توجيه قريب او نه بعيد. د ابن التين رحمه الله او کرماني رحمه الله رائې اوجه ده ځکه چه د هغوی کلام جزم سره دې خو د حافظ ابن حجر رحمه الله په رائې کښې تردد دې اودا تردد د هغه عبارت (كأنه يشير بحديث الأول إلى الآتي) نه ښکاره دي.[6]

**د حافظ ابن حجر رحمه الله جواب:** انتقاض الاعتراض کښې حافظ ابن حجر رحمه الله د دې جواب ورکړې دې چه امام بخاري رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنهما روايت (الكريم ابن الكريم ابن الكريم يوسف بن يعقوب بن إسحاق بن إبراهيم) د حضرت يوسف عليه السلام په تذکره کښې نقل کړې دې اودا خو دل غواړي چه د يوسف عليه السلام د تولو حالاتونه داهم دي چه هغه د انبياء الله نه دې او رسول اکرم ﷺ يوسف عليه السلام او د هغه اباؤاجداد يعنی يعقوب عليه السلام اسحاق عليه السلام او ابراهيم عليه السلام په مينځ کښې په صفت کرامت کښې تسويه فرمائيلې ده چه هغه ټول حضرات يو شان کريم وو. يوسف عليه السلام د

---

[1] عمدة القاري: ۳۷۰/۱۵.
[2] قصص القرآن: ۱۲٤/۱.
[3] فتح الباري: ۵۱۱/۸.
[4] شرح الكرماني: ۳۳/۱۷.
[5] فتح الباري: ۵۱۱/۸.
[6] عمدة القاري: ۳۷۰/۱۵.

حضرت اسحاق علیہ السلام دَ اولاد نه دي نو امام بخاري رحمه الله دَ اسحاق علیہ السلام په تذکره کښې هم دَ دغه تسویه طرف ته اشاره کړې ده. دغه شان دَ راتلونکي باب لاندې دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت هم په دې مضمون باندې مشتمل دې. په دغه روایت کښې دي چه دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم نه چا تپوس اوکړو «من أكرم الناس؟» نو هغوی ارشاد اوفرمائیلو «أكرمهم أتقاهم» امام بخاري رحمه الله دَ روایت دَ دې مضمون طرف ته اشاره کولو سره اوخودل چه دَ ابن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې ټولو انبیاء کرامو ته چه کریم اوونیلې شو نو دَ دې سبب دَ ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې بیان کړې شو چه دَ کریم جوړیدو سبب تقوی او للهیت دې.(۱)

دې نه پس حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا ابن التین رحمه الله کومه وینا کړې ده چه امام بخاري رحمه الله ته دَ روایت سند نه دې ملاؤ شوې نو دا ئې مرسلاً نقل کړو. دا خبره صحیح نه ده ځکه چه په مجهول السند روایت باندې اعتماد کول دَ امام بخاري رحمه الله دَ مزاج او صنیع خلاف دې.(۲)

ترکومې چه دَ علامه کرماني رحمه الله دَ خبرې تعلق دې چه دَ ابن عمر رضی الله عنهما روایت بعینه ذکر کولو په ځائې دَ امام بخاري رحمه الله دَ دې طرف ته اجمالي اشاره کولو باندې اکتفاء په دې وجه باندې کړې چه دا روایت دَ هغه په شرط باندې نه دې. نو دَ دې جواب دا دې چه دَ امام بخاري صنیع صرف په تعلیق ذکر کولو کښې نه دې چه کوم حدیث دَ هغه په شرط باندې نه وي نو هغه تعلیقاً ذکر کوي. بلکه کله داسې هم کیږي چه هغه حدیث دَ امام بخاري رحمه الله په شرط باندې برابر خو وي مګر هغه امام بخاري رحمه الله چرته په بل مقام باندې ذکر کړې وي «لکه دَ حافظ ابن حجر رحمه الله توجیه په اعتبار سره دلته هم دغه شان دي» او کله داسې کیږي چه هغه حدیث صرف هم دَ تعلیق په شکل کښې موجود وي سره دَ دې چه دَ شرط موافق هم وي او کله داسې هم کیږي چه حدیث دَ شرط موافق نه وي نو هغه تعلیقاً ذکر کوي. «لکه چه دَ علامه کرماني رحمه الله په توجیه کښې دي».(۳)

**دَ تعلیقات ترجمة الباب سره مناسبت:** په تعلیقات کښې چونکه دَ حضرت اسحاق علیہ السلام هم تذکره ده په دې وجه ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې.(۴)

## ۱۶ - باب: ﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ - إِلَى قَوْلِهِ - وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾ /البقرة: ۱۳۳/.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې دَ حضرت یعقوب علیہ السلام تذکره او دَ مذکوره آیت تفسیر مقصود دې. پوره آیت دا دې. ﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ مِن بَعْدِي قَالُوا نَعْبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ إِلَٰهًا وَاحِدًا وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾ البقرة: ۱۳۳ یهودیانو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوونیل چه یعقوب علیہ السلام په بستر مرګ باندې خپلو خامنو ته په یهودیت باندې دَ قائم پاتې کیدو وصیت کړې وو. دَ دې په تردید کښې دا آیت نازل شو چه تاسو دَ کوم دلیل په بنیاد باندې دَ یعقوب علیہ السلام طرف ته داسې خبره منسوب کوئی کومه چه هغه نه ده کړې. آیا تاسو پخپله هغه وخت موجود وئی کوم وخت چه دَ یعقوب علیہ السلام مرګ نیزدې راغلو؟ کوم وخت چه هغه دَ خپلو خامنو نه تپوس کړې وو چه تاسو به زما نه پس دَ څه څیز عبادت کوئی؟ هغوی په اتفاق سره جواب ورکړو

---

(۱) انتقاض الاعتراض فی الرد علی العینی فی شرح البخاري: ۲۶۷/۲ إرشادالساري: ۳۰۸/۷.
(۲) انتقاض الاعتراض فی الرد علی العینی فی شرح البخاري: ۲۶۷/۲ إرشادالساري: ۳۰۸/۷.
(۳) انتقاض الاعتراض: ۲۶۸/۲.
(۴) عمدة القاري: ۲۶۸/۱۵.

چه مونږ به دهغه ذات عبادت كوو دكوم چه تا اوستا پلار ابراهيم او اسماعيل او اسحاق عبادت كولو. هم هغه يو معبود دي او مونږ به ټول هم دهغه په اطاعت باندې قائم يو.[1]

يعقوب عليه السلام د اسماعيل عليه السلام د رور اسحاق عليه السلام خوئى وو نو اسماعيل عليه السلام دهغه تره شو ليكن په آيت كښې اسماعيل عليه السلام د يعقوب عليه السلام د آباء په عموم كښې شامل كړې شوې دې. مفسرينو ددې نه استدلال كولو سره فرمائيلى چه په أب باندې د عم اطلاق جائز دې.[2]

دحضرت يعقوب عليه السلام نوم په عبرانى كښې اسرائيل دې. دا اسرا (عبد) او ايل (الله) نه مركب دې او د عبدالله په معنى كښې دې. هم په دې مناسبت سره د حضرت ابراهيم عليه السلام چه كوم خاندان د حضرت يعقوب عليه السلام د نسل نه دې هغوى ته بنى اسرائيل وائى. الله تعالى دوى د كنعانيانو د هدايت دپاره مبعوث كړې وو. په هغوى كښې اوسيدو سره كلونو كلونو نى د دعوت او تبليغ فريضه سرته رسوله.[3]

[۳۱۹۴]- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، سَمِعَ الْمُعْتَمِرَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَكْرَمُ النَّاسِ؟ قَالَ «أَكْرَمُهُمْ أَتْقَاهُمْ» قَالُوا: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ، قَالَ: «فَأَكْرَمُ النَّاسِ يُوسُفُ نَبِيُّ اللَّهِ، ابْنُ نَبِيِّ اللَّهِ، ابْنِ نَبِيِّ اللَّهِ، ابْنِ خَلِيلِ اللَّهِ» قَالُوا: لَيْسَ [ص: ۱۳۸] عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ، قَالَ: «فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُونِي» قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: «فَخِيَارُكُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الْإِسْلَامِ إِذَا فَقِهُوا» [ص ۳۵۹] [ر: ۳۱۷۵] [4]

## تراجم رجال

**اسحاق بن ابراهيم:** دا اسحاق بن ابراهيم بن مخلد حنظلى رحمه الله دې. ابن راهويه په نوم باندې مشهور دې. ددوى تذكره (كتاب العلم باب فضل من علم وعلّم) لاندې تيره شوې ده.[5]

**معتمر:** دا ابومحمد معتمر بن سليمان تيمى بصرى رحمه الله دې. ددوى تذكره (كتاب العلم باب من خص بالعلم قوماً دون قوم كراهية أن لايفهموا) لاندې تيره شوې ده.[6]

**عبيدالله:** دا عبيدالله ابن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب العمرى رحمه الله دې.[7]

**سعيد بن ابي سعيد المقبري:** دا ابوسعيد سعيد بن ابى سعيد كيسان المقبرى رحمه الله دې. ددوى تذكره (كتاب الايمان باب الحياء من الايمان) لاندې تيره شوې ده.[8]

دې روايت سره متعلق تفصيل (باب: ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾) لاندې شاته تيرشوې دې.

---

[1] إرشادالساري: ۳۰۹/۷.

[2] روح المعاني سورة البقرة:۱۳۳-۱۳۲، ۳۹۱/۱-۳۸۹دار إحياء التراث العربي، إرشادالساري: ۳۰۹/۷.

[3] قصص القرآن: ۱۹٤/۱.

[4] مرتخريجه تحت الكتاب المذكور فى باب قول الله تعالى: ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾ رقم الحديث:۳۳۵۳.

[5] كشف الباري:۴۲۸/۳.

[6] كشف الباري: ۵۹۰/٤.

[7] كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت.

[8] كشف الباري:۱۷۳/۲.

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** آيت باب کښې حضرت يعقوب عليه السلام خپل اولاد ته دَمرګ په وخت دَتوحيد دعوت ورکړې دې. په حديث باب کښې دَ يوسف عليه السلام ذکر راغلې دې او يوسف عليه السلام هم دَهغوی دَ اولاد په عموم کښې شامل دې. لهذا ترجمه ظاهر ده.[1]

## ۱۷- باب: وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ النِّسَاءِ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ۝ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَن قَالُوا أَخْرِجُوا آلَ لُوطٍ مِّن قَرْيَتِكُمْ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ۝ فَأَنجَيْنَاهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ قَدَّرْنَاهَا مِنَ الْغَابِرِينَ ۝ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا فَسَاءَ مَطَرُ الْمُنذَرِينَ ۝﴾ [النمل: ۵۴-۵۸].

**دَترجمة الباب مقصد:** امام بخاري رحمه الله دلته دَحضرت لوط عليه السلام حالات اودَقرآن مجيد دَهغه آياتونو تفسير بيانول غواړی کوم چه حضرت لوط عليه السلام سره متعلق دی.[2]

**دَمذکوره اياتونو ترجمه:** اومونږ لوط عليه السلام (پيغمبر جوړولوسره دَهغه قوم ته) ليګلې وو اوهغه خپل قوم ته اوفرمائيل تاسو داسې بې حيايئ کارکوئ حالانکه بنه پوهيږئ (ولې دَدې عمل بې حيايئ باندې نه پوهيږئ) آيا تاسو سړو سره خپل شهوت پوره کوئ ښځې پريخودو سره، بلکه تاسو جهالت کوئ (ددې تقرير، دَهغه دَ قوم نه څه جواب جوړ نه شو بغيردَدې نه چه په خپل مينځ کښې ئې اووئيل چه دَ لوط عليه السلام خلق (يعنې په هغه باندې ايمان راوړونکي) تاسو دَ خپل کلي نه اوباسئ، (ځکه) چه دا خلق ډير پاک اوصفا جوړيږی نو (چه کله تردغه وخته پورې خبره اورسيده نو) مونږ (په هغه قوم باندې عذاب نازل کړو او) لوط عليه السلام اودَهغه متعلقين (دَدغه عذاب نه) بچ کړې شو سوا دَهغه دَ بې بې نه چه مونږ هغه هم دَ دغه خلقو نه ګنړلې وه ځوک چه په عذاب کښې پاتې کيدونکو. وو او مونږ په هغوی باندې خاص قسم باران راؤورولو. نودَ هغه خلقو دَپاره خراب باران وو ځوک چه دَ عذاب نه ويرولې شوی وو.

حضرت لوط عليه السلام دَحضرت ابراهيم عليه السلام وراره وو چه په وړوکوالی کښې هم دَهغه په تربيت کښې پاتې شوې. حضرت لوط عليه السلام اودَ هغه بې بې به هميشه په سفرونو اوهجرتونو کښې حضرت ابراهيم عليه السلام سره پاتې شوې وو. آخره کښې په خپل مينځ کښې مشوره سره فيصله اوشوه چه لوط عليه السلام دې دَ اردن ښار سدوم ته لاړشی اودَ دين ابراهيمی تبليغ دې اوکړی. دَ سدوم اوسيدونکی په اخلاقی توګه دومره پريوتی وو چه کيدې شی دَ دنيا په تاريخ کښې داسې بل يو قوم نه وی چاچه دَ اخلاقی زوال دا حدود تيرکړې وی دَ کوم نه چه اهل سدوم تجاوز کولو سره ډير وړاندې تلی وو. ډير زيات سرکش او بې حياء وو. تجارتی قافلې به ئې په ډيره بې رحمئ سره لوټ کولې، دَ شريفانانو خلقو به ښکاره لاړ کښې مسخرې کولې، دَ منکراتو او فواحشو به ئې پټ اوښکاره ارتکاب کولو، دَ شهوت پوره کولودپاره به ئې دَ ښځو په ځائې سړی استعمالول. حضرت لوط عليه السلام چه به ورته نصيحت کولونودوی به هغه پورې توقې کولې. آخر کار دَ الله تعالى عذاب هغوی راګير کړل. يوخطرناکې چغې هغوی تول راواړول، پوره کلې ئې پورته اوچت کړو او رااولته ئې کړو. دَ آسمان نه دَ کاڼړو يو خطرناک باران ټول هرڅه بې نوم او نښې کړل.

---

[1] عمدة القاري: ۱۵/۳۷۱.

[2] عمدة القاري: ۱۵/۳۷۱.

[۳۱۹۵] - حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «يَغْفِرُ اللَّهُ لِلُوطٍ، إِنْ كَانَ لَيَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ» [ص ۳۶۲] [ر: ۳۱۹۲] [1].

## تراجم رجال

**ابواليمان**: دا ابواليمان حكم بن نافع بهراني حمصي رحمه الله دي. [2]

**شعيب**: دا ابوبشر شعيب بن مولى حمزه قرشي رحمه الله دي. دَدوى تذكره (بدءالوحى) لاندې تيره شوې ده. [3]

**ابوالزناد**: دا عبدالله بن ذكوان مدني قرشي رحمه الله دي.

**اعرج**: دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدني قرشي رحمه الله دي. دَدې دواړو حضراتو تذكره (كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان) لاندې تيره شوې ده. [4]

**قوله: يَغْفِرُ اللَّهُ لِلُوطٍ إِنْ كَانَ لَيَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ**: رسول الله ﷺ اوفرمانيل الله تعالى دې لوط عليه السلام اوبخښي هغه د ركن شديد پناه غوښتله. د ركن معنى ده سهاره ستن بنياد. دلته دَ ركن نه قبيله اوخاندان مراد دي. [5]

حضرت ابراهيم عليه السلام اوحضرت لوط عليه السلام په اصل كښې دَعراق وو. ابراهيم عليه السلام دَ شام طرف ته هجرت اوكړو نولوط عليه السلام دَ هجرت په سفر كښې هغوى سره وو. روستو لوط عليه السلام ته حكم اوشو چه په اهل سدوم كښې دَ دعوت او تبليغ كار اوكړي. په سدوم كښې هغوى غريب الديار وو. دلته يو كس هم دَهغه دَ قبيلې نه وو. په دې وجه چه كله په مصيبت او پريشانتى كښې راګيرشو نو بې اختياره ئى دَ خلې نه دا جمله اووتله ﴿لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً أَوْ آوِي إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ﴾. [6]

**دَ ركن شديد تشريح**: دَ ركن شديد نه قبيله مراد كيدو په صورت كښې به مطلب داشى چه دَ لوط عليه السلام دَ خپل قوم سركشى او بې حيايئى بندول او دَهغوى مقابله كول غوښتل. ليكن په لوط عليه السلام باندې يوازې والي او بې بسئى احساس غالب شو او خواهش ئى اوكړو كه چرته زما يو زبردست قبيله وه نو دَهغوى په امداد او نصرت سره به هيڅ كله تاسو خلقوته دَ ميلمنو دَ رسوايئى موقع نه دركوله اوتاسو ته به دَ لاس وړاندې كولو همت هم نه وو. [7]

علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه دَ لوط عليه السلام دَ كلام نه معلوميږي دغه وخت كښې هغه دَ ډير سخت نااميدئى او قنوطيت په عالم كښې وو چه افسوس دَهغه څوك امدادي او مددګار وي اودَ ميلمنو دفاع ئى كړې وي. رسول الله ﷺ په دې باندې دَ حيرانتيا اظهار اوكړو چه يو جليل القدر پيغمبر په مصائب او بليات كښې دَ الله تعالى نه سوا دَ بلې سهارې خواهش كوى اودَ نااميدئى اظهار كوى. په دې وجه رسول الله ﷺ دَ حضرت لوط عليه السلام تسامح

---

[1] مرتخريجه في نفس الكتاب باب قوله تعالى: ﴿وَنَبِّئْهُمْ عَن ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا........﴾.
[2] كشف الباري: ۴۲۹/۱.
[3] كشف الباري: ۴۸۰/۱.
[4] كشف الباري: ۲/۱۱-۱۰.
[5] إرشاد الساري: ۳۰۶/۷.
[6] فتح الباري: ۵۱۳/۸ دارالكتب العلمية.
[7] فتح الباري: ۵۱۳/۸ دارالكتب العلمية.

بیانولو سره د هغه دپاره دمغفرت دعا اوکړه چه آخر د بشریت تقاضا وه.[1]
هم دغه روایت سنن احمد کښې په بل طریق سره نقل دې. په هغې کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی چه د لوط علیه السلام د دې خواهش نه پس الله تعالی بیا راتلونکی انبیاء کرام په مستحکم قبیلو کښې مبعوث کړل.[2] بعض حضراتو فرمائیلی د رکن شدید نه مراد الله تعالی دې او ښکاره خبره ده چه د الله تعالی نه زیات رکن شدید بل څوک کیدې شی.[3]
په دې صورت کښې د رسول الله ﷺ دعا (يغفرالله لوطاً.....) به د مدح په توګه وی چه د هغوی مقام څومره لوئی وو، څنګه تکلیفونه او مصیبتونه پرې راغلل لیکن لوط علیه السلام کله هم د بل چا د سهارې خواهش اونه کړو. بلکه هم د الله تعالی نه د نصرت طالب شو. الله جل شانه دې د هغه مغفرت اوکړی.[4] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د رکن شدید نه قبیله او خاندان مراد کیدونکې معنی زیاته واضحه ده.[5]
علامه نووی رحمه الله فرمائی سره د دې چه حضرت لوط علیه السلام هم د الله تعالی پناه غوښتله مګر په دې مقام باندې د قوم او قبیلې تذکره کولو مقصد د خپلو میلمنو په وړاندې دا عذر پیش کول وو چه هغه د دوی د امداد کولو نه لاچاره دې. دغه شان دا احتمال هم دې چه هغوی هم د ذات باری تعالی طرف ته رجوع کړې وه. مګر د قوم تذکره د میلمنو په وړاندې د عذر کولو په غرض سره وو.[6]
عشیرة ته نی رکن خکه اوونیل خکه چه د مصیبت په موقع لکه څنګه چه د رکن یعنی غر پناه اخستلې شی هم دغه شان د ضرورت او مصیبت په وخت سړې د خپل قوم سهارا اخلی.[7]
**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره د روایت مناسبت واضح دې.

## ۱۸- باب: ﴿فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ۨالْمُرْسَلُوْنَ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ﴾ /الحجر: ٦٢/.

**ماقبل سره ربط او د ترجمة الباب مقصد:** دا باب د سابقه باب تتمه ده او مقصد د مذکوره آیت تشریح کول دی. د آیت د سیاق اوسباق مضمون دادې چه د قوم لوط سرکشی د حدنه زیاته شوه نو د الله تعالی د طرف نه په هغوی باندې عذاب راوستونکې فرښتې حضرت ابراهیم علیه السلام ته راغلې. ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل ﴿فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ﴾ اې رالیږلې شوو فرښتو ستاسو څه مقصد دې؟ هغوی جواب ورکړو مونږ د مجرم قوم طرف ته رالیږلې شوې یو. دې نه پس آیت دې. ﴿فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ۨالْمُرْسَلُوْنَ ۝ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ﴾ یعنی کله چه فرښتې آل

---

[1] شرح المشكاة للطيبي كتاب أحوال القيامة وبدء الخلق، باب بدء الخلق وذكر الأنبياء: ٣٦٠٧/١١ رقم الحديث: ٥٧٠٥مكتبة نزار مصطفى الباز (مكة المكرمة رياض).
[2] فتح الباري: ٢١٣/٨مسندالإمام أحمد: ١٢١/١٤رقم الحديث: ٨٣٩٢مؤسسة الرسالة.
[3] فتح الباري: ٥١٣/٨شرح مسلم للإمام النووى كتاب الإيمان باب زيادة طمانينة القلب بتظاهر الأدلة:-١٨٤ ١٨٥/٢دارإحياء التراث العربي.
[4] فتح الباري:٨/٥١٣كشف الباري: كتاب التفسير ص: ٣٢٢.
[5] فتح الباري: ٥١٣/٨.
[6] شرح مسلم للإمام النووى كتاب الإيمان باب زيادة طمانينة القلب بتظاهر الأدلة:١٨٥/٢-١٨٤دارإحياء التراث العربي.
[7] فتح الباري: ٥١٣/٨.

لوط له راغلي نو لوط عليه السلام هغوى اونه پيژندې اوونى وئيل چه تاسو خلق اجنبى معلوميږئ. فرښتو اووئيل. ﴿بَلْ جِئْنَاكَ بِمَا كَانُوا فِيهِ يَمْتَرُونَ ۝ وَأَتَيْنَاكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ۝﴾ [1] بلكه مونږ تاله هغه څيز راوړلې راغلي يو په كوم كښې چه به دې خلقو شك كولو. يعنى عذاب مو راوړلې راغلي يو اوداهم هغه عذاب دې په كوم كښې چه به دې خلقو شك كولو او په هغې پورې به ئې توقې كولې. بيا فرښتو اووئيل مونږ تاله يقينى كيدونكې څيز راوړلو سره راغلي يو او مونږ رښتوني يو. يعنى زمونږ خبر رښتوني دې او په دې كښې ذره برابر شك شبه نشته چه عذاب به واقع كيږى.

﴿بِرُكْنِهِ﴾/الذاريات: ٣٩/: بِمَنْ مَعَهُ لِأَنَّهُمْ قُوَّتُهُ. ﴿تَرْكَنُوا﴾/هود: ١١٣/: تَمِيلُوا. فَأَنْكَرَهُمْ وَنَكِرَهُمْ وَاسْتَنْكَرَهُمْ وَاحِدٌ. ﴿يُهْرَعُونَ﴾/هود: ٧٨/: يُسْرِعُونَ. ﴿دَابِرَ﴾/الحجر: ٦٦/: آخِرَ. ﴿صَيْحَةً﴾/يس: ٢٩/: هَلَكَةً. ﴿لِلْمُتَوَسِّمِينَ﴾/الحجر: ٧٥/: لِلنَّاظِرِينَ. ﴿لَبِسَبِيلٍ﴾/الحجر: ٧٦/: لَبِطَرِيقٍ.

﴿بِرُكْنِهِ﴾: بِمَنْ مَعَهُ لِأَنَّهُمْ قُوَّتُهُ: سورت ذاريات كښې دى: ﴿وَفِي مُوسَى إِذْ أَرْسَلْنَاهُ إِلَى فِرْعَوْنَ بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ ۝ فَتَوَلَّى بِرُكْنِهِ وَقَالَ سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ۝﴾ [2] يعنى د موسى عليه السلام په قصه كښې هم عبرت دې. كله چه مونږ هغه فرعون له يو ښكاره دليل (معجزه) وركولو سره اوليګلو مګر فرعون سره د سلطنت د غرور سركشى اوكړه اوونى وئيل چه دا ساحر يا مجنون دې.

امام بخارى رحمه الله د فراء رحمه الله قول نقل كړې دې چه فرعون سره كوم خلق يعنى افواج او د سلطنت نور غړى وو هغوى سره سركشى اوكړه ځكه چه دغه فوځونه د فرعون طاقت وو. ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا آيت د موسى په قصه كښې راغلي دې. د حضرت لوط عليه السلام حالاتو سره د دې هيڅ مناسبت نشته او هم په دې بنياد باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلي دى چه دا د امام بخارى رحمه الله وهم دې. البته د لوط عليه السلام په تذكره كښې د دې آيت طرف ته اشاره كولو سبب دا كيدې شى چه په سورت ذاريات كښې مذكوره آيت د حضرت لوط عليه السلام د قصې نه فوراً پس راغلي دې نو امام بخارى رحمه الله ضمناً دلته هم د دې طرف ته اشاره اوكړه. [3]

يا بيا د دې سبب دا كيدې شى چه د حضرت لوط عليه السلام په تذكره كښې ﴿أَوْ آوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ ۝﴾ راغلي دې او تقريباً هم دغه مضمون د موسى عليه السلام قصې سره متعلق مذكوره آيت كښې راغلي دې. نو امام بخارى رحمه الله په دې مناسبت سره ضمناً مذكوره آيت طرف ته هم اشاره اوكړه. [4]

﴿تَرْكَنُوا﴾: تَمِيلُوا: په دې سره د سورت هود د آيت طرف ته اشاره ده: ﴿وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ ۝﴾ [5] يعنى اې مسلمانانو د هغوى طرف ته مه ورتيتيږئ ځوك چه ظالمان دى. بيا به تاسو پورې هم اور لګى او د الله تعالى نه سوا ستاسو بل څوك مددګار نشته دې. بيا به د يو خوا نه امداد پيدا نه كړې.

امام بخارى رحمه الله د ﴿تَرْكَنُوا﴾ تفسير تَمِيلُوا سره كړې دې يعنى د هغوى طرف ته مه مائل كيږئ. د لوط عليه السلام د قصې سره د دې آيت هم څه مناسبت نشته. امام بخارى رحمه الله د ماده ركن د مناسبت نه دې آيت طرف ته اشاره كړې ده. [6]

---

[1] سورة الحجر: ٦٤

[2] سورة الذاريات: ٣٩.

[3] فتح البارى: ٥١٤/٨.

[4] المصدر السابق.

[5] سورة هود: ١١٣.

[6] فتح البارى: ٥١٤/٨ إرشاد السارى: ٣١١/٧.

﴿فَأَنْكَرَهُمْ وَنَكِرَهُمْ وَاسْتَنْكَرَهُمْ وَاحِدٌ﴾: امام بخاری رحمه الله دَ ابوعبیده رحمه الله قول نقل کولو سره دَ سورت هود په آیت کښې راغلې لفظ "نکر" تفسیر کړې دې چه (انکرهم، استنکرهم، نکرهم) دریواړه په یو معنی کښې استعمالیږی. آیت دادې: ﴿فَلَمَّا رَأَى أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً قَالُوا لَا تَخَفْ إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَى قَوْمِ لُوطٍ﴾ [1] کله چه ابراهیم علیه السلام اوکتل چه دَ فرښتو لاس دسترخوان طرف ته نه وړاندې کیږی نو ابراهیم علیه السلام هغوی اجنبی اوګڼړل او په زړه کښې اوویریدو. فرښتو اووئیل ته مه ویریږه، بیشکه مونږ دَ لوط علیه السلام طرف ته لیږلې شوې یو.

دلته هم اشکال کیږی چه دَ نکرهم ضمیر فاعل دَحضرت ابراهیم علیه السلام طرف ته راجع دې نو دا آیت دلته په کوم مناسبت سره ذکر کړې شوې دې؟ دَدې جواب دادې چه آیت خو دَ ابراهیم علیه السلام سره متعلق دې لیکن قصې دَ لوط علیه السلام سره هم دَدې مناسبت واضح دې او هم په دغه مناسبت سره امام بخاری رحمه الله دَدې آیت طرف ته اشاره کړې ده. [2]

﴿يُهْرَعُونَ﴾: يُسْرِعُونَ: دَ سورت هود دَدې آیت طرف ته اشاره ده: ﴿وَجَاءَهُ قَوْمُهُ يُهْرَعُونَ إِلَيْهِ وَمِنْ قَبْلُ كَانُوا يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ قَالَ يَا قَوْمِ هَؤُلَاءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطْهَرُ لَكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَلَا تُخْزُونِ فِي ضَيْفِي أَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَشِيدٌ﴾ [رقم الآیة:۷۸] یعنی دَ لوط علیه السلام دَ قوم خلق هغوی له په تادئی سره په منډه راغلل او هغوی به دَدې نه وړاندې خراب کار کولو. لوط علیه السلام اووئیل اې زما قومه دا زما لونړه دی هغه ستاسو دَپاره پاکې بیبیانې دی. نو تاسو دَ الله تعالی نه اوویریږئی او ما زما میلمنو ته مه رسوا کوئی آیا په تاسو کښې څه ښیګړې والا کس نشته؟

﴿دَابِرَ﴾: آخِرَ: دَ سورت حجر آیت طرف ته اشاره ده: ﴿وَقَضَيْنَا إِلَيْهِ ذَلِكَ الْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَؤُلَاءِ مَقْطُوعٌ مُصْبِحِينَ﴾ [رقم الآیة ۶۶] یعنی مونږ دَ فرښتو په واسطه سره لوط علیه السلام له دا حکم اولیږلو چه سحر کیدو سره به بالکل دَهغوی جرړې پرې شی او هغوی به برباد او هلاک شی.

﴿صَيْحَةً﴾: هَلَكَةً: دَ سورت یاسین آیت مراد دې: ﴿إِنْ كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَدَيْنَا مُحْضَرُونَ﴾ [رقم الآیة:۵۳] یعنی بس هغه به یوه چغه وی نو هغوی به ټول مونږ ته حاضر کړې شی.

شراح حدیث وائی چه دَ آیت طرف ته دلته اشاره کولو هیڅ مناسبت نه معلومیږی لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه کیدې شی دَ امام بخاری رحمه الله اشاره ﴿فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُشْرِقِينَ﴾ طرف ته ده، ځکه چه دا آیت دَ قوم لوط باره کښې راغلې دې. [3]

﴿لِلْمُتَوَسِّمِينَ﴾: لِلنَّاظِرِينَ ﴿لَبِسَبِيلٍ﴾: لَبِطَرِيقٍ: په سورت حجر کښې دَ قوم لوط تذکره ده چه دَهغوی کلې لاندې باندې کړې شو او په هغوی باندې کانړی راووریدلې شو. دَ الله تعالی دَدغه عذاب باره کښې اوفرمائیل ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِلْمُتَوَسِّمِينَ﴾ یعنی دَ اهل بصیرت دَپاره په دې واقعه کښې ډیرې نښې نښانې دی. امام بخاری رحمه الله هم دې آیت طرف ته اشاره کولو سره (متوسمین) تفسیر په (ناظرین) سره کړې دې یعنی کتونکی.

بیا دَ دغه هلاک کیدونکی کلې باره کښې په وړاندې آیت کښې فرمائی ﴿وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٍ مُقِيمٍ﴾ یعنی هغه کلې په نیغه لار باندې واقع دې یعنی دَ عراق نه شام ته تلو سره بالکل په نیغه لار باندې راځی. کتونکو له دَدې نه عبرت حاصلول پکار دی. دَ آیاتونو دا ټول تفاسیر صرف دَ مستملی په روایت کښې دی

[1] سورة هود: ۷۰.
[2] فتح الباری:۵۱۴/۸.
[3] فتح الباری: ۵۱۴/۸.

حافظ ابن حجر رحمه الله «باب: والی ثمود أخاهم صالحا الخ» د شپږم او اووم باب په مینځ کښې ذکر کړی دی. یعنی د قوم ثمود او صالح تذکره د قوم عادنه پس کړې ده. خود صحیح بخاری په اکثر نسخو کښې مذکوره باب اوولسم نمبر باندې د حضرت لوط علیه السلام د قصې نه پس درج دی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی «والصواب إثباته هنا» یعنی د قوم ثمود او صالح قصه د قوم عام نه پس ذکر کول صحیح دی او د دې تائید د صحیح بخاری د راوی ابوذر هروی رحمه الله د دې خبرې نه کیږي کومه چه ابوالولید الباجی رحمه الله د هغه نه نقل کړې ده. ابوذر هروی رحمه الله فرمائی د صحیح بخاری اصل نسخه د اوراق په صورت کښې وه او هغه اوراق تړلي شوي نه وو. نو بعض ورځتونو کښې داسې هم کیږي چه ما به یوه پاڼړه د هغې د مناسب مقام نه جدا لیدله لیکن د دې فرق نه باوجود ما د اصل نه هم د غه شان نقل کړې لکه څنګه چه ما لیدلې. او د غې وجې نه بعض تراجم د بخاری کښې اشکال واقع شوې دی. چنانچه په قرآن مجید کښې د مذکوره واقعاتو نه پته لګی چه قوم ثمود د قوم عادنه پس دی لکه څنګه چه قوم عاد د قوم نوح نه پس دی.(۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله نور فرمائی که چرې امام بخاری رحمه الله د قوم ثمود او صالح قصه د قوم لوط د قصې نه پس ذکر کړې ده نو د دې سبب به دا شی چه کله امام بخاری رحمه الله د سورت حجر د آیاتونو تفسیر او توضیح شروع کړه نو د سورت حجر د دې آیاتونو په اعتبار سره اصحاب حجر یعنی قوم ثمود واقعه د قوم لوط د واقعې نه پس راغلې او د دې دواړو په مینځ کښې اصحاب الایکة یعنې د قوم شعیب مختصر واقعه هم راغلې ده. نو د سورت حجر د دې آیاتونو په رڼا کښې اکثر ناسخین د بخاری د قوم ثمود قصه د قوم لوط نه پس ذکر کړې.(۲)

[۳۱۹۶] - حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "قَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: {فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ} [القمر: ۱۵]" [ص ۳۷۰][ر: ۳۱۶۳](۳)

## تراجم رجال

**محمود:** دا ابواحمد محمود بن غیلان عدوی رحمه الله دی.(۴)

**ابواحمد:** دا محمد بن عبد الله الزبیری رحمه الله دی.(۵)

**سفیان:** دا سفیان بن سعید ثوری رحمه الله دی. د دوی تذکره «کتاب الإیمان باب علامة المنافق» لاندې تیره شوې ده.(۶)

**ابواسحاق:** دا عمرو بن عبد الله بن عبید سبیعی رحمه الله دی. د دوی تذکره «کتاب الإیمان باب الصلاة من الإیمان» لاندې تیره شوې ده.(۷)

**الاسود:** دا اسود بن یزید بن قیس نخعی رحمه الله دی. د دوی تذکره «کتاب العلم باب من ترك بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس عنه» لاندې تیره شوې ده.(۱)

---

(۱) فتح الباری: ۸/۴۷۰-۴۶۹.

(۲) فتح الباری: ۸/۵۱۵-۵۱۴.

(۳) والحدیث سبق تخریجه فی نفس الکتاب تحت قول الله عزوجل ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ﴾ رقم: ۳۲۴۱.

(۴) کتاب مواقیت الصلاة باب النوم قبل العشاء لمن غلب رقم: ۵۷۰.

(۵) کتاب الأذان باب المکث بین السجدتین رقم: ۸۲۰.

(۶) کشف الباری: ۲/۱۰۲.

(۷) کشف الباری: ۲/۳۷۰.

**دَ ایت مذکوره ترجمة الباب سره مناسبت:** ﴿فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٖ﴾ دَ سورت قمر آیت دې. دا آیت دلته دَ راوړلو مناسبت دادې چه هم دې آیت نه یو څو آیاتونه وړاندې دَ قوم لوط ذکر دې. ﴿كَذَّبَتۡ قَوۡمُ لُوطِۭ بِٱلنُّذُرِ﴾ دَ امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه دَ قوم لوط خطرناك انجام نه عبرت حاصلول پکاردی.

## ١٩ - باب: قَوۡلِ اللّٰهِ تَعَالَی: ﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمۡ صَٰلِحٗا﴾/هود: ٦١.

**ماقبل سره ربط او دَ ترجمة الباب مقصد:** په سابقه باب کښې دَ حضرت لوط علیه السلام دَ قوم ذکر وو او په دې باب کښې دَ قوم ثمود ذکر دې. په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دَ حضرت صالح علیه السلام دَ قوم حالات بیانول غواړی.

**په قوم ثمودکښې دَحضرت صالح علیه السلام دعوت او تبلیغ:** ثمود دَعربو یوه قبیله وه اوهغوی ته ثمود دَ هغوی دَ پلار اکبر ثمود بن عامر بن ارم بن سام په نسبت سره ونیلې کیدو. یو قول داهم دې چه قوم صالح ته ثمود دَ قلت ماء دَ وجې نه ونیلې شو ځکه چه ثمود دَ ثمد نه ماخوذ دې چه دَهغه معنی قلت ماء ده.[٢]

دَدوی په نسب نامه کښې شراح مختلف اقوال نقل کړی دی. دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَ قول مطابق دَهغوی سلسله نسب داده: صالح بن عبید بن اسیف بن ماشخ بن عبید بن حاجر بن ثمود.[٣] اودَ علامه قسطلانی رحمه الله دَ قول مطابق سلسله نسب داسې ده. صالح بن عبید بن ماسخ بن عبید بن حاذر بن ثمود.[٤] خو علامه عینی رحمه الله په سلسله نسب کښې مختلف اقوال نقل کړی دی.[٥]

دَ ثمود نه په وړاندې نسب نامه کښې هم مختلف اقوال دی. دَ حافظ ابن حجر رحمه الله دَ قول مطابق دَ دې نه وړاندې نسب نامه داسې ده ثمودبن عابر بن ارم بن سام بن نوح علیه السلام.[٦] قوم ثمود هم دَ عاد دَ سامی نسل سره تعلق لری. دَ هلاکت نه پس چه کوم خلق په هغوی کښې بچ شو اودهغوی نسل زیات شو هم هغوی ته ئې ثمود او عاد ثانیه ونیل. ثمودیان په شرك او بت پرستئ کښې اخته وو. الله تعالی دَهغوی دَ اصلاح اوهدایت دپاره حضرت صالح علیه السلام مبعوث کړو. حضرت صالح علیه السلام دَ هغوی په نیغه لار راوستلودپاره ډیرې زیاتې قربانئې ورکړې. هغوی ته به ئې وعظ او نصیحت کولو اودَهغوی په مطالبه باندې ئې معجزې هم اوخودلې خو هغوی دَ بت پرستئ اوشرك نه منع نه شو او دَ اول نه زیات سرکش او باغیان شو اوحضرت صالح علیه السلام پسې به ئې مسخرې کولې. یو څوکسانو په هغه باندې ایمان راوړو اوباقی دَ قوم مشر او نور خلق په شرك او بت پرستئ او عناد باندې کلك ولاړ وو. آخر دَ شپې په وخت په هغوی باندې عذاب راغلو او یوډیر خطرناك صاعقه ټول هلاك کړل او دَعبرت نمونه ئې جوړکړل. قرآن کریم کښې دغه عذاب کله صاعقة او کله رجفة او کله صيحة په الفاظوسره تعبیر کړې شوې دی.[٧]

﴿كَذَّبَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡحِجۡرِ﴾/الحجر: ٨٠: مَوْضِعُ ثَمُودَ. وَأَمَّا ﴿حَرۡثٌ حِجۡرٌ﴾/الأنعام: ١٣٨: حَرَامٌ، وَكُلُّ مَمْنُوعٍ فَهُوَ حِجْرٌ مَحْجُورٌ، وَالحِجْرُ كُلُّ بِنَاءٍ بَنَيْتَهُ، وَمَا حَجَرْتَ عَلَيْهِ مِنَ الأَرْضِ فَهُوَ حِجْرٌ، وَمِنْهُ سُمِّيَ حَطِيمُ البَيْتِ حِجْرًا، كَأَنَّهُ مُشْتَقٌّ مِنْ مَحْطُومٍ، مِثْلُ قَتِيلٍ مِنْ مَقْتُولٍ. وَيُقَالُ لِلْأُنْثَى مِنَ الخَيْلِ الحِجْرُ، وَيُقَالُ لِلْعَقْلِ حِجْرٌ وَحِجًى، وَأَمَّا حَجْرُ اليَمَامَةِ فَهُوَ مَنْزِلٌ.

---

[١] کشف الباری: ٥٥٣/٤.
[٢] عمدة القاري: ٣٧٤/١٥ إرشادالساري: ٣١٢/٧ الكنز المتواري: ٣١٤/١٣.
[٣] فتح الباري: ٤٦٧/٨.
[٤] إرشاد الساري: ٣١٢/٧.
[٥] عمدة القاري: ٣٧٥/١٥.
[٦] فتح الباري: ٤٦٧/٨.
[٧] عمدة القاري: ٣٧٥/١٥.

(كَذَّبَ أَصْحٰبُ الْحِجْرِ) : مَوْضِعُ ثَمُودَ: دَ سورت حجر آيت دې: (وَكَذَّبَ أَصْحٰبُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ) اوبلاشبه دَحجر والو پيغمبران دروغ اوګڼل. دَ اصحاب الحجر نه قوم ثمود مراد دي. امام بخاري رحمه الله اوفرمائيل چه حجر دَقوم ثمود دَ اوسيدو ځائي وو. دا خلق به په وادی حجر کښې اوسيدل چه دَمدينې او شام په مينځ کښې واقع دې. دَمرسلين نه حضرت صالح عليه السلام او په هغه باندې ايمان راوړونکی مؤمنان مراد دی. بعض فرمائيلي دی چه دَ يو نبی تکذيب لکه چه دَ ټولو انبياء کرامو عليهم السلام تکذيب دې په دې وجه دَمفرد دَ صيغې په ځائي دَ جمع صيغه راوړلې شوه.(۱)

ابن عباس فرمائي چه کله دَ حضرت صالح عليه السلام عمر مبارک څلويښت کاله شو نوالله تعالى هغه دَ قوم ثمود طرف ته دَ رسول په حيثيت سره مبعوث کړو.(۲) دَ قوم ثمود دَ هلاکت او بربادئي نه پس حضرت صالح عليه السلام دَ فلسطين طرف ته مخ اوکړو اوهلته په مقام رمله کښې اوسيدل شروع کړه. يو قول دا هم دې چه مکې مکرمې ته راغلو اوهغوی سره دهغوی متعلقين هم په مکه مکرمه کښې اوسيدل اودَ الله تعالى عبادت به ئې کولو او هم هلته دَدغه ټولو انتقال اوشو.(۳) دَ وفات په وخت دَ حضرت صالح عليه السلام عمر مبارک دَ يو قول مطابق ۱۵۸ کاله وو اودَ بل قول مطابق دَهغوی عمر ۲۳۶ کاله وو. دا دويم قول دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې شوې دې اوهم دغه ډير واضح دې.(۴) دحضرت صالح عليه السلام او حضرت هود عليه السلام په مينځ کښې دَ ۱۰۰ کالو او دَحضرت صالح عليه السلام او حضرت ابراهيم عليه السلام په مينځ کښې ۲۳۰ کاله فاصله ده.(۵) حضرت صالح عليه السلام هم دَهغه خپلې قبيلې اوقوم يو کس وو په دې وجه هغه ته اخ ونيلې شوې دی.(۶)

وَأَمَّا (حَرْثٌ حِجْرٌ): حَرَامٌ وَكُلُّ مَمْنُوْعٍ فَهُوَ حِجْرٌ مَحْجُوْرٌ: دَامام بخاري رحمه الله اشاره دَ سورت انعام آيت (هٰذِهٖۤ اَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ) [الأنعام: ۱۴۸] طرف ته ده يعنى دا څاروی دی او ممنوع پټی فصلونه دی. په دې کښې دَمشرکانو دَ جاهلانه رسم بيان دې. چه هغه خلقو به فصل او څاروی دَبتانو دَپاره وقف کولو سره ونيل چه په دې سره صرف سړي استخدام کولې شی دَ ښځو دَپاره دَدې استعمال حجر يعنى ممنوع اوناجائز دې. امام بخاري رحمه الله دَ حجر معنى په حرام سره کړې ده او فرمائيلي دی چه (کل ممنوع فهو حجر محجور) يعنى هر ممنوع شئ حجر او محجور وی. په دې دويمه جمله سره دَ قرآن کريم آيت (وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا) [الفرقان: ۲۲] طرف ته اشاره ده او دلته (حجراً محجوراً) دَ (حراماً محرماً) په معنى کښې دې.(۷)

وَالْحِجْرُ كُلُّ بِنَاءٍ بَنَيْتَهُ، وَمَا حَجَرْتَ عَلَيْهِ مِنَ الْأَرْضِ: امام بخاري رحمه الله دَ حجر نورې معانی او مصداق بيانی. هرعمارت ته حجر وائي په دې وجه دَ خانه کعبې په کوم ګوټ کښې چه حطيم داخل دې هغې ته هم حجر ونيلې شی. بيائي اوخودل حطيم دَمحطوم په معنى کښې دې لکه قتيل دَ مقتول په معنى کښې دې يعنى وزن خو فعيل دې ليکن معنى ئې دَ

---

(۱) عمدة القاري: ۲۷۵/۱۵.
(۲) عمدة القاري: ۲۷۵/۱۵الکنز المتواري: ۳۱٤/۱۳.
(۳) المصدر السابق.
(۴) المصدر السابق.
(۵) المصدر السابق.
(۶) عمدة القاري: ۲۷٤/۱۵.
(۷) عمدة القاري: ۲۷۶/۱۵.

مفعول دہ، حطیم د مکسور په معنی کښې دې یعنی مات شوې ذره ذره. دې ته حطیم په دې وجه وائی چه دا په اصل کښې په کعبة الله کښې شامل وو دا مات کړې شو بهر راوویستلې شو.(۱)

فَقَالَ لِلْأُنْثَى مِنَ الْخَيْلِ الْحِجْرُ: مطلب دادې چه اسپې ته هم حجر وائی. دغه شان عقل او دانائی دپاره هم حجر او حجا په کسره د حاء الفاظ استعمالیږی. چنانچه په سورة الفجر کښې دی: ﴿هَلْ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ﴾ [الفجر ۵]

اعتراض وارد کیږی چه امام بخاری رحمه الله حجی په کسره د حاء، فتح د جیم ذکرولې اوکړو. ځکه چه د حجر سره د دې هیڅ تعلق او مناسبت نشته دې؟ علامه رشید احمد گنگوهی رحمه الله فرمائی چه د ټولو نه اول امام بخاری رحمه الله د سورت انعام آیت ﴿هَٰذِهِ أَنْعَامٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ﴾ پیش کړلو سره دا اوخودل چه دلته په آیت مبارک کښې حجر د ممنوع په معنی کښې دې. اصحاب الحجر کښې ذکر حجر په معنی کښې نه دې. ځکه چه هغه اسم علم دې او بیانی دا اوخودل چه په هر ممنوع شئ باندې هم د حجر اطلاق کولې شی. د دې طرز عمل نه معلومه شوه چه کله دوه کلمې په اکثر حروف کښې اتفاق لرې نو بعض وخت د داسې دوو کلمو معنی هم یوه وی یا بیا د دواړو کلمو معنی یو بل ته نیزدې وی او هم په دغه بنیاد باندې وراندې امام بخاری رحمه الله حجی ذکر کړو. چونکه په اکثر حروف کښې حجر او حجی متفق دی نو ځکه دواړه الفاظ په معنی کښې هم نیزدې نیزدې دی او حجی یعنی عقل او دانائی معنی حجر سره نیزدې داسې ده: چه عقل هم انسان د ګمراهئی او هلاکت نه منع کوی.(۲)

وَأَمَّا حَجْرُ الْيَمَامَةِ فَهُوَ مَنْزِلٌ: حجر دلته د حاء فتح سره دې یعنی (حجر الیمامة) د یو خائی نوم دې. دا د ثمودیانو د اوسیدو خائی وو کوم چه وادی قری سره نیزدې واقع دې.(۳) امام بخاری رحمه الله (حجر الیمامة) استطرادا ذکر کړې دې ګنی د (حجر الیمامة) مناسبت ماقبل کښې مذکور شپږو الفاظو نه یو سره هم نه دې.(۴)

**[۳۱۹۷]- حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَمْعَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَذَكَرَ الَّذِي عَقَرَ النَّاقَةَ، قَالَ: «انْتَدَبَ لَهَا رَجُلٌ ذُو عِزٍّ وَمَنَعَةٍ فِي قَوْمِهِ كَأَبِي زَمْعَةَ» [ص ۳۷۵] [۴۶۵۸، ۴۹۰۸، ۵۶۹۵](۵)**

## تراجم رجال

**الحمیدي**: دا ابوبکر عبدالله بن زبیر بن عیسی قرشی حمیدی رحمه الله دې. د دوی تذکره (کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا او اخبرنا او انبانا) لاندې تیره شوې ده.(۶)

**سفیان**: دا ابوعمران سفیان بن عیینه کوفی رحمه الله دې. د دوی تذکره هم د مذکوره کتاب او باب لاندې تیره شوې ده.(۷)

---

(۱) عمدة القاری: ۳۷۶/۱۵ فتح الباری: ۴۶۷/۸.

(۲) لامع الدراری: ۳۱۵/۱۳.

(۳) عمدة القاری: ۳۷۶/۱۵.

(۴) فتح الباری: ۴۶۷/۸ عمدة القاری: ۳۷۶/۱۵.

(۵) أخرجه أيضاً في التفسير في سورة الشمس برقم: ۴۹۴۲ وفي كتاب النكاح باب ما يكره من ضرب النساء برقم: ۵۲۰۴ وفي كتاب الأدب باب قول الله تعالى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ﴾ برقم: ۶۰۴۲ ومسلم في الجنة وصفة نعيمها برقم: ۲۸۵۵ والترمذي في التفسير باب ومن سورة الشمس برقم: ۳۳۴۰.

(۶) كشف الباری: ۹۹/۳.

(۷) كشف الباری: ۱۰۲/۳.

**هشام بن عروة:** دا هشام بن عروه بن زبیر بن العوام اسدی مدنی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب أحب الدین إلی الله أدومه) لاندې تیره شوې ده.[1]

**ابیه:** دَ هشام والد عروه بن زبیر بن العوام بن خویلد قرشی رحمه الله مراد دي. دَدوی تذکره هم دَمذکوره کتاب او باب لاندې تیره شوې ده. [2]

**عبدالله بن زمعة رضي الله عنه:** دَدوی تذکره (کتاب فرض الخمس، باب برکة الغازي في ماله) لاندې تیره شوې ده.[3]

دَعبدالله بن زمعه رضي الله عنه نه روایت شوې صحیح بخاری کښې صرف هم دغه یو حدیث الباب دي. [4]

**ناقهٔ صالح علیه السلام دَ قاتل تذکره:** عبدالله بن زمعه رضي الله عنه وائی چه ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی چه حضورپاك دَهغه سړی ذکر اوکړو چاچه دَحضرت صالح علیه السلام اوښه وژلې وه. حضورپاك اوفرمائیل یودَعزت والا زور آور اودَ طاقت والاسړی دَهغې دَ وژلو ذمه واخستله څرنګه چه ابوزمعه (دَ راوی نیکه اسودبن مطلب) دي. ابوزمعه اسود بن مطلب دَ قریشو دَ سردارانونه وو اودکفر په حالت کښې مړشوې. مطلب دا چه قدار (دَحضرت صالح علیه السلام اوښه هلاکونکې) ته په قوم داسې قوت اوعزت حاصل وو چه په نن دور کښې ابوزمعه ته حاصل دې.

دَحضرت صالح علیه السلام نه خپل قوم مطالبه کړې وه چه که ته چرته مونږ ته څه علامت اوښایئې نو مونږ به ستا په نبوت باندې یقین کولو سره ایمان راوړو. حضرت صالح علیه السلام اوفرمائیل تاسو څه علامت لیدل غواړئ؟ هغوی اووئیل دَ مخامخ غر یا کانړی نه یوه داسې اوښه راښکاره کړه چه حامله وی او هم په هغه ساعت بچې راوړی. حضرت صالح علیه السلام دعا اوکړه او هم په هغه وخت دکانړی نه حامله اوښه راښکاره شوه او هغې بچې هم راوړو.

دَدې عجیبه اوحیرانونکې معجزې په لیدو سره بعض سردارانو دَقبیلې ایمان راوړو. څه نورو خلقو هم ایمان راوړل غوښتل لیکن دَ قبیلې متعصب کسانو هغوی دَ اسلام راوړلو نه منع کړل. حضرت صالح علیه السلام هغوی له خبرداری ورکړو که چرې ناقه ته دَ تکلیف ورکولو کوشش اوکړې شو نودا کار ستاسو دَهلاکت سبب جوړیدې شی اودَ الله تعالی دَ طرف نه دا فیصله شوې ده چه دَ اوبو دَپاره نمبر مقررکړې شی. لهذا یوه ورځ به ناقه یعنی اوښه اوبه څکی او یوه ورځ دَ قوم خلق او څاروی.

څه مودې پورې خودغه دستور روان وولیکن آخر دغه اوښه دَ هغوی دَپاره ناقابل برداشت شوه نوهغوی دَدې دَ قتل کولو منصوبه جوړه کړه چه راتلونکی وخت کښې دَ اوبو دَ انتظار دَتکلیف نه به نجات راشی. خو دَ اوښې دَ قتل کولو دَ دغه خطرناك اقدام اوچتولو په چا کښې جراءت نه وو. آخر قدار بن سالف دَ قوم دَ ترغیب په نتیجه کښې په دې قدم اوچتولو باندې تیار شو اوهغه ناقه قتل کړه. علامه سهیلی رحمه الله فرمائی دا سړی ولدالزنا وو او په نحوست کښې دَهغه کار دَ ضرب المثل حیثیت لرلو.[5]

**انتدب:** په یو کار باندې آماده او تیاریدل. **مَنَعَة:** دَمیم نون عین فتحه سره طاقت اوعزت. في مَنَعة هغه ته طاقت اوعزت حاصل دی.[6]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره دَ روایت مناسبت واضح دې څکه چه روایت کښې دَ صالح علیه السلام دَ اوښې تذکره ده.[1]

---

[1]) کشف الباري: ۴۳۲/۲.

[2]) کشف الباري: ۴۳۶/۲.

[3]) کشف الباري: ۳۷۸/۱۵.

[4]) فتح الباري: ۴۶۸/۸، عمدة القاري: ۳۷۷/۱۵.

[5]) عمدةالقاري: ۳۸۷/۱۵.

[6]) النهاية لابن الأثير: ۶۸۳/۲، ۷۲۴ دار المعرفة.

[۳۱۹۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِينٍ أَبُو الْحَسَنِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ بْنِ حَيَّانَ أَبُو زَكَرِيَّاءَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، «لَمَّا نَزَلَ الْحِجْرَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، أَمَرَهُمْ أَنْ لَا يَشْرَبُوا مِنْ بِئْرِهَا، وَلَا يَسْتَقُوا مِنْهَا»، فَقَالُوا: قَدْ عَجَنَّا مِنْهَا وَاسْتَقَيْنَا، «فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَطْرَحُوا ذَلِكَ الْعَجِينَ، وَيُهَرِيقُوا ذَلِكَ الْمَاءَ»، وَيُرْوَى عَنْ سَبْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ، وَأَبِي الشُّمُوسِ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ بِإِلْقَاءِ الطَّعَامِ، وَقَالَ أَبُو ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنِ اعْتَجَنَ بِمَائِهِ» [ر ۳۲۰۱ ص ۳۷۸][۲](۱).

## تراجم رجال

**محمدبن مسکین:** دا ابوالحسن محمدبن المسکین یمانی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (أبواب الأذان خروج النساء إلى المساجد) لاندې تیره شوې ده.

**یحیی بن حسان:** دایحیی بن حسان بن حیان البکری، ابوزکریا التنیسی المصری رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الجنائز باب قول النبي صلی الله علیه وسلم الخ) لاندې تیره شوې ده.

**سلیمان:** دا سلیمان بن هلال قرشی تمیمی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب طرح الإمام المسئلة علی أصحابه ليختبر ما عندهم من العلم) لاندې تیره شوې ده.(۳)

**عبدالله بن دینار:** دا ابوعبدالرحمن عبدالله بن دینار قرشی عدوی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا أو أنبأنا) لاندې تیره شوې ده.(۴)

**افت وهلې علاقو ته دَ تللو ممانعت:** حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم په غزه تبوک کښې حجر یعنی دَ ثمود وادئی کښې راکوز شو نوحضورپاک خلقو ته حکم ورکړو دَدې ځائی دکوهی نه اوبه مه څکئی او مه ئې په مشکونوکښې اچوئی. خلقو ونیل (قد عجنا منها واستقینا) مونږ خودَې په اوبو سره اوړه واغښل او مشکونه مو ترې ډک کړل. حضورپاک حکم اوکړو دغه اوړه اوغورځوئی او مشکونه واړوئی. په دې مقام باندې عذاب راغلی وو. دَ اوبو په استعمال سره دَهغوی په زړونو کښې قساوت اوسختنې پیدا کیدو یا دَ څه بدنی بیمارئی پیدا کیدو اندیښنه وه په دې وجه حضورپاک دَ هغې دَ څکلو نه منع اوفرمائیله(۵).

وَيُرْوَى عَنْ سَبْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ وَأَبِي الشُّمُوسِ: أَنَّ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم أَمَرَ بِإِلْقَاءِ الطَّعَامِ، وَقَالَ أَبُو ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم: (مَنِ اعْتَجَنَ بِمَائِهِ): مطلب دادې چه دغه اوبو سره چه کوم خوارک جوړشوې وو رسول الله صلی الله علیه وسلم دَهغې دَ غورځولو حکم ورکړو.

**دَتعلیق تخریج:** دَ سمرة بن معبد روایت امام احمد رحمه الله او طبرانی رحمه الله موصولاً نقل کړې دې. امام طبری رحمه الله دا روایت عبدالعزیز بن ربیع بن سبرة عن ابیه عن جده په طریق سره موصولاً نقل کړې دې. دَ روایت الفاظ دادی: (أن

---

(۱) عمدة القاری: ۳۷۷/۱۵.

(۲) أخرجه الإمام البخاری بعدالحدیث المذکور تحت رقم الحدیث: ۳۳۷۹أیضاً. وأخرجه الإمام مسلم فی صحیحه فی الزهد باب لاتدخلوا مساکن الذین ظلموا أنفسهم رقم الحدیث: ۲۹۸۱وجامع الأصول فی أحادیث الرسول: ۵۱۲/٤رقم الحدیث: ۲۶۱۲.

(۳) کشف الباری: ۱۳۷/۳.

(٤) کشف الباری: ۱۲۵/۳.

(۵) عمدة القاری: ۳۷۹/۱۵.

النبی صلی الله علیه وسلم قال لأصحابه حین نزل الحجر: من اعتجن من هذه -یعنی: بئرهم- شیئا فلیلقه، فألقی ذوالعجین عجینه، وصاحب الحیس حیسه» (۱)

اوڈ ابوشموس روایت امام بخاری رحمه الله الأدب المفرد کښې او طبرانی وابن منده ډ سلیم بن مطیر عن ابیه په طریق سره موصولاً روایت کړې دې (۲)

وَقَالَ أَبُوذَرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم: مَنِ اعْتَجَنَ بِمَائِهِ: مطلب دا چه رسول الله ﷺ حکم ورکړو چه کوم سړی ډدې خانی په اوبو سره اوړه اغږلي وی هغه دې اوغورزوی. تقدیر عبارت دادې: «أنه أمر من اعتجن عائه أن یلقیه» (۳)

**ډتعلیق تخریج:** بزار رحمه الله دا تعلیق موصولاً نقل کړې دې په دې کښې دی: «أنهم کانوا مع النبی صلی الله علیه وسلم فی غزوة تبوك، فأتوا علی واد، فقال لهم النبی صلی الله علیه وسلم: إنکم بواد ملعون فأسرعوا، وقال: من أعتجن عجینه أو من کان طبخ قدرا فلیکبها» (۴)

یعنی تاسو په داسې کلی کښې یئی چرته چه ډ الله تعالی عذاب نازل شوې. لهذا ډدې خانی نه زر اوځئی اوونئی فرمانیل چا چه ډدې خانی په اوبو سره اوړه اغږلي وی یا ترکاری پخه کړې وی نو هغه دې واړوی.

**ډتعلیقات مقصد:** ډامام بخاری رحمه الله مقصد په ذکر کړې شوی تعلیقاتو کښې هم هغه دې کوم چه ډ ترجمة الباب په ذیل کښې بیان کړې شوې دې چه ډبخاری رحمه الله مقصد ډ صالح علیه السلام ډ قوم اصحاب الحجر حالات اوډهغوی ډ قوم ډ نافرمانئی اوناشکرئی په وجه سره په عذاب کیدل بیانول دی.

**ډتعلیقات ترجمة الباب سره مناسبت:** ډذکر کړې شوی تعلیقاتو ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې چه په دې ټولو کښې ډاصحاب الحجر حالات ذکر دی.

[۳۱۹۹]-حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ، حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَخْبَرَهُ أَنَّ النَّاسَ نَزَلُوا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْضَ ثَمُودَ، الحِجْرَ، فَاسْتَقَوْا مِنْ بِئْرِهَا، وَاعْتَجَنُوا بِهِ، فَأَمَرَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «أَنْ يُهَرِيقُوا مَا اسْتَقَوْا مِنْ بِئْرِهَا، وَأَنْ يَعْلِفُوا الإِبِلَ العَجِينَ، وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَسْتَقُوا مِنَ البِئْرِ الَّتِي كَانَتْ تَرِدُهَا النَّاقَةُ» تَابَعَهُ أُسَامَةُ، عَنْ نَافِعٍ [ص ۳۸۱] (۵)

## تراجم رجال

**ابراهیم بن منذر:** دا ابراهیم بن منذر بن عبدالله بن منذر بن مغیره بن عبدالله اسدی رحمه الله دې. ډدوی تذکره (کتاب العلم، باب من سئل علما وهو مشتغل فی حدیثه) لاندې تیره شوې ده. (۶)

**انس بن عیاض:** دا انس بن عیاض لیثی رحمه الله دې. ډدوی تذکره (کتاب الوضوء، باب التبرز فی البیوت) لاندې تیره شوې ده. (۱)

---

(۱) المعجم الکبیر للطبرانی: ۱۳۶/۷ رقم الحدیث: ۶۵۵۱، ۶۵۵۲ مکتبة ابن تیمیة.

(۲) عمدة القاری: ۲۷۹/۱۵ المعجم الکبیر للطبرانی: ۳۲۹/۲۲-۳۲۸ من یکنی أبا الشموس أو الشموس البلوی رقم: ۸۲۶ مکتبة ابن تیمیة.

(۳) إرشاد الساری: ۳۱٤/۷.

(۴) مُسند البزار: ۳۸۵/۹ رقم الحدیث: ۳۹۷۱.

(۵) مرتخریجه تحت الحدیث السابق.

(۶) کشف الباری: ۵۸/۳.

**عبيدالله:** دا عبدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب العمري رحمه الله دي. دَدوي تذكره هم (كتاب الوضوء باب التبرز في البيوت) لاندې تيره شوې ده.[2]

**نافع:** دا حضرت نافع العدوي ابوعبدالله المدني مولى ابن عمر رحمه الله دي. دَدوي تذكره (كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا في المسجد) لاندې تيره شوې ده.[3]

دَحضرت عمر رضي الله عنه سابقه حديث امام بخاري رحمه الله دلته په دوو طرق سره نقل كړې دې. په هغې كښې دي غزوه تبوك كښې خلق رسول الله ﷺ سره په مقام حجر كښې كوز شو. دَهغه خائې دَ كوهې نه ئې مشكونه ډك كړل، اوړه ئې پرې واغړل نو رسول الله ﷺ حكم وركړو اوبه اوبهيونئ او (كوم) اوړه (چه په دې اوبو سره اُغړلې شوي وو) په اوښانو باندې اوخورنئ. حضورپاك اوفرمائيل چه دَهغه كوهې نه اوبه واخلئ دكوم نه (چه دَصالح عليه السلام) اوښې اوبه څكلې. لفظ حجر دلته په ثمود سره دَ بدل واقع كيدو په وجه باندې منصوب دې.[4]

سابقه حديث كښې "طرح" يعني دَ اوړو غورزولو حكم و او په دې روايت كښې اوړه په اوښانو باندې د خوړلو حكم وركړې شوې دې. په دواړو كښې هيڅ تضاد نشته دې. په اولنې روايت كښې دَ "طرح" نه مراد نه خوړل دي يا دَ طرح نه مراد دا وو چه دا پخپله مه خورئ دَ خاروو دَ گيا په توگه دې استعمال كړې شي.[5]

**قوله: تَابَعَهُ أُسَامَةُ، عَنْ نَافِعٍ:** مطلب دا چه اسامه دَ عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما په طريق سره دَعبيدالله متابعت كړې دې چه رسول الله ﷺ خلقو ته حكم وركړو چه دَهغه كوهې نه اوبه اوڅكئ دكوم نه چه دَحضرت صالح عليه السلام اوښې اوبه څكلې. حرمة بن يحيى التجيبي دَعن عبدالله بن وهب عن اسامه بن زيد په طريق سره دا متابعت موصولاً نقل كړې دې. دَدې په آخر كښې دي (فأمرهم أن ينزلوا على بئر ناقة صالح عليه السلام فيستقوا منها).[6]

[۳۲۰۰]-حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا مَرَّ بِالحِجْرِ قَالَ: «لاَ تَدْخُلُوا مَسَاكِنَ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ إِلَّا أَنْ تَكُونُوا بَاكِينَ، أَنْ يُصِيبَكُمْ مَا أَصَابَهُمْ» ثُمَّ تَقَنَّعَ بِرِدَائِهِ وَهُوَ عَلَى الرَّحْلِ "[ص ۳۸۲][7]

**ترجمه:** دَ حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي دَظالمانو او گناهگارانو كورونو او كلو كښې مه داخليږئ مگر په ژړا سره، داسې نه وي چه كوم عذاب په هغوى باندې راغلې وو په تاسو باندې هم راشي. بيا حضورپاك هم په كجاوه كښې خپل مخ په څادر باندې پټ كړو.

## تراجم رجال

**محمد:** دا مشهور محدث ابوالحسن محمد بن مقاتل المروزي الكسائي رحمه الله دي. دَدوي تذكره (كتاب العلم باب ما

---

[1] كشف الباري: ۳۵۷/۵.
[2] كشف الباري: ۳۶۰/۵.
[3] كشف الباري: ۶۵۱/۴.
[4] عمدة القاري: ۳۷۹/۱۵.
[5] عمدة القاري: ۳۷۹/۱۵.
[6] عمدة القاري: ۳۸۰/۱۵.
[7] مرتخريجه في كتاب الصلاة باب الصلاة في مواضع الخسف والعذاب رقم الحديث: ۴۳۳.

یذکر فی المناولة الخ، لاندې تیره شوې ده.[1]

عبدالله: دامشهور محدث عبدالله بن المبارک رحمه الله دې. دَدوی حالات «بدءالوحی» پنځم حدیث لاندې تیرشوی دی [2]

معمر: دا مشهور محدث معمر بن راشد ازدی بصری رحمه الله دې. دَدوی تذکره اجمالاً «بدءالوحی» دریم حدیث او تفصیلی تذکره «کتاب العلم باب کتابة العلم لاندې تیره شوې ده.[3]

زهری: دا مشهور محدث ابوبکر محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې. دَدوی حالات «بدءالوحی» دریم حدیث لاندې تیر شوی دی. [4]

سالم بن عبدالله: دا مشهور محدث جیل القدر تابعی ابوعمر یا ابوعبدالله سالم بن عبدالله بن عمر بن الخطاب رحمه الله دې. «کتاب الایمان باب الحیاء من الایمان» لاندې دَدوی تذکره تیره شوې ده.[5]

عن ابیه: عبدالله بن عمر بن الخطاب رضی الله عنه تذکره «کتاب الایمان باب الایمان وقوله صلی الله علیه وسلم: بنی الاسلام علی خمس» لاندې تیره شوې ده.[6]

**دَحدیث نه مستنبط فوائد:** دَپورته ذکر شوی احادیث لاندې شراح حدیث فرمانیلی دی چه قوم ثمود او په کومو نورو قومونو باندې چه دَهغوی دکفر او بدعملئ دَوجې نه دَالله تعالی عذابونه نازل شوی دَهغوی دَ کورخو او کوهیانو او چینونه اوبه څکل مکروه دی. خو په دې کراهت کښې اختلاف دې. بعض حضراتو دې ته تحریم او بعض تزیهیه باندې محمول کړی دی. که په تحریم باندې محمول وی نو بیا خو سوال دادې چه په دې اوبو سره به طهارت حاصلیږی؟ علامه عینی رحمه الله فرمائی په ظاهره معلومیږی چه طهارت به حاصل شی.[7]

[۳۲۰۱]-حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا وَهْبٌ، حَدَّثَنَا أَبِي، سَمِعْتُ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لاَ تَدْخُلُوا مَسَاكِنَ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ، إِلَّا أَنْ تَكُونُوا بَاكِينَ، أَنْ يُصِيبَكُمْ مِثْلُ مَا أَصَابَهُمْ» [ص ۳۸۴][ر: ۴۲۳][8]

**ترجمه:** حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل دَ ظالمانو (بدکارانو ګناهګارانو) کلوته مه ځئی مګر په ژړا سره (استغفارکولو سره) داسې نه وی چه کوم عذاب په هغوی باندې راغلې وو هغه په تاسو باندې هم راشی.

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا مشهور محدث عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله دې.[9]

---

[1] کشف الباری: ۲۰۶/۳.
[2] کشف الباری: ۴۶۲/۱.
[3] کشف الباری: ۲۰۶/۳.
[4] کشف الباری: ۳۲۶/۲.
[5] کشف الباری: ۱۲۸/۲.
[6] کشف الباری: ۶۳۷/۱.
[7] عمدة القاری: ۳۸۰/۱۵.
[8] مرتخریجه تحت کتاب الصلاة باب الصلاة فی مواضع الخسف والعذاب رقم الحدیث: ۴۳۳.
[9] کشف الباری: ۶۵۷/۱

**وهب**: ذا وهب بن جریر حازم ازدي رحمه الله دي. دَدوی حالات (کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء من المخرجین) لاندې تیر شوی دی

**جریر**: داجریر بن حازم بن زید ازدي رحمه الله دي دَدوی حالات (کتاب الصلاة باب الفرخة والممر فی المسجد) لاندې تیر شوی دی

**یونس**: دا مشهور محمدث یونس بن یزید ایلی رحمه الله دي. [1]

**الزهري**: دا مشهور محدث محمدبن مسلم بن عبید الله بن عبد الله بن شهاب زهری رحمه الله دي. [2]

**سالم**: دا مشهور محدث جلیل القدر تابعی ابوعمر یا ابوعبد الله بن سالم بن عبد الله بن عمر بن الخطاب رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب الحیاء من الایمان) لاندې وراندې تیره شوې ده. [3]

**ابن عمر**: عبد الله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما تذکره (کتاب الایمان باب الایمان وقوله صلی الله علیه وسلم: بنی الاسلام علی خمس) لاندې وراندې تیره شوې ده. [4]

**شرح حدیث**: دَدې حدیث توضیح او تشریح دَسابقه حدیث لاندې تیر شوی دی.

## ۲۰ – باب: ﴿أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ﴾ /البقرة: ۱۳۳/.

**دَ ترجمة الباب مقصد دَ ترجمه دَ تکرار وجه**: علامه عینی رحمه الله فرمائی چه مذکوره ترجمة الباب دَ دربو ابواب نه وړاندې هم تیرشوې دې اوهم دَدې تکرار ترجمه دَ وجې په ډیرو نسخوکښې دا ترجمة الباب موجود نه دی.[5] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه صحیح دادی چه حدیث الباب دَ راتلونکی باب دَحدیث تابع دې اودَدې تعلق هم دَحضرت یوسف علیه السلام قصې سره دې.[6]

دلته اشکال دا پیداکیږی چه کله درې ابواب وړاندې بعینه هم دغه ترجمه تیره شوې ده نودَ دوباره ذکر کولوځه وجه ده حالانکه په ظاهر په دواړو تراجم کښې څه فرق نشته دې؟

حضرت شیخ الحدیث رحمه الله دَدې جواب ورکړې دې چه دَدې نه وړاندې ترجمې نه دَحضرت یعقوب علیه السلام تذکره کول مقصود وو. خودلته صرف دَحضرت یوسف علیه السلام اودهغه دنسب تذکره کول مقصود دی. دغه شان دا جواب هم ورکولې شی چه دې نه اول دَحضرت ابراهیم علیه السلام او حضرت اسحاق علیه السلام ملت بیانول مقصود وو او اوس دلته دَحضرت یوسف علیه السلام نسب بیانول دی.[7]

[۳۲۰۲]- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: «الْكَرِيمُ ابْنُ الْكَرِيمِ، ابْنِ الْكَرِيمِ، ابْنِ الْكَرِيمِ يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ

---

[1] کشف الباری: ۴۶۳/۱، ۲۸۲/۳.

[2] کشف الباری: ۳۲۶/۱.

[3] کشف الباری: ۱۲۸/۲.

[4] کشف الباری: ۶۳۷/۱

[5] عمدة القاری: ۳۸۱/۱۵.

[6] فتح الباری: ۵۱۵/۸.

[7] الکنز المتواری: ۳۱۱/۱۳.

إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ» [ص ۳۸۶][۳۲۱۰، ۴۴۱۱] [1]

## تراجم رجال

**اسحاق بن منصور:** دا ابويعقوب اسحاق بن منصور رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب حسن إسلام المرء» لاندې تيره شوې ده. [2]

**عبدالصمد:** دا عبدالصمد بن عبدالوارث بن سعيد بن ذكوان تميمى بصرى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب العلم باب من أعاد الحديث ثلاثا» لاندې تيره شوې ده. [3]

**عبدالرحمن بن عبدالله:** دا عبدالرحمن بن عبدالله بن دينار عدوى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الوضوء باب إذا شرب الكلب فى إناء أحدكم الخ» لاندې تيره شوې ده.

**عبدالله بن دينار:** دا ابوعبدالرحمن بن دينار قرشى عدوى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب أمور الايمان» لاندې اجمالاً او «كتاب العلم باب قول المحدث، الخ» لاندې تفصيلاً تيره شوې ده. [4]

**ابن عمر:** دَحضرَت عمر بن الخطاب رضي الله عنه خوئى حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دي. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب الايمان وقوله صلى الله عليه وسلم: بنى الإسلام على خمس» لاندې تيره شوې ده. [5]

### شرح حديث

علامه عينى رحمه الله فرمائى دَ نبى كريم ﷺ مبارك كلمات «الكريم ابن الكريم ابن الكريم ابن الكريم يوسف بن يعقوب بن إسحاق بن إبراهيم عليهم الصلاة والسلام» دَ الله تعالى ارشاد ﴿وَمَا عَلَّمْنَاهُ الشِّعْرَ﴾ منافى او متضاد نه دى څكه چه دَحضور پاك دَ كلمات مباركه صدور بالقصد والاراده نه دى بلكه داسې اتفاقى دى اودا جواب هم وركولې شى چه دَ آيت مقصد دَ شعر جوړولو نفى كوى. يعنى چه مونږ تاته دَ شعر فن نه دې خودلې دې. [6]

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث باب او ترجمة الباب كښې مناسبت داسې دې چه حضرت يوسف عليه السلام هم په وصيت دَ يعقوب عليه السلام كښې داخل دې. [7]

## ۲۱-باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى ﴿لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ﴾ [8]

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله دَ مذكوره آيت تفسير كول غواړى او مقصد ئى دا خودل دى چه دَ يوسف عليه السلام حالات او په سوانح كښې دَ غور كونكو دَپاره دَ صبر عبرت او دَ نصيحت نشانې دى. [1]

---

[1] أخرجه البخارى فى نفس الكتاب عقيب الباب المذكور فى باب قول الله تعالى ﴿لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ﴾ يوسف:۷ أيضاً وكذا فى كتاب التفسير باب قوله تعالى: ﴿وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَعَلَى آلِ يَعْقُوبَ﴾ [يوسف: ۶] وجامع الأصول فى أحاديث الرسول: ۸/۵۱۳ رقم الحديث ۶۳۰۷

[2] كشف البارى: ۲/۴۲۰.

[3] كشف البارى: ۳/۵۷۷.

[4] كشف البارى: ۱/۶۵۸، ۳/۱۲۵.

[5] كشف البارى: ۱/۶۳۷

[6] كشف البارى: ۱۵/۳۸۱.

[7] عمدة القارى: ۱۵/۳۸۱.

[8] /يوسف: ۷/.

**دَ لفظ يوسف تحقيق:** په لفظ دَ يوسف كښې اختلاف دے. دَ بعض په نيز دَعربى ژبې لفظ دے او بعض وئيلى دى چه دا دَعجمى ژبې لفظ دے او په دے وجه غير منصرف دے. (۲) يا دَ أسف نه ماخوذ دے يعنى غلام. چونكه دَ يوسف عليه السلام په سيرت كښې دا دواړه صفات ښكاره وو په دے وجه دهغوى نوم يوسف شو. (۳) دَ حضرت مقاتل رحمه الله نه روايت دے چه الله تعالى دَ يوسف عليه السلام تذكره قرآن كريم كښې ۲۷ځل فرمائيلې ده. (۴)

[۳۲۰۳]- حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أَبِي أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَكْرَمُ النَّاسِ؟ قَالَ: «أَتْقَاهُمْ لِلَّهِ» قَالُوا: لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ، قَالَ: «فَأَكْرَمُ النَّاسِ يُوسُفُ نَبِيُّ اللَّهِ، ابْنُ نَبِيِّ اللَّهِ، ابْنِ نَبِيِّ اللَّهِ، ابْنِ خَلِيلِ اللَّهِ» قَالُوا: لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ، قَالَ: «فَعَنْ مَعَادِنِ العَرَبِ تَسْأَلُونِي؟ النَّاسُ مَعَادِنُ، خِيَارُهُمْ فِي الجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الإِسْلاَمِ، إِذَا فَقُهُوا»، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلاَمٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا [ص ۳۸۸-۳۸۹] (۵)

**ترجمه:** حضرت ابوهريره رضى الله عنه وائى چه دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه اوكړې شوه چه په خلقو كښې (دَاعمالو په لحاظ سره) دَ ټولو نه زيات دَ مرتبې والاخوك دے؟ حضورپاك اوفرمائيل چه څوك زيات پرهيزګار وى. ؟ خلقو عرض اوكړو چه مونږ دا تپوس نه كوو. حضورپاك اوفرمائيل (كه چرې دَ خاندانى شرافت باره كښې تپوس كوئى) نو يوسف دَ ټولو نه افضل دے چه پخپله هم نبى وو پلارئى هم نبى، نيكه ئى هم نبى او غرنيكه ئى هم دَ الله تعالى خليل دے. هغوى وئيل چه مونږ دَدے باره كښې هم تپوس نه كوو. رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل (فعن معادن العرب تسألون؟) نوبيا ولې تاسو دَعربو دَخاندان باره كښې تپوس كوئى (چه په دوى كښې څوك افضل دے؟) نو په دوى كښې چه څوك دَ جاهليت په زمانه كښې شريف وو هغه په اسلام كښې هم شريف دے په دے شرط چه هغه علم او تفقه حاصله كړى.

**شرح حديث**

په دے روايت كښې اوفرمائيلې شو چه دَخلقو مثال دَمعادن او كان په شان دے. كوم خلق چه په دوى كښې دَ جاهليت په دوركښې شريف وو هغه به په اسلام كښې هم بهتر وى په دے شرط چه هغه په دين كښې پوهه حاصله كړى. كانونه دَ مختلف استعداد وى او په دے كښې مختلف څيزونه پيدا كيږى. دَ يو كان نه سره زر راوځى او دَ بل نه سپين زر راوځى، دَ يو نه مرغلرې او دَ بل نه قيمتى كانړى جواهرات راوځى. دغه شان دَ خلقو استعداد هم مختلف وى او په هغوى كښې چه كوم صلاحيتونه وى هغه هم دَ مختلف قسمونو وى. بيا په حديث كښې اوفرمائيلې شو چه څوك دَ جاهليت په زمانه كښې خيار وو هغه په اسلام كښې هم خيار او خوښ كړے شوى به وى په دے شرط چه په دين كښې پوهه حاصله كړى. (۶) هم دغه وجه ده چه كوم خلق د جاهليت په زمانه كښې شريف

---

(۱) عمدة القارى: ۳۸۲/۱۵.

(۲) عمدة القارى: ۳۸۲/۱۵.

(۳) عمدة القارى: ۳۸۲/۱۵.

(۴) عمدة القارى: ۳۸۲/۱۵.

(۵) مر تخريجه فى نفس الكتاب فى باب قول الله تعالى: ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾.

(۶) فتح البارى: ۴۱۴/۶ دارالمعرفة عمدة القارى: ۲۴۵/۱۵ إدارة الطباعة المنيرية.

گڼرلې شوه هغه په اسلام کښې شاته پاتې شو نو هغوی په اسلام کښې شریف اونه گڼرلې شو. چنانچه جهینه او مزینه قبائل دَ جاهلیت په زمانه کښې به غلاگانې او داکې اچولې اودَ قبائل غطفان وغیره شمیر په شرفاء کښې کیدلو. مگر دَ جهینه اومزینه خلقو په اسلام قبلولو کښې وړاندیوالې اوکړو نو قبائل غطفان وغیره شاته پاتې شو. دَدې نتیجه دا اووتله چه دَ صحابه کرامو په جماعت کښې جهینه او مزینه خلقو تذکره زیاته کیدله او دَقبائل غطفان ذکر کم ملاویږی.[1]

حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ: أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ بِهَذَا. [ر: ۳۱۷۵]

دلته امام بخاری رحمه الله دَ ماقبل والاحدیث دویم سند ذکرکړې دې. په دې سند کښې سعید نوم یوراوی دې دا سعید بن ابی سعید المقبری رحمه الله دې. صاحب التوضیح دَهغوی باره کښې وئیلی دی (لعله المقبری) په دې جمله باندې دَ هغه دَ وخت بعض ملگرو سخت رد کړې دې ځکه چه دې نه بې دَځه شک نه هم سعید المقبری رحمه الله مراد دې. په دې وجه دَحرف ترجی سره اظهار شک دَتعجب قابل دې.[2]

[۳۲۰۴]-حَدَّثَنَا بَدَلُ بْنُ الْمُحَبَّرِ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهَا: «مُرِي أَبَا بَكْرٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ»، قَالَتْ: إِنَّهُ رَجُلٌ أَسِيفٌ، مَتَى يَقُمْ [ص: ۱۵۰] مَقَامَكَ رَقَّ. فَعَادَ فَعَادَتْ. قَالَ شُعْبَةُ فَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ «إِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوسُفَ مُرُوا أَبَا بَكْرٍ» [ص ۳۹۰][ر: ۱۹۵][3]

## تراجم رجال

**بدل:** دا بدل المحبر بن المنیر الیربوعی رحمه الله دې. دَده تذکره اول تیره شوې ده.[4]

**شعبه:** دَ ده تذکره (کتاب الایمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده) لاندې تیره شوې ده.[5]

**سعد بن ابراهیم:** داسعد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَ دوی تذکره اول تیره شوې ده.[6]

**عروة بن زبیر:** دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه) لاندې تیره شوې ده.[7]

**مُرِي ابابکر یصلي بالناس:** روایت کښې دی چه حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ته رسول الله ﷺ (مرض الوفات کښې) اوفرمائیل چه ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته اووایه چه خلقو ته مونځ ورکړی. حضرت عائشه رضی الله عنها عرض اوکړو هغه خو نرم زړه والا دې کله چه ستاسو په ځائې (په مصلی) باندې اودریږی نو په هغه باندې به ږج شروع شی. رسول الله ﷺ خپل حکم دوباره کړو نوحضرت عائشه رضی الله عنها بیا هم هغه خبره اوکړه (چه هغه خود نرم زړه والادې ستاسو په ځائې امامت کول به دَهغه دپاره گران کار شی). شعبه رحمه الله وائی چه حضورپاك په دریم ځل یا څلورم ځل

---

[1] فتح الباری کتاب المناقب باب ذکر أسلم وغفار إلخ: ۵۴۳/۶دارالمعرفة عمدة‌القاری کتاب المناقب باب ذکر أسلم وغفار إلخ: ۸۱/۱۶إرشادالساری کتاب المناقب باب ذکر أسلم وغفار إلخ: ۲۲/۸دارالکتب العلمیة.

[2] عمدة‌القاری: ۳۸۲/۱۵.

[3] مرتخریجه فی کتاب الوضوء باب الغسل والوضوء فی المخضب رقم: ۱۹۸.

[4] کتاب الأذان باب حد إتمام الرکوع والاستبدال فیه والاطمأنینة رقم: ۷۹۲.

[5] کشف الباری: ۶۷۸/۱

[6] کتاب الوضوء باب المسح علی الخفین رقم: ۲۰۳.

[7] کشف الباری: ۴۳۶/۲.

اوفرمائيل چه (إنكن صواحب يوسف) بيا خو ته د يوسف سره په شان د ښځو ئى (يعنى په ظاهر كښې يوځه او په باطن كښې بل څه ابوبكر ته اووايه چه هغه دې مونځ وركړى. دلته په روايت كښې د "مُروا" جمع صيغه راغلې ده خو د ابوذر رحمه الله په نسخه كښې "مُري" نقل دي.[1]

(إنكن صواحب يوسف) يعنى ته هم خلاف ما فى الضمير په اظهار كښې د زليخا په شان ئى. د دې جملې مطلب دا دې چه څنګه زليخا د ميلمستيا په نوم باندې ښځوته دعوت وركړو خو شاته د زليخا مقصد دغه ښځو ته د حضرت يوسف عليه السلام حسن او جمال خودل وو دې د پاره چه هغوى زليخا د يوسف عليه السلام په محبت كښې راګيرېدلو سره معذوره اوګنړى. هم دغه شان دلته د حضرت عائشه رضي الله عنها بار بار (متى يقم مقامك رق) فرمائيل په حقيقت كښې د دې د پاره وو چه چرته خلق ئى د پلار حضرت ابوبكر رضي الله عنه د حضورپاك په مقام باندې اودريدو سره بدفالى وانخلى مګر په ځانى د دې خبرې د اظهار كولو يوشان ئى هم دغه فرمائيل چه پلارمې د ير زيات د نرى زړه والا دې هغه به ستاسو په ځائى باندې اونه دريدې شى دې د پاره چه تاسو هغه معذور اوګنړئى.[2]

(متى يقم) متى په معنى د شرط دې د كوم د وجې نه چه فعل مضارع مجزوم دې. د ابوذر رحمه الله په نسخه كښې (متى يقوم) د واؤ په اثبات سره راغلې دې. ابن مالك رحمه الله د دې توجيه دا بيان كړې ده چه د دې روايت مطابق (متى) په (إذا) باندې حمل كولوسره مهمل پريخودې شوې دې. يعنى (متى) جازمه نه دې اودا هم داسې دې لكه چه كله (إذا) په (متى) باندې حمل كولو سره جازمه ګرځولې شى لكه (إذا أخذتما مضاجعكما تكبرا أربعا وأربعين) كښې (إذا) د (متى) په معنى كښې دې او جازمه دې.[3]

امام بخارى رحمه الله دلته روايت مختصر نقل كړې دې. په كتاب الأذان كښې دا روايت تيرشوې دې.[4]

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** د امام بخارى رحمه الله غرض په دې روايت سره (إنكن صواحب يوسف) دې. څكه چه په دې جمله كښې د حضرت يوسف عليه السلام تذكره ده اوهم په دې سره د دې حديث ترجمة الباب سره مناسبت هم واضح دې.[5]

[۳۲۰۵] حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ يَحْيَى الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: مَرِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: «مُرُوا أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ»، فَقَالَتْ عَائِشَةُ: إِنَّ أَبَا بَكْرٍ رَجُلٌ كَذَا، فَقَالَ مِثْلَهُ، فَقَالَتْ مِثْلَهُ، فَقَالَ: «مُرُوا أَبَا بَكْرٍ فَإِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوسُفَ»، فَأَمَّ أَبُو بَكْرٍ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ حُسَيْنٌ: عَنْ زَائِدَةَ: رَجُلٌ رَقِيقٌ [ص ۳۹۲] [ر: ۶۴۶][6]

د حسين نه حسين بن على جعفى مراد دې. هغه په خپل روايت كښې "رجل رقيق" نقل كړې دې.[7]

امام بخارى رحمه الله دا تعليق (كتاب الصلاة باب أهل العلم والفضل أحق بالإمامة) لاندې موصولاً نقل كړې دې.[1]

---

[1] إرشادالسارى: ۷/۲۱۹.

[2] إرشادالسارى: ۳۱۹-۳۱۸.

[3] إرشادالسارى: ۳۱۸.

[4] كتاب الأذان باب أهل العلم والفضل أحق بالإمامة رقم: ۶۷۸

[5] عمدة القارى: ۱۵/۳۸٤.

[6] مر تخريجه فى كتاب الأذان باب: أهل العلم والفضل أحق بالإمامة رقم: ۶۷۸

[7] عمدةالقارى: ۱۵/۳۸٤.

اختلاف نسخ: د ابوذر رحمه الله په نسخه کښې ربيع بن يحيى بغير د الف لام راغلې دی. خو د کريمه په نسخه کښې الف لام سره سره آخره کښې البصری هم اضافه ده او په يوه نسخه کښې په ځائې د ربيع بن يحيى البصری سند داسې دې (حدثنا النضر، حدثنا زائدة) چه ډيره فحش غلطي ده.[2]

## تراجم رجال

ربيع بن يحيى: دا ربيع بن يحيى اشناني بصری رحمه الله دی. د دوی تذکره اول تيره شوې ده.[3]

زائدة: دا ابو الصلت زائده بن قدامة کوفي رحمه الله دی. د دوی تذکره اول تيره شوې ده.[4]

عبدالمطلب بن عمير: دا عبدالمطلب بن سويد لخمی رحمه الله دی. د ده تذکره هم اول تيره شوې ده.[5]

دا د رومبی روايت دويم طريق دې او واقعه په دې کښې هم هغه بيان کړې شوې ده کومه چه په رومبی روايت کښې نقل ده. د حديث ترجمة الباب سره مناسبت د حديث سابق په شان دې.

[۳۲۰۶]-حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اللَّهُمَّ أَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ، اللَّهُمَّ أَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ، اللَّهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ، اللَّهُمَّ أَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ، اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ، اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ» [ص ۳۹۳-۳۹۴][ر: ۹۶۱][6]

## تراجم رجال

ابواليمان: دا ابو اليمان حکم بن نافع بهرانی حمصی رحمه الله دی.[7]

شعيب: دا ابوبشر شعيب بن مولی حمزه قرشی رحمه الله دی. د دوی تذکره (بدء الوحی) لاندې تيره شوې ده.[8]

ابوالزناد: دا عبدالله بن ذکوان مدنی قرشی رحمه الله دی.

اعرج: دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدنی قرشی رحمه الله دی. د دې دواړو حضراتو تذکره (کتاب الايمان باب حب الرسول صلی الله عليه وسلم من الايمان) لاندې تيره شوې ده.[9]

**قوله: اللهم أنج عياش.....:** د حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم دعا او کړه يا الله عياش بن ربيعه را خلاص کړې يا الله سلمه بن هشام را خلاص کړې يا الله وليد بن وليد را خلاص کړې (دا حضرات د

---

[1] إرشاد الساري: ۵۱۷/۸.

[2] فتح الباري: ۵۱۷/۸.

[3] کتاب الکسوف باب صلاة النساء مع الرجال فی الکسوف رقم: ۱۰۵۳.

[4] کتاب الغسل باب غسل المذی والوضوء منه رقم الحديث: ۲۶۶.

[5] کتاب الأذان باب: أهل العلم والفضل أحق بالإمامة رقم: ۶۷۸.

[6] مر تخريجه فی کتاب الاستسقاء تحت باب دعاء النبی صلی الله عليه وسلم (اجعلها سنين کسنی يوسف) رقم الحديث: ۱۰۰۶.

[7] کشف الباري: ۳۷۹/۱۰.

[8] کشف الباري: ۴۸۰/۱.

[9] کشف الباري: ۲/۱۱-۱۰.

كافرانو په قيد كښې وو) يا الله كمزورې مسلمانان راخلاص كړې (دې نه قيدى ښخې او ماشومان مراد دى). يا الله مضر كافران ښه ميده كړې يا الله دَهغوى كال داسې كړې لكه د يوسف عليه السلام په (زمانه كښې چه دَقحط) كال وو.

(كسنى يوسف) په دې جمله كښې "سنين" جمع مذكر سالم په طريقه باندې چلولوسره دَ اضافت په بنياد باندې دَدې نون جمع ساقط كړې شوې دې. لفظ سنين دَ جمع مذكر سالم په طريقه باندې چلول شاذ دى ځكه چه سنين غير ذوى العقول دې.([1])

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث باب كښې (كسنى يوسف) ترجمة الباب سره مطابقت لرى.([2])

دا روايت (كتاب الصلاة باب: يهوي بالتكبير حين يسجد) لاندې تير شوې دې.([3])

[٣٢٠٧]-حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ هُوَ ابْنُ أَخِي جُوَيْرِيَةَ، حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ أَسْمَاءَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ، وَأَبَا عُبَيْدٍ، أَخْبَرَاهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «يَرْحَمُ اللَّهُ لُوطًا لَقَدْ كَانَ يَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ، وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ مَا لَبِثَ يُوسُفُ، ثُمَّ أَتَانِي الدَّاعِي لَأَجَبْتُهُ» [ص ٣٩٥][ر: ٣١٩٢]([4])

**ترجمه:** حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى الله پاك دې په لوط عليه السلام باندې رحم اوكړى هغه دَ بهترين ركن پناه اخستل غوښتل اوزه خو كه چرې دَ يوسف عليه السلام په شان دومره موده په قيد كښې پاتې شوى وې او بيا څوك راغوښتونكي راغلي وې نو زر به هغه سره تلم.

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دَدوى تذكره ماقبل كښې تيره شوې ده.([5])

**جويرية بن اسماء:** دا جويريه بن اسماء بن عبيد ضبعى ده.([6])

**مالك:** امام مالك بن انس رحمه الله مراد دې. (كشف الباري: ٨٠/٢.

**سعيد بن المسيب:** دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب من قال: إن الإمان هو العمل) لاندې تيره شوې ده.([7])

**أبوعبيد:** دا سعد بن عبيد مدنى مولى عبدالرحمن بن ازهر رحمه الله دې.([8])

**شرح حديث**

امام محى السنة رحمه الله فرمائى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم حضرت يوسف دَ صبر اوتحمل غوندې عظيم اوصاف سره متصف كړې دې دكوم وجه چه داده چه كله يو ګناهګار سړى ته دَ قيد اوبند تكليفونه برداشت كولوسره دَ آزادئ پروانه ملاويږى نوهغه كوشش كوى چه زر نه زر هغه دَ دغه قيدنه بهراوځى نو يو بې ګناه سړې به يقينًا دَ دغه

---

[1]) إرشادالساري: ٣٢٠/٧.

[2]) عمدة القاري: ٣٨٤/١٥.

[3]) إرشادالساري: ٣٢٠/٧.

[4]) مر تخريجه فى كتاب أحاديث الأنبياء فى باب قوله تعالى: ﴿وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ﴾ رقم: ٣٣٧٢.

[5]) كتاب الجمعة باب فضل الغسل بعد الجمعة رقم: ٨٧٧.

[6]) كتاب الغسل باب الجنب يتوضأ ثم ينام رقم: ٢٨٠.

[7]) كشف الباري: ١٥٩/٢.

[8]) كتاب الصوم باب صوم يوم الفطر رقم: ١٩٩٠.

رومبی سری په نسبت ډیر زیات دَدې خبرې کوشش کوی چه هغه دَ دې قید نه بهر کړې شی. لیکن حضرت یوسف علیه السلام سره د بې گناه کیدو هم دَ آزادئی پروانه ملاویدونه پس تادی اونه کړه بلکه پیغام رسونکی ته نی اونیل لاړ شه اول دَ بادشاه نه دَهغه ښځو دَحال پوښتنه اوکړه نو راشه چا چه خپل لاسونه پرې کړې وو. دَحضرت یوسف علیه السلام مقصد په دې خبره باندې حجت قائمول وو چه بادشاه هغه دَ یوې اوږدې مودې پورې بې خایه په قید کښې ساتلوسره دَ ډیر ظلم او بې انصافئی سلوك کړې دې.

بل دَ نبی کریم ﷺ دَ حضرت یوسف علیه السلام په شان کښې دَتعریف جملې ارشاد کول علی سبیل التواضع وو داسې هیڅ کله نه وه چه که حضور پاك وې نو دَ تادئی مظاهره به نی کوله ځکه چه تواضع یو داسې وصف نه دې چه یو عظیم حقیر یا یو رفیع وضیع یا دیو صاحب حق، حق باطل کوی بلکه تواضع یو داسې محمود صفت دې دَ کوم په وجه چه انسان ته یو اضافی فضیلت شرافت او منزلت حاصلیږی.(۱)

په دې روایت کښې دَ حضرت یوسف علیه السلام مسجون کیدو طرف ته اشاره ده. یوځو ابواب وړاندې په دې روایت باندې تفصیلی بحث شوې دې. بل ترجمة الباب سره نی مناسبت ښکاره دې.

[۳۲۰۸]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ أُمَّ رُومَانَ، وَهِيَ أُمُّ عَائِشَةَ، عَمَّا قِيلَ فِيهَا مَا قِيلَ، قَالَتْ: بَيْنَمَا أَنَا مَعَ عَائِشَةَ جَالِسَتَانِ، إِذْ وَلَجَتْ عَلَيْنَا امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، وَهِيَ تَقُولُ: فَعَلَ اللَّهُ بِفُلَانٍ وَفَعَلَ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: لِمَ؟ قَالَتْ: إِنَّهُ نَمَى ذِكْرَ الْحَدِيثِ، فَقَالَتْ عَائِشَةُ: أَيُّ حَدِيثٍ؟ فَأَخْبَرَتْهَا. قَالَتْ: فَسَمِعَهُ أَبُو بَكْرٍ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتْ: نَعَمْ، فَخَرَّتْ مَغْشِيًّا عَلَيْهَا، فَمَا أَفَاقَتْ إِلَّا وَعَلَيْهَا حُمَّى بِنَافِضٍ، فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: «مَا لِهَذِهِ» قُلْتُ: حُمَّى أَخَذَتْهَا مِنْ أَجْلِ حَدِيثٍ تُحُدِّثَ بِهِ، فَقَعَدَتْ فَقَالَتْ: وَاللَّهِ لَئِنْ حَلَفْتُ لَا تُصَدِّقُونِي، وَلَئِنِ اعْتَذَرْتُ لَا تَعْذِرُونِي، فَمَثَلِي وَمَثَلُكُمْ كَمَثَلِ يَعْقُوبَ وَبَنِيهِ، فَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ، فَانْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ مَا أَنْزَلَ، فَأَخْبَرَهَا، فَقَالَتْ: بِحَمْدِ اللَّهِ لَا بِحَمْدِ أَحَدٍ [ص ۳۹۷] [ر: ۲۴۵۳](۲)

## تراجم رجال

**محمدبن سلام:** دامحمدبن سلام سُلمی بیکندی رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: أنا أعلمکم بالله) لاندې تیره شوې ده.(۳)

**ابن فضیل:** دامحمد بن فضیل بن غزوان ضبی کوفی رحمه الله دې. (۴)

**حصین:** دا حصین بن عبدالرحمن رحمه الله دې. (۵)

---

۱) إرشادالساری: ۳۰۷/۷-۳۰۶.

۲) والحدیث أخرجه البخاری أیضاً فی المغازی باب حدیث الإفک...... وفی تفسیر سورة یوسف باب: ﴿قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا﴾ وفی تفسیر سورة النور باب قول الله تعالی: ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ﴾ جامع الأصول: ۲۷۷/۲ رقم الحدیث: ۷۳۰.

۳) کشف الباری: ۹۲/۲.

۴) کشف الباری: ۳۱۸/۲.

۵) کتاب مواقیت الصلاة باب الأذان بعد ذهاب الوقت رقم: ۵۹۵.

**شقیق:** دا ابووائل شقیق بن سلمه رحمه الله دی. کشف الباري: ۲/۵۵۹.

**سألت أم رومان وهي أم عائشة.....:** مسروق وائي چه ما د ام رومان نه چه د حضرت عائشه رضي الله عنها مور وه د هغه بهتان د حال تپوس اوکړو کوم چه په حضرت عائشه رضي الله عنها پورې تړلې شوې وو. نو ام رومان اووئیل چه زه او عائشه رضي الله عنها ناست وو چه دې وخت کښې یوه انصاری ښځه راغله وئې وئیل چه الله تعالی دې فلانکې سړی (دې نه مسطح بن اثاثه مراد دې) غرق کړی اوغرق ئې کړو. ما وئیل ولې؟ (د هغه څه قصور دې) هغې اووئیل چه هم دې سړی (د خان نه خبره مشهوره کړه. عائشه رضي الله عنها تپوس اوکړو (أي حديث؟) کومه خبره؟ کله چه هغې هغه خبره اوخودله نو حضرت عائشه رضي الله عنها اووئیل دا خبره ابوبکر صدیق رضي الله عنه او رسول الله ﷺ هم اوریدلې ده؟ هغه ښځې وئیل او اوریدلې ده. دې اوریدو سره عائشه رضي الله عنها بې هوشه پریوتله. کله چه هوش کښې راغله نو د ړچیدو تبه نې وه. بیا رسول الله ﷺ تشریف راوړو. حضور پاك تپوس اوکړو دې (عائشه رضي الله عنها) باندې څه اوشو؟ ام رومان وائي ما اووئیل چه دې هغه خبره واوریده کومه چه د دې باره کښې وئیلې شوې ده نو تبه پرې راغله. بیا عائشه رضي الله عنها پاسیده او کیناسته او وئې ویل (والله لئن حلفت لا تصدقوني، ولئن اعتذرت لا تعذروني فمثلي ومثلكم كمثل يعقوب وبنيه، فالله المستعان على ما تصفون) په خدائی چه که زه قسم هم اوخورم نو تاسو به زما تصدیق اونه کړئی او که چرې زه عذر پیش کړم نو تاسو به زما عذر اونه منئی زما او ستاسو حالت د یعقوب علیه السلام او د هغه د خامنو په شان دې (په دې کښې د صبر طرف ته اشاره ده چه د صبر نه علاوه بل څه کیدې شی؟) ستاسو په دې خبرو باندې هم الله تعالی مددګار دې.

ام رومان وائی چه دا خبرې اترې اوریدونه پس رسول الله ﷺ تشریف یوړو. بیا الله تعالی د (حضرت عائشه رضي الله عنها په براءت کښې د سورت نور) کوم آیات چه نازلول غوښتل نازل ئې کړو. په دې موقع باندې حضرت عائشه رضي الله عنها اووئیل (بحمد الله لا بحمد أحد) د الله تعالی شکر دې بل د چا نه.

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** کتاب المغازی کښې د غزوة بنی المطلق لاندې دا روایت تفصیل سره راغلی. په دې روایت کښې حضرت عائشه رضي الله عنها د صبر تلقین کولو سره د حضرت یوسف علیه السلام سره د هغه د رونړو خراب سلوك او د حضرت یعقوب علیه السلام د صبر اوتحمل ذکر کړې دې. امام بخاري رحمه الله د روایت هم دې حصې ته اشاره کړې ده او هم دغه مقام یعنی (مثلي ومثلكم كمثل يعقوب وبنيه) ترجمة الباب سره مناسبت لري.[1]

**[۳۲۰۹]- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ: أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَرَأَيْتِ قَوْلَهُ: (حَتَّى إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا) أَوْ كُذِّبُوا؟ قَالَتْ: «بَلْ كَذَّبَهُمْ قَوْمُهُمْ» [ص:۱۵۱]، فَقُلْتُ: وَاللَّهِ لَقَدِ اسْتَيْقَنُوا أَنَّ قَوْمَهُمْ كَذَّبُوهُمْ، وَمَا هُوَ بِالظَّنِّ، فَقَالَتْ: «يَا عُرَيَّةُ لَقَدِ اسْتَيْقَنُوا بِذَلِكَ»، قُلْتُ: فَلَعَلَّهَا أَوْ كُذِبُوا، قَالَتْ: "مَعَاذَ اللَّهِ، لَمْ تَكُنِ الرُّسُلُ تَظُنُّ ذَلِكَ بِرَبِّهَا، وَأَمَّا هَذِهِ الآيَةُ، قَالَتْ: هُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ، الَّذِينَ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَصَدَّقُوهُمْ، وَطَالَ عَلَيْهِمُ البَلاَءُ، وَاسْتَأْخَرَ عَنْهُمُ النَّصْرُ، حَتَّى إِذَا اسْتَيْأَسَتْ مِمَّنْ كَذَّبَهُمْ مِنْ قَوْمِهِمْ، وَظَنُّوا أَنَّ أَتْبَاعَهُمْ**

---

(۱) عمدة القاري: ۱۵/۳۸٤.

كَذَّبُوهُمْ، جَاءَهُمْ نَصْرُ اللَّهِ "قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: " {اسْتَيْأَسُوا} [يوسف: ٨٠] اسْتَفْعَلُوا، مِنْ يَئِسْتُ مِنْهُ مِنْ يُوسُفَ، {لَا تَيْأَسُوا مِنْ رَوْحِ اللَّهِ} [يوسف: ٨٧] مَعْنَاهُ الرَّجَاءُ" [ص ۳۹۹] [۱]

ترجمه: د حضرت عروه رحمه الله نه روایت دې چه هغه د سیده عائشه رضي الله عنها نه سوال اوکړو چه د قرآن کریم آیت ﴿حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا﴾ کذبوا کښې ذال تشدید سره دې که تخفیف سره؟ حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل چه د حضرات انبیاء کرامو قومونو د هغوی تکذیب کړې دې لهذا قراءت تشدید سره دې. حضرت عروه رحمه الله اووئیل چه پیغمبرانو ته خو د دې خبرې یقین وو چه د هغوی د قوم والو د هغوی تکذیب کړې دې بیا د ظن څه مطلب دې؟ داخو صحیح نه معلومیږی کیدې شی چه آیت تخفیف سره وې. سیده عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل معاذالله پیغمبرانو ګمان نه وو کړې چه هغوی ته دروغ وئیلی شوی دی بلکه حقیقت دادې چه دا آیت د انبیاء کرامو د متبعینو سره متعلق دې چه په الله باندې ایمان راوړلې د حضرات انبیاء کرامو تصدیق ئې کړې او په هغوی باندې د یوې اوږدې مودې پورې امتحانونه راتلل او د الله تعالی په امداد راتلو کښې تاخیر اوشو تردې چه حضرات انبیاء کرام د خپل قوم د مکذبین نه بالکل نا امیده شو او د متبعین باره کښې ئې دا ګمان کیدلو چه چرته د تاخیر نصرت د وجې نه هغوی هم تکذیب اونه کړی، نو بیا د الله تعالی امداد او نصرت نازل شو.

## تراجم رجال

په سند کښې ذکرشوی د ټولو رواتو احوال تیرشوی دی. او په دې روایت باندې به تفصیلی بحث انشاء الله کتاب التفسیر کښې کوو. [۲]

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره د دې مناسبت دادې چه ﴿حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ﴾ تعلق سره د دې چه د حضرت یوسف ی علیه السلام واقعه سره نه دې لیکن بهرحال د سورت یوسف آیت دې په دې وجه دا دلته ذکرکړې شو. دویمه وجه دا هم کیدې شی چه کله یوسف علیه السلام په جیل کښې وو او هلته دوو کسانو خوب لیدلې وو او یوسف علیه السلام د هغې تعبیر خودلې وو نو چه کوم سړې ژوندې بچ شوې وو هغه ته ئې وئیلې وو ته د بادشاه په مخکښې زما ذکر اوکړه لیکن اووه کاله تیر شو او هغه ذکر اونه کړو. په دې سره په یوسف علیه السلام باندې یو د نا امیدئی کیفیت شروع شو. په دې وجه ﴿حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ﴾ سره د دې چه د یوسف علیه السلام باره کښې نه دې نازل شوې خو د دې کیفیت سره هغه خامخا مخ شوې دې په دې وجه ئې دا آیت د حضرت یوسف علیه السلام په قصه کښې بیان کړو. [۳]

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: ﴿اسْتَيْأَسُوا﴾ افْتَعَلُوا، مِنْ يَئِسْتُ ﴿مِنْهُ﴾ مِنْ يُوسُفَ. ﴿وَلَا تَيْأَسُوا مِنْ رَوْحِ اللَّهِ﴾ مَعْنَاهُ الرَّجَاءُ [۴۲۵۲، ۴۴۱۸- ۴۴۱۹]

ابوعبدالله د امام بخاری رحمه الله کنیت دې. لفظ (استیاسوا) په آیت کښې وارد شوې دې امام بخاری رحمه الله د دې وزن خودل غواړی. په ډیرو نسخو کښې (افتعلوا) په ځائې (استفعلوا) او راجح هم دغه دې. [۴]

استفعل (ثلاثی مزید فیه) دلته د فعل مجرد په معنی کښې دې. استفعال په وزن باندې د راتلو مطلب دا نه دې چه په دې کښې د طلب معنی پیدا شوه. چنانچه (یئس) او (استیاس) هم په یو معنی کښې مستعمل دې لکه (عجب

---

[۱] والحديث اخرجه أيضاً فى تفسير سورة القمر: ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ وفى تفسير سورة يوسف: ﴿حَتَّىٰ إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ﴾ جامع الأصول: ۱۹۹/۲ رقم الحديث: ۶۷۵

[۲] اوګورئی کشف الباری کتاب التفسیر ص: ۶۷

[۳] فتح الباری: ۵۱۸/۸ إرشادالساری: ۳۲۳/۷.

[۴] فتح الباری: ۵۱۸/۸ إرشاد الساری: ۳۲۳/۷.

واستعجب وسخر واستسخر) وغيره په وزن كښې بدلون راتلونه باوجود هم په يو معنى كښې مستعمل دي. البته دَ سين او تاء اضافه مبالغه دَپاره ده. ([1])

﴿وَلَا تَايْئَسُوا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ﴾ [يوسف: ۸۷] مَعْنَاهُ الرَّجَاءُ: علامه عينى رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دَ سورت يوسف پورته ذكرشوى آيت كښې لفظ روح معنى خودل غواړى چه رَوح دَ رجاء يعنى دَ اميد په معنى كښې دې. ([2]) قتاده رحمه الله وائى (أي: لاتيأسوا من رحمة الله) يعنى روح دَ رحمت په معنى كښې دې او مطلب دادې چه دَالله تعالى دَ رحمت نه نااميده كيږئى مه. ([3]) هم دَقتاده رحمه الله نه دويم قول نقل دې چه روح دلته دَ افضل په معنى كښې دې. ([4])

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه مذكوره حديث په دې خبره باندې دلالت كوى چه حضرت عائشه رضي الله عنها به دَتخفيف قراءت ناخوښه كولو دكوم وجه چه داوه دَ هغې په نيز دَ (ظنوا) ضمير جمع حضرات انبياء كرام عليهم السلام طرف ته راجع دې مگر صحيح خبره داده چه كيدې شى قراءت دَتخفيف حضرت عائشه رضي الله عنها ته رسيدلى نه دې ګنى دكوفيين په نيز قراءت تخفيف ثابت شوې دې. البته دَقراءت تخفيف په صورت كښې به دا توجيه كولې شى چه (ظنوا) ضمير جمع مرسل اليهم طرف ته راجع دې اومرسل اليهم ذكر ماقبل كښې (كيف كان عاقبة الذين من قبلهم) لاندې تيرشوې دې. اودا هم وئيلى شى چونكه رسل دَ مرسل اليهم متقاضى دې په دې وجه مرسل اليهم تذكره په رسل كښې ضمناً موجود ده او داسې دَ (ظنوا) ضمير جمع مرسل اليهم طرف ته راجع گرځولې كيدې شى او اوس به دَ آيت مفهوم داشى چه خلقو دا گمان اوكړو چه انبياء كرام عليهم السلام هغه خلقو ته كومې دَدعوت او وعيد په حواله سره خبرې كړى دى هغه ټولې دروغ دى.

بل يو توجيه داهم كيدې شى چه دَ (ظنوا) ضمير جمع نه مراد مرسل اليهم دې اودَ اهم ضمير نه مرسل مراد دې اومفهوم دادې چه خلقو داگمان كول شروع كړو چه انبياء عليهم السلام سره دَهغوى دَ نصرت دَ دروغو وعده كړې شوې ده. ([5])

[۳۲۱۰]- أَخْبَرَنِي عَبْدَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «الْكَرِيمُ، ابْنُ الْكَرِيمِ، ابْنِ الْكَرِيمِ، ابْنِ الْكَرِيمِ يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ» [ص ۴۰۲] [ر: ۳۲۰۲] ([6])

ترجمه: ابن عمر رضي الله عنهما دَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوى چه عزت دار دَ عزت دار خوى دَعزت دار نمسې او دَ عزت دار غرنمسې يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام دې.

---

[1] إرشادالسارى: ۳۲۳/۷.
[2] عمدة القارى: ۳۸۸/۱۵.
[3] فتح البارى: ۵۱۸/۸.
[4] إرشادالسارى: ۳۲۳/۷.
[5] إرشادالسارى: ۳۲۳/۷-۳۲۲.
[6] مر تخريجه فى نفس الكتاب تحت باب: ﴿أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ﴾ رقم: ۳۳۸۲.

## تراجم رجال

عبدة: دا ابوسهل عبده بن عبده بن عبدالله بن عبده الخزاعی الصفار رحمه الله دی. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب من أعاد الحديث ثلاثا) لاندې تیره شوې ده. [1]

عبدالصمد: دا عبدالصمد بن عبدالوارث بن سعید تمیمی رحمه الله دی. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس) لاندې تیره شوې ده. [2]

عبدالرحمن: دا عبدالرحمن بن عبدالله بن دینار العدوی رحمه الله دی. [3]

عن ابيه: دې نه ابوعبدالرحمن عبدالله بن دینار قرشی عدوی رحمه الله مراد دی. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا) لاندې تیره شوې ده. [4]

شرح حدیث: دَ نبی کریم ﷺ ارشاد مبارک (الكريم ابن الكريم ابن الكريم) کلام موزون او قافیه بند کیدو دَ وجې نه دَ آیت مذکوره ﴿وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ﴾ منافی اومتضاد نه دې ځکه مقصد دَ آیت قصداً او ارادتاً دَشعر ونیلو نفی کوی. خو دغه مذکوره بالاموزون کلام اتفاقی دې. دغه شان دآیت مبارك مقصد صنعت شعر نفی کوی چه مونږ حضورپاك ته دَ شعر فن نه دې ورخودلې اودا یو نیم خل کلام موزون صادر کیدل منافی نه دی. [5]

دَ ابن عمر رضي الله عنهما مذکوره روایت (باب: ﴿أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ﴾) لاندې شاته تیرشوې دې اوترجمة الباب سره دَدې مناسبت واضح دې.

## ۲۲ – باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَأَيُّوبَ إِذْ نَادَى رَبَّهُ أَنِّي مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَأَنْتَ أَرْحَمُ الرّٰحِمِينَ﴾/الأنبياء: ۸۳/.

دترجمة الباب مقصد: دَدې باب لاندې امام بخاری رحمه الله دَحضرت ایوب علیه السلام دَ صبر اوتحمل بیان کول غواړی. [6]

دَحضرت ایوب علیه السلام باره کښې اختلاف دې چه دَهغه تعلق دکوم خاندان سره دې. بعض مؤرخینو په نیز بنی یقطان نه او بعض دَ بنی ادوم نه خودلې دې. راجح دا دې چه دَ هغوی تعلق بنی ادوم سره دې. دا دَعربو قبیله ده په دې لحاظ سره حضرت ایوب علیه السلام عرب دې او مؤرخینو ټول اقوال هم دَ دوی په عرب کیدو باندې متفق دی.

دَ مشهورقول مطابق ایوب علیه السلام دَ اسحاق بن ابراهیم علیه السلام دَ نسل نه دې اودَ هغوی سلسله دَ نسب سره متعلق صرف دومره خبره صحیح ده چه دَهغوی دَ پلار نوم امص وو. [7] دَ مور سلسله نسب متعلق حافظ ابن عساکر رحمه الله واني چه ایوب علیه السلام دَ حضرت لوط علیه السلام نمسې دې اودَهغه په پلار حضرت ابراهیم علیه السلام باندې ایمان راوړلې

---

[1]) کشف الباری: ۵۷۶/۳.

[2]) کشف الباری: ٤۷۷/۳.

[3]) کتاب الوضوء باب إذا اشرب الكلب فی إناء أحدكم فليغسله سبعا رقم:۱۳۲.

[4]) کشف الباری: ۳/۱۲۵.

[5]) عمدة القاری: ۳۸۱/۱۵.

[6]) عمدة القاری: ۳۸۸/۱۵.

[7]) فتح الباری: ۵۱٤/۸.

وو.([1]) قاضى بيضاوى رحمه الله فرمائى چه هغه لياقت بنت يعقوب ماخير بنت ميشا بن يوسف يا رحمت بن افرائيم بن يوسف خوى دى ([2])
د دې اقوالو په رڼا كښې حضرت ايوب عليه السلام زمانه د حضرت موسىٰ عليه السلام نه وړاندې او د حضرت يوسف عليه السلام نه پس ده امام بخارى رحمه الله په تاريخ باندې هم اجتهادى نظر لرى هم دغه رحجان د هغوى هم معلوميږى په دې وجه هغه د حضرت ايوب عليه السلام تذكره د حضرت يوسف عليه السلام نه پس او حضرت موسىٰ عليه السلام نه وړاندې كړې ده.([3])

﴿وَأَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ﴾........ يعنى ايوب عليه السلام ياد كړه كله چه هغه خپل رب ته آواز او كړو چه زه مصيبت راگير كړې يم او ته د مهربانانو نه لوئى مهربان ئى. ايوب عليه السلام د ډيرو سختو او صبر آزما حالاتو نه تيرشوې. هغه سره ډير زيات مال او دولت وو او د اهل وعيال نه هم ښه آسوده حال وو. بيا حالات ناڅاپى بدل شو په سخت امتحان او ازميښت كښې راگير كړې شو. مال ومتاع هغه هر څه غرق شو، بال بچ ئى مړه شو. په بدنى لحاظ سره ښه روغ جوړ او صحيح اوطاقتور وو نو بيائى صحت هم د رحم قابل شو. په تكليف او بيماروكښې راگير شو. په دې حالاتو كښې هم حضرت ايوب عليه السلام د الله تعالى حمد اوثنا كوله. څه موده پس الله تعالى صحت وركړو مال اودولت بال بچ وركړې شو.

﴿ارْكُضْ﴾/ص:٤٢/: اِضْرِبْ. ﴿يَرْكُضُونَ﴾/الأنبياء:١٢/: يَعْدُونَ.

د جوړيدو د پاره الله تعالى حكم وركړو چه ﴿ارْكُضْ بِرِجْلِكَ ۖ هَٰذَا مُغْتَسَلٌ بَارِدٌ وَشَرَابٌ﴾ په خپله خپه باندې لته اووهه دا د لامبلو يخ خائى او د څكلو. ايوب عليه السلام د دغه صحت د چينې نه غسل اوكړو او تروتازه او صحت مند شو.([4])

[٣٢١١]- حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «بَيْنَمَا أَيُّوبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا، خَرَّ عَلَيْهِ رِجْلُ جَرَادٍ مِنْ ذَهَبٍ، فَجَعَلَ يَحْثِي فِي ثَوْبِهِ، فَنَادَاهُ رَبُّهُ يَا أَيُّوبُ أَلَمْ أَكُنْ أَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرَى، قَالَ بَلَى يَا رَبِّ، وَلَكِنْ لَا غِنَى لِي عَنْ بَرَكَتِكَ» [ص ٤٠٥] [ر: ٢٧٥] ([5])

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد الجعفى البخارى المسندى رحمه الله دې. د دوى تذكره (كتاب الايمان باب أمور الايمان) لاندې تيره شوې ده.([6])

**عبدالرزاق:** دا ابوبكر عبدالرزاق بن همام الصنعانى رحمه الله دې. د دوى تذكره (كتاب الايمان باب حسن إسلام المرء) لاندې تيره شوې ده.([7])

**معمر:** دا ابوعروه معمر بن راشد بصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره (كتاب العلم باب كتابة العلم) لاندې تيره شوې ده.([1])

---

[1]) فتح البارى: ٥١٩/٨.
[2]) تفسير البيضاوى: ٤٦٥/٦ سورة الأنبياء مع حاشية الشهاب.
[3]) قصص القرآن، حصه دوم، ص: ٥٥٦-٥٥٥.
[4]) إرشادالسارى: ٣٢٤/٧.
[5]) مرتخريجه فى كتاب الغسل باب من اغتسل عريانا رقم: ٢٧٩.
[6]) كشف البارى: ٦٥٧/١.
[7]) كشف البارى: ٤٢١/٢.

همام: دا همام بن منبه بن كامل يمانى بصرى رحمه الله دى. دَدوى تذكره (كتاب العلم باب السمر فى العلم) لاندې تيره شوې ده. (۱)

**قوله: بينما أيوب يغتسل......:** دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائى ايوب عليه السلام يو وخت غسل كولو چه په هغه د سروزرو دَملخانو يوسيل راپريوتلو. ايوب عليه السلام موتى دَكول او په كپړه كښې كيخودل. الله تعالى ايوب عليه السلام ته آواز اوكړو «يا أيوب ألم أكن أغنيتك عما ترى؟» اې ايوب دا ته چه څه گورې ما ته دَدې نه غنى نه نى جوړ كړې؟ ايوب عليه السلام عرض اوكړو «بلى يارب لكن لاغنى لى عن بركتك» بيشكه زما ربه مگر ستا بركت (نعمتونو او نوازشات) نه څوك بې نيازه كيدې نه شى.

**قوله: رجل:** دَرا په كسره او جيم سكون سره جماعت او سيل په معنى كښې استعماليږى. (۲)

دحضرت ابوهريره رضي الله عنه دا روايت ابن ابى حاتم رحمه الله په يو بل طريق سره روايت كړې دې په هغې كښې دى چه رسول اكرم ﷺ فرمائى: «لما عافى الله أيوب أمطر عليه جرادا من ذهب فجعل يأخذ بيده ويجعله فى ثوبه. قال: فقيل له: يا أيوب أما تشبع؟ قال يارب ومن يشبع من رحمتك» يعنى چه كله الله تعالى حضرت ايوب عليه السلام ته صحت او عافيت وركړو نو په هغه باندې دَ سرو زرو ملخان راؤرول. ايوب عليه السلام به په خپلو دوارو لاسونو كښې دا اخستل او په كپړه كښې به ئى اچول. ورته اووئيلې شو اې ايوب! آيا ته مړيږې نه؟ ايوب عليه السلام اوفرمائيل اې زما ربه ستا په رحمت باندې څوك خړوب كيدې شى؟ (۳)

حضرت ايوب عليه السلام په كومه بدنى بيمارئى كښې راگير كړې شوې وو او دَ هغه واقعې څه تفصيلات دى؟ كوم چه په مذكوره روايت كښې بيان كړې شوې دى. په دې سلسله كښې مفسرينو حضراتو مختلف اسرائيلى روايات نقل كړى دى. امام بخارى رحمه الله دَ باب لاندې صرف يو روايت درج كړې دې بل څه روايت هغه ته دَ خپلو شرائطو سره نه دې ملاؤ شوې. خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى په كومو رواياتو كښې چه دَ ايوب عليه السلام قصه بيان كړې شوې ده په هغې كښې قابل اعتبار روايت هغه دې كوم چه ابن ابى حاتم رحمه الله او ابن جريج رحمه الله دَ نافع عن يزيد عن عقيل عن الزهري عن انس په طريق سره نقل كړې دې. دَ روايت الفاظ دادى: «أن أيوب عليه السلام ابتلى فلبث فى بلاءه ثلاث عشرة سنة فرفضه القريب والبعيد إلا رجلين من إخوانه، فكانا يغدوان إليه ويروحان، فقال أحدهما للآخر: لقد أذنب أيوب ذنبا عظيما وإلا لكشف عنه هذا البلاء، فذكره الآخر لأيوب، يعنى: فحزن ودعا الله حينئذ فخرج لحاجته وأمسكت امرأته بيده، فلما فرغ أبطأت عليه، فأوحى الله إليه أن اركض برجلك، فضرب برجله الأرض فنبعت عين فاغتسل منها فرجع صحيحا، فجاءت امرأته فلم تعرفه، فسألته عن أيوب فقال: إنى أنا هو، وكان له أندران: أحدهما للقمح والآخر للشعير، فبعث الله له سحابة فأفرغت فى أندر القمح الذهب حتى فاض، وفى أندر الشعير الفضة حتى فاض» (۴)

يعنى ايوب عليه السلام ديارلس كاله پورې په مصيبتونو كښې راگير وو ترديې چه دَهغه ټول نيزدې اولرې رشته دارانو هغه پريخودو. البته دوه خپلوان به هغه له سحر اومابنام راتلل. يو خل يو كس بل ته اووئيل، ايوب ضرور څه لويه گناه كړې ده گنې الله تعالى به دا مصيبت دَهغه نه لرې كړې وې. دا خبره هغه بل حضرت ايوب عليه السلام ته اوخودله. ايوب عليه السلام دَدې اوريدو سره خفه شو اوهم هغه وخت ئى دَ الله تعالى نه دعا اوكړه. دې نه پس دَحاجت دفع كولو دپاره لاړو نو بى بى (سهاره وركولودپاره) دَهغه لاس اونيولو. كله چه فارغ شو نو وحى نازل شوه چه په زمكه

---

۱) كشف البارى: ۲/۵۹۰.

۲) كشف البارى: ۴/۳۱۷.

۳) النهاية لابن الأثير: ۱/۲۴۱ دار المعرفة.

۴) إرشاد السارى: ۲/۳۲۵.

۵) فتح البارى: ۸/۵۲۰ صحيح ابن حبان وأخرجه فى صحيحه: ۵/۲۴۴ فى كتاب الجنائز، ذكر الخير الدال إلخ والحاكم فى المستدرك: ۲/۶۳۶-۶۳۵ كتاب تواريخ المتقدمين من الأنبياء والمرسلين رقم: ۱۴۱۵.

باندې په خپه لته اووهه. کله چه هغه لته اووهله نو د اوبو چینه راؤخوټکیده. غسل ئې اوکړو نو د صحت د چینې نه صحیح سلامت واپس راغلو. کله چه ئې بی بی راغله نوهغې اونه پیژندې شو. اود ایوب علیه السلام باره کښې ئې هم د هغه نه تپوس اوکړو نو ایوب علیه السلام اوفرمائیل (إني أناهو) هم زه هغه ایوب یم. ایوب علیه السلام سره لوښې د غنمو او یو د اوربشو وو. الله تعالی اوریځې راؤلیږلې کوم چه د غنمو هغه لوښې یا انبار د سرو زرو او د اوربشو هغه لوښې د سپینو زرو سره ډك په ډکه بدلې کړې.

د حضرت مجاهد رحمه الله نه روایت دې چه د حقو تنکو بیماری د ټولو نه اول په حضرت ایوب علیه السلام باندې راغلې وه.

حافظ ابن حجر رحمه الله یو روایت نقل کړې دې چه ابلیس ملعون د حضرت ایوب علیه السلام بی بی له راغلو اوهغې ته ئې اووئیل چه که ایوب علیه السلام بغیرد بسم الله وئیلو نه څه خیز اوخوړلو نو ټیك به شی. بی بی راغله اوحضرت ایوب علیه السلام ته ئې هم دغه خبره اوکړه. په کومې چه ایوب علیه السلام قسم اوخوړلو چه بی بی به سل کوړې وهې. نوچه کله الله تعالی هغه له د دې ازمینښت او امتحان نه خلاصې ورکړو نو ورسره د قسم د پوره کولو دپاره دا حکم هم ورکړو چه یو داسې ښاخ واخله د کومې چه سل څوکې وی اودې ښاخ باندې خپله بی بی په یوځل باندې اووهه نوستا قسم به پوره شی.(۱)

امام طبری رحمه الله فرمائی چه د ایوب علیه السلام د بی بی نوم لیا بنت یعقوب وو.(۲) په یو روایت کښې دی چه بی بی هغه ته اووئیل (ألاتدعوالله ليعافك؟) ولې د الله تعالی نه دعا نه کوې چه هغه تاله شفا درکړی؟ ایوب علیه السلام جواب ورکړو چه اویا کاله خو ما د صحت په حالت کښې تیرکړی. (أفلاأصبرسبعين سنين؟) نوآیا په دې امتحان باندې اووه کاله صبر اونه کړم؟(۳)

د راجح قول مطابق ایوب علیه السلام په دغه امتحان کښې دیارلس کاله وو.(۴) د امام طبری رحمه الله روایت دې د ایوب علیه السلام ټول عمر ۹۳ کاله وو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې حساب سره معلومه شوه چه ایوب علیه السلام د جوړیدونه پس صرف لس کاله ژوندې وو.(۵)

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب کښې دی: ﴿رَبِّ أَنِّي مَسَّنِيَ الضُّرُّ﴾ خو ایوب علیه السلام په عاجزئی او انکسارئی سره د الله تعالی په دربار کښې درخواست اوکړو نو الله تعالی هغه ته په زمکه باندې د خپې وهلو حکم ورکړو. هغوی حکم پوره کړو په کوم سره چه د زمکې نه اوبه راؤخوټکیدې. د دې نه پس هغوی په دې اوبوسره غسل اوکړو او د بیمارئې نه جوړ شو. چونکه آیت مبارك د دې مضمون ته هم متضمن دې او په حدیث باب کښې هم د حضرت ایوب علیه السلام د غسل کولو تذکره ده نو داسې په دې لحاظ سره دواړو کښې مناسبت هم واضح کیږی.(۶)

## ۲۳– باب: ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مُوسَى إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا وَّكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا

وَنَادَيْنَاهُ مِنْ جَانِبِ الطُّورِ الْأَيْمَنِ وَقَرَّبْنَاهُ نَجِيًّا وَوَهَبْنَا لَهُ مِنْ رَّحْمَتِنَا أَخَاهُ هَارُونَ نَبِيًّا﴾/مريم: ۵۱–۵۳/.

يُقَالُ لِلْوَاحِدِ وَلِلِاثْنَيْنِ وَالْجَمِيعِ نَجِيٌّ وَيُقَالُ: ﴿خَلَصُوا نَجِيًّا﴾/يوسف: ۸۰/: وَاعْتَزَلُوا نَجِيًّا، وَالْجَمِيعُ أَنْجِيَةٌ يَتَنَاجَوْنَ. ﴿تَلْقَفُ﴾/الأعراف: ۱۱۷/: تَلَقَّمُ.

---

(۱) فتح الباري: ۵۲۰/۸.
(۲) المصادر السابق.
(۳) فتح الباري: ۵۲۱/۸.
(۴) فتح الباري: ۵۳۱/۸|ارشادالساري: ۳۲۴.
(۵) فتح الباري: ۵۳۱/۸.
(۶) عمدة القاري: ۲۸۳/۱۵.

**د ترجمة الباب مقصد**: د دې باب لاندې امام بخاري رحمه الله د حضرت موسیٰ علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام تذکره کول غواړي او دا خود ل غواړي چه حضرت موسیٰ علیه السلام د الله تعالیٰ خوښ کړې شوې پیغمبر وو. او هغه ته الله تعالیٰ سره د کلام کولو شرف هم حاصل شو. والله اعلم.[1]

دا تول آیاتونه د کریمه په روایت کښې دي خود ابوذر په روایت کښې نجیا پورې مذکور دي.[2] د موسیٰ علیه السلام د نسب سلسله داده: موسیٰ ابن عمران بن لاهب بن عازر بن لاولی بن یعقوب علیه السلام دا سلسله د نسب په اتفاق سره صحیح ده او په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې.[3]

امام سدي رحمه الله په مختلف اسانیدو سره دا روایت نقل کړې دې چه فرعون په خوب کښې یو اور اولیدلو چه د بیت الله نه راوتلو سره وراندې کیږي مصر او د قبائل قبط ټولې ښارې او کلې ئې اوسوزول خود بنی اسرائیلو مکانات محفوظ پاتې شو. سترګې کولاویدو سره فرعون د مملکت ټول ساحران راوغوښتل او خپل خوب ئې ورته بیان کړو. هغوی دا تعبیر اوخودلو چه د بني اسرائیل په خاندان کښې به یو ماشوم پیدا کیږي د چا په لاس چه به د مصر بربادي کیږي. په دې باندې فرعون د بنو اسرائیل په خاندان کښې پیدا کیدونکې هر یو ماشوم د قتل کولو حکم ورکړو. کله چه موسیٰ علیه السلام پیدا شو نو الله تعالیٰ د هغه د مور په زړه کښې دا خبره واچوله چه فی الحال ته ده ته پیئې ورکوه خو چه کله تاته ویره پیداشي بس دې دریاب کښې اوغورزوه. په روایت کښې دي چه څه موده د موسیٰ علیه السلام مور هغه له پیئې ورکول کله چه هغې ته ویره پیدا شوه نو هغه ئې په یو تابوت کښې کیخودو په سمندر کښې اوغورزولو او رسئې چه تابوت سره تړلې شوې وه نې په خپل لاس کښې اونیوله یو ورځ تړې نه رسئې هیره شوه نو تابوت اوبو لاړو یوړو. تردې چه تابوت د فرعون د کور په دروازه اودریدو. ګاونډیانو چه اوکتلو نو هغه ئې اوچت کړو او د فرعون ښځې له ئې راوړلو. کله چه هغې تابوت کولاو کړو ماشوم ئې اولیدلو نو د ماشوم په حسن او جمال باندې ډیره متاثره شوه. ښځې فرعون ته درخواست اوکړو چه دا ماشوم ماته هبه کړه. فرعون هبه کړو نو د هغه ښځې د حضرت موسیٰ علیه السلام پالنه اوکړه.[4]

﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مُوسٰى إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا﴾: د آیت ترجمه ده او د موسیٰ علیه السلام هم ذکر اوکړئ هغه بیشکه د الله تعالیٰ خاص کړې شوې (بنده) وو او هغه رسول هم وو او مونږ هغه ته د کوه طور د ښي طرف نه آواز اوکړو او مونږ هغه ته د راز خبرې کولو د پاره مقرب جوړ کړو.

مناجات راز او د غوږ خبرو ته وائي او چاته چه د راز خبره اوکړې شي هغه ته نجي ونیلې شي. امام بخاري رحمه الله اوفرمائیل چه د نجي اطلاق مفرد تثنیه او جمع دریوارو باندې کیږي.

**وَيُقَالُ: ﴿خَلَصُوا نَجِيًّا﴾** الخ: آیت مبارك داسې دې ﴿فَلَمَّا اسْتَيْأَسُوا مِنْهُ خَلَصُوا نَجِيًّا﴾ امام بخاري رحمه الله د ﴿خَلَصُوا نَجِيًّا﴾ تفسیر (اعتزلوانجیا) سره کړې یعنی چه کله د یوسف علیه السلام رونړه د حضرت یوسف علیه السلام نه د خپل رور د راخلاصې نه ناامیده شو نو جدا شو او خپل مینځ کښې ئې مشوره او غوږ کښې خبرې اوکړې امام زجاج رحمه الله فرمائي مطلب دادې چه د یوسف علیه السلام رونړه جدا شو او خپل مینځ کښې په دې سلسله کښې مشوره اوکړه چه پلار له تلو سره به د رور باره کښې څه جواب ورکوو.[5] دا آیت امام بخاري رحمه الله د ماقبل د تاکید د پاره ذکر کړې دې چه لفظ نجي

---

[1] عمدة القاري: ۲۸٤/۱۵.

[2] فتح الباري: ۵۲۱/۸ عمدة القاري: ۲۸٤/۱۵.

[3] فتح الباري: ۵۳۱/۸.

[4] فتح الباري: ۵۲۱/۸.

[5] عمدة القاري: ۲۸٤/۱۵.

اطلاق په جمع باندې هم کيږي او تاکيد داسې دې چه په آيت مبارك كښې (نجيا) متناجين د (جمع) په معنی كښې دی. (۱)

وَالْجَمِيعُ أَنْجِيَةٌ: مطلب دادې چه کله د نجی نه مفرد مراد واخستې شی نو په دغه صورت كښې انجية د جمع په توګه باندې استعمالول جائز دی. (۲)

## ۲۴ – باب: ﴿وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ – إِلَى قَوْلِهِ – مُسْرِفٌ كَذَّابٌ﴾/غافر: ۲۸/.

دا د سورت مؤمن آيت دې. په دې سره امام بخاري رحمه الله د هغه واقعه طرف ته اشاره کړې ده چه په آل فرعون کښې يو بهادر خوان د حضرت موسى عليه السلام په رسالت باندې ايمان راوړلې وو. هغه د خپل ايمان راز چاته ښکاره کړې نه وو. ليکن فرعون د موسى عليه السلام د قتل کولو اراده اوکړه نو دا بهادر خوان په ښکاره باندې د موسى عليه السلام مدافعت اوحمايت د پاره او اودريدو. پوره آيت دادې ﴿وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَانَهُ أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَن يَقُولَ رَبِّيَ اللَّهُ وَقَدْ جَاءَكُم بِالْبَيِّنَاتِ مِن رَّبِّكُمْ وَإِن يَكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ وَإِن يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُم بَعْضُ الَّذِي يَعِدُكُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ﴾ يعني: او د فرعون د خاندان نه يو مؤمن سړی چه خپل ايمان به ئې پټولو اووئيل: آيا ته په دې وجه يو سړی قتل کول غواړئ چه هغه دا وائی زما رب خو بس الله دې حالانکه هغه تاسو له د خپل رب د طرف نه ښکاره نښانې راوړلې راغلې دې اوکه هغه دروغژن وي نو د هغه دروغ به هم په هغه باندې پريوځی اوکه چرې هغه رښتونې دې نو د هغه (د الله تعالی عذاب او سزا) نه به ضرور تاسو ته رسيږی د کوم چه وعده کوی. الله تعالی داسې سړی ته هدايت نه ورکوی چه د حد نه زياتې کونکې او لوئی دروغژن دې.

دې سړی د موسى عليه السلام د معجزاتو نه متاثر کيدو سره ايمان راوړلې وو. مفسرين حضرات فرمائی دا د فرعون د تره خوئی وو. هغه خپل ايمان په راز کښې ساتلې وو او کله چه د موسى عليه السلام د قتل اراده اوکړې شوه نو هغه په ډير حکيمانه او ښکلې طريقه سره فرعون ته خپله معاندانه لار پريخودو او د موسى عليه السلام د قتل نه د منع کيدو تلقين اوکړو. هغه په فرعون باندې تعريض اوکړو او د موسى عليه السلام د جلالت شان بيانولو سره اووئيل چه الله تعالی موسى عليه السلام ته ښکاره نښانې او معجزات ورکړی دی او الله تعالی چه کوم بنده ته معجزات ورکوی هغه هيڅ کله مسرف او کذاب نه شی کيدې. نتيجه دا شوه چه موسى عليه السلام کاذب نه دې مطلب دادې چه فرعون مسرف دې او کذاب هم دې چه د الوهيت دعوی کوی. کوم سړی چه داسې باطل عقيده لری الله تعالی هغه ته هدايت نه ورکوی بلکه هغه بربادوی. (۳)

**قوله: تلقف: تلقم:** د دې لفظ نه مقصود د سورت اعراف آيت ﴿وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنْ أَلْقِ عَصَاكَ فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ﴾ طرف ته اشاره ده. په آيت کښې ذکر لفظ (تلقف) تفسير ابوعبيده رحمه الله (تلقم) سره کړې دې يعنی نوړ ئی جوړول. ښکاره دې وی چه (تلقف) اضافه په نسخ متداوله هندی، فتح الباري، عمدة القاري او ارشاد الساري وغيره کښې ذکر ده. شرح کرمانی کښې دا اضافه موجود نه ده. (۴)

---

۱) عمدة القاري: ۱۵/۲۸٤.

۲) إرشاد الساری: ۷/۳۲۶.

۳) إرشاد الساری: ۷/۳۲۶.

٤) الکنز المتواری: ۱۳/۳۳٤.

دغه شان شرح كرمانى او ارشاد السارى په نسخو كښې دَدې اضافې نه پس دا اضافه هم ذكر ده. «وقال رجل مؤمن من آل فرعون يكتم........ مسرف كذاب» خو د فتح البارى په نسخه كښې دَ باب اضافه موجود نه ده البته آيت مذكور دې او په عمدة القارى كښې دا پوره اضافه مذكور نه ده بلكه حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله په نسخو كښې دا مكمل اضافه يعنى «باب: وقال رجل مؤمن ، الخ، دَ وراندې باب نه پس راخى (١).

[۳۲۱۲] - حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، سَمِعْتُ عُرْوَةَ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: "فَرَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى خَدِيجَةَ يَرْجُفُ فُؤَادُهُ، فَانْطَلَقَتْ بِهِ إِلَى [ص: ١٥٢] وَرَقَةَ بْنِ نَوْفَلٍ، وَكَانَ رَجُلًا تَنَصَّرَ يَقْرَأُ الْإِنْجِيلَ بِالْعَرَبِيَّةِ، فَقَالَ وَرَقَةُ: مَاذَا تَرَى؟ فَأَخْبَرَهُ، فَقَالَ وَرَقَةُ: هَذَا النَّامُوسُ الَّذِي أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى مُوسَى، وَإِنْ أَدْرَكَنِي يَوْمُكَ أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا" النَّامُوسُ: صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِي يُطْلِعُهُ بِمَا يَسْتُرُهُ عَنْ غَيْرِهِ" [ص ٤١٣] (٢).

## تراجم رجال

**عبدالله بن يوسف:** دا ابومحمد عبدالله بن يوسف تنيسى كلاعى رحمه الله دې دَدوى تذكره «كتاب العلم باب ليبلغ العلم الشاهد والغائب» لاندې تيره شوې ده. (٣)

**الليث:** دا ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې (٤)

**عقيل:** دا عُقيل بن خالد بن عَقيل ايلى رحمه الله دې دَدوى تذكره «كتاب العلم باب فضل العلم» لاندې تيره شوې ده (٥)

**ابن شهاب:** دَدوى تذكره «بدء الوحى» لاندې تيره شوې ده. (٦)

**عروة:** دا عروه بن زبير بن عوام رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب أحب الدين إلى الله أدومه» لاندې تيره شوې ده. (٧)

**قوله: قالت عائشة: فرجع النبى صلى الله عليه وسلم إلى خديجة.....إلخ** په رسول اكرم ﷺ باندې دَټولو نه اول وحى دا نازل شوه: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ۝ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ۝ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ۝﴾ حضرت عائشه صديقه رضى الله عنها فرمانى چه كوم وخت رسول اكرم ﷺ دا آياتونه واخستل او حضرت خديجه رضى الله عنها له راواپس شو نو دَ حضورپاك زړه درزيدو. حضرت خديجه رضى الله عنها حضورپاك خان سره كړو او ورقه بن نوفل له راغلل چه دَهغې دَ تره خوئې وو. هغه دَ جاهليت په زمانه كښې نصرانى شوې وو او انجيل به ئې په عربى ژبه كښې

---

(١) الكنز المتوارى: ١٣/ ٣٣٤ عمدة القارى: ١٥/ ٢٨٤ فتح البارى: ٨/ ٥٢٢-٥٢١ شرح الكرمانى: ٤٢-٤٣/١٤ إرشاد السارى: ٧/ ٣٢٦.

(٢) مر تخريجه فى بدء الوحى، تحت الحديث الثالث.

(٣) كشف البارى: ٤/ ١١٣.

(٤) كشف البارى: ٤/ ١١٣.

(٥) كشف البارى: ١/ ٣٢٤.

(٦) كشف البارى: ٣/ ٤٥٥.

(٧) كشف البارى: ١/ ٣٢٦.

لوستلو. ورقه دَ رسول اکرم ﷺ نه تپوس اوکړو ته څه وينې؟ حضور پاك اوخودل. ورقه اوونيل دا هم هغه رازدان دې کوم چه الله تعالی په موسیٰ علیه السلام باندې راکوز کړې وو. که چرې ستا ورځې ماته ملاؤ شوې نو زه به ستا زبردست امداد کوم.

النَّامُوسُ: صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِي يُطْلِعُهُ بِمَا يَسْتُرُهُ عَنْ غَيْرِهِ. [ر:۳]

دا جمله دَ امام بخاری رحمه الله کلام دې په کوم کښې چه هغه دَ ناموس معنی بيان کړې ده. امام بخاری رحمه الله فرمائيلی چه ناموس داسې رازدان ته وائی چه بل چاته دَ راز خبر ورکوی کوم چه هغه دَ نورو نه پټوی.(۱)

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَدې حديث ترجمة الباب سره مناسبت «هذا الناموس الذي أنزل الله على موسى عليه الصلاة والسلام» کښې دې په دې معنی چه دواړو کښې دَ حضرت موسیٰ علیه السلام تذکره ده.(۲)

## ۲۵- باب: قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَى إِذْ رَأَى نَارًا- إِلَى قَوْلِهِ- بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى﴾/طه: ۹-۱۲/.

﴿آنَسْتُ﴾/طه: ۱۰/: أَبْصَرْتُ.

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الْمُقَدَّسُ: الْمُبَارَكُ، طُوًى: اسْمُ الْوَادِي. ﴿سِيرَتَهَا﴾/طه: ۲۱/: حَالَتَهَا. وَالنُّهَى التُّقَى. ﴿بِمَلْكِنَا﴾/طه: ۸۷/: بِأَمْرِنَا. ﴿هَوَى﴾/طه: ۸۱/: شَقِيَ. ﴿فَارِغًا﴾/القصص: ۱۰/: إِلَّا مِنْ ذِكْرِ مُوسَى. ﴿رِدْءًا﴾/القصص: ۳۴/: كَيْ يُصَدِّقَنِي، وَيُقَالُ: مُغِيثًا أَوْ مُعِينًا. يَبْطُشُ وَيَبْطِشُ. ﴿يَأْتَمِرُونَ﴾/القصص: ۲۰/: يَتَشَاوَرُونَ. وَالْجِذْوَةُ قِطْعَةٌ غَلِيظَةٌ مِنَ الْخَشَبِ لَيْسَ فِيهَا لَهَبٌ. ﴿سَنَشُدُّ﴾/القصص: ۳۵/: سَنُعِينُكَ، كُلَّمَا عَزَّزْتَ شَيْئًا فَقَدْ جَعَلْتَ لَهُ عَضُدًا.

وَقَالَ غَيْرُهُ: كُلَّمَا لَمْ يَنْطِقْ بِحَرْفٍ أَوْ فِيهِ تَمْتَمَةٌ أَوْ فَأْفَأَةٌ فَهِيَ عُقْدَةٌ.

﴿أَزْرِي﴾/طه: ۳۱/: ظَهْرِي. ﴿فَيُسْحِتَكُمْ﴾/طه: ۶۱/: فَيُهْلِكَكُمْ. ﴿الْمُثْلَى﴾/طه: ۶۳/: تَأْنِيثُ الْأَمْثَلِ، يَقُولُ: بِدِينِكُمْ، يُقَالُ: خُذِ الْمُثْلَى خُذِ الْأَمْثَلَ. ﴿ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا﴾/طه: ۶۴/: يُقَالُ: هَلْ أَتَيْتَ الصَّفَّ الْيَوْمَ، يَعْنِي الْمُصَلَّى الَّذِي يُصَلَّى فِيهِ. ﴿فَأَوْجَسَ﴾/طه: ۶۷/: أَضْمَرَ خَوْفًا، فَذَهَبَتِ الْوَاوُ مِنْ ﴿خِيفَةً﴾ لِكَسْرَةِ الْخَاءِ. ﴿فِي جُذُوعِ النَّخْلِ﴾/طه: ۷۱/: عَلَى جُذُوعِ. ﴿خَطْبُكَ﴾/طه: ۹۵/: بَالُكَ. ﴿مِسَاسَ﴾/طه: ۹۷/: مَصْدَرُ مَاسَّهُ مِسَاسًا. ﴿لَنَنْسِفَنَّهُ﴾/طه: ۹۷/: لَنُذْرِيَنَّهُ. الضَّحَاءُ الْحَرُّ. ﴿قُصِّيهِ﴾/القصص: ۱۱/: اتَّبِعِي أَثَرَهُ، وَقَدْ يَكُونُ أَنْ تَقُصَّ الْكَلَامَ ﴿نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ﴾/يوسف: ۳/. ﴿عَنْ جُنُبٍ﴾/القصص: ۱۱/: عَنْ بُعْدٍ، وَعَنْ جَنَابَةٍ وَعَنِ اجْتِنَابٍ وَاحِدٌ.

قَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿عَلَى قَدَرٍ﴾/طه: ۴۰/: مَوْعِدٍ. ﴿لَا تَنِيَا﴾/طه: ۴۲/: لَا تَضْعُفَا. ﴿مَكَانًا سُوًى﴾/طه: ۵۸/: مَنْصَفٌ بَيْنَهُمْ. ﴿يَبَسًا﴾/طه: ۷۷/: يَابِسًا. ﴿مِنْ زِينَةِ الْقَوْمِ﴾ الْحُلِيِّ الَّذِي اسْتَعَارُوا مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ. ﴿فَقَذَفْنَاهَا﴾ أَلْقَيْنَاهَا. ﴿أَلْقَى﴾/طه: ۸۷/: صَنَعَ. ﴿فَنَسِيَ﴾/طه: ۸۸/: مُوسَى، هُمْ يَقُولُونَهُ: أَخْطَأَ الرَّبَّ. ﴿أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا﴾/طه: ۸۹/: فِي الْعِجْلِ.

**دَترجمة الباب مقصد:** دَدې باب لاندې دَحضرت موسیٰ علیه السلام نور حالات بيانولې شي. امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې روايت صرف هم يو ذکر کړې دې. خو دَ قرآن مجيد دَ ډيرو آياتونو طرف ته نې اشارات کړې دی. امام بخاری رحمه الله دَ دې آياتونو په ذريعه دَحضرت موسیٰ علیه السلام دَ واقعاتو طرف ته اشاره کول غواړی. دَحضرت موسیٰ علیه السلام دَ پيدائش دواقعې طرف ته اشاره ده. بيا هغه په درياء نيل کښې واچولې شو دَهغې طرف ته اشاره ده. بيا دَهغه مور په درياء نيل کښې داچولونه پس دَهغه نګرانی کوله دَهغې طرف ته اشاره، بيا دَ فرعون څوکيدارانو صندوق انريولو او فرعون له نې يوړو دَهغې طرف ته اشاره اوکړه. بيا دَفرعون ښځې دَهغه متعلق اوونيل چه مونږ دې خپل خونی جوړه وو دَ هغې طرف ته نې اشاره اوکړه. دَمدين طرف ته دَ تللو اود مصر نه دَ واپسئ طرف

---

(۱) عمدة القاری: ۱۵/۲۸۵.

(۲) عمدة القاری: ۱۵/۲۸۵.

ته اشاره اوكړه. بيا د فرعون په حواله سره چه كوم واقعات راپيښ شو دهغې طرف ته ئې اشاره اوكړه. بيا د فرعون دغرقيدو واقعه راښكاره شوه دهغې طرف ته ئې اشاره اوكړه. بيا د موسى عليه السلام كوه طور ته د تلو واقعه پيښه شوه دهغې طرف ته ئې اشاره اوكړه. دغه شان د بنى اسرائيل د سخئ د عبادت طرف ته هم امام بخارى رحمه الله د آياتونو په اجزاؤ سره اشاره اوكړه.(۱) چونكه امام بخارى رحمه الله سره دهغه د شرط مطابق مرفوع روايات نه وو په دې وجه هغه قرآنى آياتونه ذكر كولو سره مختلف واقعاتو طرف ته اشارات كړى دى.(۲)

په دې سلسله كښې چه د تلو نه زيات صحيح روايت كوم يو نقل كولې شى هغه امام نسائى رحمه الله په سند حسن عن ابن عباس كتاب التفسير كښې ﴿فَتَنّٰكَ فُتُوْنًا﴾ په ذيل كښې ذكر كړې دې. ابن جرير طبرى رحمه الله، ابن مردويه رحمه الله او امام طحاوى رحمه الله مشكل الآثار كښې دا په تفصيل سره ذكر كړې دى.(۳) امام بخارى رحمه الله د آياتونو چه څومره هم اجزاء نقل كولو سره دهغې د تفسير د پاره اشارات كړى دى هغه ټول كتاب التفسير كښې ذكر كړې شوى دى.

الضحاء: الحر: حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عينى رحمه الله او علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه په دې سره امام بخارى رحمه الله ﴿وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيهَا وَلَا تَضْحٰى﴾ طرف ته اشاره كړې ده او خودلى دى چه د دې تعلق سره د دې چه د موسى عليه السلام واقعه سره نه دې بلكه د آدم عليه السلام واقعه سره دې خو بيا هم امام بخارى رحمه الله استطراداً ذكر كړې دې.(۴)

دا رائې غلطه ده صحيح رائې داده چه امام بخارى رحمه الله ﴿وَأَنْ يُحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى﴾ طرف ته اشاره كړې ده او د دې آيت تعلق د حضرت موسى عليه السلام قصې سره دې. ليكن د ﴿وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيهَا وَلَا تَضْحٰى﴾ دهغه واقعه سره نه دې. والله اعلم.(۵)

[۳۲۱۳]- حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَدَّثَهُمْ عَنْ "لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ: حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الخَامِسَةَ، فَإِذَا هَارُونُ، قَالَ: هٰذَا هَارُونُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ: مَرْحَبًا بِالأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ" تَابَعَهُ ثَابِتٌ، وَعَبَّادُ بْنُ أَبِي عَلِيٍّ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص ۴۱۸](۶)

## تراجم رجال

**هدبة بن خالد:** دا هدبة بن خالد قيسى ازدى رحمه الله دې.(۷)

**همام:** دا همام بن منبه بصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره (كتاب العلم باب السمر فى العلم) لاندې تيره شوې ده.(۱)

---

(۱) فتح البارى: ۵۲۸/۸ إرشادالسارى: ۳۳۱/۷.

(۲) فتح البارى: ۵۲۸/۸ إرشادالسارى: ۳۳۱/۷.

(۳) انظر سنن النسائى الكبرى: ۱۷۲/۱۰ رقم: ۱۱۲۶۳ مؤسسة الرسالة بيروت ۱۴۲۱ هجرى، تاريخ الرسل والملوك للطبرى: ۳۹۲/۱ دارالتراث بيروت، الطبعة الثانية: ۱۲۸۷ هجرى شرح مشكل الآثار للإمام الطحاوى: ۶۰/۱ رقم: ۶۶ مؤسسة الرسالة الطبعة الأولى: ۱۴۱۵ هجرى مجمع الزوائد للهيثمى: ۵۶/۷ رقم: ۱۱۱۶۳ مكتبة القدس، القاهرة: ۱۴۱۴ هجرى.

(۴) فتح البارى: ۵۲۷/۸ عمدة القارى: ۳۹۸/۱۵ إرشادالسارى: ۳۳۰/۷.

(۵) لامع الدرارى: ۳۳۷/۱۳ الكنزالمتوارى: ۳۳۷/۱۳ شرح الكرمانى: ۴۴/۱۴.

(۶) مرتخريجه فى كتاب بدء الخلق تحت باب ذكر الملائكة صلوات الله عليهم، رقم: ۳۲۰۷.

(۷) كتاب مواقيت الصلاة باب فضل صلاة الفجر رقم: ۵۷۴.

**قتادة:** داقتاده بن دعامه رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه) لاندې تيره شوې ده.[۲]

**انس بن مالک رضي الله عنه:** دَدوى تذكره هم دَ مذكوره كتاب اوباب لاندې تيره شوې ده.[۳]

**مالک بن صعصعة رضي الله عنه:** دَدوى تذكره اول تيره شوې ده.[۴]

**قوله: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم حدثهم عن ليلة أسري به:** راوى وائى چه رسول اكرم ﷺ صحابه كرامو ته دهغه شپې حال بيان كړو په كوم كښې چه هغوى باندې (دَ آسمانونو) سيل كړې وو. تردې چه اووم آسمان ته اورسيدو نوهلته ئې هارون عليه السلام اوليدلو. جبرائيل عليه السلام اووئيل دا هارون عليه السلام دې ده ته سلام اوكړه. ما هغه ته سلام اوكړو هغه جواب راكړو. بيا هارون عليه السلام اوفرمائيل (مرحبا بالأخ الصالح والنبي الصالح).

تَابَعَهُ ثَابِتٌ، وَعَبَّادُ بْنُ أَبِي عَلِيٍّ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ. [ر: ۳۰۳۵].

امام بخارى رحمه الله دلته دا خودل غواړى چه په مذكوره حديث كښې (سماء خامس) هارون عليه السلام سره دَ رسول اكرم ﷺ دَملاقات كوم ذكر دې دَدې په نقل كولو كښې ثابت وعباد هم دَقتاده رحمه الله متابعت كړې دې. دامتابعت نه سند حديث سره دې اونه باقى متن دَحديث سره، صرف هم ددې جملې متابعت هغوى كړې دې په كوم كښې چه دَ په پنځم آسمان باندې دَهارون عليه السلام سره دَ رسول اكرم ﷺ دَملاقات ذكر دې. دَدې دواړو په سندونو كښې دَمالك بن صعصعه رضي الله عنه ذكرنشته دې. حديث معراج امام زهرى رحمه الله عن انس عن ابى ذر په طريق سره روايت كړې دې او په دې كښې اصلاً دَ هارون عليه السلام ذكر نه دې كړې شوې. امام بخارى رحمه الله ثابتول غواړى چه په پنځم آسمان كښې دَهارون عليه السلام سره دَ رسول اكرم ﷺ ملاقات شوې دې. په دې وجه تائيداً ثابت البنانى رحمه الله او عباد بن ابى على رحمه الله دَ متابعاتو حواله ئې وركړه.[۵]

**قوله: عَبَّادُ بْنُ أَبِي عَلِيٍّ:** په صحيح بخارى كښې عباد بن ابى على البصرى رحمه الله ذكر هم په دې مقام باندې راغلې دې.[۶] هغوى دَ انس بن مالک رضي الله عنه ابوحازم اشجعى رحمه الله او ابوحازم تمار رحمه الله نه دَ حديث روايت كړې دې اودهغوى نه حماد بن زيد، خليد بن حسان، عبده او هشام دستوائى رحمهم الله دَحديث روايت كړې دې. ابن حبان رحمه الله دَهغوى ذكر په كتاب الثقات كښې كړې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله دَهغوى باره كښې فرمائيلى دى: (مقبول).[۷]

---

[۱]) كشف البارى: ۳۱۷/۴.

[۲]) كشف البارى: ۳/۲.

[۳]) كشف البارى: ۴/۲.

[۴]) كتاب بدء الخلق باب ذكر الملائكة صلوات الله عليهم، رقم الحديث: ۳۲۰۷.

[۵]) فتح البارى: ۵۲۸/۸.

[۶]) فتح البارى: ۵۲۸/۸.

[۷]) دَدوى دَتذكرې دَپاره اوګورئى: تهذيب الكمال: ۱۳۹/۱۴رقم الترجمة: ۳۰۸۸مؤسسة الرسالة تاريخ البخارى الكبير: ۶/الترجمة: ۱۶۰۵والجرح والتعديل: ۶/الترجمة: ۴۲۸ ثقات ابن حبان: ۱۴۳/۵وتذهيب التهذيب: ۱۲۱/۲ميزان الاعتدال: ۲/الترجمة ۴۱۰۳ تهذيب التهذيب: ۹۸/۵وتقريب التهذيب: ۳۹۳/۱وخلاصة الخزرجى: ۲/الترجمة: ۳۳۱۴.

## باب: وَقَالَ رَجُلٌ مُؤْمِنٌ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيْمَانَهُ (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دَ صحیح بخاری په ټولو نسخوکښې دا باب بغیر دَحدیث نه ذکر دې. کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله دَخپل عادت مطابق دلته بیاض پرېخودې وو او څه حدیث هغه ته دَ درج کولو دپاره په خپلو شرائطو سره ملاؤنه شو. (۲)

دَباب په آیت کښې چه دَ کوم رجل مؤمن تذکره راغلې ده په هغې باندې مونږ څه خبرې اترې شاته کړی دی. دَهغه په نوم کښې اختلاف دې. علامه ابن التین رحمه الله په جزم سره ونیلی دی چه دَهغهٔ نوم یوشع بن نون دې. دا دَهغه وهم دې او ممکن نه دی چه دا رجل مؤمن یوشع بن نون وی. ځکه چه یوشع دَ یوسف علیه السلام په ذریت کښې وو. خودَ قرآن پاك دَ تصریح مطابق رجل مؤمن تعلق آل فرعون سره دې. (۳)

دَبعض حضراتو په نیز ﴿مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ﴾ متعلق دې ﴿يَكْتُمُ إِيْمَانَهُ﴾ سره لیکن دا تاویل بعید دې. صحیح داده چه دا مردمؤمن دَ آل فرعون نه وو. (۴) علامه ثعلبی رحمه الله دَ سدی اومقاتل په حواله سره فرمائی چه دا دَ فرعون دَتره خونی وو. (۵) بعض حضراتو ونیلی دی چه دَهغه نوم شمعان دې. امام دارقطنی رحمه الله اوعلامه سهیلی رحمه الله هم دَدې تائید کړې دې. (۶) علامه طبرانی رحمه الله دَهغه نوم حیروز خودلې دې. بعض حضرات حزقیل بنائی. وهب بن منبه رحمه الله ونیلی حربیال دې او حابوت هم بعض دَهغه نوم نقل کړې دې. (۷)

عبدبن حمید رحمه الله دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما قول نقل کړې دې چه دَهغه نوم حبیب دې او دا دَ فرعون دَ تره خونی دې. ابوالقاسم المغزی رحمه الله دَهغه نوم حوتك بن سود بن اسلم نقل کړې دې او دَدې روایت نسبت نی حضرت ابوهریره رضی الله عنه طرف ته کړې دې. (۸)

## ۲۶- باب: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى: ﴿وَهَلْ أَتٰكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى﴾/طه: ۹/.

## ﴿وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا﴾/النساء: ۱۶۴/.

**دَترجمة الباب مقصد او دَترجمه دَتکرار توجیه:** په دې ترجمه کښې تکرار دې. شاته هم دَ باب لاندې بخاری رحمه الله آیت: ﴿وَهَلْ أَتٰكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى﴾ ذکرکړې وو دلته نی دوباره دا ذکرکړې دې. شراح په دې تکرار باندې هیڅ خبرې اترې نه دی کړې. حضرت شیخ الحدیث دَدې تکرار شبه لرې کولو دپاره جواب ورکړې دې چه دَدې باب لاندې ﴿وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا﴾ اضافه هم ده. موسٰی علیه السلام ته الله تعالی دَ نبوت ورکولو نه پس شرف کلام

---

(۱) واضح دې وی چه دا باب دَمصطفٰی دیب البغا په نسخه کښې موجود نه دې البته باب قول الله عزوجل: ﴿وَهَلْ أَتٰكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى﴾ سره تیر شوې باب هم په دې عنوان سره معنون دې او دَدې لاندې حدیث پاک هم ذکر دې خو په نورو نسخوکښې داباب په مذکوره بالا مقام باندې دې اودَدې لاندې هیڅ یو حدیث نه دې ذکر.

(۲) فتح الباری: ۵۲۹/۸؛ إرشاد الساری: ۳۲۱/۷.

(۳) فتح الباری: ۵۲۸/۸.

(۴) فتح الباری: ۵۲۸/۸.

(۵) فتح الباری: ۵۲۸/۸.

(۶) المصدر السابق.

(۷) المصدر السابق.

(۸) المصدر السابق.

هم ورکړې وو. نودلته دَ نبوت نه پس حالات بیانولو طرف ته اشاره ده. او دَ تیر شوي باب آیت ﴿إِذْ رَأَىٰ نَارًا﴾ والا واقعه بیانول مقصود وو اودا دَ نبوت دَ شروع واقعه ده. نولکه چه هلته دَ نبوت دَ شروع دَ حالاتو طرف ته اشاره مقصود وه ا دلته دَ نبوت نه پس حالات طرف ته اشاره مقصود ده. لهذا په ترجمه کښې تکرار نشته دې.[1]

[۳۲۱۴]- حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا [ص: ۱۵۳] مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي: "رَأَيْتُ مُوسَى: وَإِذَا هُوَ رَجُلٌ ضَرْبٌ رَجِلٌ، كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ، وَرَأَيْتُ عِيسَى، فَإِذَا هُوَ رَجُلٌ رَبْعَةٌ أَحْمَرُ، كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيمَاسٍ، وَأَنَا أَشْبَهُ وَلَدِ إِبْرَاهِيمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِ، ثُمَّ أُتِيتُ بِإِنَاءَيْنِ: فِي أَحَدِهِمَا لَبَنٌ وَفِي الآخَرِ خَمْرٌ، فَقَالَ: اشْرَبْ أَيَّهُمَا شِئْتَ، فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ، فَقِيلَ: أَخَذْتَ الفِطْرَةَ أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَخَذْتَ الخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ" [ص ۴۲۲] [۳۶۵۴، ۴۴۳۲، ۵۲۵۴ و ۵۲۸۱][2]

## تراجم رجال

**ابراهیم بن موسیٰ:** دا ابواسحاق ابراهیم بن موسیٰ الفراء الرازي الصغير رحمه الله دي.[3]

**هشام بن یوسف:** دا ابوعبدالرحمن هشام بن یوسف الصغاني رحمه الله دي.[4]

**معمر:** دا مشهور محدث معمر بن راشد ازدي بصري رحمه الله دي. دَدوی تذکره اجمالاً «بدء الوحي» دریم حدیث او تفصیلي تذکره «کتاب العلم باب کتابة العلم لاندې تیره شوې ده.[5]

**زهري:** دا مشهور محدث ابوبکر محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهري رحمه الله دي. دَدوی حالات «بدء الوحي» دریم حدیث لاندې تیر شوی دی.[6]

**سعيد بن المسيب:** دا سعيد بن المسيب بن حزن قرشي مخزومي رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب الإيمان باب من قال: إن الإيمان هو العمل» لاندې تیره شوې ده.[7]

**قوله: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لیلة أسري به.......:** دَحضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمانیلي چه په کومه شپه په ماباندې دَ آسمان سیل اوکړې شو. ما موسیٰ علیه السلام اولیدلو هغه مانده دَ نیغو ویښتو والا سړې دې لکه چه هغه دَ شنوءه قبیلې دَ سړو نه وي.

---

[1] الأبواب والتراجم ص: ۲۱۵الکنز المتواری:۱۳/۲۴۴-۲۴۳.

[2] وأخرجه البخاري أيضاً فی نفس الكتاب باب: ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ﴾ وفي تفسير سورة بني إسرائيل باب قوله تعالى: ﴿سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا﴾ وفي الأشربة، باب قول الله تعالى: ﴿إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ﴾ رقم: ۵۵۷۶. وباب شرب اللبن رقم الحديث: ۵۶۰۳ ومسلم فی کتاب الإيمان باب الإسراء برسول الله صلی الله علیه وسلم رقم: ۱۶۸ والترمذی فی التفسیر باب ومن سورة بنی إسرائیل رقم: ۳۸۲۹.

[3] اوګورئی کتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله رقم: ۲۹۶.

[4] اوګورئی کتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله رقم: ۲۹۶.

[5] کشف الباری: ۳/۲۰۶، ۴/۳۲۱.

[6] کشف الباری: ۲/۳۲۶.

[7] کشف الباری: ۲/۱۵۹.

**قوله: ضَرْبٌ رَجِلٌ** ضرب د ضاد فتحه او راء په سکون سره خفیف اللحم، یعنی کوتلي بدن، نري بدن. [1] رجل د راء فتحه او جیم کسره سره، نیغ ویښته چه گورگوچي نه وي. [2] مطلب دادي چه موسی علیه السلام د اوږد او کوتلي قدوالا رو اود سر ویښته ئی نیغ وو.

**قوله: شنوءة**: داد یمن یوه قبیله ده او د عبدالله بن کعب بن عبدالله بن مالك بن نصر بن ازد طرف ته منسوب ده. شنوءة معنی عداوت او دښمنی ده. چونکه عبدالله بن کعب او د هغه د خاندان په مینځ کښي عداوت او دښمني روانه وه په دي وجه د عبدالله لقب شنوءة شو. د دي قبیلي خلق ډیر اوږده او قد آور مشهوروو. په دي وجه رسول الله ﷺ د حضرت موسی علیه السلام اوږد قد بیانولو سره رجال شنوءة د اوږد قد مثال ورکړو. [3]

د حدیث د نورو جملو تشریح وړاندي د حضرت عیسی علیه السلام او حضرت یونس علیه السلام په تذکروکښي او نور د حدیث اسراء لاندي راځي.

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت**: ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت ښکاره دي چه دواړو کښي د حضرت موسی علیه السلام تذکره ده.

**[۳۲۱۵]- حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْعَالِيَةِ، حَدَّثَنَا - ابْنُ عَمِّ نَبِيِّكُمْ، يَعْنِي - ابْنَ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ: أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى". وَنَسَبَهُ إِلَى أَبِيهِ [ص ۴۲۴] [ر: ۳۰۶۷]** [4]

## تراجم رجال

**محمدبن بشار**: د دوی تذکره (کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم بالموعظة) لاندي تیره شوي ده. [5]

**غندر**: دا ابوعبدالله محمدبن جعفر هذلی رحمه الله دي. غندر د دوی لقب دي. د دوی تذکره (کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم) لاندي تیره شوي ده. [6]

**شعبة**: دا شعبه بن الحجاج بن الورد العتکی الواسطی رحمه الله دي. د دوی تذکره (کتاب الایمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده) لاندي تیره شوي ده. [7]

---

[1] النهاية لابن الأثير: ۲/۷۴ دار المعرفة.

[2] النهاية لابن الأثير: ۲/۶۴۰ دار المعرفة.

[3] فتح الباري: ۸/۵۳۰ إرشاد الساري: ۷/۳۳۲.

[4] أخرجه أيضاً في باب قوله تعالى: ﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ وفي تفسير سورة الأنعام باب قوله: ﴿وَيُونُسَ وَلُوطًا وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعَالَمِينَ﴾ وفي تفسير سورة النساء باب قوله: ﴿إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ﴾ باب قوله: ﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ ومسلم في الفضائل باب في ذكر يونس عليه السلام رقم: ۲۳۷۷ وأبوداؤد في سننه باب في التخير بين الأنبياء عليهم السلام رقم: ۴۶۶۹.

[5] كشف الباري: ۳/۲۵۸.

[6] كشف الباري: ۲/۲۵۰.

[7] كشف الباري: ۱/۴۷۷.

**قتادة:** داقتاده بن دعامه رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه) لاندې تيره شوې ده.[1]

**ابو العالية:** دا رُفيع بن مهران ابوالعاليه الرياحى رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب كفران العشير وكفر دون كفر) لاندې تيره شوې ده.[2]

**ابن عباس:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حالات (بدء الوحى) څلورم حديث لاندې او (كتاب الايمان باب كفران العشير وكفر دون كفر) لاندې تير شوى دى.[3]

**قوله: مُوسَى. آدَمُ طُوَالٌ كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ:** رسول اكرم ﷺ دَمعراج تذكره كولو سره اوفرمائيل چه موسىٰ عليه السلام غنم رنګي اوږد قد والاوو لکه څنګه چه دَ شنوءة قبيلې خلق وى. آدمُ: أدم أدماً وأدمَةً معنى ده غنم رنګې كيدل، هم دَدې نه آدمُ دَ اسم فاعل صيغه ده. دَحديث باب دَنورو جملو متعلق تفصيلي بحث وړاندې دَحضرت عيسىٰ عليه السلام تذكره او حديث الاسراء لاندې راځي.

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره دَحديث باب مناسبت واضح دې څکه چه دواړو کښې دَحضرت موسىٰ عليه السلام تذكره ده.[4]

**[۳۲۱۶] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ، عَنِ ابْنِ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ، وَجَدَهُمْ يَصُومُونَ يَوْمًا، يَعْنِي عَاشُورَاءَ، فَقَالُوا: هَذَا يَوْمٌ عَظِيمٌ، وَهُوَ يَوْمٌ نَجَّى اللَّهُ فِيهِ مُوسَى، وَأَغْرَقَ آلَ فِرْعَوْنَ، فَصَامَ مُوسَى شُكْرًا لِلَّهِ، فَقَالَ «أَنَا أَوْلَى بِمُوسَى مِنْهُمْ» فَصَامَهُ وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ** [ص ۴۲۶] [ر: ۱۹۰۰][5]

### تراجم رجال

**علي بن عبدالله:** دا ابوالحسن على بن عبد الله بصرى رحمه الله دې. دَ ابن المدينى په نوم سره مشهور دې. دَدوى تذكره (كتاب العلم باب الفهم فى العلم) لاندې تيره شوې ده.[6]

**سفيان:** دا سفيان بن عيينه كوفى رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا) لاندې تيره شوې ده.[7]

**ايوب:** دامشهور محدث ايوب سختيانى رحمه الله دې. دَدوى حالات (كتاب الايمان باب حلاوة الايمان) لاندې تيرشوى دى.[8]

---

[1] كشف البارى: ۱٤۳/۲.

[2] كشف البارى: ۱۱٤/۳.

[3] كشف البارى: ٤۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

[4] عمدة القارى: ۲۹۲/۱۵.

[5] مرتخريجه فى كتاب الصوم باب صوم يوم عاشوراء رقم: ۲۰۰٤.

[6] كشف البارى: ۲۹۷/۳.

[7] كشف البارى: ۱۰۲/۳.

[8] كشف البارى: ۲٦/۲.

**ابن سعید:** دا عبدالله بن سعید بن جبیر رحمه الله دې. دَدوی تذکره اول تیره شوې ده.[1]

**عن ابیه:** دې نه مراد سعید بن جبیر رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب السمر فی العلم) لاندې تیره شوې ده.[2]

**قوله: أَنَّ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم لَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ......:** دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم (دَمکې نه هجرت کولوسره) مدینې ته تشریف راورو نو حضورپاک هغه (یهودیان) اولیدل چه دَ عاشورې په ورځ نی روژه ساتلې وه. رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو (ماهذا الصوم؟)[3]

نو هغوی اوونیل دا لویه ورځ ده اویوه داسې ورځ ده په کوم کښې چه الله تعالی موسی علیه السلام (اودَ هغه قوم) ته دَ (دښمن نه) نجات ورکړو او فرعونیان ئې غرق کړل نو موسی علیه السلام دالله تعالی دَشکر اداکولو په توګه په دغه ورځ روژه اوساتله. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (أنا أولی بموسی منهم) یعنې زه دَهغوی په مقابله کښې موسی علیه السلام ته ډیر نیزدې یم. بیا حضورپاک په هغه ورځ روژه اوساتله اوخلقو ته ئې هم دَ روژې ساتلو حکم ورکړو. کتاب الصوم کښې دا روایت په تفصیل سره تیرشوې دې؟

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** حدیث باب کښې ذی (ونجی الله فیه موسی) ترجمة الباب سره دَدې مناسبت ښکاره دې.[4]

## ۲۷ – باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَوٰعَدْنَا مُوسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيْقَاتُ رَبِّهٖٓ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوْسٰى لِاَخِيْهِ هٰرُوْنَ اخْلُفْنِيْ فِيْ قَوْمِيْ وَاَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ۝ وَلَمَّا جَآءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ ۭ قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ فَسَوْفَ تَرٰىنِيْ ۚ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوْسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ اَفَاقَ قَالَ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ۝﴾ /الأعراف: ۴۲ – ۴۳/.

**دَترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دَ حضرت موسی علیه السلام دَ حالاتو اوواقعاتو دَبیانولو دَپاره مختلف ابواب قائم کړې دی اودَ خپل عادت مطابق دَ اکثر ابواب دَعنوانونو دَپاره دَ قرآنی آیاتونو انتخاب کولوسره دَ موسی علیه السلام واقعاتو طرف ته اشاره کړې ده. دَدې باب لاندې آیاتونو کښې چه کوم واقعات بیان کړې شوی دی امام بخاری رحمه الله دَ هغې طرف ته اشاره کړې ده. رومبی آیت دَ سورت اعراف دې: ﴿وَوٰعَدْنَا مُوسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيْقَاتُ رَبِّهٖٓ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ۚ وَقَالَ مُوْسٰى لِاَخِيْهِ هٰرُوْنَ اخْلُفْنِيْ فِيْ قَوْمِيْ وَاَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ۝ وَلَمَّا جَآءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ ۭ قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ فَسَوْفَ تَرٰىنِيْ ۚ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوْسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ اَفَاقَ قَالَ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ۝﴾ یعنې: اومونږ موسی علیه السلام سره دَ دیرشو شپو وعده اوکړه او دَ لسو شپو په ذریعه دَهغې تکمیل اوکړو اوموسی علیه السلام خپل رور هارون علیه السلام ته اوونیل چه ته زما نه پس زما په قوم کښې زما خلیفه جوړیدو سره اوسیږه او اصلاح کوه اودَ مفسدینو دلارې تابعداری مه کوه. اوکله چه موسی علیه السلام زمونږ په مقرر کړې شوی وخت باندې راغلو اودَ هغه رب هغه سره کلام اوکړو نو هغه عرض اوکړو اې زما ربه! ماته اوښایه چه زه تا اووینم. اوفرمائیلې شو ته ما هیڅ کله نه شې لیدلې لیکن دَ غر طرف ته ګوره که چرې غر په خپل ځائې باندې پاتې شو نو ته به ما اولیدې شې. بیا چه دَهغه رب په غرباندې تجلی اوفرمائیله

---

[1] کتاب الأذان باب إذا لم ینو الإمام أن یؤم ثم جاء قوم فأمهم رقم: ۶۹۹.

[2] کشف الباری: ۴۱۸/۴.

[3] إرشادالساری: ۳۳۴/۷.

[4] عمدة القاری: ۲۹۳/۱۵.

نوغرنې ذره ذره کړو او موسیٰ علیه السلام بې هوشه پرېوتلو. بیا چه کله هغه ته هوش راغلو نو ونې ونیل ستا ذات پاك دې زه ستا په حضور کښې توبه کوم اوزه په ایمان راوړونکو کښې اولنې سړې یم.

حضرت موسیٰ علیه السلام خپل قوم سره وعده کړې وه که چرې فرعون هلاك شو نو هغه به هغوی له د الله تعالیٰ د طرف نه په احکام او نواهي باندې مشتمل یو کتاب ورکوي. چه د فرعون نه خلاصې مـلاؤ شو نو موسیٰ علیه السلام الله تعالیٰ نه دعا اوکړه چه هغه ته دې شریعت ورکړې شي. چنانچه هغه کوه طوز ته راؤغوښتې شو چرته چه دېرش ورځې اعتکاف کولو اود روژو ساتلو حکم ورکړې شو. دېرش ورځې تېرې شوې نو موسیٰ علیه السلام مسواك اوکړو په کوم سره چه هغه خاص قسم بوئې چه د روژه دار د خلې نه پیدا کیږي لاړو. ملائکو موسیٰ علیه السلام ته اوونیل (کنا نشم من فیك رائحة المسك فأفسدته بالسواك) یعنی مونږ له ستا د خلې نه د مشك بوئې راتلو لیکن تا مسواك کولو سره هغه ختم کړو. لهذا الله تعالیٰ نورې لس شپې هلته د تېرولو حکم درکړو. دغه شان موسیٰ علیه السلام خلوېښت ورځې پوره کړې. دېرش د ذوالقعده او لس د ذوالحجه.[1] ﴿وَأَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ﴾ کښې هم دې طرف ته اشاره ده.[2]

په لسم ذوالحجه باندې تورات ورکړې شو اود الله تعالیٰ سره د کلام کولو شرف هم ورته حاصل شو. موسیٰ علیه السلام ته د الله تعالیٰ د دیدار شوق وو. درخواست ئې وړاندې کړو چه خپل دیدار راباندې اوکړه. باقي واقعه په صراحت سره په آیت کښې ذکر ده. خلاصه دا چه کله د الله تعالیٰ تجلي اوشوه نو غر ذره ذره شو او موسیٰ علیه السلام بې هوشه شو پرېوتلو او عرض ئې اوکړو چه ستا ذات د کتلونه منزه اوچت او بالا دې. ما د دیدار درخواست کړې وو دهغې نه رجوع کوم او د تپولو نه اول د دې خبرې یقین کونکې زه یم چه واقعي ستا دیدار نه شي کیدې.[3]

يُقَالُ: دَكَّهُ زَلْزَلَهُ، ﴿فَدُكَّتَا﴾ /الحاقة: ١٤/: فَدُكِكْنَ، جَعَلَ الْجِبَالَ كَالْوَاحِدَةِ، كَمَا قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿أَنَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا﴾ /الأنبياء: ٣٠/: وَلَمْ يَقُلْ: كُنَّ، رَتْقًا: مُلْتَصِقَتَيْنِ. ﴿أُشْرِبُوا﴾ /البقرة: ٩٣/: ثَوْبٌ مُشَرَّبٌ مَصْبُوغٌ.

د دك يدك (ن) معنی ده: ذره ذره کول، وړانولو سره برابرول.[4] دلته امام بخاري رحمه الله د دکه معنی زلزله سره کړې ده. یعنی هغه ئې اوخوزول. بیا په (فدکتا) سره امام بخاري رحمه الله د سورت الحاقة آیت ﴿وَحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَاحِدَةً﴾ طرف ته اشاره کولو سره اوفرمائیل چه په دې کښې د قیاس موافق (فدکتا) د تثنیه په ځائې د جمع صیغه (فدککن) استعمالول پکار وو ځکه چه جبال د جمع صیغه ده او ارض هم د جمع په حکم کښې ده لیکن په مذکوره آیت کښې (فدکتا) د تثنیه صیغه ځکه استعمال کړې شوه چه آسمانونه یو څیز فرض کړې شو او زمکې یو څیز، دغه شان د دواړو طرف ته د تثنیه صیغه راؤګرځولې شوه لکه په سورت انبیاء کښې آیت ﴿أَنَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا﴾ کښې هم خلاف قیاس د تثنیه صیغه استعمالولو سره یو یو څیز فرض کړې شوې دې. حالانکه د قیاس موافق (کُنَّ رتقا) کیدل پکار وو.[5]

**قوله: أُشْرِبُوا ثَوْبٌ مُشَرَّبٌ مَصْبُوغٌ**: د سورت بقره آیت ﴿وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ﴾ طرف ته اشاره ده یعنی د هغوی په زړونو کښې د کفر د وجې نه د سخې مینه پیدا شوه. (ثوب مشرب) معنی (مصبوغ) یعنی د رنګ شوې کپړې ده. امام بخاري رحمه الله دا خودل غواړي چه په دې آیت کښې (أشربوا) د اوبو د څکلو په معنی کښې نه دې بلکه دا د هغه شرب

---

[1] إرشاد الساري: ٣٣٦/٧.

[2] عمدة القاري: ٢٩٤/١٥.

[3] المصدر السابق.

[4] لغات القرآن: ١٤/٣.

[5] إرشاد الساري: ٣٣٤/٧.

نه دي کوم چه دَ رنگ کولو په معنى کښې راځي نو مطلب دا شو چه سخى سره دَهغوى محبت په زړونو کښې داسې پوخ شو لکه چه رنګ په کپړو کښې ورجذب کيږي.(١)

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿فَانْبَجَسَتْ﴾/الأعراف: ١٦٠/: انْفَجَرَتْ. ﴿وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ﴾/الأعراف: ١٧١/: رَفَعْنَا.

دَ سورت اعراف دَ آيت طرف ته اشاره ده، آيت دادې: ﴿وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ إِذِ اسْتَسْقَاهُ قَوْمُهُ أَنِ اضْرِب بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۖ فَانبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا﴾ يعنى مونږ موسىٰ عليه السلام طرف ته وحي اوليږله کوم وخت چه دَهغه قوم دَهغه نه اوبه اوغوښتې چه خپله همسا باندې کاڼړي اووهه نو دَهغې نه دولس چينې روانې شوې. امام بخارى رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړې دې چه په دې آيت کښې (انبجست) معنى ده (انفجرت) دا قول ابن ابى حاتم رحمه الله دَ على ابن ابى طلحه رحمه الله په طريق سره موصولاً روايت کړې دې.(٢)

﴿وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ﴾: رَفَعْنَا: دې سره هم دَ سورت اعراف دَ آيت طرف ته اشاره ده. پوره آيت دادې: ﴿وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَأَنَّهُ ظُلَّةٌ وَظَنُّوا أَنَّهُ وَاقِعٌ بِهِمْ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾(٣)

يعنى کله چه مونږ په هغوى باندې راوسستلو غر لکه چه هغه تنبان دى او هغوى يقين اوکړو چه هغه په دوى باندې راپريوتونکى دى، څه چه مونږ تاسوته درکړه هغه په مضبوطيا سره اونيسئ او په دې کښې چه څه دى هغه ياد کړئى دې دپاره چه تاسو تقوى اختيار کړئى.

واقعه داده چه موسىٰ عليه السلام تورات بنى اسرائيلو له راوړو ونى فرمائيل دَدې په احکاماتو باندې عمل اوکړئى نو هغوى ونيل چه دا خو ډير درانه اوسخت احکام دى په دې باندې عمل کول ګران دى نو الله تعالى کوه طور دَ زمکې نه راؤخکلو اودَ هغوى په سرونو باندې ئى زوړند کړو او ونى فرمائيل چه که تاسو دَدې احکاماتو دَمنلو نه انکارکوئى نودا غر به په تاسو باندې راګذار کړې شي. کله چه هغوى غر اوليدلو چه دَ (ظلة) يعنى تنبو په شان دَهغوى په سرونو باندې زوړند دې نودَ ويرې نه ئى دَ تورات په احکامو باندې دَ عمل کولو وعده اوکړه. خو بيا روستو دَ دغه وعدې نه واؤړيدله او دَ مخکښې په شان ئى بدعملئى کولې. امام بخارى رحمه الله دَ (نتقنا) معنى کړې ده (رفعنا) يعنى مونږ غر اوچت کړو.(٤)

[٣٢١]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «النَّاسُ يَصْعَقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ، فَإِذَا أَنَا بِمُوسَى آخِذٌ بِقَائِمَةٍ مِنْ قَوَائِمِ الْعَرْشِ، فَلاَ أَدْرِي أَفَاقَ قَبْلِي أَمْ [ص: ١٥٣] جُوزِيَ بِصَعْقَةِ الطُّورِ» [٧ ص ٤٣١ ـ ٤٣٢] [ر: ٢٢٨١](٥)

## تراجم رجال

**محمد بن يوسف:** دا ابومحمد يوسف بيکندى رحمه الله دې دَ دوى تذکره (کتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير لاندې تيره شوې ده.(٦)

---

(١) عمدة القارى: ١٥/٤٠٦.

(٢) فتح البارى: ٨/٥٣٢.

(٣) الأعراف: ١٧١.

(٤) عمدة القارى: ١٥/٤٠٧.

(٥) مرتخريجه فى كتاب الخصومات، باب مايذكر فى الأشخاص والخصومة بين المسلم واليهود رقم الحديث: ٢٤١٢.

(٦) كشف البارى: ٣/٣٨٧.

**سفيان:** دا سفيان بن عيينه كوفي رحمه الله دي. دَدوي تذكره «كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا» لاندې تيره شوې ده [1]

**عمرو بن يحيى:** داعمرو بن يحيى مازني مدني رحمه الله دي.

**عن ابيه:** دي نه دَهغه والد بزرگ يحيى بن عُماره بن ابى حسن مازني المدني رحمه الله مراددي. دَدوي دواړو حضراتو تذكره «كتاب الإيمان باب من كره أن يعود في الكفر كما يكره أن يلقى في النار» لاندې تيره شوې ده. [2]

**ابوسعيد الخدري رضي الله عنه:** دَدوي تذكره «كتاب الإيمان باب من الدين الفرار من الفتن» لاندې تيره شوې ده. [3]

**قوله: اَلنَّاسُ يُصْعَقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:** رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل دَ قيامت په ورځ به ټول خلق بې هوشه شي دَ ټولونه اول به زه په هوش كښې راځم. زه به گورم چه موسىٰ عليه السلام به دَعرش يوه خپه نيولې ولاړ وي. اوس ماته نه ده معلومه چه هغه زمانه اول په هوش كښې راغلې وو يا دَكوه طور دَ بې هوشئ هغه ته بدله وركړې شوه او په هغه باندې بې هوشي شروع نه شوه.

علامه سندهي رحمه الله فرمائي په حديث باب كښې ذكرشوې «صعقه» نه مراد بې هوشي ده چه دَ نفخه اولى يعنى اولې شپيلئ پوكولوسره به شروع كيږي اوددې بې هوشئ اثر به ترهغه سرې پورې رسيږي په چا كښې چه څه قسم اعتبار سره حساسيت موجود وي كه دَ ژوندو نه وي اوكه دَمړو نه وي. چنانچه دَ صعقه تاثير به هغه كافرانوته هم رسيږي چاته چه په قبرونوكښې عذاب وركولې كيږي خكه چه دا كافران عذاب محسوس كوي. هم دغه وجه ده چه دَ بې هوشئ شروع كيدونه پس به عذاب موقوف كړې شي او چه كله بعث بعد الموت كيږي نو وائي به ﴿مَنْۢ بَعَثَنَا مِنْ مَّرْقَدِنَا﴾ چه دا چا موږ زموږ دَ قبرونو نه راپاسولو؟ ښكاره خبره ده چه كافران به داسې خبره هله كوي چه په نفخه اولى سره بې هوشي شروع كيدو دَ وجې نه دَ هغوى عذاب موقوف شوې وو. كه چرې بې هوشي شروع شوې نه وې يا عذاب نه وې موقوف شوې نوهغوى به هيڅ كله دَحسرت او ارمان نه په ډك انداز كښې داسې نه وئيل چه چا موږ دَ خپلو قبرونو نه راپاسولو. هم دغه شان به دَ دې صعقه تاثير شهداء كرام ته هم اورسي خكه چه هغوى هم دَ الله تعالىٰ په نيز ژوندى دي او چه كله شهدا عند الله ژوندى دي نو حضرات انبياء كرام عليهم السلام به په طريقه اولىٰ ژوندى وي او بيا به دغه ټولوته په وخت دَ نفخه ثانيه افاقه حاصله شي اودَ «أكون أول من يفيق» مطلب دادې چه نبي پاك ﷺ ته به دَ هغه خلقو نه په كومو چه دَ قيامت په ورځ بې هوشي يقيني ده دَټولو نه اول افاضه حاصليږي. اوس دا جمله روستو والاجملې «أفاق قبلي» معارض اومنافي نه ده خكه چه په حضرت موسىٰ عليه السلام باندې بې هوشي شروع كيدل يقيني نه معلوميږي. [4]

«الصعق» مرگ او هلاكت ته وائي. هم دَدې نه «صاعقة» او «صعقة» هم دي دغه شان صعق رچيدو ته هم وائي چه دَ ويرې او خطرناك مناظر كتلو دَ وجې نه په سړي باندې شروع كيږي. چنانچه وئيلى شي «صَعِقَ الرجل وصُعِقَ» «معروف مجهول» يعنى سړې بې هوشه شو. [5]

قاضي عياض رحمه الله فرمائي چه دا حديث دَ مشكل ترين احاديثونه دي خكه چه موسىٰ عليه السلام خودير وړاندې وفات كړې شوې دي. بيا په هغه باندې دَ بې هوشئ راتلو څه مطلب؟ بې هوشي خو په ژوندو باندې راځي. بل دَ امام

---

[1] كشف الباري: ١٠٢/٣.

[2] كشف الباري: ١١٥/٢.

[3] كشف الباري: ٨٢/٢

[4] حاشية السندي على صحيح البخاري: ٣٨٢/١-٣٨١قديمى كتب خانه.

[5] إكمال المعلم: ٣٥٦/٧.

مسلم رحمه الله په روايت كښې دى: (فلا أدري أكان في من صعق فأفاق قبلي أم كان ممن استثنى الله) دَدې روايت الفاظ (كان ممن استثنى الله) په دې باندې دلالت كوى چه موسىٰ عليه السلام ژوندى دې مگر دَدې څه دليل موجود نه دې چه موسىٰ عليه السلام ته دوباره ژوند وركړې شوې وى. يا بيا هغه هم هغه شان ژوندى دې لكه څنګه چه حضرت عيسىٰ عليه السلام ژوندى دې.
خو دَ نبى عليه السلام واضحه ارشاد دَ حضرت موسىٰ عليه السلام په وفات كيدو باندې ګواهى وركوى. نبى عليه السلام فرمائيلى (لو شئتم أريتكم قبره إلى جانب الطور عند الكثيب الأحمر) دَ بعض اصحاب معانى وينا ده چه دَموسىٰ عليه السلام شمير هم په هغه انبياء كرامو عليهم السلام كښې كيږى دَ چاچه انتقال نه دې شوې ليكن دا خبره دَ احاديث صحيحه خلاف ده.
دَدې اشكال دَ ختمولو دَپاره قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه په حديث باب كښې (صعقة) نه مراد بعث بعد الموت نه پس دَ قيامت خطرناك حالت ته كتلو سره شروع كيدونكې بې هوشى ده. دَدې تائيد هم په دې حديث كښې موجود لفظ (افاقه) نه كيږى څكه چه دَدې لفظ استعمال رڅيدو سره كيږى خو دَ مرګ استعمال بعث سره كيږى. دغه شان په كوه طور باندې نازليدونكې صعقه هم دَ رڅيدو دَ قبيل نه وه لهذا دا لفظ افاقه هم دَ دې خبرې تائيد كوى چه دلته صعقة نه مراد بعث بعد الموت نه پس دَ قيامت هيبت دَ زمكې او آسمان دَ روانيدو دَ ويرې مناظر ته كتلو سره شروع كيدونكې بې هوشى ده څكه چه دا بې هوشى به دَ بعث بعد الموت دَ دهشت او ويرې دَ وجې نه وى.
(فلا أدري أفاق قبلي) دَدې جملې نه وړاندې نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل (فأكون أول من يفيق) او اوس ئى فرمائيلى (لا أدري أفاق قبلي) نو قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه كه چرې (أكون أول من يفيق) په ظاهر باندې محمول كړې شى او كه افاقه دَ ټولو نه اول نبى كريم سره خاص كړې شى نو جواب به داشى چه عين ممكن ده چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم دا جمله (أفاق قبلي) خپل اوليت په اعتبار دَ افاقه پيژندلو نه مخكښې ارشاد فرمائيلې وى او كه چرې (أكون أول من يفيق) په هغه امر باندې محمول كړې شى چه حضورپاك به دَهغه جماعت نه وى دَ چا دَمخې نه چه دَ ټولو نه اول زمكه او آسمان روانولې شى دَ كوم تائيد چه دَدې نه هم كيږى چه ډير رواة حديث په دې جمله كښې (في) اضافه كړې ده. يعنى (فأكون في أول) الخ نو په دې صورت كښې به نبى كريم صلى الله عليه وسلم او موسىٰ عليه السلام هم په دې زمره كښې راشى اودا به دَ انبياء كرام عليهم السلام جماعت وى.[1]
دَقاضى عياض رحمه الله او علامه سندهى رحمه الله په تحقيق كښې فرق دادې چه دَ قاضى عياض رحمه الله په نيز صعقة نه مراد بعث بعد الموت نه پس شروع كيدونكې بې هوشى ده او علامه سندهى رحمه الله په نيز دې نه دَ بعث بعد الموت نه مخكښې شروع كيدونكې بې هوشى ده. دويم فرق دادې چه قاضى عياض رحمه الله په نيز دا صعقه يعنى بې هوشى تعلق صرف ژوندو سره دې خو دَعلامه سندهى رحمه الله په نيز دَدې تعلق هرحساس سرى سره به وى كه هغه دَ ژوندونه وى اوكه دَ مړو نه وى. دا روايت كتاب الخصومات او كتاب التفسير كښې اول تيرشوې دې.[2]
**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث باب كښې دى (فإذا أنا بموسى) ترجمة الباب سره هم دغه جمله مطابقت لرى.[3]

[۳۲۱۸] - حدثني عبد الله بن محمد الجعفي، حدثنا عبد الرزاق، أخبرنا معمر، عن همام، عن

---

[1] إكمال المعلم بفوائد مسلم للقاضي عياض، كتاب الفضائل باب من فضائل موسىٰ عليه السلام: ۷/۲۵۷-۳۵۶دار الوفاء للطباعة والنشر، شرح النووي على صحيح مسلم، كتاب الفضائل باب من فضائل موسى عليه اسلام: ۱۵/۱۳۰-۱۳۱دار إحياء التراث العربي، عمدة القاري: ۱۵/۲۹۵.
[2] كشف البارى كتاب التفسير ص: ۲۳۶.
[3] عمدة القاري: ۱۵/۴۰۸.

أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْلَا بَنُو إِسْرَائِيلَ لَمْ يَخْنَزِ اللَّحْمُ، وَلَوْلَا حَوَّاءُ لَمْ تَخُنْ أُنْثَى زَوْجَهَا الدَّهْرَ» [ص ۴۳۵] [ر: ۳۱۵۲][۱]

**ترجمه:** روايت كښې دي چه كه چرې بنواسرائيل نه وې نوكله به غوښه نه سخاكيده اوكه چرې حواء نه وې نوهيڅ يوې ښځې به خاوند سره دهوكه نه كوله. بنواسرائيل د ذخيره كولونه منع كړې شوې وو ليكن كله چه من اوسلوئ نازليدل شروع شونوهغوى لحم سلوى ذخيره كول شروع كړه. ددې جرم سزا دا وركړې شوه چه كومه غوښه به نى ذخيره كوله هغه به سخاكيدله.

**دحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره دحديث هم دغه حصه مناسب ده په دې كښې د بنو اسرائيل بيان دې او هم ددوى طرف ته موسىٰ عليه السلام مبعوث كړې شوې وو. كتاب احاديث الأنبياء كښې دا روايت اول په تفصيل سره تيرشوې دې.

## ۲۸- باب: طُوفَانٍ مِنَ السَّيْلِ.

جمله «طوفان من السيل» ددې باب ترجمه نه ده بلكه دا باب «كالفصل من الباب السابق» دې. يعنى هم د باب سابق حصه يا تتمه ده اوددې مناسبت هم باب سابق سره واضح دې.[۲]

«طوفان من السيل» سره امام بخارى د سورت اعراف آيت طرف ته اشاره كړې ده. آيت دادې: ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ آيَاتٍ مُفَصَّلَاتٍ﴾[۳] يعنى مونږدوى (آل فرعون) باندې طوفان راوليږلو ملخان او د سپږې او چندخان او وينه دا ښنې وې ښكاره. امام بخارى رحمه الله اوفرمائيل چه دا طوفان د اوبو سيلاب وو. په دې صورت كښې به مطلب داشى چه د فرعون د قوم په فصلونو او آبادوكښې الله تعالى سيلابونه راوليږل او ټول په عذاب كښې راګيرشو. د طوفان په معنى كښې مختلف اقوال نقل دى چه بعض ددې معنى طاعون بعض كثرت اموات او بعض حضراتو ددې معنى سيلاب سره كړې ده.[۴] امام بخارى رحمه الله هم دې قول ته ترجيح وركړې ده.

يُقَالُ لِلْمَوْتِ الْكَثِيرِ طُوفَانٌ. الْقُمَّلُ: الْحُمْنَانُ يُشْبِهُ صِغَارَ الْحَلَمِ. ﴿حَقِيقٌ﴾/الأعراف: ۱۰۵/: حَقٌّ. ﴿سُقِطَ﴾/الأعراف: ۱۴۹/: كُلُّ مَنْ نَدِمَ فَقَدْ سُقِطَ فِي يَدِهِ.

يعنى يو قول داهم دې چه په كثرت سره وار په وار باندې مرى وى نو دې ته طوفان وائى.

**قوله: القمل: الحمنان يشبه صغار الحلم** د سورت اعراف په مذكوره آيت كښې لفظ «قمل» راغلې دې. امام بخارى رحمه الله ددې معنى بيانول غواړى. حمنان وړوكو كونو ته او حلم لوئى كونى ته وئيلې شى.[۵] البته حمنان هغه كونى ته وائى چه د غنمو وينسته د پخيدو نه وړاندې خورى. او حلم د ښناورو په بدن كښې پيدا كيږى.[۶] علامه ابن اثير جزرى رحمه الله فرمائى چه كوم وخت كونې ډير وړكوټې وى نوهغې ته قمقامة وائى بيا چه كله لږ شان لوئى شى نوهغې ته حمنانة وائى او بيا څه موده پس هغې ته قراد وائى بيا ورته حلمة وائى او بيا چه كله ډير لوئى شى نو هغې ته عل وائى. امام بخارى رحمه الله فرمائى چه قمل نه واړه كونى مراد دى د كوم جسامت چه د وړوكى حلم په شان وى.

[۱] مرتخريجه فى نفس الكتاب تحت الباب الثانى رقم الحديث: ۳۱۵۲.
[۲] فتح البارى: ۵۳۲/۸ عمدة القارى: ۲۹۶/۱۵.
[۳] الأعراف: ۱۳۳.
[۴] عمدة القارى: ۲۹۶/۱۵.
[۵] عمدة القارى: ۲۹۶/۱۵ النهاية لابن الأثير: ۴۳۸/۱.
[۶] لسان العرب: ۲۲۴/۸ دار إحياء التراث العربى.

**قوله: حقيق حق:** دَ سورت اعراف آيت دې ﴿حَقِيقٌ عَلَىٰ أَن لَّا أَقُولَ عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ ۚ قَدْ جِئْتُكُم بِبَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ [1] يعنى موسى عليه السلام اوفرمائيل چه زما دپاره هم دغه مناسب دى چه سوا دَ حق خبرې بله څه خبره دَ الله تعالى طرف ته منسوب نه کړم. ما ستاسو درب دَ طرف نه تاسو ته يولوئى دليل راوړلې دې نو بنى اسرائيل ماسره اوليګئى.

امام بخارى رحمه الله دَ حقيق معنى حق سره کړې ده. ابوعبيده رحمه الله فرمائى چه حقيق على کښې که چرې على تشديد سره اولوستلې شى نو بيا به معنى دَحق وى اوکه چرې دا مخفف اولوستلې شى نو بيا به د دې معنى محق او حريص شى. [2]

**قوله: سُقط كل من ندم فقد سقط فى يده** سقط في يده: خپيمانه کيدل دَ سورت اعراف آيت دې ﴿وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ وَرَأَوْا أَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوا قَالُوا لَئِن لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ [3] يعنى اوکله چه هغوى خپيمانه شو او هغوى اوکتل چه هغوى بيشکه ګمراه شوى دى نو وئى وئيل چه که زمونږ رب په مونږ باندې رحم اونه کړى او مونږ اونه بخښى نو مونږ به په تباه کارانو کښې شو.

موسى عليه السلام خلوتبنت ورځې په کوه طور کښې معتکف وو. دَ تلو نه مخکښې ئې حضرت هارون عليه السلام خپل خليفه جوړ ولوسره هغه ته تلقين اوکړو چه دَ دوى په اصلاح او دعوت اوتبليغ کښې کوتاهى اونه کړى. دَ موسى عليه السلام دَ تلو نه پس يوسامرى سخې جوړ کړو اوبنى اسرائيل ئې ګمراه کړل دا سخې دَ کالو پترو دَ سرو زرو نه جوړ کړې شوى وو اودې نه به آواز راوتلو. بنى اسرائيلو دَ ده عبادت کول شروع کړه.

موسى عليه السلام دَ کوه طور نه تشريف راوړو نودې صورت حال په ليدو سره خفه شو اودَ غيرت دَ جوش نه مغلوب کيدو سره دَ تورات شريف تختنې يو طرف ته کيخودې او په دې سوچ سره چه کيدې شى دَ هارون عليه السلام نه په دعوت او تبليغ کښې کوتاهى شوې ده. دَهغه دَ سر ويښته ئې خپل طرف ته راښکل دا دَ سختې غصې نتيجه وه. هارون عليه السلام خپله صفائى پيش کړه نو موسى عليه السلام ته دَخپلې غلطئى احساس اوشو او په خپيمانتيا کښې ډوبيدوسره ئې دعا اوکړه اې الله زما او زما دَ رور مغفرت اوکړه او مونږ په خپل رحمت کښې داخل کړه ته ارحم الراحمين ئې. دَ موسى عليه السلام دَ سختئى او رټنې نتيجه وه يا بيا دَ موسى عليه السلام دَ راتلوته اول بنى اسرائيلو اندازه لګولې وه چه دَ سخې په عبادت کولو سره په ګمراهئى کښې راګيرده دى هغوى خپيمانه شو او دَ توبه طرف ته متوجه شو. ﴿وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ﴾ کښې هم دې خبرې طرف ته اشاره ده. [4]

## ۲۹ – باب: حَدِيثُ الْخَضِرِ مَعَ مُوسَى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ.

داهم دَ تيرشوى باب تتمه ده. بعض نسخوکښې دلته دَ باب عنوان نشته دى. [5]

**[۳۲۱۹]- حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، أَخْبَرَهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ تَمَارَى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسٍ الْفَزَارِيُّ، فِي صَاحِبِ مُوسَى، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: هُوَ خَضِرٌ، فَمَرَّ بِهِمَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ،**

---

[1] الأعراف: ۱۰۵.
[2] فتح البارى: ۵۳۳/۸، عمدة القارى: ۲۹۶/۱۵.
[3] الأعراف: ۱۴۹.
[4] فتح البارى: ۵۳۳/۸، عمدة القارى: ۲۹۶/۱۵.
[5] عمدة القارى: ۲۹۷/۱۵.

فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ: إِنِّي تَمَارَيْتُ أَنَا وَصَاحِبِي هٰذَا فِي صَاحِبِ مُوسَى، الَّذِي سَأَلَ السَّبِيلَ إِلَى لُقِيِّهِ، هَلْ سَمِعْتَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَأْنَهُ؟ قَالَ: نَعَمْ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "بَيْنَمَا مُوسَى فِي مَلَإٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ: هَلْ تَعْلَمُ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْكَ؟ قَالَ: لَا، فَأَوْحَى اللّٰهُ إِلَى مُوسَى: بَلَى، عَبْدُنَا خَضِرٌ، فَسَأَلَ مُوسَى السَّبِيلَ إِلَيْهِ، فَجُعِلَ لَهُ الحُوتُ آيَةً، وَقِيلَ لَهُ إِذَا فَقَدْتَ الحُوتَ فَارْجِعْ فَإِنَّكَ سَتَلْقَاهُ، فَكَانَ يَتْبَعُ أَثَرَ الحُوتِ فِي البَحْرِ، فَقَالَ لِمُوسَى فَتَاهُ: {أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الحُوتَ، وَمَا أَنْسَانِيهِ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ}، فَقَالَ مُوسَى: {ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ} [الكهف: ٦٣]، فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا، فَوَجَدَا خَضِرًا، فَكَانَ مِنْ شَأْنِهِمَا الَّذِي قَصَّ اللّٰهُ فِي كِتَابِهِ" [ص ٤٣٩] [ر: ٧٤] [1]

**ترجمه:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه دَهغه اودَحرين قيس په دې امر كښې اختلاف پيداشو چه حضرت موسىٰ عليه السلام چاله تشريف اوړلې وو. ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل هغه حضرت خضر عليه السلام وو په دې كښې ابى بن كعب رضي الله عنه هلته تيريدو. ابن عباس رضي الله عنهما هغه راوغوښتلو او وئې وئيل چه زما اوزما دَملګرى (حرين قيس) په مينځ دَحضرت موسىٰ عليه السلام دَملګرى باره كښې اختلاف پيداشوې دې چه چا سره ئې ملاقات كړې. حضرت موسىٰ عليه السلام خواهش كړې وو آيا تاسو دَدې باره كښې دَحضورپاك نه څه اوريدلى دى؟ ابى بن كعب رضي الله عنه اووئيل او. حضورپاك فرمائيلى وو چه يو ځل داسې اوشو حضرت موسىٰ عليه السلام دَ بنى اسرائيلو په يوټولګى كښې ناست وو. په دې كښې يوسړې راغلو سوال ئې اوكړو چه آيا تاسو يوداسې سړې پيژنئ چه تاسو نه لونى عالم وى. هغه اووئيل نه، دغه وخت الله تعالىٰ حضرت موسىٰ عليه السلام ته وحى راوليږله چه زما يو بنده خضر تانه زيات علم لرى موسىٰ عليه السلام هغه سره دَ ځپل ملاقات خواهش ښكاره كړو. الله تعالىٰ يو كب دَهغه دَپاره نشانى جوړه كړ چه كله دا كب تانه ورك شى نوته هم هغه ځائى ته راواپس شه. هم هلته به دَ حضرت خضر عليه السلام تاسره ملاقات كيږى لنډه دا چه موسىٰ عليه السلام بوشان روان دې په دې انتظاركښې چه كب به كله وركيږى. په تلوتلوكښې دَهغوى خادم اووئيل چه كله مونږ صخره سره تيريدو نوهلته يوه معامله اوشوه چه كب توپ كولوسره درياب ته تلې وو او ما دَدې ذكر تاسو ته كول هيركړې وو. چنانچه دواړو حضراتو خبرې كولوسره دَځپلو ځپو په نښو باندې واپس شو هلته حضرت خضر عليه السلام سره ملاقات اوشو بيا هم هغه واقعات اوشو دكوم ذكر چه قرآن كريم كښې شوې دې.

## تراجم رجال

**عمرو بن محمد:** دا ابوعثمان عمرو بن محمدبن بكير الناقد البغدادى رحمه الله دې. دَ دوى حالات (كتاب البيوع، باب مايكره من الحلف فى البيع) كښې اوګورئي.

**يعقوب بن ابراهيم:** دا يعقوب بن ابراهيم بن سعد رحمه الله دې. دَدوى حالات (كتاب العلم باب ماذكر فى ذهاب موسىٰ فى البحر إلى الخضر) لاندې تيرشوى دى. [2]

**ابراهيم:** دا دَ يعقوب والد ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف قرشى زهرى مدنى رحمه الله دې. دَدوى حالات (كتاب الايمان باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال) لاندې تير شوى دى. [1]

---

[1] الحديث مرتخريجه فى كتاب العلم باب ماذكر فى ذهاب موسىٰ فى البحر إلخ رقم: ٥٧٤.

[2] كشف البارى: ٣٣١/٣.

صالح: دا ابومحمد صالح بن کیسان مدنی رحمه الله دې. د دوی تذکره (کتاب الإیمان باب من کره أن یعود فی الکفر کما یکره أن یلقی فی النار من الإیمان) [2]

ابن شهاب: دا محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې. د دوی تذکره (بدء الوحی) د دریم حدیث لاندې تیره شوې ده. [3]

عبیدالله بن عبدالله: دا عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن سعد رحمه الله دې. د دوی حالات (کتاب العلم باب: متی یصح سماع الصغیر) لاندې تیر شوی دی. [4]

حدیث سره متعلق تفاصیل د وړاندې حدیث لاندې راځي.

[۳۲۲۰]- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ: إِنَّ نَوْفًا البَكَالِيَّ يَزْعُمُ: أَنَّ مُوسَى صَاحِبَ الخَضِرِ لَيْسَ هُوَ مُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ، إِنَّمَا هُوَ مُوسَى آخَرُ، فَقَالَ: كَذَبَ عَدُوُّ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ مُوسَى قَامَ خَطِيبًا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ فَسُئِلَ أَيُّ النَّاسِ أَعْلَمُ؟ فَقَالَ: أَنَا، فَعَتَبَ اللَّهُ عَلَيْهِ، إِذْ لَمْ يَرُدَّ العِلْمَ إِلَيْهِ، فَقَالَ لَهُ: بَلَى لِي عَبْدٌ بِمَجْمَعِ البَحْرَيْنِ هُوَ أَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ: أَيْ رَبِّ وَمَنْ لِي بِهِ؟ - وَرُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ، أَيْ رَبِّ، وَكَيْفَ لِي بِهِ؟ - قَالَ: تَأْخُذُ حُوتًا، فَتَجْعَلُهُ فِي مِكْتَلٍ، حَيْثُمَا فَقَدْتَ [ص:۱۵۵] الحُوتَ فَهُوَ ثَمَّ - وَرُبَّمَا قَالَ: فَهُوَ ثَمَّهْ - وَأَخَذَ حُوتًا فَجَعَلَهُ فِي مِكْتَلٍ، ثُمَّ انْطَلَقَ هُوَ وَفَتَاهُ يُوشَعُ بْنُ نُونٍ، حَتَّى إِذَا أَتَيَا الصَّخْرَةَ وَضَعَا رُءُوسَهُمَا، فَرَقَدَ مُوسَى وَاضْطَرَبَ الحُوتُ فَخَرَجَ، فَسَقَطَ فِي البَحْرِ فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي البَحْرِ سَرَبًا، فَأَمْسَكَ اللَّهُ عَنِ الحُوتِ جِرْيَةَ المَاءِ، فَصَارَ مِثْلَ الطَّاقِ، فَقَالَ: هَكَذَا مِثْلُ الطَّاقِ، فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ بَقِيَّةَ لَيْلَتِهِمَا وَيَوْمَهُمَا، حَتَّى إِذَا كَانَ مِنَ الغَدِ قَالَ لِفَتَاهُ: آتِنَا غَدَاءَنَا، لَقَدْ لَقِينَا مِنْ سَفَرِنَا هَذَا نَصَبًا، وَلَمْ يَجِدْ مُوسَى النَّصَبَ حَتَّى جَاوَزَ حَيْثُ أَمَرَهُ اللَّهُ، قَالَ لَهُ فَتَاهُ: (أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الحُوتَ وَمَا أَنْسَانِيهِ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي البَحْرِ عَجَبًا) فَكَانَ لِلْحُوتِ سَرَبًا وَلَهُمَا عَجَبًا، قَالَ لَهُ مُوسَى: (ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِي فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا)، رَجَعَا يَقُصَّانِ آثَارَهُمَا، حَتَّى انْتَهَيَا إِلَى الصَّخْرَةِ، فَإِذَا رَجُلٌ مُسَجًّى بِثَوْبٍ، فَسَلَّمَ مُوسَى فَرَدَّ عَلَيْهِ، فَقَالَ وَأَنَّى بِأَرْضِكَ السَّلاَمُ؟ قَالَ: أَنَا مُوسَى، قَالَ: مُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ قَالَ: نَعَمْ، أَتَيْتُكَ لِتُعَلِّمَنِي مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا، قَالَ: يَا مُوسَى: إِنِّي عَلَى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ عَلَّمَنِيهِ اللَّهُ لاَ تَعْلَمُهُ، وَأَنْتَ عَلَى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ عَلَّمَكَهُ اللَّهُ لاَ أَعْلَمُهُ، قَالَ: هَلْ أَتَّبِعُكَ؟ قَالَ: {إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا. وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَى مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا} [الكهف: ۶۸] - إِلَى قَوْلِهِ - {أَمْرًا} [الكهف: ۷۰] فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ عَلَى سَاحِلِ البَحْرِ، فَمَرَّتْ بِهِمَا سَفِينَةٌ كَلَّمُوهُمْ أَنْ يَحْمِلُوهُمْ، فَعَرَفُوا الخَضِرَ فَحَمَلُوهُ بِغَيْرِ نَوْلٍ، فَلَمَّا رَكِبَا فِي السَّفِينَةِ

---

[1] كشف الباری: ۱۲۰/۲.

[2] كشف الباری: ۱۲۱/۲.

[3] كشف الباری: ۳۲۶/۱.

[4] كشف الباری: ۳۲۶/۱.

جاء عصفور، فوقع على حرف السفينة فنقر في البحر نقرة أو نقرتين، قال له الخضر: يا موسى ما نقص علمي وعلمك من علم الله إلا مثل ما نقص هذا العصفور بمنقاره من البحر، إذ أخذ الفأس فنزع لوحا، قال: فلم يفجأ موسى إلا وقد قلع لوحا بالقدوم، فقال له موسى: ما صنعت؟ قوم حملونا بغير نول عمدت إلى سفينتهم فخرقتها لتغرق أهلها، لقد جئت شيئا إمرا، قال: {ألم أقل إنك لن تستطيع معي صبرا، قال: لا تؤاخذني بما نسيت ولا ترهقني من أمري عسرا} [الكهف: ٧٢]، فكانت الأولى من موسى نسيانا، فلما خرجا من البحر مروا بغلام يلعب مع الصبيان، فأخذ الخضر برأسه فقلعه بيده هكذا، - وأومأ سفيان بأطراف أصابعه كأنه يقطف شيئا - فقال له موسى: أقتلت نفسا زكية بغير نفس، لقد جئت شيئا نكرا، قال: ألم أقل لك إنك لن تستطيع معي صبرا، قال: إن سألتك عن شيء بعدها فلا تصاحبني قد بلغت من لدني عذرا، فانطلقا، حتى إذا أتيا أهل قرية استطعما أهلها، فأبوا أن يضيفوهما، فوجدا فيها جدارا يريد أن ينقض، مائلا [ص: ١٥٦]، أومأ بيده هكذا، - وأشار سفيان كأنه يمسح شيئا إلى فوق، فلم أسمع سفيان يذكر مائلا إلا مرة -، قال: قوم أتيناهم فلم يطعمونا ولم يضيفونا، عمدت إلى حائطهم، لو شئت لاتخذت عليه أجرا، قال: هذا فراق بيني وبينك، سأنبئك بتأويل ما لم تستطع عليه صبرا، قال النبي صلى الله عليه وسلم: وددنا أن موسى كان صبر فقص الله علينا من خبرهما، - قال سفيان -، قال النبي صلى الله عليه وسلم «يرحم الله موسى لو كان صبر لقص علينا من أمرهما» وقرأ ابن عباس: «أمامهم ملك يأخذ كل سفينة صالحة غصبا» وأما الغلام فكان كافرا وكان أبواه مؤمنين" ثم قال لي سفيان: سمعته منه مرتين، وحفظته منه، قيل لسفيان: حفظته قبل أن تسمعه من عمرو، أو تحفظته من إنسان؟، فقال: ممن أتحفظه، ورواه أحد، عن عمرو غيري سمعته منه مرتين، أو ثلاثا وحفظته منه" [ص ٤٤١-٤٤٣] [ر: ٧٤] [1]

## تراجم رجال

**علي بن عبدالله**: دا ابوالحسن علی بن عبدالله بن جعفر بصری رحمه الله دي اود ابن المدینی په نوم سره مشهور دي. ددوی تذکره (کتاب العلم باب الفهم فی العلم) لاندې تیره شوې ده. [2]

**سفيان**: دا سفیان بن عیینه کوفی رحمه الله دي ددوی تذکره (کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا) لاندې تیره شوې ده. [3]

**عمرو بن دينار**: دا عمرو بن دینار مکی جمحی رحمه الله دي. ددوی تذکره (کتاب العلم باب کتابة العلم) لاندې تیره شوې ده. [4]

---

[1] الحدیث مرتخریجه کتاب العلم باب ماذکر فی ذهاب موسیٰ فی البرإلی الخضر الخ رقم ٧٤.

[2] کشف الباري: ٢٩٧/٣.

[3] کشف الباري: ١٠٢/٣.

[4] کشف الباري: ٣٠٩/٤.

**سعید بن جبیر:** دا مشهور تابعي سعید بن جبیر بن هشام اسدي کوفي رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب السمر في العلم) [۱]

**قوله: أن نوفا البكالي يزعم أن موسى صاحب الخضر:** سعید بن جبیر رحمه الله وائي چه ما حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته عرض اوکړو چه دَ نوف بکالي رحمه الله رائې ده چه دحضرت خضر علیه السلام صاحب موسی، دَ بني اسرائیل موسی نه دې (کوم چه نبي وو) بلکه هغه څوک بل موسی دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائیل (کذب عدوالله) یعني دغه دَ الله تعالی دښمن دروغ وئیلي دي مطلب دا چه صاحب خضر په حقیقت کښې هم دَ بنواسرائیل پیغمبر موسی علیه السلام وو. چونکه دَ نوف بکالي رحمه الله رائې صحیح نه وه په دې وجه ابن عباس رضي الله عنهما دې اوریدو سره ډیر غصه شو اودهغه دَ رائې په دومره شدت سره رد اوکړو چه نوف بکالي ته ئې عدوالله پورې اووئیل. ابن عباس رضي الله عنهما په حقیقت کښې هغه دَ الله تعالی دښمن نه ګڼړلو. [۲]

دَحضرت ابي بن کعب رضي الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي موسی علیه السلام بني اسرائیلو ته دَ فتوی ورکولو دَ پاره اودریدو نودهغه نه سوال اوکړې شو چه دَټولو نه لوئي عالم څوک دې؟ موسی علیه السلام جواب ورکړو زه یم. الله تعالی په هغه باندې عتاب اوکړو چه علم هغه دَ الله تعالی طرف ته نه ورګرځولو، یعني موسی علیه السلام له (الله اعلم) وئیل پکار وو. الله تعالی اوفرمائیل چه مجمع البحرین (بحیره روم اوفارس چرته چه دواړه یوځائې شوي دي) په مقام باندې زما یو بنده دې هغه تانه زیات علم لري. موسی علیه السلام عرض اوکړو (من لي به) ما به هغه له څوک اورسوي. سفیان بن عیینه رحمه الله به اکثر وختونو کښې (من لي به) په ځائې باندې وئیل (کیف لي به) زه به هغه ته څنګه اورسیږم؟ نو الله تعالی اوفرمائیل یو کب واخله یو پیټاري کښې کیږده په کوم مقام باندې چه ته دغه کب غائب اووینې نو هم هغه ځائې کښې به هغه موجود وي. چنانچه موسی علیه السلام یو کب په پیټاري کښې کیخودو اویا خپل خادم یوشع بن نون سره روان شو. کله چه دواړه صخره ته اورسیدل (چه دَ مجمع البحرین په غاړه باندې وو وئیلي شي په دې ځائې کښې چشمه حیات ده). [۳] نودواړو خپل سر ونه کیخول. موسی علیه السلام اوده شو او کب ټوپ کړو سمندر ته لاړو او دَ سمندر په سورنګ کښې لاړه جوړه کړه لاړو. (شراح فرمائې چه په مړ کب کښې ناڅاپي ژوند راتلو وجه چه په هغه باندې دَ چشمه حیات نه دَ اوبو څاڅکي پریوتي وو). [۴] دَ اوبو شکل دَ سورنګ په شان جوړ شو. دَ حدیث راوي (دَ لاس په اشاره سره وضع خودلو سره چه) طاق داسې جوړشوې وو. دواړه باقي ورځې اوشپې مخکښې روان وو. راتلونکې ورځ کښې موسی علیه السلام خپل خادم ته اووئیل څه خوراک څښاک راوړه مونږ خودې سفرستړي کړو.

رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (ولم يجد موسى النصب حتى جاوز حيث أمره الله) یعني موسی علیه السلام هغه وخت ستوماني محسوس کړه کله چه دَ هغه مقام نه وړاندې لاړل چرته چه الله تعالی دَ تلو حکم ورکړې وو. یوشع بن نون موسی علیه السلام ته عرض اوکړو ګوره کنه چه کوم وخت مونږ صخره سره ولاړ وو نوما دَ کب ذکر کول هیرکړې وو او شیطان دَ ده نه یادول هیرکړې وو. کب په عجیبه توګه سره دَ دریاب لار واخسته.

رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (فكان للحوت سربا ولهما عجبا) یعني کب ته خو په سمندر کښې لار ملاؤ شوه خو موسی علیه السلام او یوشع علیه السلام ته حیرانتیا پیدا شوه. موسی علیه السلام یوشع ته اووئیل مونږ خو دَهغه ځائې په لټون کښې وو (چه کب به

---

[۱]) کشف الباري: ۴۱۸/۴.

[۲]) إرشادالساري: ۳۴۰/۷. په دې باندې تفصیلي بحث کتاب العلم لاندې اول تیر شوې دې کشف الباري: ۲۹۳-۲۹۴/۳ کشف الباري: ۴۸۴/۴-۴۸۳.

[۳]) إرشادالساري: ۳۴۱/۷.

[۴]) إرشادالساري: ۳۴۱/۷.

چرته تختی خی به». بیا دوارو په خیال خیال سره دَ خپلو قدمونو په نشانونو باندې واپسی اوکړه تردې چه صخره ته اورسیدل نوهلته یو سړی کپړې اغوستي وې. موسیٰ علیه السلام هغه ته سلام اوکړو هغه جواب ورکولو سره اوونیل «وأنی بأرضك السلام» ستاسو په ملك کښې دَ سلام رسم څنګه دې؟ موسیٰ علیه السلام اوفرمائیل زه موسیٰ یم. خضر علیه السلام اوونیل دَ بنواسرائیل موسیٰ؟ هغوی اوفرمائیل اوجی. زه تاسو له دې غرض دَپاره راغلې یم چه کوم هدایت تاسو ته خودلې شوې دې تاسو هغه ماته اوښایئی. خضر اوونیل «یاموسیٰ! انی علی علم من علم الله علمنیه الله لاتعلمه وأنت علی علم من الله......لاأعلمه» یعنی الله تعالی ماته یو علم خودلې دې کوم باندې چه ته نه پوهیږې اوتاته نې داسې علم خودلې دې چه په کوم چه زه نه پوهیږم.

حضرت موسیٰ علیه السلام سره دَ تشریعات علم وو اوحضرت خضر علیه السلام سره تکوینیات علم وو.[1] موسیٰ علیه السلام هغه نه دَ تکوینی علم زده کولودَپاره راغلې وو نوخضر علیه السلام چه هغه ته څه اوفرمائیل دَ هغې مطلب دا وو چه تاسره دَ احکام او شرع چه کوم علم دې زه دَهغې پوره عالم نه یم یعنی دَ ضرورت په اندازه راته احکام معلوم دی اوما سره چه کوم تکوینی علوم دی ته دهغې پوره ماهر نه ئې.

موسیٰ علیه السلام اوفرمائیل «هل أتبعك؟» آیا زه تاسو سره پاتې کیدې شم. حضرت خضر علیه السلام اوفرمائیل ﴿إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا۝ وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا۝ قَالَ سَتَجِدُنِي إِن شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا۝﴾ یعنی ته به ماسره صبر اونه کړې شې او آخر په داسې معامله کښې به څنګه صبر کوې دکوم حقیقت چه پوره توګه باندې تاته معلوم نه وی. دَ خضر علیه السلام خبرې اترې دَ لفظ امرًا پورې اوشوې.

دې نه پس حضرت موسیٰ علیه السلام اوحضرت خضر علیه السلام دَ دریاب غاړه باندې روان شو. دغه وخت دَهغوی خواکې یوه کشتئی تیریدله دواړو کشتئی والوسره خبره اوکړه چه مونږ هم سواره کړه. کشتئی والاحضرت خضر علیه السلام اوپیژندو او بغیر کرایه ئې سور کړو. کله چه دواړه کشتئی کښې سواره شو نو یوه مرغئی دَ کشتئی په لرګی باندې کیناسته او هغې په سمندر کښې یو یا دوه ځل مښوکه اووهله. په دې باندې حضرت خضر علیه السلام اوونیل «یاموسیٰ! مانقص علمی وعلمك من علم الله إلا مثل مانقص هذا العصفور منقاره من البحر» اې موسیٰ علیه السلام زما اوستا علم دَالله تعالی دَعلم نه صرف هم دومره اخستې دې څومره چه دَدې مرغئی په خپله مښوکه کښې دَ دې سمندر نه اخستې دی. ناڅاپی داسې اوشو چه حضرت خضر علیه السلام یوتبر راواخستو او دَ کشتئی یو تختئی راویستله موسیٰ علیه السلام لږ شان ولاړ وو چه حضرت خضر علیه السلام بله تخته راویسته نو موسیٰ علیه السلام «صبر نه شو اوخضر علیه السلام ته ئې» اوونیل «قوم حملونا بغیرنول عمدت إلی سفینتهم فخرقتها لتغرق أهلها لقد جئت شیئا إمرا» یعنی دې خلقو مونږ بغیردَ کرایه خپله کشتئی کښې سواره کړو تاداسې احسان کونکو په کشتئی کښې سورې اوکړو دې دَپاره چه په دې کښې سواره خلق اوبوکښې غرق شی تادا ډیر «خراب» کار اوکړو. حضرت خضر علیه السلام اوفرمائیل ﴿أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا۝﴾ یعنی ماتاته اول وئیلی نه وو چه ته به ماسره صبر اونه کړې شې. موسیٰ علیه السلام هغه ته اوونیل ﴿لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا۝﴾.

ابی بن کعب رضی الله عنه وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل «فکانت الأولی من موسیٰ نسیانا» یعنی دا په اول ځل موسیٰ علیه السلام په هیره سره وئیلی وو هغه ته شرط یادنه وو.

کله چه موسیٰ علیه السلام اوخضر علیه السلام دَ سمندر نه اووتل نو دریواړه حضرات یعنی موسیٰ علیه السلام خضر علیه السلام او یوشع علیه السلام یو هلك سره تیریدل چه ماشومانو سره ئې لوبې کولې خضر علیه السلام هغه هلك دَ سر نه اونیولو او هم دغه شان ئې سر ترې راویستلو. «راوی حدیث خپل لاسونه داسې جوړ کړل لکه چه یو څیز راوچتوی او وئی وئیل دغه شان حضرت

---

[1] التوضیح شرح الجامع الصحیح: ۵۷۷/۲۲

خضر عليه السلام دَ هغه هلك سر اوويستلو. شراح حديث فرمائيلي دَ هغه هلك نوم جيسون وو اودَ شكل اوصورت نه ښائسته وو.[1]

نو موسىٰ عليه السلام اوفرمائيل ﴿لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُّكْرًا﴾ چه تا خو ډير خراب حركت اوكړو. خضر عليه السلام اوونيل چه آيا ما تاته اول نه ونيلي چه ته به ماسره صبر اونه كړې شې؟ موسىٰ عليه السلام اوونيل چه كه دې نه پس مې تا نه دَ څه خبرې تپوس اوكړو نو زما ملګرتيا پريږده. حقيقت دادې چه بيشكه ته زما دَ طرف ته عذر ته رسيدلې نې.

بيا دواړه روان شو تردې چه انطاكيه كښې يو كلي والو له راغلل. دواړو دَهغوى نه خوراك اوغوښتلو دغه وخت دواړه حضرات اوږې شوې وو اودَ كلي والوته دَ ميلمستيا درخواست اوكړو، هغوى ددوى دَميلمستيا نه انكار اوكړو. هغوى په كلي كښې يو ديوال اوليدلو چه بالكل راغورزيدونكې وو. حضرت خضر عليه السلام داسې په لاس سره اشاره اوكړه نوهغه نيغ شو. روايت كښې دى: «وأشار سفيان كأنه يمسح شيئا إلى فوق» يعنى پخپله سفيان بن عيينه رحمه الله داسې اشاره اوكړه لكه چه هغه دَ څه پاسنې خيز طرف ته راكاږي. على ابن المدينى رحمه الله وائى: «فلم أسمع سفيان يذكر مائلا إلا مرة» روايت كښې دى «يريد أن ينقض مائلا» على بن مدينى رحمه الله بيانې چه په دې حديث كښې لفظ مائل ما دَ سفيان رحمه الله نه هم يو ځل اوريدلې دې. وړاندې روايت كښې دى چه موسىٰ عليه السلام حضرت خضر عليه السلام ته اوفرمائيل چه مونږ دې كلي والو ته راغلو هغوي مونږ ته نه خوراك راكړو اونه ئې ميلمستيا اوكړه مګر تادَهغوى دَديوال مرمت اوكړو. كه چرې تا غوښتل نودَهغوى نه به دې دَ دې مزدورى اخستې وه.

حضرت خضر عليه السلام اوفرمائيل ﴿هَٰذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ﴾ دا زما اوستا دَ جدائيي وخت راغلو. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كاش موسىٰ عليه السلام صبر كړې وې نو الله تعالى به دَهغوى نورهم حالات بهتر بيان كړې وې. سفيان بن عيينه رحمه الله په خپل روايت كښې دا الفاظ نقل كړى دى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله تعالى دې په موسىٰ عليه السلام باندې رحم اوكړى كه چرې موسىٰ عليه السلام دَ صبر نه كار اخستې وې نودَهغې امور او رازونه به مونږ ته هم بيان كړې شوې وې.

**قوله: وقال: وقرأ ابن عباس أمامهم ملك يأخذ كل سفينة صالحة غصبا:** دلته سعيد بن جبير رحمه الله فرمائى چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما به دَ سورت كهف آيت داسې لوستلو: ﴿وَكَانَ أَمَامَهُم مَّلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ صَالِحَةٍ غَصْبًا﴾ يعنى دَ وراءهم په ځائې أمامهم لوستلو او سفينة نې صالحة اضافې سره لوستلو. دغه شان په سورت كهف كښې دى: ﴿وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ﴾ ابن عباس رضي الله عنهما به دا آيت داسې لوستلو ﴿وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ كَافِرًا وَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ﴾ يعنى هلك كافر وو اودَهغه مور پلار مؤمنان وو.

**قوله: ثم قال لي سفيان: سمعته منه مرتين وحفظته منه:** على ابن المدينى رحمه الله وائى چه دا حديث بيانولو نه پس سفيان بن عيينه رحمه الله ماته اوونيل چه ما دا حديث دَعمرو بن دينار نه دوه ځل اوريدلې دې اودَهغه نه مې ياد كړې دې. دَ منه ضمير عمرو بن دينار طرف ته راجع دې.[2]

**قوله: قيل لسفيان: حفظته قبل أن تسمعه من عمرو أو تحفظته من إنسان** سفيان رحمه الله ته اوونيلې شو چه تاسو دا حديث دَعمرو رحمه الله نه اوريدونه اول ياد كړې وو يا (هغوى ته اوونيلې شو) تا دَ بل سړى نه اوريدو سره ياد كړې وو؟ علامه كرمانى رحمه الله تصريح كړې ده چه دلته سوال كونكې على بن المدينى رحمه الله دې. هم هغوى دَ سفيان بن عيينه رحمه الله نه دا سوال كړې دې چه آيا مذكوره حديث اسو دَ عمرو بن دينار نه وړاندې دَ بل چا نه اوريدلې وو؟[3]

---

[1] إرشادالسارى: ٣٤٢/٧.
[2] إرشادالسارى: ٣٤٣/٧.
[3] شرح الكرمانى: ٥٣/١٤.

**قوله: فقال: ممن أتحفظه رواه أحد من عمرو غيري؟:** په دې باندې سفيان بن عيينه رحمه الله اوفرمائيل نو دَ چا نه به مې يادولو ولې داحديث زما نه علاوه بل چا هم دَعمرو نه روايت کړې دې؟ دَ رواه په شروع کښې همزه استفهام محذوف دې. يعنى په اصل کښې أرواه دې.[1]

شراح کرام رحمهم الله دَتصريحاتو مطابق: (حفظته قبل أن تسمعه من عمرو بن دينار أو تحفظه من إنسان) دَ راويانو دَ طرف نه شك دې چه دَ هغه شيخ دَ دې دواړو جملونه په کومه جمله سره حديث روايت کړې دې.[2]

ليکن علامه رشيد احمد گنگوهى رحمه الله دواړه جملې دَ سائل (على بن المدينى) تردد گرځولې دې يعنى على ابن المدينى رحمه الله ته په دې خبره کښې تردد وو چه آيا سفيان بن عيينه رحمه الله داحديث دَ عمرو بن دينار نه اوريدو نه وړاندې ياد کړې وو يا دَهغه دَ سماع نه پس دَ يو بل سړى نه هم اوريدلې وو؟ علامه گنگوهى رحمه الله فرمائى چه سائل ته دا تردد ځکه راپيښ شو چه دَهغه خيال وو چه دومره اوږد حديث يوځل يا دوه ځل اوريدو سره زبانى يادول دومره آسان نه دى نو سفيان بن عيينه رحمه الله دَدواړو خبرو جواب ورکولو سره اوفرمائيل چه ما داحديث صرف دَعمرو بن دينا نه اوريدلې دې اوهم دَهغه نه مې حفظ کړې دې.[3]

**دَ سفيان بن عيينه رحمه الله په قول باندې اشکال او دَهغې جواب:** دلته سفيان بن عيينه رحمه الله تصريح فرمائيلې چه روايت باب دَ عمرو بن دينار نه دَ هغه نه علاوه بل چا نه دې روايت کړې. په دې باندې اشکال کيږى چه ابن جريج رحمه الله هم دا روايت دَعمرو بن دينار رحمه الله نه نيغ په نيغه روايت کړې دې. وړاندې کتاب التفسير سورة کهف لاندې پخپله امام بخارى رحمه الله (عن ابن جريج عن عمرو) په سند سره دا روايت نقل کړې دې نو بيا سفيان رحمه الله ځنګه اوفرمائيل چه دَ عمرو نه زما نه علاوه بل چا دا روايت نه دې نقل کړې؟

علامه رشيد احمد گنگوهى رحمه الله فرمائى دَ سفيان بن عيينه رحمه الله نفى فرمائيل دَ خپل بنار په اعتبارسره وو په دې معنى چه دَهغه په بناريه کښې دَ سفيان بن عيينه رحمه الله نه علاوه بل چا دَ عمرو بن دينار رحمه الله نه دا حديث نه دې روايت کړې.[4]

ذکرشوى دواړه روايات کتاب العلم لاندې په تفصيل سره تيرشوى دى.[5]

**دَحديث الخضر اعراب:** لفظ حديث مرفوع او مجرور دواړه شان لوستل صحيح دى. دَمرفوع کيدو په صورت کښې به دا هذا اسم اشاره مبتدا دَپاره خبر وى اوَدَ مجرور کيدو په صورت کښې به لفظ باب دَپاره مضاف اليه وى. دَمرفوع کيدو په صورت کښې به تقديرى عبارت داسې وى: (هذا باب، هذا حديث الخضر مع موسى عليهما السلام) اوَدَ مجرور کيدو په صورت کښې به عبارت داسې وى: (هذا باب فى بيان حديث الخضر مع موسى عليهما السلام).[6]

يعنى دا باب دَ موسى عليه السلام سره دَخضر عليه السلام دَ مکالمه په بيان کښې دې. خضر عليه السلام دَنوم نسب اوَدَهغه دَحيات او ممات په مسئله تفصيلى مباحث وړاندې تيرشوى دى.[7]

[۳۲۲۱]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَعِيدٍ ابْنُ الأَصْبَهَانِيِّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ

---

[1] عمدة القارى: ۴۱۲/۱۵، إرشادالسارى: ۳۴۲/۷.

[2] شرح الکرمانى: ۵۳۱/۱۴، إرشادالسارى: ۳۴۳/۷.

[3] لامع الدراى: ۳۵۶/۱۳، الکنزالمتوارى: ۳۵۶/۱۳.

[4] لامع الدراى: ۳۵۶/۱۳.

[5] اوګورئى کشف البارى: ۳۲۱/۳.

[6] عمدة القارى: ۴۰۸/۱۵.

[7] کشف البارى: ۳۵۰/۳، ۳۴۲.

هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّمَا سُمِّيَ الخَضِرَ أَنَّهُ جَلَسَ عَلَى فَرْوَةٍ بَيْضَاءَ، فَإِذَا هِيَ تَهْتَزُّ مِنْ خَلْفِهِ خَضْرَاءَ» [ص ۴۵۱][۱]

## تراجم رجال

**محمدبن سعيد الاصبهاني:** دا ابوجعفر محمدسعيد بن سليمان بن عبدالله كوفي اصبهاني رحمه الله دي هغوى د ابراهيم بن زبرقان، اسحاق بن سليمان رازى، حفص بن غياث، حميد بن عبدالرحم رؤاسى. خالد بن حيان رقى، عبدالله بن ادريس، معاويه بن هشام، يحيى بن ابى بكير كرمانى اويزيد بن مقدام رحمهم الله نه د حديث روايت كړې دې. اوددوى نه ابراهيم بن نصر رازى، احمدبن زكريا جوهرى، زهير بن حرب، بشر بن موسى اسدى، ابوزرعه رازى، دحكيم ترمذى پلار على بن حسن، محمدبن يحيى ذهلى، يعقوب بن سفيان وغيرهم رحمهم الله د حديث روايت كړې دې. [۲]

امام نسائى رحمه الله دهغوى باره كښې فرمائيلى دى: ثقة.[۳] يعقوب بن شيبه رحمه الله فرمائى: متقن.[۴] ابن عدى رحمه الله او ابن حجر رحمه الله دهغه باره كښې فرمائى: ثقة ثبت.[۵] ابوحاتم رحمه الله فرمائى: «ثبت، كان حافظا يحدث من حفظه، ولا يقبل التلقين ولا يقرأ من كتب الناس، ولم أربالكوفة أتقن حفظا منه».[۶] ابن حبان رحمه الله دهغوى ذكر ثقات كښې كړې دې.[۷] تاريخ كبير كښې امام بخارى رحمه الله فرمائيلى چه دهغوى وفات ۲۲۰ هجرى كښې شوې.[۸]

ابن المبارك: داعبدالله بن مبارك رحمه الله دې.[۹]

**معمر:** دا معمر بن راشد ازدى بصرى دې. ددوى تذكره «كتاب العلم، باب كتابة العلم» لاندې تيره شوې ده.[۱۰]

**همام بن منبه:** ددوى تذكره «كتاب العلم، باب السمر فى العلم» لاندې تيره شوې ده.[۱۱]

**قوله: إنما سمي الخضر، لأنه جلس على فروة بيضاء........الخ:** رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ده ته خضر نوم خكه وركړې شوې چه هغه په سپين يعنى اوچو وابنو يا په شاړه زمكه باندې كيناستو نو ناځاپى دهغوى شاته يعنى د هغه ځائى نه دتلو نه پس زمكه شنه او آباده شوه. د لفظ فروه سره متعلق شراح مختلف اقوال نقل كړى دى. بعض حضراتو وئيلى دى سپينو وابنو ته وائى.[۱۲] دبعض په نيز دې نه اوچ وابنه مراد دى.[۱۳] خو ابن الاعرابى رحمه الله

---

[۱]) تفرد به البخاري رحمة الله عليه، انظر تحفة الأشراف: ۳۹۵/۱۰.

[۲]) د شيوخ او تلامذه د تفصيل دپاره اوګورئى تهذيب الكمال: ۲۷۳/۲۵-۲۷۲.

[۳]) تهذيب الكمال: ۲۷۴/۲۵ تهذيب التهذيب: ۱۸۸/۹.

[۴]) تهذيب الكمال: ۲۷۴/۲۵ الكاشف للذهبي: ۱۷۵/۲ الترجمة: ۴۸۷۳.

[۵]) تهذيب الكمال: ۲۷۴/۲۵ تقريب التهذيب لابن حجر ص: ۴۸۰ الترجمة: ۵۹۱۱.

[۶]) الجرح والتعديل: ۲۵۴/۷-۲۵۳ الترجمة: ۱۴۴۷.

[۷]) ثقات لابن حبان: ۶۳/۹

[۸]) التاريخ الكبير الترجمة: ۲۵۸.

[۹]) كشف البارى: ۴۴۲/۱.

[۱۰]) كشف البارى: ۴۲۱/۴.

[۱۱]) كشف البارى: ۳۷۱/۴.

[۱۲]) فتح البارى: ۵۳۵/۸.

[۱۳]) فتح البارى: ۵۳۵/۸.

علامه خطابی رحمه الله او نور حضرات فرمائي: «الفروة أرض بيضاء ليس فيها نبات»[1] يعني فروه سپين اوخالي ميدان ته واني په کوم کښې چه وښو او شينکي نوم نه وي. خلاصه دا چه ده ته خضر په دې وجه باندې وائي چه هغه به په اوچه بې اوبو اوبې وښو زمکه باندې کيناستو نوهغه خاني به شين او آباد شو.

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** روايت کښې دحضرت خضر عليه السلام ذکر دې او بـاب سره ددې مناسبت ښکاره دې.[2]

**قوله: قال الحموي: قال محمد بن يوسف بن مطر الفربري: حدثنا علي بن خشرم عن سفيان بطوله** شراح ليکلي دي چه دا اضافه صرف ابوزرعن المستملي په روايت کښې موجود ده دکوم مقصد چه داخودل دی چه ابومحمد عبدالله بن احمد سرخسي حموي رحمه الله فرمائي چه محمدبن يوسف بن مطر فربري رحمه الله (د صحيح بخاري راوي) دعلي بن خشرم نه اوعلي بن خشرم (هم) د سفيان بن عيينه رحمه الله نه دا اوږد رايت نقل کړې دې کوم چه د پورته ذکر شوی حديث نه اول تير شوې دې.[2]

دارنګه په هندي نسخه کښې محمدبن سعيد اصبهاني رحمه الله د روايت نه وړاندې هم دغه اضافه داسې درج ده: «حدثنا علي بن خشرم، حدثنا سفيان بن عيينه، الحديث بطوله»[3]

## باب

داباب بلاترجمه اود سابقه باب تتمه ده.[4]

[۳۲۲]- حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قِيلَ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ: {ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ} [البقرة: ۵۸] فَبَدَّلُوا، فَدَخَلُوا يَزْحَفُونَ عَلَى أَسْتَاهِهِمْ، وَقَالُوا: حَبَّةٌ فِي شَعْرَةٍ" [۲ ص ۴۵۴] [۴۲۰۹، ۴۳۶۵][5]

### تراجم رجال

**اسحاق بن نصر:** دااسحاق بن ابراهيم بن نصر سعدي بخاري رحمه الله دې. ددوی تذکره (کتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده في الخلوة) لاندې اوګورئ.

**عبدالرزاق:** دا مشهور محدث عبدالرزاق بن همام صنعاني رحمه الله دې.[6]

---

[1] غريب الحديث للخطابي: ۲۲۲/۱ الفائق للزمخشري: ۱۰۳/۳.

[2] فتح الباري: ۵۳۵/۸ عمدة القاري: ۳۰۰/۱۵ الكنز المتواري: ۳۵۷/۱۳ إرشاد الساري: ۳۴۴/۷.

[3] الكنز المتواري: ۳۵۸/۱۳-۳۵۷.

[4] فتح الباري: ۵۳۹/۸ دار الكتب العلمية. واضحه دې وي چه مصطفی ديب البغاء په نسخه کښې د باب عنوان موجودنه دې.

[5] أخرجه البخاري في كتاب التفسير سورة البقرة باب ﴿وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ﴾ رقم الحديث: ۴۴۷۹ سورة الأعراف باب ﴿حِطَّةٌ﴾ رقم الترجمة: ۴۶۴۱ ومسلم في التفسير رقم الحديث: ۷۵۲۳ والترمذي في التفسير باب ومن تفسير سورة البقرة رقم الحديث ۲۹۵۹ جامع الأصول في أحاديث الرسول: ۷/۲ رقم الحديث: ۴۷۲.

[6] كشف الباري: ۴۲۱/۲.

معمر: دامعمر بن راشد ازدي رحمه الله دې. (۱)

همام بن منبه: دَ دوى تذکره (كتاب الإيمان باب حسن إسلام المرء) إلخ لاندې تيره شوې ده. (۲)

ابوهريرة: دا صحابى رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې. دَدوى تذکره (كتاب الإيمان باب أمور الإيمان) لاندې تيره شوې ده. (۳)

**قوله: قيل لبني إسرائيل: ادخلوا الباب سجدا وقولوا حطة...... إلخ:** رسول کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه بنى اسرائيل ته اووئيلې شو چه تاسو په دروازه کښې دَ سجدې په حالت کښې داخل شئ اوحطة اووايئ. حطة يا خو خبر دې اودَې مبتدا محذوف دې يعنى (شأنك حطة). مطلب دا چه ستا شان دَ گناهونو ساقط کولو او معاف کولو دې. حَطّ يَحُطّ معنى دَ ساقط کولوراځي. يعنى (حُطّ عنا ذنوبنا حِطّة) اي الله زمونږ گناهونه ساقط کړې. (۴)

بني اسرائيل دَ سجدې په حالت کښې دَداخليدو په ځائې دَ کوناتو طرف په زمکه باندې په رانښکو سره داخل شو اودَ حِطّةٌ وئيلو په ځائې مسخرو په توگه هغوى حَبّةٌ في شَعْرَةٍ (په وېښتو کښې دانه) وئيل شروع کړه. بعض رواياتو کښې دَ حبة په ځائې حِنْطة لفظ راغلې دې. (۵)

**دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** علامه عينى رحمه الله فرمائي ممکن دې چه باب سره دَحديث مناسبت دا وى چه په دې کښې دَبنواسرائيل دَ قصې ذکر دې اوموسى عليه السلام دَدوى نبى وو. (۶)

**قوله: ادخلوا الباب:** دَ باب نه باب القرية مراد دې يعنى دَکلي دروازه. سورت بقره کښې دى: ﴿وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ﴾ [البقرة:۵۸] دې نه کوم يو کلي مراد دې؟ يو قول دادې چه دې نه بيت المقدس مراد دې. (۷) دويم قول دادې چه اريحا مراد دې. (۸) دريم قول دادې چه مصر مراددې. (۹) بعض وئيلى رمله مراد دې. (۱۰) حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله اول قول ته ترجيح ورکړې ده چه دې کلى نه هم بيت المقدس مراد دې. (۱۱) دا دخول دَ حضرت موسى عليه السلام دَوفات نه څلويښت کاله پس دَ حضرت يوشع بن نون په مشرئى کښې شوې وو. دې نه وړاندې بنواسرائيل ته موسى عليه السلام بيت المقدس ته دَ ننه تلو حکم ورکړې وو ليکن هغوى بهانو کولوسره بيت المقدس ته دَ داخليدو نه انکار اوکړو دَ کوم په وجه چه په هغوى باندې ترڅلويښتو کالو پورې بيت المقدس ته داخليدل حرام کړې وو. بيا څلويښت کاله پس دَ يوشع بن نون په مشرئى کښې بيت المقدس فتح شو نو بيت المقدس ته دَننه تلوسره بنواسرائيل ته حکم ورکړې شو چه

---

(۱) كشف الباري: ۴۶۵/۱.

(۲) كشف الباري: ۴۲۸/۲.

(۳) كشف الباري: ۶۵۹/۱

(۴) الدرالمنصور: ۲۳۲/۱ دارالكتب العلمية.

(۵) روح المعاني: ۲۶۶/۱.

(۶) عمدة القاري: ۴۱۳/۱۵.

(۷) تفسير الطبري: ۱۰۲/۲ مؤسسة الرسالة.

(۸) تفسير الطبري: ۱۰۲/۲ مؤسسة الرسالة، وروح المعاني: ۲۶۶/۱.

(۹) عمدة القاري: ۴۱۴/۱۵.

(۱۰) حواله بالا.

(۱۱) إرشادالساري: ۳۴۵/۷ وروح المعاني: ۲۶۵/۱.

تیټ شني په تواضع سره داخل شني. غرور اوتکبر مه اختیاروني لیکن هغوی توقې مسخرې اوکړې د کوم انجام چه تباه کونکې وو په هغوی کښې د طاعون مرض خور شو او ټول مړه شول.(۱)

[۳۲۲۳]-حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا عَوْفٌ، عَنِ الْحَسَنِ، وَمُحَمَّدٍ، وَخِلاَسٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مُوسَى كَانَ رَجُلاً حَيِيًّا سِتِّيرًا، لاَ يُرَى مِنْ جِلْدِهِ شَيْءٌ اسْتِحْيَاءً مِنْهُ، فَآذَاهُ مَنْ آذَاهُ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ فَقَالُوا: مَا يَسْتَتِرُ هَذَا التَّسَتُّرَ، إِلاَّ مِنْ عَيْبٍ بِجِلْدِهِ: إِمَّا بَرَصٌ وَإِمَّا أُدْرَةٌ: وَإِمَّا آفَةٌ، وَإِنَّ اللَّهَ أَرَادَ أَنْ يُبَرِّئَهُ مِمَّا قَالُوا لِمُوسَى، فَخَلاَ يَوْمًا وَحْدَهُ، فَوَضَعَ ثِيَابَهُ عَلَى الحَجَرِ، ثُمَّ اغْتَسَلَ، فَلَمَّا فَرَغَ أَقْبَلَ إِلَى ثِيَابِهِ لِيَأْخُذَهَا، وَإِنَّ الحَجَرَ عَدَا بِثَوْبِهِ، فَأَخَذَ مُوسَى عَصَاهُ وَطَلَبَ الحَجَرَ، فَجَعَلَ يَقُولُ: ثَوْبِي حَجَرُ، ثَوْبِي حَجَرُ، حَتَّى انْتَهَى إِلَى مَلَإٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، فَرَأَوْهُ عُرْيَانًا أَحْسَنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ، وَأَبْرَأَهُ مِمَّا يَقُولُونَ، وَقَامَ الحَجَرُ، فَأَخَذَ ثَوْبَهُ فَلَبِسَهُ، وَطَفِقَ بِالحَجَرِ ضَرْبًا بِعَصَاهُ، فَوَاللَّهِ إِنَّ بِالحَجَرِ لَنَدَبًا مِنْ أَثَرِ ضَرْبِهِ، ثَلاَثًا أَوْ أَرْبَعًا أَوْ خَمْسًا، فَذَلِكَ قَوْلُهُ: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَى فَبَرَّأَهُ اللَّهُ مِمَّا قَالُوا وَكَانَ عِنْدَ اللَّهِ وَجِيهًا" [ص:۱۵۷] [ص ۴۵۶-۴۵۷][ر: ۲۷۴](۲)

## تراجم رجال

**اسحاق بن ابراهیم:** دا اسحاق بن ابراهیم حنظلی رحمه الله دې. د ابن راهویه په نوم سره مشهور دې. د دوی تذکره (کتاب العلم باب ما ذکر فی ذهاب موسیٰ علیه السلام فی البحر الی الخضر) لاندې تیره شوې ده.(۳)

**روح بن عبادة:** دا ابومحمد روح بن عبادة قیسی رحمه الله دې.

**عوف:** دا عوف بن ابی جمیله عبدی بحری الاعرابی رحمه الله دې.

**الحسن:** دا حسن بن ابی الحسن بصری رحمه الله دې.

**محمد:** دا محمد بن سیرین رحمه الله دې. د دې څلورو وارو حضراتو تذکره (کتاب الایمان باب اتباع الجنائز من الایمان) لاندې تیره شوې ده.(۴)

**خلاس:** دا خلاس بن عمرو الهجری البصری التابعی رحمه الله دې. دوی د عبدالله بن عباس، عبدالله بن عتبه بن مسعود، علی بن ابی طالب، عمار بن یاسر، ابورافع الصائغ، ابوهریرة او عائشه رضی الله عنهم نه حدیث روایت کړې دې. او د دوی نه جابر بن صبح، داؤد بن ابی هند، زیات بن ابی مسلم، عبدالله بن فیروز، عوف الاعرابی، قتاده او مالك بن دینار رحمهم الله د حدیث روایت کوی.(۵)

د حدیث بعض ناقدینو د حضرت علی رضی الله عنه او حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه د هغوی نیغ په نیغه سماع نه انکار کړې دې. هغوی تصریح کړې ده چه خلاس سره د حضرت علی رضی الله عنه او حضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایاتو مشتمل صحیفې وې هغوی به هم د دغه صحیفو نه احادیث القاء کول.

---

(۱) عمدة القاری: ۳۰۱/۱۵ منیریة.

(۲) مرتخریجه فی کتاب الغسل باب من اغتسل عریانا وحده فی الخلوة رقم:۲۷۸.

(۳) کشف الباری: ۴۲۸/۳.

(۴) کشف الباری: ۵۱۸/۲.

(۵) د شیوخ او تلامذه د تفصیل د پاره اوګورئ: تهذیب الکمال: ۳۶۵/۸ وتهذیب التهذیب: ۱۷۶/۳.

چناڼچه ابراهیم بن یعقوب جوزجانی رحمه الله د امام احمدبن حنبل رحمه الله قول نقل کړی دی: «روایته عن علي من کتاب» [۱] یعنی د حضرت علی رضی الله عنه نه دهغه روایت د کتاب یا صحیفې نه وو. دغه شان د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه دهغه د سماع باره کښې اوفرمائیل: «لم یسمع خلاس من أبي هریرة شیئا» [۲] یعنی خلاس رحمه الله د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه کله هم حدیث نه دې اوریدلې. امام ابوداؤد رحمه الله شعبه رحمه الله او ابوحاتم رحمه الله هم دحضرت علی رضی الله عنه نه دهغوی سماع نه انکارکړی دی [۳] شعبه وائی چه ایوب سختیانی ماته اووئیل «لاتروعن خلاس، فإنه صحیفي» [۴] یعنی د خلاس نه روایت مه کوه ځکه چه هغه د صحیفې نه روایت اوروی. دارقطنی رحمه الله وائی: «ماکان من حدیثه، عن أبي رافع عن أبي هریرة احتمل، وأما عن عثمان وعلي فلا» [۵] مطلب دادې چه دابورافع رحمه الله او ابوهریره رضی الله عنه نه کوم روایت نقل وی هغه قابل قبول کیدې شی خود حضرت عثمان رضی الله عنه اوحضرت علی رضی الله عنه نه دهغوی روایات قابل قبول نه دی.

حقیقت دادې چه دحضرت علی او حضرت عمار رضی الله عنهما نه دهغه سماع ثابته ده. که چرې د نورو صحابه کرامو نه سماع ثابته نه ده نو ددې مطلب دادې چه خلاس به دهغوی نه مرسلاً روایت کولو. چناڼچه محمد بن سعد رحمه الله فرمائی: «روی عن علي وعمار، وکان قدیما کثیر الحدیث» [۶]

د امام بخاری رحمه الله په نیز دحضرت عائشه رضی الله عنها نه ئی هم سماع ثابته ده. چناڼچه په تاریخ کبیرکښې فرمائی: «سمع عمارا وعائشة» [۷] حافظ ابن حجر رحمه الله دهغوی باره کښې فرمائی: «ثقة وکان یرسل، وقد صح أنه سمع من علي، وقد ثبت أنه قال: سألت عمار بن یاسر» [۸] ابواحمدبن عدی رحمه الله فرمائی: «له أحادیث صالحة، ولم أر بعامة حدیثه بأسا» [۹]

یحیی بن سعید القطان رحمه الله د علی رضی الله عنه نه دهغه د سماع نه انکار کړی دی اود حضرت عمار او عائشه او ابن عباس رضی الله عنهم نه د سماع اقرار کړی دی. فرمائی: «هو کتاب عن علي، وقد سمع من عمار وعائشة وابن عباس» [۱۰]

بهرحال د ائمه جرح وتعدیل دهغوی په ثقاهت باندې اتفاق دی. چناڼچه امام احمدبن حنبل رحمه الله دهغوی باره کښې فرمائی: «ثقة ثقة» [۱۱] یحیی بن معین رحمه الله فرمائی «ثقة» [۱۲] دغه شان امام عجلی، ابن شاهین، علامه ذهبی اوحافظ ابن حجررحمهم الله هم دهغوی توثیق کړی دی. [۱۳] امام بخاری، امام مسلم، امام نسائی، امام ابوداؤد، امام ترمذی، امام ابن ماجه رحمهم الله دې ټولوحضراتو د خلاس رحمه الله روایات نقل کړی دی. [۱]

---

[۱] الجرح والتعدیل: ۳/۳۸۳الترجمة: ۱۸٤٤.

[۲] تهذیب الکمال: ۸/۳۶۶.

[۳] تهذیب الکمال: ۸/۳۶۶وتهذیب التهذیب: ۳/۱۷۶.

[۴] الجرح والتعدیل: ۳/۳۸۳الترجمة: ۱۸٤٤.

[۵] إکمال تهذیب الکمال للمغلطائي: ٤/۲۳۸.

[۶] کتاب الطبقات الکبیری لابن سعد، الطبقة الثانیة ممن روی عن عثمان وعلي وطلحة والزبیر، إلخ، خلاس بن عمرو الهجري، رقم الترجمة: ۳۸۶۳، ۹/۱٤۹الناشر مکتبة الخانجي بالقاهرة.

[۷] التاریخ الکبیر: ۳/۲۲۶الترجمة: ۷۶٤.

[۸] تعلیقات علی تهذیب الکمال: ۸/۳۶۷.

[۹] الکامل لابن عدی: ۱/۶۸.

[۱۰] تهذیب الکمال: ۸/۳۶۶.

[۱۱] الجرح والتعدیل: ۳/۳۸۳والکاشف للذهبي: ۱/۲۷۷والترجمة: ۱٤۲۵.

[۱۲] تهذیب الکمال: ۸/۳۶۶

[۱۳] الجرح والتعدیل: ۳/۳۸۳.

**قوله: إن موسى رجلا حييا ستيرا:** حضرت ابوهریره ﷺ وائي چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي، موسیٰ علیه السلام به ډیر شرمیدو او پردې به ئي ښه اهتمام کولو. د حیا، د وجې نه د هغه د بدن څرمن هم نه ښکاریدله. بنواسرائیل نه څه کسانو هغه نه د تکلیف ورکولو د پاره اووئیل: (ما يستتر هذا التستر إلا من عيب بجلده: إما برص وإما أدرة، وإما آفة) یعني که وي اوکه نه خو دا سړې دومره پرده په دې وجه باندې کوي چه خامخا د ده په څرمن کښې څه عیب دې یا په بدن باندې د برگي مرض داغونه دي یا د ده هګئي پرسیدلې دي یا څه بل څه تکلیف دې.

أُدْرَة: د همزه فتحه دال په سکون سره د خصیتین د پړسیدو بیماري.[2]

**قوله: وإن الله أراد أن يبرئه مما قالوا لموسى......:** الله تعالیٰ هغه د بني اسرائیلو د خبرې نه بري کولو اراده اوکړه. چنانچه یوه ورځ خان له شو او په خلوت کښې ئې په کاڼي باندې خپلې کپړې کیخودې. بیائې غسل اوکړو کله چه فارغ شو نو د کپړو د اخستو د پاره وراوړاندې شو (لاکپړې اخستې هم نه وې چه په کوم کاڼي باندې کپړې ایخودې وې) هغه د کپړو سره په تیزئي سره لاړو، موسیٰ علیه السلام همسا واخسته او کاڼي پسې روان شو وئي فرمائیل (ثوبي حجر ثوبي حجر) اې کاڼي په زما کپړې اې کاڼي په زما کپړې. تردې چه موسیٰ علیه السلام منډو سره د بني اسرائیل یو جماعت ته اورسیدو. هغوي موسیٰ علیه السلام بربنډ اولیدلو په داسې حال کښې چه هغه د الله تعالیٰ په پیدا کړې شوې مخلوق کښې د ټولو نه زیات ښائسته وو اوداسې چه کوم عیبونه هغوي لګول د هغې نه الله تعالیٰ هغه پاک کړو. کاڼي اودریدو موسیٰ علیه السلام خپلې کپړې واچولې او کاڼي ئې په خپله همسا باندې وهل شروع کړه.

**قوله: فوالله إن بالحجر لندبا من أثر ضربه ثلاثا أو أربعا أو خمسا:** په الله قسم د هغه په وهلو سره په کاڼي کښې درې څلور یا پنځه نښې جوړې شوې وې. دا د حضرت ابوهریره ﷺ قول دې. کتاب الغسل والا روایت کښې د دې تصریح ده. راوي ته شك دې چه رسول اکرم ﷺ ثلاثاً فرمائیلي وو یا اربعاً یا خمساً. د کتاب الغسل والا روایت کښې د دې په ځائې (ستة أو سبعة) الفاظ دي.[3] هم د غه روایت ابن مردویه رحمه الله (حبيب بن سالم عن أبي هريرة) په طریق سره نقل کړې دې. په دې کښې "ست ضربات" الفاظ جزم سره راغلي دي.[4]

**د باب د روایت نه مستنبط فوائد:** علامه نووي رحمه الله فرمائي چه په دې روایت کښې د موسیٰ علیه السلام دوه واضح معجزاتو ذکر دې. یو دا چه کاڼي د موسیٰ علیه السلام کپړې اخستو سره اوتختیدو او بل دا چه په هغه باندې د موسیٰ علیه السلام د وهلو نښې جوړې شوې.[5] یوه خبره د دې روایت نه دا معلومه شوه چه د ښه او بد فرق جمادات هم کولې شي.[6]

علامه عیني رحمه الله د دې روایت نه نور فوائد او احکام هم مستنبط کړي دي. ① د علاج معالجه وغیره په غرض سره د ستر اندامونه کتل هم جائز دي. ② انبیاء کرام علیهم السلام د هر قسم ظاهري او باطني عیوب نه پاك وي

---

[1]) تهذيب الأسماء للنوي: ۱۹۸/۱، ۱۷۷، والكاشف للذهبي: ۲۷۷/۱ رقم الترجمة: ۱٤۲٥ وتقريب التهذيب: ۹۷/۱ دار الكتب العلمية.

[2]) النهاية في غريب الحديث: ٤٥/۱ الأدرة: بالضم: نَفْخَةٌ في الخُصْيَة. يقال: رجل آدَرُ. ومنه الحديث: إن بني إسرائيل كانوا يقولون إن موسى آدَر. من أجل أنه كان لا يَغْتَسِلُ إلا وَحْدَه. ذكره أبوموسى في المجموع المغيث. انظر تعليقات الشيخ خليل مأمون على هامش النهاية: ٤٥/۱.

[3]) اوګورئي كتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده في الخلوة رقم: ۲۷۸.

[4]) اوګورئي عمدة القاري: ۱٥/۱٥ ٤ وإرشاد الساري: ۲٤٦/۷.

[5]) إرشاد الساري: ۳٤٦/۷.

[6]) إرشاد الساري: ۳٤٦/۷.

۴ دَ يو نبي طرف ته خلقي او جسماني نقصان نسبت کول دَ نبي دَ اذيت په دائره کښې راځي او په دې سره سړي دَ ايمان نه هم خلاصيدې شي.[1]

فذلك قوله: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَىٰ﴾: حضرت ابوهريره رضي الله عنه وائي چه قرآن مجيد کښې دا کوم مذکوره آيت راغلې دې په دې کښې هم دا قصه بيان کړې شوې ده.

دَحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت: ترجمة الباب سره دَحديث باب مناسبت ښکاره دې.

[۳۲۲۴] - حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَسْمًا، فَقَالَ رَجُلٌ: إِنَّ هَذِهِ لَقِسْمَةٌ مَا أُرِيدَ بِهَا وَجْهُ اللَّهِ، فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَغَضِبَ حَتَّى رَأَيْتُ الْغَضَبَ فِي وَجْهِهِ، ثُمَّ قَالَ: يَرْحَمُ اللَّهُ مُوسَى، قَدْ أُوذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هَذَا فَصَبَرَ" [ص ۴۶۲] [ر: ۲۹۸۱][2]

## تراجم رجال

ابوالوليد: دا ابوالوليد هشام بن عبد الملك طيالسي رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب إثم من کذب على النبي صلى الله عليه وسلم) لاندې تیره شوې ده.[3]

شعبة: دا شعبه بن الحجاج بن الورد العتکي الواسطي رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب الإيمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده) لاندې تیره شوې ده.[4]

اعمش: دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدي کوفي رحمه الله دې. أعمش په لقب سره مشهور دې. دَدوی تذکره (کتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تیره شوې ده.[5]

ابووائل: دا شقيق بن سلمه اسدي تابعي رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب الإيمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر) لاندې تیره شوې ده.[6]

عبدالله: دا عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دې. دَدوی تفصيلي تذکره (کتاب الإيمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تیره شوې ده.[7]

قوله: قسم النبي صلى الله عليه وسلم قسما فقال رجل: إن هذه لقسمة......: حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وائي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم (غزوه حنين په موقع باندې دَ عربو بعض سردارانو کښې) مال تقسيم کړو. (بعض سردارانو ته ځه زيات مال ملاؤ شو يو سړي اووئيل (إن هذه لقسمة ما أريد بها وجه الله) دا داسې تقسيم دې په کوم سره چه دَالله تعالى رضا نه ده غوښتې شوې. مطلب دا دې چه په دې کښې دَ انصاف نه کار نه دې اخستې شوې.

---

[1] عمدة القاري: ۱۵/۴۱۶.

[2] مر تخريجه في كتاب فرض الخمس، باب ماكان النبي صلى الله عليه وسلم يعطى المؤلفة قلوبهم وغيرهم من الخمس ونحوه، رقم: ۳۱۵۰.

[3] کشف الباري: ۴/۵۹.

[4] کشف الباري: ۱/۶۷۸.

[5] کشف الباري: ۲/۲۵۱.

[6] کشف الباري: ۲/۵۵۹.

[7] کشف الباري: ۲/۲۵۷.

حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه وائی چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او د هغه داخبره مې وراوخودله نو حضور پاك غصه شو او دومره چه ما د رسول الله ﷺ په مخ مبارك باندې غصه اوليدله بيا حضور پاك اوفرمائيل: «رحم الله موسى، قد أوذي بأكثر من هذا فصبر» يعنى الله تعالى دې په موسى عليه السلام باندې رحم اوكړى هغه ته دَدې نه زيات تكليفونه وركړې شوى خو هغه بيا هم صبر كړې. كتاب الخمس كښې دا روايت په تفصيل سره تيرشوې دې.

**ترجمة الباب سره دَحديث باب مناسبت:** په حديث كښې دى «رحم الله موسى» ترجمة الباب سره هم دغه جمله مناسبت لرى.[1]

## ٣٠- باب: ﴿يَعْكُفُونَ عَلَىٰ أَصْنَامٍ لَّهُمْ﴾[2]

**دَترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله دَ باب لاندې وركړې شوى آيت تفسير كول غواړى.[3]

پوره آيت دادې: ﴿وَجَاوَزْنَا بِبَنِي إِسْرَائِيلَ الْبَحْرَ فَأَتَوْا عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ عَلَىٰ أَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوا يَا مُوسَى اجْعَل لَّنَا إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ ۚ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ﴾ او مونږ بنى اسرائيل دَ درياب نه پورې غاړه واړول نو دَهغوى تيريدل په يو داسې قوم باندې اوشو چه دَ خپلو بتانو په عبادت كښې لګياوو. هغوى اووئيل اې موسى! لكه څنګه چه دَدوى معبودان دى دغه شان يو معبود ته زمونږ دپاره هم جوړكړه. موسى اووئيل تاسو ډير جاهل خلق يئې.

دې نه مقصود دَ اسرائيل نافرمانى او دَ هغوى خراب عادتونه بيانول دى. موسى عليه السلام سره هغوى دَ سمندر نه پورې وتو سره په خپلو سترګو باندې فرعون او دَ هغه قوم ډوبيدو او غرقيدو سره اوليدل. نو هغوى له دَ الله تعالى شكر ادا كولو سره دَ موسى عليه السلام دَ توحيد عقيده اختيارول پكار وو ليكن هغوى دَ كفر او جهالت مظاهره اوكړه. دَ سمندر نه پورې غاړه ئې څه خلق دَ بتانو عبادت كښې اوليدل. علامه قسطلانى رحمه الله وائى چه دا تماثيل دَ بقر وو.[4] دَهغوى په ليدو سره ئې دَ موسى نه مطالبه اوكړه چه مونږ له هم دغه شان بتان او تماثيل جوړكړه او راكړه. مونږ له خپل معبودان پكار دى چه په سترګو سره ليدلې شى. موسى عليه السلام جواب وركړو چه تاسو دَ جهالت خبرې كوئې دَدوى معبودان باطل دى او دَدوى عمل دَ غرق كيدو دې.

﴿مُتَبَّرٌ﴾/الأعراف: ١٣٩/: خُسْرَانٌ. ﴿وَلِيُتَبِّرُوا﴾ يُدَمِّرُوا ﴿مَا عَلَوْا﴾/الإسراء: ٧/: مَا غَلَبُوا.

﴿مُتَبَّرٌ﴾: آيت كښې دى: ﴿إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ﴾ يعنى دا خلق چه په كوم څيز كښې لګيادى هغه تباه كيدونكې دې. امام بخارى رحمه الله متبر معنى په خسران سره كړې ده. دَمتبر معنى مات كړې شوې او دَ تباه كيدو ده. امام بخارى رحمه الله په خسران سره دَدې تفسير اوكړو. چنانچه په سورت اسراء كښې ﴿وَلِيُتَبِّرُوا﴾ راغلې دې نو امام بخارى رحمه الله دَدې تفسير يدمروا سره كړې دې. دَ ماعلوا معنى امام بخارى رحمه الله ماغلبوا سره كړې ده. دَسورت اسراء دَدې لفظ تعلق باب سره نه دې دائى استطراداً ذكر كړې دې.[5]

[٣٢٢٥]- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَٰنِ، أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ

---

[1]) عمدة القارى: ٧١٦/١٥.

[2]) /الأعراف: ١٣٨/.

[3]) فتح البارى: ٥٤٢/٨.

[4]) إرشادالسارى: ٣٤٧/٧.

[5]) عمدة القارى: ٣٤٧/١٥ إرشادالسارى: ٤١٧/١٥.

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَجْنِي الْكَبَاثَ، وَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ مِنْهُ، فَإِنَّهُ أَطْيَبُهُ» قَالُوا: أَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ؟ قَالَ: «وَهَلْ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ رَعَاهَا» [ص ۴۶۴] [۵۱۳۸] [1]

## تراجم رجال

**یحیی بن بکیر:** دا ابوزکریا یحیی بن عبدالله بکیر قرشی مخزومی رحمه الله دي.

**لیث:** دا لیث بن سعد بن عبدالرحمن فهمی رحمه الله دي. دَدې دواړو حضراتو تذکره بدء الوحي لاندې تیره شوې ده. [2]

**یونس:** دې نه یونس بن یزید ایلی رحمه الله مراد دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین) لاندې تیره شوې ده. [3]

**ابن شهاب:** دَدوی تذکره (بدء الوحی) لاندې تیره شوې ده. [4]

**ابوسلمة بن عبدالرحمن:** دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب صوم رمضان احتسابا من الایمان) لاندې تیره شوې ده. [5]

**جابربن عبدالله رضي الله عنه:** دَدوی تذکره (کتاب الوضوء باب من لم یر الوضوء الا من المخرجین) لاندې اوګورئ.

**قوله: کنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم نجني الکباث:** جابربن عبدالله رضي الله عنه وائي چه مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره میوې (بیرې) راغونډولې. وړاندې کتاب الاطعمة والا روایت کښې دَ مقام تصریح ده: (کنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم بمر الظهران) یعنی: مقام (مرالظهران) کښې مونږ دوی سره وو مونږ دَ میوې بیرې راغونډولې.

**قوله: وإن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: علیکم......إلخ:** رسول اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل دَ تور رنګ والا راغونډوئی ځکه چه هغه ښه وي. صحابه کرامو عرض اوکړو آیاتاسو به چیلئی څرولې؟ صحابه کرامو دا سوال ددې دپاره کړې وو ځکه چه دَ بیرو په قسمونو کښې اعلی او ادنی فرق عموما دَ چیلو څرونکی خلقو کولو. حضورپاك اوفرمائیل او اوېل دا چه یونبي هم داسې نه دې چه هغه چیلئی نه وي څرولې. دې دَ پاره چه په هغه کښې دَ نفس دَ تواضع خصلت پیداشي. دَ چیلو په ساتنې سره ترقي کولوسره دَ انسانیت قیادت اودَ هغوی دَتربیت په منصب باندې فائز وي. علامه خطابي رحمه الله فرمائي دَ دې حدیث مقصد دادې چه دَ نبوت منصب تواضع اختیارونکو ته ورکولې شي. مترفین او دَ دنیا په مالدارو کښې بدمست خلقو ته نه شي ورکولې. [6]

**دَحدیث په مناسبت باندې اشکال اودَ هغې جواب:** دلته اشکال پیدا کیږي چه باب خو امام بخاري رحمه الله (یعکفون علی أصنام لهم) دَتفسیر دپاره قائم کړې دې. نودَ حدیث جابر رضي الله عنه دَدې ترجمه سره څه مناسبت دې؟

ابن ملقن رحمه الله دَخپل شیخ په حواله سره مناسبت داسې بیان کړې دې چه حضرت موسی علیه السلام هم دَ چیلو څرونکو کښې داخل دې. [7] حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې رد کولوسره فرمائي چه دا قسم توجیه دَ حدیث دَمتن

---

[1] أخرجه أيضًا في الأطعمة باب الكبار رقم: ۵۴۵۳ ومسلم في الأشربة باب فضيلة الأسود من الكباث رقم: ۲۰۵۰ وقد تفرد به الشيخان انظر تحفة الأشراف: ۳۹۸/۲ رقم: ۳۱۵۵.

[2] كشف الباري: ۳۲۴/۱-۳۲۳.

[3] كشف الباري: ۲۸۲/۳.

[4] كشف الباري: ۳۲۶/۱.

[5] كشف الباري: ۳۲۳/۲.

[6] عمدة القاري: ۱۸/۱۵ ، ۴ فتح الباري: ۵۴۳/۸ الإعلام الخطابي: ۱۵۵۴/۳ مركز إحياء التراث الإسلامي.

[7] التوضيح لابن ملقن: ۴۸۱/۱۹ وزارة الأوقاف والشئون الإسلامية.

دَ موسیٰ علیه السلام دَ احوال دَ مناسبت په حواله سره خو مناسب دی مګر ترجمة الباب سره دَ حدیث مناسبت سره دَ دې هیڅ تعلق نشته دې.

**دَحافظ ابن حجر رحمه الله توجیه:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ماته داسې معلومیږی چه امام بخاری رحمه الله آیت او حدیث جابر رضی الله عنه په مینځ کښې بیاض پریخودې وو چه یو داسې روایت نقل کړې شی چه ترجمة الباب سره مناسب وی اودَ هغې نه پس داسې باب قائم کړی چه حدیث باب سره مناسبت ساتی لیکن هغوی ته دا موقع ملاؤ نه شوه. دَ دې تائید دَ نسفی په نسخه سره هم کیږی خکه چه په هغې کښې لفظ باب بغیردَ ترجمه دې یعنی دَ آیات ذکر نشته دې. باب سره متصلاً حدیث جابر رضی الله عنه وارد دې. په دې لحاظ سره دا باب (کالفصل من الباب السابق) دی یعنی دا هم دَ موسیٰ علیه السلام دَ حالاتو او سوانح تتمه ده. په دې صورت کښې دَ حدیث جابر رضی الله عنه مناسبت باب سره داسې کیږی چه (وهل من نبی إلا وقد رعاها) په عموم کښې حضرت موسیٰ علیه السلام هم شامل دې یعنی یو نبی داسې نه دې تیر شوې چا چه چیلئی نه وی څرولې نو موسیٰ علیه السلام هم دَ چیلو څرونکې شو. لکه چه په دې روایت کښې دَ موسیٰ علیه السلام دَ ژوند یو اړخ بیان کړې شوې دې.[1]

بعض روایاتو کښې تصریح ده چه موسیٰ علیه السلام به چیلئی څرولې. چنانچه دَ دې حدیث په بعض طرق کښې دی (ولقد بعث موسیٰ وهو یرعی الغنم) یعنی موسیٰ علیه السلام مبعوث کړې شو اوهغه دَ چیلو څرونکې وو. دا روایت امام نسائی کتاب التفسیر کښې (عن أبي إسحاق عن نصر بن حزن) په طریق سره نقل کړې دې.[2]

**دَعلامه کرمانی رحمه الله توجیه اودَ حافظ ابن حجر رحمه الله رد:** علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه په دې صورت کښې به ترجمة الباب سره دَحدیث مناسبت داسې وی چه بنی اسرائیل ته دَ خپل جهالت په سبب په معاشره کښې هیڅ امتیازی حیثیت حاصل نه وو. مګر الله تعالی په هغوی باندې فضل کولو سره هغوی له په ټول اقوام عالم باندې فضیلت ورکړې وو. هم دغه حال دَ انبیاء کرامو وو چه چلیئی به ئې څرولې او په معاشره کښې به ئې څه امتیازی مقام نه لرلو الله تعالی هغوی ته فضیلت ورکړو او هغوی ئې دَ ادنٰی حالت نه اوویستل او دَ نبوت اوچت مقام ئې ورکړو.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله په دې توجیه باندې رد کولو سره فرمائی چه دا توجیه دَ تکلف نه خالی نه ده. داسې خبرې دَ شرح متن سره مناسبت لری ترجمة الباب سره دَ دې تعلق نشته دې.[4]

## ۳۱- باب: ﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا بَقَرَةً﴾/البقرة: ۶۷/

**دَترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دَ دې باب لاندې دَمذکوره آیت تفسیر کول غواړی. دا آیت هم دَ موسیٰ علیه السلام دَ حالاتو متعلق دې. پوره آیت دادې: ﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا بَقَرَةً ۖ قَالُوا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ۖ قَالَ أَعُوذُ بِاللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ﴾ کوم وخت چه موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته اوفرمائیل چه الله تعالی تاسو ته حکم درکوی چه تاسو یوه غوا ذبح کړئی هغوی اوونیل ته مونږ پورې خندا کوې. موسیٰ علیه السلام اوفرمائیل نعوذبالله، چه زه داسې دَ جهالت والو په شان کار اوکړم (چه دَ الله تعالی په حکم کښې مسخرې اوکړم).

امام ابوجعفر رازی رحمه الله (عن الربیع بن أنس عن أبي العالیة) په طریق سره دَ مذکوره آیت دَ لاندې دا روایت نقل کړې دې چه بنو اسرائیل کښې یو مالدار سړې وو دَ کوم چه څه اولاد نه وو. یو نیزدې وارث ئې دَ مال په لالچ کښې

---

[1] فتح الباري: ۵۴۲/۸عمدة القاري: ۳۰۳/۱۵الکنز المتواري: ۳۶۱/۱۳.
[2] انظر سنن النسائي الکبری: ۱۷۱/۱۰رقم الحدیث: ۱۱۲۶۲مؤسسة الرسالة بیروت، ۱۴۶۱هجری.
[3] شرح الکرماني: ۵۶/۱۴دار إحیاء التراث العربي، وانظر فتح الباري: ۵۴۳/۸-۵۴۲.
[4] فتح الباري: ۵۴۳/۸-۵۴۲ دار الکتب العلمیة.

رانلو سره هغه قتل کړو او په لار کښې ئې اوغورزولو او بيا د موسیٰ علیه السلام په مخکښې چغې صورې وهلې چه په ما باندې لوئې مصيبت راغلو هيڅوک داسې نه ملاويږي چه د ده قاتل راته په گوته کړي. ته د الله تعالیٰ نبي ئې هم نه راته اوښايه. موسیٰ علیه السلام د خلقو نه معلومات اوکړه نو نولو د لاعلمئ اظهار اوکړو. هغوی ته د وحې په ذريعه حکم ورکړې شو چه د قاتل پته لګولو د پاره يو غوا ذبح کړئ او د هغې د غوښې يوه ټکړه د مقتول په بدن باندې اووهئ نو هغه به راژوندې شي او هم پخپله به د قاتل نوم اوښائي. موسیٰ علیه السلام هغوی ته د الله تعالیٰ دا حکم اوخودلو نو هغوی دا ټوقې ګنړلو سره اووئيل ﴿اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا﴾ آيا ته مونږ پورې ټوقې کوې؟ موسیٰ علیه السلام جواب ورکړو ﴿اَعُوْذُ بِاللّٰهِ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِیْنَ﴾ بيا بنو اسرائيل اووئيل ﴿ادْعُ لَنَا رَبَّكَ یُبَیِّنْ لَّنَا مَا هِیَ﴾ ته خپل رب نه درخواست اوکړه چه هغه بيان اوکړي چه هغه غوا به څنګه وي؟ موسیٰ علیه السلام جواب ورکړو ﴿اِنَّهٗ یَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَّلَا بِكْرٌ عَوَانٌۢ بَیْنَ ذٰلِكَ فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ﴾ يعنی الله تعالیٰ فرمائي چه هغه دې داسې غوا وي چه نه بوډئ وي او نه بالکل خوانه دې دواړو په مينځ کښې دې وي. بيا هغوی اووئيل ته د خپل رب نه دعا اوکړه چه هغه زمونږ د پاره بيان کړي چه ﴿مَا لَوْنُهَا﴾ د هغه غوا رنګ به څنګه وي؟ موسیٰ علیه السلام جواب ورکړو ﴿اِنَّهٗ یَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِیْنَ﴾ الله تعالیٰ فرمائي چه هغه غوا دې د تيز رنګ زيړه وي چه کتونکي خوشحالوي. هغوی وئيل ﴿ادْعُ لَنَا رَبَّكَ یُبَیِّنْ لَّنَا مَا هِیَ اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَیْنَا﴾ ته زمونږ د پاره د خپل رب نه دعا اوکړه چه زمونږ د پاره بيان کړي چه د دغه غوا پوره حقيقت به څه وي. حقيقت دا دې چه د غواګانو باره کښې مونږ ته اشتباه کيږي. موسیٰ علیه السلام جواب ورکړو ﴿اِنَّهٗ یَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُوْلٌ تُثِیْرُ الْاَرْضَ وَلَا تَسْقِی الْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِیَةَ فِیْهَا﴾ الله تعالیٰ فرمائي چه هغه به داسې غوا وي چه صحيح سالمه وي څه کمې په کښې نه وي چه نه يوې کوي او نه پټي خروب کوي او په هغې لږ شان ټاکې يا داغ هم نه وي.

د خپل عادت مطابق د ډيرو لاتجو نه پس بنو اسرائيل په دې حکم باندې رضامند شو. د مخصوص صفتونو دا غوا د ډير لټون نه پس هغوی ته د يوې بوډئ ښځې سره ملاؤ شوه چه هغې هم ښه ګران قيمت اووئيل موسیٰ علیه السلام اووئيل چه تاسو پخپله خپل خان په سختو کښې واچولو اوس چه دا څه غواړي هم هغه قيمت ورکړئ. هغوی غوا واخسته او د هغې نه ئې يو هډوکې واخستو او د مقتول نعش سره ئې اولګولو هغه راژوندې شو او د قاتل نوم خودلو سره مړ شو. (۱)

قَالَ اَبُو الْعَالِیَةِ: الْعَوَانُ: النَّصَفُ بَیْنَ الْبِكْرِ وَالْهَرِمَةِ. ﴿فَاقِعٌ﴾/البقرة: ۶۹: صَافٍ.

په مذکوره آيت کښې د لفظ عوان تفسير کړې شوې دې. نصف نون او صاد فتحه سره مينځنې ته وئيلې شي. ابوالعاليه رحمه الله دا قول وائي چه عوان د بوډئ او خوانې غوا په مينځ کښې درميانه درجې عمر والا غوا ته وائي. دا بوالعاليه رحمه الله امام قرطبي رحمه الله د (عن سلمه عن ابن اسحاق عن الزهري) په طريق سره نقل کړې دې. (۲)

**قوله: فاقع: صاف.** آيت دې ﴿صَفْرَآءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِیْنَ﴾ امام بخاري رحمه الله لفظ فاقع تفسير صاف سره کړې دې. حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د دې تفسير کړې دې (شديد الصفرة تکاد صفرتها تبيض) مطلب دې چه د دغه غوا رنګ فاقع يعنی داسې ژور زيړ رنګ وي چه سپين ښکاري. بعض حضراتو د فاقع معنی ډير تک تور رنګ سره کړې دې. دا صحيح نه دې. (۳)

---

(۱) فتح الباري: ۸/۵۴۴-۵۴۳.

(۲) عمدة القاري: ۱۵/۴۱۹.

(۳) عمدة القاري: ۱۵/۴۱۹.

﴿ذَلُولٌ﴾ لم يُذَلِّلْهَا العَمَلُ (﴿تُثِيرُ الْأَرْضَ﴾) /البقرة: ۷۱/: لَيْسَتْ بِذَلُولٍ تُثِيرُ الْأَرْضَ وَلَا تَعْمَلُ فِي الْحَرْثِ. (﴿مُسَلَّمَةٌ﴾) مِنَ الْعُيُوبِ (﴿لَا شِيَةَ﴾) /البقرة: ۷۱/: بَيَاضٌ. (﴿صَفْرَاءُ﴾) /البقرة: ۶۹/: إِنْ شِئْتَ سَوْدَاءَ، وَيُقَالُ: صَفْرَاءُ، كَقَوْلِهِ: (﴿جِمَالَتٌ صُفْرٌ﴾) /المرسلات: ۳۳/: (﴿فَادَّارَأْتُمْ﴾) /البقرة: ۷۲/: اخْتَلَفْتُمْ.

هغه غوا څنګه كيدل پكاردى؟ دَ هغې يو وصف ئى دا اوخودلو چه هغه ذلول نه وى. امام بخارى رحمه الله دَ دې معنى كړې ده (لم يذللها العمل) چه كار وغيره ذليل كړې نه وى. ﴿تُثِيرُ الْأَرْضَ﴾ امام بخارى رحمه الله (ولاتعمل فى الحرث) سره معنى كړې ده. يعنى چه داسې غوا وى چه په زمكه كښې دَ زميندارئى كار نه كوى.

**قوله: لاشية: بياض:** په آيت كښې لفظ (شية) معنى امام بخارى رحمه الله په سپين داغ سره كړې ده. يعنى هغه غوا داسې كيدل پكاردى چه په هغې كښې څه سپين داغ نه وى.

**قوله: صفراء: إن شئت سوداء، ويقال صفراء كقوله جمالات صُفر:** آيت كښې ﴿صَفْرَآءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا﴾ كښې لفظ (صفراء) متعلق امام بخارى فرمائيلى دى چه دا په خپله مشهوره معنى كښې استعماليږى ليكن كه تاسو غواړئى نودا دَ سوداء (تور) په معنى كښې هم اخستې شئى څكه چه دَ سورت مرسلات آيت ﴿جِمَالَتٌ صُفْرٌ﴾ [۳۳] كښې لفظ صفر دَ سودا په معنى كښې دې چه زيړ بخنه وى.

**قوله: فادارأتم: اختلفتم:** آيت دې ﴿وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادَّارَأْتُمْ فِيهَا﴾ [البقرة: ۷۲]. امام بخارى رحمه الله (ادارأتم) معنى كړې ده (اختلفتم) يعنى دَ قتل الزام په يو بل باندې لګولو او اختلاف ئې كولو. دا لفظ (دراء) نه دې او دَ دې معنى دَ دفع كولو دَ پاره راځى. يعنى دَ خپل ځان ساتنه ئى كوله او الزام به ئى دَ بل په سر. [1]

## ۳۲ - باب: وَفَاةِ مُوسَى وَذِكْرِهِ بَعْدُ.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله دوه خبرې خودل غواړى. دَ حضرت موسى عليه السلام دَ وفات قصه او دَ وفات نه پس تذكره. ذكره په مجرور باندې دَ عطف كيدو دَ وجې نه حالت جرى كښې دې. دَ ابوذر رحمه الله روايت كښې لفظ دَ باب ساقط دې. په دې صورت كښې ذكره مرفوع وئيل پكاردى. [2]

[۳۲۲۶] - حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "أُرْسِلَ مَلَكُ الْمَوْتِ إِلَى مُوسَى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ، فَلَمَّا جَاءَهُ صَكَّهُ، فَرَجَعَ إِلَى رَبِّهِ، فَقَالَ: أَرْسَلْتَنِي إِلَى عَبْدٍ لَا يُرِيدُ الْمَوْتَ، قَالَ: ارْجِعْ إِلَيْهِ فَقُلْ لَهُ يَضَعُ يَدَهُ عَلَى مَتْنِ ثَوْرٍ، فَلَهُ بِمَا غَطَّتْ يَدُهُ بِكُلِّ شَعْرَةٍ سَنَةٌ، قَالَ: أَيْ رَبِّ، ثُمَّ مَاذَا؟ قَالَ: ثُمَّ الْمَوْتُ، قَالَ: فَالْآنَ، قَالَ: فَسَأَلَ اللَّهَ أَنْ يُدْنِيَهُ مِنَ الْأَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ رَمْيَةً بِحَجَرٍ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَوْ كُنْتُ ثَمَّ لَأَرَيْتُكُمْ قَبْرَهُ إِلَى جَانِبِ الطَّرِيقِ تَحْتَ الْكَثِيبِ الْأَحْمَرِ» قَالَ وَأَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامٍ، حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ [ص ۴۷۱] [ر: ۱۲۷۴]. [3]

---

[1] تفسير الثعلبي: ۱۳۹/۱ قال: وأصل الدراء: الدفع، يعنى: ألقى ذلك على هذا وهذا على ذلك فدافع كل واحد نفسه.

[2] إرشادالساري: ۳۵۰/۷.

[3] مرتخريجه فى كتاب الجنائز باب من أحب الدفن فى الأرض المقدسة أونحوها: ۳۳۹ وهذا الحديث عزاه الحافظ المزي فى التحفة إلى البخارى فقط ولم يصرح بأنه روى عن مسلم أيضاً. وقد رواه مسلم فى الفضائل، فى باب فضائل موسى رقم: ۶۱۰۰.

## تراجم رجال

**يحيٰى بن موسٰى:** دا ابوزكريا يحيى بن موسٰى رحمه الله دى. دَدوى تذكره تيره شوې ده.[1]
**معمر:** دا معمر بن راشد الازدى البصرى رحمه الله دى (كتاب العلم، باب كتابة العلم) لاندې دَهغوى تذكره تيره شوې ده.[2]
**ابن طاؤس:** دا عبدالله بن طاؤس بن كيسان يمانى رحمه الله دى. دَدوى تذكره تيره شوې ده.[3]
**عن ابيه:** دا طاؤس بن كيسان يمانى جندى حميرى رحمه الله دى.[4]
دا روايت امام بخارى رحمه الله مخكښې خو طاؤس عن ابى هريرة په طريق سره موقوفاً روايت كړې دې او بيا دې نه پس هم دا روايت همام عن ابى هريرة په طريق سره موقوفا هم نقل كړې دې او دَ محدث عبدالرزاق رحمه الله په نيز هم دغه دَ همام والاسند مشهور دې.[5]

**دَموسٰى عليه السلام ملك الموت په مخ په څپيړه وهل:** أرسل ملك الموت إلى موسٰى عليه السلام فلما جاءه صكه..... ملك الموت موسٰى عليه السلام ته اوليګلې شو كله چه ملك الموت هغه له راغلو نوهغه دې په څپيړه اووهلو. دلته اشكال كيږى چه موسٰى عليه السلام ملك الموت ولې په څپيړه باندې اووهلو؟
① ملك الموت هغه له دَ مرګ پيغام وركولو دَپاره راغلې وو. دَ صحيح مسلم روايت دې چه ملك الموت موسٰى عليه السلام ته اووئيل (أجب ربك، فلطم موسٰى عين الملك ففقأها)[6]
يعني دَ خپل رب پيغام مرګ قبول كړه. په دې باندې موسٰى عليه السلام په سترګه باندې ملك الموت په څپيړه باندې اووهلو او سترګه ئې زخمي كړه. ملك الموت هغه له دَ انسان په شكل كښې راغلې وو او دكور په ديوال باندې راواوختې وو. دَموسٰى عليه السلام عمر ۱۲۰ كاله وو. موسٰى عليه السلام هغه پيژندلې نه وو دَ هغه په مزاج كښې ګرمى وه. په دې باندې هغه له غصه راغله چه بغير اجازت نه څنګه دننه راغلې، كيدې شى څوك اجنبى حمله كونكې زما دَ قتل په نيت راغلې وى. په دې وجه موسٰى عليه السلام هغه په څپيړه اووهلو. په هغه زمانه كښې به ملك الموت په انسانى شكل كښې دَعامو خلقو مخې ته رابښكاره كيدلو. چنانچه دَ مسند احمد روايت دې: (أن ملك الموت كان يأتى الناس عياناً، فأتى موسٰى فلطمه ففقأ عينه).[7]
**يوبل اشكال اودَهغې جواب:** دَصحيح مسلم او مسند احمد په رواياتو كښې تصريح ده چه موسٰى عليه السلام په ګذار سره دَ ملك الموت سترګه اووتله په دې باندې اشكال وارد كيږى چه ملك الموت خو طاقتور مخلوق دې دَ يو انسان ګذار دَ هغه په مقابله كښې څه حيثيت لرى بيا دا چه هغه نورانى مخلوق دې دَ انسان په شان دَ هغه سترګه وتل اوزخمي كيدل ناقابل فهم دى؟
ابن قتيبه رحمه الله وغيره دَدې جواب دا وركړې دې چه دا په اصل كښې تمثيل دې، حقيقت نه دې چه حضرت موسٰى عليه السلام حقيقتاً په څپيړه وهلې وو او هم په حقيقت كښې دَ ملك الموت سترګه وتلې وه. دا بالكل هم داسې دى لكه

---

[1] كشف البارى كتاب الحيض باب دلك المرأة نفسها.... ص: ۳۷۸.
[2] كشف البارى: ۳۲۱/٤.
[3] كتاب الحيض باب المرأة تحيض بعد الإفاضة رقم: ۳۲۹ ص: ۵۹۸.
[4] اوګورئى كتاب الوضوء، باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين.
[5] عمدة القارى: ۳۰۵/۱۵.
[6] صحيح مسلم كتاب الفضائل باب ومن فضائل موسٰى، رقم الحديث: ۶۱۴۹
[7] مسندالإمام أحمد: ۵۲۵/۱۶ مسندأبى هريرة: ۱۰۹۰٤ مؤسسة الرسالة: ۱٤۲۱ هجرى نور اوګورئى إرشاد السارى: ۳۵۰/۷.

چه په دوو کسانو کښې په څه خبره باندې تلخي راشي يو غالب راخي اوبل مغلوب. غالب راتلونکي وائي چه ما هغه بنه زخمي کړو ما خو دَهغه په سترګو کښې خاورې واچولې اوهغه خو خپل مخ وهلو لاړو. حالانکه په حقیقت کښې نه هغه زخمي کړې او نه دهغه په سترګو کښې خاورې اچوې او نه هغه خپل مخ وهي. دغه شان حضرت موسی علیه السلام په مقابله او بحث کښې غالب راغلو په حدیث کښې دَ سترګې وتو خبره هم دغه محاوره ده.[۱]

لیکن دا توجیه بعیده ده اودَ قرائن سیاق خلاف ده. ځکه چه په روایت کښې تصریح ده چه دَ عزرائیل سترګه اووتله نوهغه الله تعالی له لاړو هلته هغه شکایت اوکړو او الله تعالی دَهغه سترګه صحیح کړه.[۲] کله چه دَ سترګې وتل په حقیقت باندې محمول دی نوبیا اشکال دادې چه ملك الموت خو نوراني مخلوق دې دَ انسان په شان دَهغه سترګه راوتل ناقابل فهم دی.

دَدې جواب دادې چه الله تعالی په ملائکو کښې (تشکل بأشکال مختلفة) استعداد کیخودې دې. کله چه ملائکه دَ انسان په صورت کښې متشکل وی نوبیا په هغوی کښې انساني خصوصیات پیدا کیږی. ملك الموت په انساني صورت کښې راغلې وو په دې وجه په څپیړه باندې دَهغه سترګه اووتله.[۳]

شراح حضراتو خودا مختلف توجیهات کړې دی لیکن حقیقت دادې چه دا حدیث دَمتشابهات نه دی. علامه سندهي رحمه الله دَ سنن نسائي په حاشیه کښې دَدې تصریح فرمائیلې ده.[۴] دَ تاویل او توجیه کولو په ځائې نیغه خبره په دې کښې ده چه متشابهات الله تعالی ته حواله کړې شي.

② علامه نووي رحمه الله فرمائیلي دی ممکن دی چه موسی علیه السلام دَ الله تعالی په اجازت سره ملك الموت په څپیړه باندې وهلې وی چه داسې دَ ملك الموت امتحان واخستې شي.[۵]

③ دَ انبیاء دَ روح قبض کولونه وړاندې هغوی نه مشوره ضرور اخستې شي اوهغوی ته اختیار ورکولې شي. نو بعض حضرات اوفرمائیل چه موسی علیه السلام ملك الموت ځکه په څپیړه باندې اووهلو چه ملك الموت هغه سره مشوره نه وه کړې او دَ روح قبض کولو دَپاره راغلو.[۶]

**دَدې حدیث نه دمبتدعین انکار اودَ هغې رد:** علامه ابن خزیمه رحمه الله فرمائي چه بعض مبتدعینو دَدې حدیث دَ صحت نه انکار کړې دې. دا حضرات وائي چه که موسی علیه السلام ملك الموت پیژندلې وو نوبیا خو څپیړه لګول دَملك الموت توهین دې؟ که چرې پیژندلې ئې نه وو بیا دَهغه نه دَسترګې ویستلو قصاص ئې ولې وانخستو.؟

حافظ ابن خزیمه رحمه الله اودَ هغه په اتباع کښې علامه مارزي رحمه الله او قاضي عیاض رحمه الله دَدې جواب ورکړې دې چه ملك الموت په انساني شکل کښې په دیوال باندې وراوختې وو. موسی علیه السلام ته دَ هغه دَملك الموت کیدو علم نه وو. او اندیښنه پیدا شوه چه په دې انداز کښې کورته بغیر اجازت داخلیدل هم دَ نقصان رسولو په غرض سره کیدې شي په دې وجه هغه په څپیړه باندې وهلوسره دَملك الموت نه سترګه اوویستله. شارع علیه السلام په کور کښې دننه کتونکي غیر متعلق سړی سترګه ویستل مباح ګرځولي دی. کله چه دا عمل جائز شو نو موسی علیه السلام ځکه مجرم کیدې شي. هغه خپله دفاع کړې وه که په دغه دفاع کولو کښې هغه مړ شوې هم وې نونه قصاص لازم راتلو

---

[۱] شرح مسلم للنووي: ۱۵/۱۲۸وفتح الباري: ۸/۵۴۶

[۲] شرح مسلم للنووي: ۱۵/۱۲۸وفتح الباري: ۸/۵۴۶

[۳] إرشادالساري: ۷/۳۵۰وفتح الباري: ۸/۵۴۷

[۴] حاشية السندهي على سنن النسائي: ۴/۱۲۰مکتب المطبوعات الإسلامية، حلب ۱۴۰۶هجري.

[۵] شرح مسلم للنووي: ۱۵/۱۲۹نوراوګورئی فتح الباري: ۷/۵۴۶

[۶] اوګورئی شرح مسلم للنووي: ۱۵/۱۲۸کتاب الفضائل رقم: ۶۱۰۰نور اوګورئی فتح الباري: ۵/۵۴۶

او نه دیت واجب کیدو.
نو په دوو وجوهاتو سره دٙ موسٰی علیہ السلام دا عمل جائز دې یو دا چه دٙ کور په دیوال باندې ورا وختو سره کورته داخلیدونکي اجنبي سړی سترګه ویستل شرعاً جائز دی. دویم دا چه موسٰی علیہ السلام ملك الموت نه وو پیژندلې. حضرت ابراهیم علیہ السلام او حضرت لوط علیہ السلام له هم ملائکې په انساني شکل کښې راغلې وې دواړو حضراتو هغوی نه وې پیژندلې. که چرې ابراهیم علیہ السلام ته دٙحقیقت علم وې نو هغه به کله هم دٙ فرښتو په وړاندې په دسترخوان باندې خوراك نه کولو او که لوط علیہ السلام پیژندلې نو هغه به کله هم دٙ خپل قوم دٙ طرف نه فرښتو باندې دٙ لاس اوچتولو اندیښنه نه کوله. فرض کړه که موسٰی علیہ السلام ملك الموت پیژندلې هم وې نو دٙ ملائکو او انسانانو په مینځ کښې دٙ قصاص مشروعیت چرته ثابت دې؟ بیا دغه مبتدعینو داخبره دکوم ځائی نه راویستله چه ملك الموت دٙ موسٰی علیہ السلام نه قصاص مطالبه اوکړه او موسٰی علیہ السلام انکار اوکړو.[1]

**قوله: فرجع إلى ربه فقال أرسلتني إلى عبد لا يريد الموت:** چنانچه ملك الموت خپل رب ته واپس لاړو او عرض ئې اوکړو چه تا زه داسې بنده له لیږلې ووم دچا چه دٙ مرګ هڅو دٙ سره اراده نشته.

**قوله: قال ارجع إليه فقل له؟ يضع يده على متن ثور:** الله تعالی ملك الموت ته حکم اوکړو موسٰی علیہ السلام له دوباره لاړشه او هغه ته اووایه (چه دٙ الله تعالی حکم دې) دیو غوئي په شا باندې ته خپل لاس کیږده. یو روایت کښې دی: «فقل له: الحياة تريد؟ فإن كنت تريد الحياة فضع يدك على متن الثور، فما توارت يدك من شعرة فإنك تعيش بها سنة»[2] یعنی: موسٰی علیہ السلام ته اووایه ستا ژوند پکاردې؟ که غواړې نو دٙ غوئي په شا باندې لاس کیږده، په هرهغه ویښته کوم چه ستا لاس پټ کړی دٙهغې په بدله کښې به یو کال ژوند ملاویږی.

**قوله: فله بما غطى يده بكل شعرة سنة:** چنانچه دٙهغه دٙ پاره چه دٙهغه لاس کوم ویښته پټوی دٙهر ویښته په عوض کښې به یو کال عمر وی.

**قوله: قال: أي رب! ثم ماذا؟ قال: ثم الموت، قال: فالآن:** موسٰی علیہ السلام عرض اوکړو اې زما ربه بیا به څه کیږی. الله تعالی جواب ورکړو بیا مرګ. نو بیا موسٰی علیہ السلام عرض اوکړو (که داوږد نه اوږد ژوند نه پس آخر هم مرګ راتلونکې دې) نو بیا خو هم اوس (دې مرګ راشی).
عزرائیل علیہ السلام الله تعالی ته شکایت کړې وو چه تا زه داسې سړي له لیږلې ووم چه هڅو مرګ غواړی نه ممکن دی چه ملك الموت موسٰی علیہ السلام هڅو خبر کړې نه وی او دٙهغه دٙ خیالاتو نه په ناخبرئی کښې ئې هم پخپله دا اندازه کړې وی چه هغه دٙ مرګ دٙ نوم نه ناخوښه دې او دٙ مرګ تمنا نه کوی. په دې وجه ملك الموت ته مغالطه اوشوه او الله تعالی ته ئې شکایت اوکړو. الله تعالی ملك الموت ته ملکوتی صفات ورکولو سره دٙهغه دٙ سترګې زخم ټیك کړو او دوباره ئې موسٰی علیہ السلام له اولیګلو. اوس چه کله ملك الموت موسٰی علیہ السلام له راغلو او وئې کتل چه دٙهغه سترګه بالکل په صحیح حالت کښې ده نو حقیقت ورته ښکاره شو چه دا ملك الموت دې نو څکه په دوباره راتلو باندې هغه دٙ خفګان اظهار اونه کړو.[3]

**ارض مقدس سره نیزدې دٙموسٰی علیہ السلام تدفین خواهش: (قال: فسأل الله أن يدنيه من الأرض المقدسة رمية بحجر)**
ابوهریره رضی الله عنه وائی چه موسٰی علیہ السلام دٙ الله تعالی نه دعا اوکړه چه دې دٙ کاڼی دٙ ویشتلو په اندازه ارض مقدس ته

---

[1] الشفا بتعریف حقوق المصطفٰی، ۱۶۶/۲ دارالکتب العلمیة. فتح الباري: ۴۴۲/۶.
[2] صحیح مسلم: ۱۲۹/۱۵ کتاب الفضائل، باب من فضائل موسٰی علیہ السلام رقم: ۶۱۴۹، صحیح ابن حبان: ۱۱۶/۱۴ کتاب التاریخ باب بدء الخلق: ۶۲۲۴، ۶۲۳۰ مؤسسة الرسالة: ۱۴۱۴هجری.
[3] فتح الباري: ۴۴۳/۶ دارالمعرفة.

نیزدې کړي.

**قوله: قال أبوهريرة قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لوكنتُ ثَمّ.....إلخ:** ابوهریره رضي الله عنه وائي چه بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل که چرې زه هلته وې نوتاسو ته به مې د موسی علیه السلام د قبر نښه خودلې وه چه هغه کثیب احمر، سرې غونډئ سره نیزدې دفن دې.

**موسی علیه السلام بیت المقدس کښې د تدفین خواهش ولې ښکاره کړو؟:** سوال دادې چه موسی علیه السلام بیت المقدس کښې دننه د الله تعالی نه د تدفین خواهش ولې ښکاره نه کړو او د بیت المقدس نه د رمیة الحجر په فاصله باندې د تدفین خواهش ښکاره کړو؟

د دې جواب دادې چه بیت المقدس د انبیاء کرامو علیهم السلام د مدفن کیدو په سبب د برکت ځائې دې. حضرت موسی علیه السلام هم په دې وجه باندې بیت المقدس سره نیزدې د تدفین خواهش ښکاره کړو. په نفس بیت المقدس کښې د تدفین خواهش ځکه ښکاره نه کړو چه هلته د خلقو تګ راتګ ډیر کیږي هلته په دفن کیدو کښې موسی ته خطره وه چه د قبر طرف ته به د خلقو توجو وی اوهغه به د شرك او بت پرستئ مرکز جوړشي او کله چه قبر په ارض مقدس کښې دننه نه وی نو د دې طرف ته به د خلقو زیاته توجو نه وی. په دې وجه موسی علیه السلام د ارض مقدس نه بهر د تدفین درخواست اوکړو.(١)

**قوله: الكثيب الأحمر:** کثیب د شګو او ډیر دې غونډئ ته وائي یعني سره غونډئ.(٢)

د حضرت موسی علیه السلام قبر چرته واقع دې په دې کښې مختلف اقوال دی: د بعض حضراتو رائې ده چه د موسی علیه السلام قبر د مدینې او بیت المقدس په مینځ مدین کښې دې. دا صحیح نه دی ځکه چه مدین نه مدینې سره نیزدې دې اونه بیت المقدس سره نیزدې دې.(٣) ضحاك رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړې دې چه د موسی علیه السلام قبر بیت المقدس نه (رمیة بحجر) فاصله باندې واقع دې لیکن چاته معلوم نه دې.(٤)

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دا مبهم پاتې کول غوښتل لکه چه (إلى جانب الطريق عند الكثيب الأحمر) الفاظ نه مترشح دې. که چرې رسول الله صلی الله علیه وسلم د قبر نښې نښانې خودل غوښتل نو ضرور به ئې تصریح کوله ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي (لو علمت اليهود قبر موسى وهارون لاتخذوهما إلهين من دون الله) که چرې یهودیانو ته د موسی علیه السلام او هارون علیه السلام قبرونه معلوم وې نو هغوی دواړه به ئې د الله تعالی نه بغیر خپل معبودان جوړ کړي وې.(٥) حافظ ابن عساکر رحمه الله د کعب احبار رحمه الله قول نقل کړې دې چه د موسی علیه السلام قبر دمشق کښې دې.

خو د شراح په نیز اصح او راجح قول دادې چه میدان تیه سره نیزدې د اریحا په نوم سره یو کلې دې دلته یو قبر دې چه د بیت المقدس نه رمیة حجر په فاصله باندې واقع دې. هم دغه قبر د موسی علیه السلام دې. او په حدیث کښې چه کوم د سرې غونډئ ذکر راغلې دې هغه هم په دې مقام باندې ده.(٦)

د وهب بن منبه رحمه الله روایت دې د موسی علیه السلام د تدفین انتظام ملائکه کړې. جبرائیل علیه السلام د جنازې مونځ ورکړو او د ۱۲۰ کالو په عمر کښې د حضرت هارون علیه السلام د وفات نه یوولس میاشتې پس هغه وفات شوې.(٧)

---

(١) إرشادالساري: ٣٥١/٧.
(٢) النهاية لابن الأثير: ١٥٢/٤ دار إحياء التراث العربي.
(٣) فتح الباري: ٥٤٦/٨.
(٤) عمدة القاري: ٤٢١/١٥.
(٥) عمدة القاري: ٤٢٢/١٥.
(٦) فتح الباري: ٥٤٦/٨ و إرشادالساري: ٣٥١/٧.
(٧) عمدة القاري: ٤٢٢/١٥.

**قوله: قال وأخبرنا معمر عن همام حدثنا أبوهريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم نحوه:** عبدالرزاق بن همام رحمه الله وائي چه هم دغه روايت مونږ ته معمر رحمه الله عن همام عن ابي هريرة په طريق سره اوروليي او د دې په سند کښې د طاؤس عن ابيه واسطه نه وه. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا سند د مذکوره روايت سند سره موصول دې. بعض حضراتو دې ته تعليق ونيلي دي. حافظ ابن حجر رحمه الله دې ته د تعليق ونيل وهم گرځولی دی.[1]

**قوله: نحوه:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلي د دې مطلب دادې چه معمر عن همام والا روايت معناً د معمر عن ابن طاؤس والا روايت په شان دې لفظاً نه دې.[2]

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه سره د دې چه دا سند د اسناد اول سره موصول دې مگر دا تعليق گرځولو قول ته وهم ونيل هم صحيح نه دی ځکه چه بهرحال امام بخاری رحمه الله دا تعليق په صورت کښې ذکرکړې دې. او بيا د يو محدث دا روايت په سند د اتصال سره نقل کول دې امر ته مستلزم نه دې چه دلته دې هم د يو روايت موصول وی.[3]

[۳۲۲۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: اسْتَبَّ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَرَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ، فَقَالَ الْمُسْلِمُ [ص: ۱۵۸]: وَالَّذِي اصْطَفَى مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْعَالَمِينَ، فِي قَسَمٍ يُقْسِمُ بِهِ، فَقَالَ الْيَهُودِيُّ: وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى عَلَى الْعَالَمِينَ، فَرَفَعَ الْمُسْلِمُ عِنْدَ ذَلِكَ يَدَهُ فَلَطَمَ الْيَهُودِيَّ، فَذَهَبَ الْيَهُودِيُّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ الَّذِي كَانَ مِنْ أَمْرِهِ وَأَمْرِ الْمُسْلِمِ، فَقَالَ: «لَا تُخَيِّرُونِي عَلَى مُوسَى، فَإِنَّ النَّاسَ يَصْعَقُونَ، فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ، فَإِذَا مُوسَى بَاطِشٌ بِجَانِبِ الْعَرْشِ، فَلَا أَدْرِي أَكَانَ فِيمَنْ صَعِقَ فَأَفَاقَ قَبْلِي، أَوْ كَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنَى اللَّهُ» [ص ۴۷۹] [ر: ۲۲۸۰][4]

## تراجم رجال

**ابواليمان:** دا ابواليمان حکم بن نافع بهرانی حمصی رحمه الله دې.[5]

**شعيب:** دا ابوبشر شعيب بن مولی حمزه قرشی اموی رحمه الله دې. د دوی تذکره (بدء الوحی) لاندې تيره شوې ده.[6]

**الزهري:** دا مشهور محدث محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې.[7]

**ابوسلمة بن عبدالرحمن:** دا ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف دې د دوی تذکره (کتاب الايمان باب صوم رمضان احتسابا من الايمان) لاندې تيره شوې ده.[8]

**سعيد بن المسيب:** د دوی تذکره (کتاب الايمان باب من قال: ان الايمان هو العمل) لاندې تيره شوې ده.[1]

---

[1]) فتح الباري: ۵۴۶/۸ وإرشاد الساري: ۳۵۱/۷

[2]) فتح الباري: ۵۴۶/۸.

[3]) عمدة القاري: ۳۰۶/۱۵.

[4]) مرتخريجه فى كتاب الخصومات باب ما يذكر فى الإشخاص والخصومة بين المسلم واليهود. رقم: ۲۴۱۱.

[5]) كشف الباري: ۴۷۹/۱.

[6]) كشف الباري: ۴۸۰/۱.

[7]) كشف الباري: ۳۲۶/۱.

[8]) كشف الباري: ۳۲۳/۲.

**قوله: استبّ رجلٌ من المسلمين:** حضرت ابوهریره رضي الله عنه وائي چه دَ یو مسلمان او یهودي په مینځ کنځلې تکرار وغیره اوشوې. مسلمان اووئیل چه قسم دې په هغه ذات چاچه محمد ﷺ په ټولو عالمو کښې خوښ کړې یعنی فوقیت اوفضیلت ئې ورکړې. یهودي اووئیل چه قسم دې په هغه ذات چاچه موسیٰ علیه السلام په ټولو عالمو باندې خوښ کړې.

عمرو بن دینار رحمه الله تصریح کړې ده چه دلته رجل مسلم نه مراد حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه دې اودَ یهودي باره کښې ابن شکوال رحمه الله دَ ابن اسحاق رحمه الله په حواله سره فرمائیلي چه دَهغه نوم فنحاص دې.[٢] لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې رد کولوسره فرمائیلي چه څوک بل یهودي دې اودَهغه نوم ماته معلوم نه دې.[٣]

دَحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه او یو یهودي په مینځ کښې داشان واقعه دَ سورت آل عمران آیت ﴿إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ﴾ دَ نزول په وخت شوې وه او حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه یهودي په څپیړه باندې وهلې وو. فنحاص هم دَدغه یهودي نوم دې خودَ حدیث باب واقعه دویمه ده او په دې کښې چه دکوم یهودي ذکردې دهغه نوم مجهول دې.[٤]

**قوله: فرفع المسلم عند ذلك يده، فلطم اليهودي:** نو مسلمان خپل لاس اوچت کړو اویهودي په څپیړه اووهلو. یهودي موسیٰ علیه السلام له په ټول عالم باندې فوقیت ورکړو. دَلفظ عالمین په عموم کښې رسول الله ﷺ هم راځي نولکه چه یهودي دروغ اووئیل ځکه چه دَ مسلمان په نیز خو رسول الله ﷺ دَ ټولو نه افضل او اوچت دې. [٥]حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه هغه ته دَ دروغو سزا په توګه په مخ باندې څپیړه ورکړه. دَابراهیم بن سعد رحمه الله په روایت کښې "وجه" تصریح ده. (فلطم وجه اليهودي).[٦]

دَ عبدالله بن الفضل رحمه الله په روایت کښې دی: (فسمعه رجل من الأنصار فلطم وجهه وقال: أتقول هذا ورسول الله صلى الله عليه وسلم بين أظهرنا).[٧]

یعنی دَ یهودي دا خبره یوانصاري واوریدله نوهغه یهودي په مخ باندې په څپیړه باندې اووهلو او وئیل رسول اکرم ﷺ زمونږ په مینځ کښې موجود دې اوته دَداسې خبرې کولو جرأت کوې؟ په حدیث ابوسعید رضي الله عنه کښې هم دَ څپیړې نسبت دَ یو انصاري صحابي طرف ته کړې شوې دې.[٨]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي په ظاهره دواړه روایات دَعمرو بن دینار رحمه الله دَ قول خلاف دي په کوم کښې چه دَ څپیړې وهونکي نوم ابوبکرصدیق رضي الله عنه خودلې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله تطبیق ورکولوسره فرمائیلي دي که په مذکره روایاتو کښې لفظ انصاري نه عام معنی مراد وي نو دَ رسول الله ﷺ په انصار او اعوان کښې دَحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه نه زیات بل څوک کیدې شي.[٩]

---

[١] کشف الباري: ١٥٩/٢.

[٢] فتح الباري: ٥٤٧/٨ وإرشادالساري: ٣٥١/٧.

[٣] فتح الباري: ٥٤٧/٨.

[٤] فتح الباري: ٥٤٨/٨-٥٤٧ وإرشادالساري، ٣٥١/٧.

[٥] فتح الباري: ٥٤٨/٨.

[٦] صحيح البخاري كتاب الخصومات باب مايذكر في الإشخاص والملازمة والخصومة، رقم الحديث: ٢٤١١.

[٧] صحيح البخاري كتاب أحاديث الأنبياء باب:وإن يونس لمن المرسلين، رقم الحديث: ٣٢٣٣.

[٨] فتح الباري: ٨/٨.

[٩] فتح الباري:٥٤٨/٨.

**قوله: فذهب اليهودي إلى النبي صلى الله عليه وسلم فأخبره الذي كان من أمره:** يهودي رسول اكرم ﷺ ته راغلو اوحضورپاك ته ئې هغه خبره اوخودله چه دهغه اومسلمان په مينځ كښې اوشوه. د ابراهيم بن سعد رحمه الله په روايت كښې دي چه حضورپاك مسلمان هم راوغوښتلو او د واقعې معلومات ئې اوكړه.[1]

د ابن الفضل په روايت كښې دي چه يهودي رسول اكرم ﷺ مخاطب كړو وئې ويل: «ياأباالقاسم إن لي ذمة وعهداً فما بال فلان لطم وجهي؟ فقال: لم لطمت وجهه؟ — فذكره — فغضب النبي صلى الله عليه وسلم»[2]

يعنى زه خو معاهد او ذمي يم نوبيا په فلانكى مسلمان باندې څه چل شوي چه هغه زه په څپيړه اووهلم. رسول اكرم ﷺ د مسلمان نه د وجې تپوس اوكړو چه تا دې ولې په څپيړه اووهلو؟ هغه وجه اوخودله نوحضورپاك د غصې اظهار اوكړو.

**قوله: فقال لاتخيروني على موسى.......:** په دې موقع باندې رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل ماله په موسى عليه السلام باندې فضيلت مه راكوئ ځكه چه د قيامت په ورځ به ټول خلق بې هوشه شي او زه به د ټولو نه اول سړې يم چاته چه به هوش راځي هغه وخت به زه موسى عليه السلام ګورم چه هغه به د الله تعالى د عرش غاړه نيولې وي. ماته معلومه نه ده چه هغه به هم د هغه خلقو نه وي چه بې هوشه شوي وو او بيا زما نه هم اول په هوش كښې راغلى وو يا د هغوى نه وو ځوك چه الله تعالى د بې هوشئ نه مستثنى كړي وو.

**په موسى عليه السلام باندې د فضيلت دعوى او د هغې ممانعت:** رسول اكرم ﷺ ته په ټولو انبياء كرامو باندې فضيلت حاصل دې هم پخپله حضورپاك فرمائيلي «أناسيدولدآدم ولافخر» اوحضورپاك ته چه كوم فضيلت په ټولو انبياؤ باندې حاصل دې د هغې علم هم ورته وو. نو بيا خو دا اشكال دې چه حضورپاك ولې منع كړه چه په موسى عليه السلام باندې زما د اوچتوالى دعوى مه كوئ؟

شراح حديث د دې مختلف جوابونه وركړي دى. د بعض په نيز حضورپاك داسې تواضعاً فرمائيلي دى. بعض وئيلي دى چه هغه وخت حضورپاك ته د خپل فضيلت علم نه وو. بعض حضراتو وئيلي چه د دې جواب دا دې چه زما تعريف په داسې انداز كښې مه كوئ د كوم نه چه د موسى عليه السلام د سپكاوى اړخ راوځي. اكثر علماء كرام وائي چه د حضورپاك منشادا وه چه د انبياء كرام عليهم السلام په مينځ كښې د تفضيل په موضوع باندې هډو خبرې نه دي كول پكار. په دې موضوع باندې خبره كولوسره كله انسان د عصبيت په وادئ كښې داخليږي. شيطان د هغه موقع غنيمت ګڼړي او د دې د اعتدال د لارې نه د اخواكولو كوشش كوي او دا انديښنه وي چه هغه مفضول د هغه د مقام اومرتبې نه كم تر جوړولوسره په ضلالت او ګمراهئ كښې پرېنوځي. چنانچه علامه قسطلاني رحمه الله فرمائي:

«لاتخيروا بين الأنبياء، أي: من تلقاء أنفسكم، فإن ذلك قد يفضي إلى العصبية فينتهز الشيطان عنه ذلك فرصة، فيدعوكم إلى الإفراط والتفريط فتطرون الفاضل فوق حقه وتبخسون المفضول حقه فتقعون في مهواة الغي، فلا تقدموا على ذلك بآرائكم، بل ما آتاكم الله من البيان»[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا ممانعت په هغه صورت كښې دې چه كله سړې د يو دليل اوبرهان سهارا اخستو نه بغير صرف په خپله رائې سره تفضيل بين الأنبياء په موضوع باندې خبره كوي ګني دليل سره خبره كونكى سره دا نهى متعلق نه ده يا بيا دا نهى د هغه صورت سره متعلق ده په كوم كښې چه اسلوب كلام د مفضول د تنقيص سبب جوړيږي يا په دې سره د خصومت او جګړې فضاء هواريږي. ظاهر خبره ده چه خصومت اومناقشه تيزئ كښې د مفضول په شان كښې تنقيص شك كيدې شي، په دې وجه حضورپاك ممانعت اوفرمائيلو.[4]

---

[1] صحيح البخاري كتاب الخصومات باب في الإشخاص والخصومات إلخ، رقم الحديث: ۲۴۱۱.

[2] صحيح البخاري كتاب أحاديث الأنبياء باب: وإن يونس لمن المرسلين، رقم الحديث: ۳۲۲۳.

[3] إرشادالساري: ۳۵۲/۲.

[4] فتح الباري: ۵۵۱/۸.

يا بيامطلب دادي چه هر نبي ته به څه جزوي فضيلت ضرور ورکړې شوې وي کوم چه بل نبي ته نه وي ملاؤ نوتاسو داسي تفضيل مه کوئ چه دَ فاضل دَ فضيلت قصيدې ونيلو سره دَ مفضول دَ جزوي فضيلت نه هم انکار اوکړئ (١) يو قول دادې چه دا ممانعت په نفس نبوت کښې تفضيل سره متعلق دې چه په ذات نبوت کښې ټول انبياء کرام برابر دي ﴿لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ﴾ دَدې دليل دې. خو که بعض جزوي فضائل کښې يو نبي ته په بل باندې فضيلت ورکړې شي نودَدې ممانعت تعلق دې سره نه دې. دَ سورت بقره په آيت سره ددې تائيد کيږي ﴿ تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾.

**قوله: فإن الناس يصعقون فأكون أول من يفيق:** رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه دَقيامت په ورځ به ټول بې هوشه شي اوزه به دَټولو نه اول سرې يم چاته چه هوش راځي.

دَ صعق نه مراد داسې بې هوشي ده چه يوخطرناک آواز اوريدو سره يا ويرونکې څيز ليدو سره په انسان باندې راځي. دَ صعق اطلاق په مرګ باندې هم کيږي خودلته مراد بې هوشي ده. داحديث شراح مشکل ترين احاديثوکښې شمير کړې دې او په دې کښې دَ اوږدو توجيهاتو او احتمالاتونه کار اخستې شوې دې. رومبې ژور بحث صعقة سره متعلق دې چه دې نه کومه يوه صعقه مراد ده؟ دويم بحث په دې باره کښې دې چه کله رسول اکرم ﷺ اوفرمائيل چه دَ ټولو نه اول به هغه په هوش کښې راځي او موسىٰ عليه السلام به عرش سره ونيې نو سوال دادې چه موسىٰ عليه السلام وفات شوې دې او نص حديث باب کښې موسىٰ عليه السلام په عرش کښې ليدو سره ثابتيږي چه په هغه باندې مرګ نه دې راغلې. دې سره متعلق يو څو ابواب وړاندې (باب قول الله تعالى: ﴿وَوَاعَدْنَا مُوسَىٰ ثَلَاثِينَ لَيْلَةً﴾ لاندې بحث تير شوې دې.

[۳۲۲۸]- حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "احْتَجَّ آدَمُ وَمُوسَى، فَقَالَ لَهُ مُوسَى: أَنْتَ آدَمُ الَّذِي أَخْرَجَتْكَ خَطِيئَتُكَ مِنَ الجَنَّةِ، فَقَالَ لَهُ آدَمُ: أَنْتَ مُوسَى الَّذِي اصْطَفَاكَ اللَّهُ بِرِسَالاَتِهِ وَبِكَلاَمِهِ، ثُمَّ تَلُومُنِي عَلَى أَمْرٍ قُدِّرَ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ" فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى مَرَّتَيْنِ» [ص ۴۸۵][۴۴۵۹، ۴۴۶۱، ۶۲۴۰، و۷۰۷۷](٢)

## تراجم رجال

**عبدالعزيز بن عبدالله:** دا ابوالقاسم عبدالعزيز بن عبدالله بن يحيى اويسي رحمه الله دې. دَدوي تذکره (کتاب العلم باب الحرص على العلم) لاندې تيره شوې ده.(٣)

**ابراهيم بن سعد:** دا ابراهيم بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَدوي تذکره (کتاب العلم باب ما يذکر في

---

(١) فتح الباري: ۸/۵۵۱.

(٢) رواه البخاري أيضاً في كتاب التفسير في تفسير سورة طه، باب قوله ﴿وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي﴾ رقم: ۴۷۳۶ وباب قوله: ﴿فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰ﴾ رقم: ۴۷۳۸ وفي كتاب القدر باب تحاج آدم وموسىٰ عند الله رقم: ۶۶۱۴ وفي كتاب التوحيد باب قول الله تعالى ﴿وَكَلَّمَ اللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا﴾ رقم: ۷۵۱۵ ومسلم في القدر باب حجاج آدم موسى عليهما السلام رقم: ۶۶۹۹-۶۶۹۸ وأبوداؤد في سننه باب في القدر رقم: ۴۷۰۱ والترمذي في القدر باب: ۲ رقم: ۲۱۳۵ وابن ماجه في المقدمة باب في القدر رقم: ۶۸

(٣) كشف الباري: ۴/۴۸.

ذهاب موسیٰ علیه السلام فی البحر الی الخضر لاندې تیره شوې ده.[۱]

ابن شهاب: دَدوی تذکره (کتاب العلم باب بدء الوحی) لاندې تیره شوې ده.[۲]

حمید بن عبدالرحمن: دا حمید بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب تطوع قیام رمضان من الایمان) لاندې تیره شوې ده.[۳]

**قوله: احتج آدم موسیٰ فقال له موسیٰ: أنت آدم الذي أخرجتك خطيئتك؟**: رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دَ آدم علیه السلام او موسیٰ علیه السلام په مینځ کښې مباحثه اوشوه نو موسیٰ علیه السلام اووئیل ته هم هغه آدم یئی چه ستا خطا ته دَ جنت نه بهر راوویستې؟

احتج، باب افتعال نه احتج یحتج احتجاجاً معنی کښې دې. استدلال کول احتجاج کول دَ ناخوښئی اظهار کول.

**قوله: فقال آدم: أنت الذي اصطفاك الله برسالته وبكلامه.......الخ**: په دې باندې آدم علیه السلام اووئیل ته هم هغه موسیٰ یئی چا لره چه الله تعالی په رسالت او په کلام سره خوښ کړو (یعنی رسالت او نبوت سره دَ خبرو کولو شرف درکولو سره په خلقو باندې تاته فضیلت درکړو) بیا هم ما په داسې معامله باندې ملامت کوې کوم چه زما دَ پیدا کیدو نه وړاندې مقدر شوې وه. مطلب دا چه کومه معامله زما دَ لاسه اوشوه نو لامحاله به کیدله چه دَ الله تعالی په علم سابق کښې دَ اول نه فیصله شوې وه. دا ممکن نه دې چه کومه خبره دَ الله تعالی په علم سابق کښې فیصله شوې وی اوزما نه دَ هغې خلاف څه عمل صادر شی. ته دَ الله تعالی دَ خوښ کړې شوو خلائق نه یو بهتر نې چه دَ پردو نه شاته دَ الله تعالي دَ پټو رازونو مشاهده کوې. ته څنګه دَعلم سابق نه غافل کیدو سره دَهغه کسب اوعمل ذکر کوې کوم چه (دَ خطا) سبب دې اواصل هیروې کوم چه قدر دې.[۴]

**قوله: فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: فحج آدم موسیٰ مرتین**: رسول اکرم ﷺ دوه ځل اوفرمائیل آدم علیه السلام په موسیٰ علیه السلام باندې غالب راغلو. دَراجح قول مطابق دَحضرت آدم علیه السلام او حضرت موسیٰ علیه السلام په مینځ کښې دامکالمه او مناظره دَ دواړو دَوفات نه پس په آسمان باندې شوې ده. علامه عبدالبر رحمه الله یحیی بن سعید قطان رحمه الله او فضل الله توریشتی هم دغه رائې ده.[۵]

**ترجمة الباب سره دَ حدیث مناسبت**: دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت دادې چه په حدیث کښې دَحضرت موسیٰ علیه السلام دَ وفات نه پس احوال تذکره ده او هم دغه دَترجمة الباب دویم او آخری جزء دې لهذا په دواړو کښې مناسبت واضح دې.[۶]

[۳۲۲۹]- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حُصَيْنُ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[۱] کشف الباری: ۳/۳۳۳.

[۲] کشف الباری: ۱/۳۲۶.

[۳] کشف الباری ۲/۳۱۶.

[۴] قال العلامة القسطلاني وحكم بأن ذلك كائن لا محالة لعلمه السابق فهل يمكن أن يصدر مني خلاف علم الله، فكيف تغفل عن العلم السابق، وتذكر الكسب هو السبب، وتنسى الأصل الذي هو القدر. وأنت من المصطفين الأخيار الذين يشاهدون سر الله من وراء الأستار؟ (إرشاد الساري: ۷/۳۵۳).

[۵] دَ نور تفصیل دَپاره اوګورئی: کشف الباری کتاب التفسیر ص: ۴۳۵.

[۶] عمدة القاري: ۱۵/۳۰۷.

وَسَلَّمَ يَوْمًا قَالَ: "عُرِضَتْ عَلَيَّ الأُمَمُ، وَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الأُفُقَ، فَقِيلَ: هَذَا مُوسَى فِي قَوْمِهِ [ص ۴۸۷][۵۳۷۸، ۵۴۲۰، ۶۱۰۷، ۶۱۷۵] (۱)

## تراجم رجال

**مسدد:** دا مسدد بن مسرهد اسدی کوفی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه) (۲)

**حصین بن نمیر:** دا ابومحسن حصین بن نمیرواسطی ضریر رحمه الله دي. دوی دَحصین بن عبدالرحمن سلمی، حسین بن قیس الرجی، ثوری، محمدبن جناده، محمدبن عبدالرحمن بن ابی لیلی وغیرهم رحمهم الله نه دَ حدیث روایت کړي دي. اودَدوی نه عبدالله بن حماد، علی بن مدیني، حسن بن قزعه، حمید بن مسعده، مسدد او حسین بن محمد الدارع وغیرهم رحمهم الله دَحدیث روایت کوی. (۳)

دَ امام بخاری رحمه الله نه علاوه امام ابوداؤد رحمه الله امام ترمذی رحمه الله او امام نسائی رحمه الله هم دَدوی روایات نقل کړي دي. (۴)

یحیی بن معین رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی صالح. (۵) ابوحاتم رحمه الله دَدوی باره کښې فرمائی (صالح، لیس به بأس) (۶) احمد بن عبدالله عجلی رحمه الله ابوزرعه رحمه الله ابن حبان رحمه الله اوعلامه ذهبی رحمه الله دوی ته ثقه وئیلی دی. (۷)

**حصین بن عبدالرحمن** دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۸)

**سعیدبن جبیر:** دَ دوی تذکره (کتاب العلم باب السمر فی العلم) لاندې تیره شوې ده. (۹)

**قوله: عُرِضَتْ علي الأمم.....:** حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ له تشریف راوړو او وئی فرمائیل په ماباندې امتونه پیش کړې شو اوما دَ سرو یو لوئی جماعت اولیدلو کوم چه دَ آسمان لمنې پټې کړې وې. ماته اوخودلې شو چه موسٰی علیه السلام دې دَخپل امت په مینځ کښې. دا روایت وړاندې کتاب الطب او کتاب الرقاق کښې امام بخاری رحمه الله تفصیلاً نقل کړې دې دکوم چه یو جز دَباب په مناسبت سره امام صاحب دلته هم نقل کړې دې. په دې روایت کښې په رسول اکرم صلی الله علیه وسلم باندې دَ امتونو پیش کول اوموسٰی علیه السلام دَ خپل امت سره خودلو واقعه کومه چه بیان کړې شوې ده دَ امام ترمذی رحمه الله او امام نسائی رحمه الله په روایت کښې تصریح ده چه دا

---

(۱) أخرجه البخاري أيضاً في الطب باب من لم يرق: ۵۷۵۲وباب من اكتوى أو كوى غيره:۵۷۰۵وفي كتاب الرقاق باب: ﴿وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾ رقم:۶۴۷۲وباب يدخل الجنة سبعون ألفا بغير حساب رقم: ۶۵۴۱وعندمسلم في الإيمان باب الدليل على دخول طوائف من المسلمين الجنة بغير حساب ولا عذاب: ۲۲۰وعندالترمذي في جامعه في صفة القيامة باب: ۱۷رقم:۲۴۴۸.

(۲) کشف الباری: ۴۸۸/۲.

(۳) تهذيب الكمال: ۵۴۷/۶-۵۴۶وتهذيب التهذيب: ۳۹۱/۲.

(۴) تهذيب الكمال:۵۴۷/۶.

(۵) تهذيب الكمال: ۵۴۷/۶.

(۶) الجرح والتعديل: ۱۹۷/۳رقم الترجمة: ۸۵۹دارالكتب العلمية.

(۷) معرفة الثقات للعجلي: ۳۰۷/۱مكتبة الدار. كتاب الثقات لابن حبان: ۲۱۳/۶تهذيب الكمال للذهبي: ۳۳۹/۱.

(۸) اوګورئی کتاب مواقيت الصلاة باب الأذان بعد ذهاب الوقت:۵۱۵.

(۹) کشف الباری: ۴۱۸/۴.

واقعه دمعراج په شپه باندې پېښه شوې ده.[1] دا دې نه بعض حضراتو استدلال کړې دې چه معراج دوه ځل شوې يو ځل په مكه كښې او يو ځل په مدينه كښې. په مکه کښې چه د معراج کومه واقعه پېښه شوې ده هغې سره متعلق په روايت كښې د آسمانونو دروازې په دروازې کولاویدو بيان دې خو دمدينې والا د واقعه اسراء په روايت كښې د دې ذکر نشته دې.[2]

**قوله: رأيت سوادا كثيرا سد الأفق**: یعنی ما د نسانانو يولوئی جماعت اوليدلو چه د آسمان غاړې ئی پټې کړې وې. لفظ سودسواد (د سیاهئی) نه دې. د دې اطلاق د لرې نه په نظر راتلونکی سرې باندې کیږی. کثیرا صفت راوړلو سره دې خبرې طرف ته اشاره ده چه لفظ سود نه جنس مراد دې نه چه فرد واحد.[3]

**قوله: هذا موسٰى في قومه**: یعنی دا موسیٰ علیه السلام دې دخپل قوم په مينځ کښې.

مسند احمد کښې دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دې چه کله د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم موسیٰ علیه السلام سره تیریدل اوشو چه د يو جماعت په مينځ كښې وونو نبی پاک صلى الله عليه وسلم ته ډير تعجب پیدا شو او تپوس ئی اوکړو (من هولاء؟) دا څوك خلق دی؟ نوحضور پاك ته اوخودلې شو (هو أخوك موسٰى معه بنو إسرائيل)[4] دا ستا رور حضرت موسیٰ علیه السلام دې او هغوی سره دهغوی قوم بنی اسرائیل دی.

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت**: حديث باب کښې دی: (ورأيت سوادا كثيرا سد الأفق، فقيل: هذا موسٰى في قومه). د حديث په دې جزء كښې دموسیٰ د امت دکثرت بيان دې، ترجمة الباب سره د دې مناسبت واضح دې.

**دحديث باب نه مستنبط فائده**: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د دې روايت نه ثابته شوه چه د امت محمديه نه پس د حضرت موسیٰ علیه السلام امت دټولو نه لوئی امت وی.[5]

## ۳۳ - باب: قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: ﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ - إِلَى قَوْلِهِ - وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ/التحريم: ۱۲-۱۱/.

**دترجمة الباب مقصد**: امام بخاری رحمه الله د دې باب لاندې د فرعون د ښځې آسیه تذکره کول غواړی چه په موسیٰ علیه السلام باندې ایمان راوړې وو. دا باب هم د حضرت موسیٰ علیه السلام د حالات او واقعات تتمه ده. باب کښې امام بخاری رحمه الله د سورت مریم آیت نقل کړې دې. پوره آیت دا دې: ﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ إِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِي عِندَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَنَجِّنِي مِن فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهِ وَنَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ۝ وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهِ مِن رُّوحِنَا وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ ۝﴾ ارقم الآية: ۱۲-۱۱]

او الله تعالی د اهل ایمان دپاره د فرعون د ښځې حال بیانوی کوم وخت چه هغې عرض اوکړو چه اې زما ربه زما دپاره ته په خپل قرب کښې په جنت کښې کور جوړ کړه او ماته د فرعون ظالم اودهغه د قوم نه خلاصې راکړه اود عمران د لور مریم حال ئی بیان کړو چاچه خپل ناموس محفوظ اوساتلو. نو مونږ په هغې کښې خپل روح پوکوهلو او هغه د خپل رب د کلماتو اود هغه د کتابونو تصدیق اوکړو او هغه د حکم منونکونه وه.

---

[1]) جامع الترمذی أبواب صفة الجنة باب رقم: ۱۷ رقم الحديث: ۲۴۴۸.

[2]) إرشاد الساري: ۳۵۳/۷.

[3]) إرشاد الساري: ۳۵۳/۷.

[4]) مسند أحمد بن حنبل: ۳۵۳/۶ رقم الحديث: ۳۸۰۶ مؤسسة الرسالة.

[5]) فتح الباري: ۵۵۱/۸.

**دَ فرعون بي بي اسيه:** دَ فرعون ښځه آسيه بنت مزاحم باره کښې مختلف اقوال نقل دي. يو قول دادې چه دا دَ بني اسرائيل نه وه او دَموسیٰ علیه السلام چاچي وه.[1] بعض وئيلي دي چه دَ عمالقه نه وه اودَ فرعون دَ تره لور وه.[2]
کوم وخت چه موسیٰ علیه السلام په ساحرانو باندې غالب راغلو اودَ هغه معجزه کتوسره کومو خلق ايمان راوړو په هغوی کښې آسيه هم وه. کله چه فرعون ته معلومه شوه چه آسيه په موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام باندې ايمان راوړلې دې نو هغې ته ئې ډيرې سزاګانې ورکړې. په سور نمر کښې به سملوله او په دواړو لاسونو اوخپو کښې ميخونه ورټکوهل. کله چه دَ ميخونو ټکوهونکي لاړل نو فرښتو خپلې وزرې خورولو سره په دې باندې سورې اوکړو. هغه وخت آسيه بي بي دعا اوکړه: ﴿رَبِّ ابْنِ لِي عِندَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ﴾[3] دَدې دعا په نتيجه کښې دَهغې کور هغې ته اوخودلې شو نو آسيه بي بي دَهغې په کتو باندې مسکئې شوه. فرعون هم هغه وخت موجود وو ونې وئيل (ألا تعجبون من جنونها نعذبها وهي تضحك) آياتاسو خلقوته دَدې په ليونتوب باندې حيرانتيا نشته. چه مونږ دې ته سزا ورکوو او داخاندي. بيا فرعون خپلو نوکرانو ته اووئيل يو لوئې دروند کاڼړې دې دَدې په سينه باندې کيخودې شي. دآسيه نه هغه وخت روح تلې وو يودروند کاڼړې ئې بس په بې سا شي باندې کيخودو په دې سره هغې ته هيڅ تکليف اونه رسيدو.[4]

حسن بصري رحمه الله او ابن کيسان رحمه الله اوفرمائيل: (رفع الله امرأة فرعون إلى الجنة فهي تأكل وتشرب) يعنې الله تعالى دَ فرعون ښځه دَ جنت طرف ته پورته کړه اوهغه هلته خوري اوڅکي.[5]

**[۳۲۳۰]- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَمَلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيرٌ، وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ: إِلَّا آسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ، وَمَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ، وَإِنَّ فَضْلَ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ" [ص ۴۹۱] [۵۱۰۲، ۳۵۵۸، ۳۲۵۰]**[6]

﴿إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ﴾ رقم: ۳۴۳۲ وفي تاب الفضائل باب فضل عائشة رضي الله عنها رقم: ۳۷۶۹ وفي كتاب الأطعمة باب الثريد رقم: ۵۴۱۸ ومسلم في صحيحه في الفضائل باب فضل خديجة أم المؤمنين رقم: ۶۲۳۰ والترمذي في الأطعمة باب ماجاء في فضل الثريد رقم: ۱۸۳۵.

---

[1] البداية والنهاية لابن كثير: ۲۸۲/۱.

[2] فتح الباري: ۲۵۲/۸.

[3] سورة التحريم: ۱۱.

[4] تفسير الثعلبي رحمة الله عليه ۶/۲۳۳-۲۳۲ وزادالمسير لابن الجوزي: ۸۴/۸ وروح المعاني: ۴۹۵/۲۸.

[5] إرشادالساري: ۳۵۱/۶.

[6] أخرجه أيضاً في باب قوله الله تعالى: ﴿ إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ ﴾ رقم: ۳۴۳۲ وفي كتاب الفضائل باب فضل عائشة رضي الله عنها رقم: ۳۷۶۹ وفي كتاب الأطعمة باب الثريد رقم: ۵۴۱۸ ومسلم في صحيحه في الفضائل باب فضل خديجة أم المؤمنين رقم: ۶۲۳۰ والترمذي في الأطعمة باب ماجاء في فضل الثريد رقم: ۱۸۳۵.

## تراجم رجال

**یحیی بن جعفر**: دا ابوزکریا یحیی بن جعفر ازدی بخاری رحمه الله دي.[1]

**وکیع**: دا ابوسفیان وکیع بن جراح بن ملیح رؤاسی کوفی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب العلم باب کتابة العلم) لاندې تیره شوې ده.[2]

**شعبة**: دا شعبه بن الحجاج بن الورد االعتکی الواسطی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الإیمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده) لاندې تیره شوې ده.[3]

**عمرو بن مرة**: دا عمرو بن مره بن عبدالله بن طارق همدانی رحمه الله دي.[4]

**مرة الهمداني**: دا ابواسماعیل مرة بن شراحیل مخضرم همدانی بکلیلی کوفی رحمه الله دي. دَ ریاضت امرو کثرت عبادت دَ وجې نه مرة الخیر او مرة الطیب په لقب سره مشهور وو.[5]

هغوی دَ کبار صحابه کرام رضی الله عنهم نه احادیث روایت کړی مثلاً حذیفه بن یمان، زید بن ارقم، عبدالله بن مسعود، علقمه بن قیس، علی بن ابی طالب، عمر بن الخطاب، ابوبکرصدیق، ابوذرغفاری او ابوموسی اشعری رضی الله عنهم. اودَدوی نه اسماعیل بن ابی خالد، حصین بن عبدالرحمن، سعید بن یحمد، طلحه بن مصرف عامر شعبی، عطاء بن سائب، عمرو بن مره، قیس بن وهب، ابو اسحاق سبیعی وغیرهم رحمهم الله دَ حدیث روایت کړې دي.[6]

دَهغوی شمیر په لویو عبادتګوئکو کښې دي. تذکره نګارو لیکلی دی چه هره ورځ به نې دَ زر رکعته نفل کولو اهتمام کولو.[7] یوځل نې غیرمعمولی اوږده سجده اوکړه نو په خاوره سره دَهغه تندې اومرلې شو. دَ وفات نه پس په اهل خانه کښې چا خوب کښې اولیدلو اودَ هغه دَ سجدې اندامونه نې دَ ستوری په شان پرقیدونکی اولیدل خوب لیدونکی په حیرانتیا سره تپوس اوکړو (ماهذا الذي بوجهك؟) یعنی ستا دا تندې ولې داسې پرقیږی. مره بن شراحیل رحمه الله جواب ورکړو (کسی موضع السجود بأکل التراب نوراً) یعنی دَ خاورې دَ خوړلو په بدله کښې په تندې باندې دا نور بنکلې کړې شو. خوب لیدونکی بیا تپوس اوکړو په آخرت کښې ستا کوم یومنزل دې؟ هغه جواب ورکړو (خیرمنزل دارلا ینتقل عنها أهلها ولا یموتون) چه بنکلې منزل داسې کور دې په کوم کښې چه اوسیدونکی به نه دَهغه ځائی نه بدلولې شی اونه به په هغه باندې مرګ راځی.[8]

---

[1] اوګورئی کتاب الخوف باب الصلاة عند مناهضة الحصون ولقاء العدو: ۹٤٥.
[2] کشف الباری: ۲۱۹/٤.
[3] کشف الباری: ۶۷۸/۱
[4] اوګورئی کتاب الأذان باب تسویة الصفوف عند الإقامة وبعدها:۷۱۷.
[5] تهذیب الکمال: ۳۸۰/۲۷.
[6] دَ شیوخ اوتلامذه دَتفصیل دَ پاره اوګورئی: تهذیب الکمال: ۳۸۰/۲۷تهذیب التهذیب: ۸۸/۱۰
[7] عمدة القاری: ٤۲٥/۱٥.
[8] تهذیب الکمال: ۳۸۱/۲۷.

تولو ائمه جرح اوتعديل دَهغوى توثيق كړې دې.(۱) ابوحاتم رازى رحمه الله او ابوزرعه رحمه الله وائى چه حضرت عمر رضي الله عنه سره دَهغه ملاقات ثابت نه دې په دې وجه د حضرت عمر رضي الله عنه نه دَهغه روايات دَ مراسيل په ضمن كښې راځى.(۲)

حافظ ابن منده رحمه الله فرمائى مره بن شراحيل رحمه الله دَ رسول اكرم ﷺ زمانه ليدلې ده خو دَ زيارت نه محروم پاتې دې. والله اعلم.(۳)

**ابوموسى الاشعرى**: دَدوى تذكره (كتاب الايمان باب: أي الإسلام أفضل) لاندې تيره شوې ده.(۴)

**دَ ښځو دَ نبوت مسئله**: (كمل من الرجال كثير ولم يكمل من النساء إلا آسية امرأة فرعون......) په سړو كښې ډير كامل تير شوى دى ليكن په ښځو كښې دَفرعون ښځه آسيه او مريم بنت عمران نه سوا هيڅوك كامل شوى نه دى.

آيا ښځوته نبوت اورسالت ملاؤ؟ چه لفظ كامل مطلق استعمال وى نودَدې مصداق نبى وى ځكه نبى په نوع انسانى كښې هم هغه كامل كس وى، چونكه په دې روايت كښې دَ ښځو دپاره لفظ كامل وارد شوې دې په دې وجه دَدې روايت نه استدلال كولوسره امام ابوالحسن اشعرى رحمه الله علامه قرطبى رحمه الله او علامه ابن حزم ظاهرى رحمه الله فرمائى چه ښځوته هم نبوت ملاؤشوې دې.(۵)

دَدې حضراتو دَ استدلال طريقه داده چه حديث باب كښې دَ حصر سره فرمائيلى چه آسيه او مريم بنت عمران باكمال وې. كه دوى انبياء تسليم كولې نه انكار اوكړې شى اودا اووئيلې شى چه دَ لفظ كمال نه دَ نبوت په ځائې ولايت او صديقيت مراد دې ځكه چه دَ نبوت نه پس هم دغه مدارج دَ كمال دى نوبيا به دوى سره دَ صديقيت او ولايت حصر و اختصاص صحيح نه وى. ځكه چه دَ صديقيت او ولايت كمال دَدوى نه علاوه نورو ښځوته هم ملاؤ دې. لكه چه دَ دې تاويل په قبلولوسره به دا لازم شى چه دَدوى نه علاوه يوې ښځې ته هم صديقيت يا شهادت او يا دَ ولايت كمال حاصل نه دې لهذا ثابته شوه چه هم كمال نبوت مراددې.(۶)

چنانچه علامه قرطبي رحمه الله فرمائى چه مريم عليها السلام ته نبوت ملاؤ شو او الله تعالى دَ جبرائيل آمين په واسطه سره دَهغې طرف ته وحى ليكلې.(۷) امام اشعرى رحمه الله فرمائى چه شپږو ښځوته نبوت ملاؤ دې. ① حضرت حواء ② حضرت ساره ③ مريم بنت عمران ④ حضرت هاجره ⑤آسيه دَ فرعون ښځه ⑥حضرت ام موسىٰ.(۸)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَامام اشعرى رحمه الله په نيز ضابطه داده چه كه چرې يو انسان سره دَ جبرائيل په توسط سره دَ الله تعالى دَ اوامر او نواهي يا څه قسم پيغام هم اورسى نوهغه ته به نبى وئيلې شي.(۹)

په قرآن كريم كښې تصريح ده چه په دوى كښې بعض ښځوته وحى ليكلې شوې. چنانچه دَ موسىٰ عليه السلام دَ پيښو رودلو په زمانه كښې حضرت مريم عليها السلام ته حكم وركړې شو چه دې په تابوت كښې واچوه او درياب ته نى

---

(۱) اوګورئى الجرح والتعديل: ۸/۴۱۹-۴۱۸ وتهذيب الكمال: ۲۷/۳۸۱-۳۸۰ وتهذيب التهذيب: ۱۰/۸۹ وتذكرة الحفاظ: ۱/۲۷ وخلاصة الخزرجي ص: ۳۷۲.

(۲) تهذيب التهذيب: ۱۰/۸۹.

(۳) تهذيب التهذيب: ۱۰/۸۹.

(۴) كشف البارى: ۱/۶۹۰.

(۵) فتح البارى: ۸/۵۵۳ وإرشادالسارى: ۷/۳۵۵.

(۶) المصدرالسابق.

(۷) المصدرالسابق.

(۸) المصدرالسابق.

(۹) فتح البارى: ۸/۵۵۳.

حواله کړه. دا حکم دَ وحي په ذریعه ورکړې شو او په نص قرآني کښې دَ وحي تصریح ده: ﴿إِذْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰ ۝ أَنِ اقْذِفِيهِ فِي التَّابُوتِ فَاقْذِفِيهِ فِي الْيَمِّ﴾ [رقم الآیة: ۳۹-۳۸] دي نه علاوه دَ دوي استدلال دَ سورت مریم آیت ﴿فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا﴾ [رقم الآیة: ۱۷] نه دې. دا آیت حضرت مریم سره متعلق دې په دې کښې دَ روح نه مراد حضرت جبرائیل علیه السلام دې او جبرائیل علیه السلام هم دَ مرسلین طرف ته لیګلې شي.

**دَ جمهور علماؤ رائې:** دَ جمهور علماؤ رائې داده چه نبوت یوې ښځې ته نه دې ملاؤ. علامه کرماني رحمه الله په دې باندې اجماع نقل کړې ده.[1]

شراح حدیث دَ قائلین نبوة النساء په استدلال باندې رد کولوسره فرمائیلی چه په حدیث باب کښې دَ لفظ کمال نه نبوت مراد نه دې. کله چه یو څیز په خپل ښه والی کښې دَ اتمام او انتهاء درجې ته اورسي نو عموماً دَ هغې دپاره دَ لفظ کمال استعمال کیږي. چنانچه دَ روایت مطلب دادې چه هغه ټول فضائل اومحاسن کوم چه ښځې ته رسیدې شي حضرت آسیه او مریم علیهما السلام په هغوی کښې دَ کمال درجې ته رسیدلې وې.[2]

ملاعلي قاري رحمه الله فرماني چه په اثبات کمال سره اثبات اکملیت نه لازم کیږي. نبوت دا کملیت په درجه کښې راځي هغه په نفس کمال کښې نه راځي. دغه ښځوته نفس کمال حاصل دې خو دا کمال دَ هغه درجې دې چه دَ دوی نه علاوه بل یوې ښځې ته نه دې ملاؤ. دا کمال هغوی ته هم په صدیقیت او ولایت کښې حاصلیدې شي نه چه په نبوت کښې.[3]

**قوله: وإن فضل عائشة على النساء كفضل الثريد على سائر الطعام:** اوحضرت عائشه رضي الله عنها ته په نورو ښځو باندې داسې فضیلت حاصل دې لکه چه ثرید ته په ټولو خوراکونو باندې فضیلت حاصل دې.

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ حدیث باب الفاظ دي: «آسية امرأة فرعون» ترجمة الباب سره دَ دې مناسبت ښکاره دې.[4]

## ۳۴- باب: ﴿إِنَّ قَارُونَ كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ﴾ الآیَة/القصص: ۷۶.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** قارون هم دَ فرعون په شان مستبد اودَ موسیٰ علیه السلام دَ مخالفینو نه وو. دَ ډیر بې حسابه بې کتابه دولت مالك وو. دَ سرو زرو سپینو زرو او مرغلرو خزانوهغه دَ غرور نه ډك کړې وو. هغه خدم وحشم، تزك واحتشام او خپل بې شانه دولت دَ الله تعالیٰ دَ ورکړې منلونه او په دې باندې دَ الله تعالیٰ شکراداکولو نه دې وینا کولوسره انکاری وو چه دا دَ هغه دَ خپو لاسونو کمال دې. دَ حضرت موسیٰ علیه السلام په دعوت تذکیر او خیرغوښتونکی نصیحت به نې په ډیره خرابه طریقه رد کولو آخر الله تعالیٰ هغه سره دَ خزانو په زمکه کښې ورخښ کړو. امام بخاري رحمه الله دَ دې باب لاندې دَ قارون ذکر کول غواړي.[5]

﴿إِنَّ قَارُونَ كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ﴾ پوره آیت داسې دې: ﴿إِنَّ قَارُونَ كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ ۖ وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ مَا إِنَّ مَفَاتِحَهُ لَتَنُوءُ بِالْعُصْبَةِ أُولِي الْقُوَّةِ إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ لَا تَفْرَحْ ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ﴾ [رقم: ۷۶]. یعنی بیشکه قارون دَ

---

[1] شرح الكرماني: ۱۴/۶۰وفتح الباري: ۸/۵۵۳.

[2] فتح الباري: ۸/۵۵۳.

[3] مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح كتاب أحوال القيامة وبدء الخلق باب بدء الخلق وذكر الأنبياء رقم الحديث: ۵۷۲۴، ۱۰/۴۰۲دارالكتب العلمية.

[4] عمدة القاري: ۱۵/۴۲۵.

[5] عمدة القاري: ۱۵/۳۱۰إدارة الطباعة المنيرية.

موسىٰ عليه السلام دَ قوم نه وو نو هغه په دې (بني اسرائيل) باندې سرکشي کوله او مونږ هغه ته دَ خزانونه په دومره اندازه باندې ورکړې وو چه دَ هغې کنجياني به په يو جماعت باندې درونه والي کولو چه دَ طاقت والا خلق وو. کله چه دَ هغه قوم هغه ته اوونيل چه لوئي مه کوه حقيقت دا دې چه الله تعالىٰ لوئي او کبر کونکي نه خوښوي.

قارون عجمي نوم دې. دَ علم او عجمه دَ وجې نه غير منصرف دې.([1]) په آيت مبارك کښې دى چه هغه دَ موسىٰ عليه السلام دَ قوم نه وو. دا کومه يوه نسبي رشته وه؟ په دې سلسله کښې درې اقوال دى: ① يو قول خو دا دې چه قارون دَ موسىٰ عليه السلام دَ تره خوئي وو. ② دويم قول دا دې چه دَ ترور خوئي وو. ③ بعض وئيلي چه دَ موسىٰ عليه السلام تره وو. ([2]) حافظ ابن حجر رحمه الله اولني قول اصح گرځولې دې چه ابن حاتم رحمه الله په سند صحيح سره دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دغه قول نقل کړې دې.([3])

**قوله: فبغى عليهم:** يعني قارون په بني اسرائيلو باندې سرکشي غرور او تکبر کولو. دَ بغاوت په تفسير کښې مفسرينو او شراح مختلف اقوال نقل کړي دى: ① يو قول دا دې چه دې نه دَ قارون کفر مراد دې. ② بعض حضرات وائي چه دې نه حسد مراد دې. قارون په دې گمان کښې اخته وو چه کله دَ نبوت فضيلت او دَ احکام الهيه دَ تبليغ ذمه واري حضرت موسىٰ عليه السلام او حضرت هارون عليه السلام ته ورکړې شوه نو زما دَ پاره څه پاتې شو؟ په دې وجه هغه دَ سرکشئي او تکبر لاره اختيار کړه چه حکومت او مملکت زما په لاس کښې کيدل پکار دى. ③ بعض حضراتو فرمائيلي دې نه تکبر او غرور مراد دې چه دَ مال او دولت په زياتوالي سره هغه په لويئي او تکبر کښې راگير شوې وو او په خاني دَ منعم حقيقي دَ شکريه ادا کولو په دولت باندې فخر کولو سره دا دَ خپلې پوهې او محنت ثمره گنړلې وه.([4]) بعض مفسرين حضرات وائي چه قارون به دَ خپل قد نه يو ليشت اوږد قميص اغوستلو او دَ کبر او لوئيي دَ وجې نه به ئي دا په زمکه راښکلو سره تک کولو.([5]) بعض حضرات فرمائي چه دَ دې نه مراد دا دې چه قارون يوه فاحشه ښځه په موسىٰ باندې دَ بهتان لگولو دَ پاره تياره کړې وه کومې چه روستو بيا دا اعتراف هم اوکړو چه هم قارون هغه په بهتان لگولو باندې تياره کړې وه.([6])

﴿لَتَنُوٓءُ﴾ لَتُثْقِلُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿أُولِي الْقُوَّةِ﴾ لَا يَرْفَعُهَا الْعُصْبَةُ مِنَ الرِّجَالِ يُقَالُ: ﴿الْفَرِحِينَ﴾ الْمَرِحِينَ ﴿وَيْكَأَنَّ اللّٰهَ﴾/القصص: ٨٢/: مِثْلُ: أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللّٰهَ. ﴿يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَيَقْدِرُ﴾/الرعد: ٢٦/: يُوَسِّعُ عَلَيْهِ وَيُضَيِّقُ.

﴿لَتَنُوٓءُ﴾ لَتُثْقِلُ: امام بخاري رحمه الله فرمائيلي چه په آيت کښې لفظ (لتنوء) معنى ده (لَتُثْقِلُ) يعني کنجيانو به ستړې کول. دا تفسير دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې.([7])

**قوله: قال ابن عباس: أولى القوة لا يرفعها العصبة من الرجال:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ (أولى القوى) تفسير کولو سره فرمائي چه دَ خزانو کنجياني به دَ سړو يو ډلې نه شوې اوچتولې. (عصبة) اطلاق دَ څو مره سړو په

---

[1] تفسير للقرطبي: ٣١٠/١٣.
[2] دَ دربوارو اقوالو دَ پاره اوگورئي: تفسير القرطبي: ٣١٠/١٣ تفسير الطبري: ٦٧/٢٠.
[3] فتح الباري: ٥٥٣/٨.
[4] دَ تفصيل دَ پاره اوگورئي: تفسير القرطبي: ٣١٠/١٣ وفتح الباري: ٥٥٣/٨.
[5] دَ تفصيل دَ پاره اوگورئي: تفسير القرطبي: ٣١٠/١٣ وفتح الباري: ٥٥٣/٨.
[6] فتح الباري: ٥٥٣/٨.
[7] فتح الباري: ٥٥٤/١٥.

جماعت باندې کیږي؟ په دې کښې اقوال مختلف دي. بعض لس، بعض پنځلس، بعض څلویښت او بعض حضراتو وئیل چه د لسو نه تر څلویښتو پورې کسانو باندې مشتمل ډلې ته (عصبة) وئیلی شي.[1]

**قوله: الفرحين: المرحين**: المرحين د باب سمع مرح یمرح معنی ده، فخر کول، د خوشحالئ نه تاوېدل. امام بخاري رحمه الله فرمائي چه (فرحين) معنی فخر کونکي، دا تفسیر د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې. مطلب دا دې چه دا خلق د الله تعالی په ورکړې شوې نعمتونو باندې په خائې د شکر ادا کولو سرکشي کوي.[2]

**قوله: ويكأن الله: مثل ألم تر أن الله**: لفظ ويكأن د قارون مذکوره واقعې سره متعلق آیات کښې راغلې دې. پوره آیت داسې دې: ﴿وَأَصْبَحَ الَّذِينَ تَمَنَّوْا مَكَانَهُ بِالْأَمْسِ يَقُولُونَ وَيْكَأَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَيَقْدِرُ ۖ لَوْلَا أَن مَّنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا ۖ وَيْكَأَنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ﴾ [رقم: ۸۲].

او پرون چه کوم خلقو تمنا کوله چه مونږ به هم په مال او دولت کښې د هغه (قارون) په شان کېدلې، سحر کېدو باندې (چه کله قارون سره د خزانو په زمکه کښې ورخښ کړې شو نو د دې نه عبرت حاصلولو سره) ئې اووئیل چه واه خبره دا ده چه الله تعالی بیشکه خپل رزق خپلو بندیګانو نه چاته چه غواړي ورکړي او چاله چه غواړي رزق ورله تنګ کړي. که چرې الله تعالی په مونږ باندې احسان نه فرمائیلې نو مونږ به ئې هم ورخښ کړې وې آیا تاسو نه ګورئې چه کافران خلق نه کامیابیږي؟

امام بخاري رحمه الله د دې آیت طرف ته اشاره کړې ده او ﴿وَيْكَأَنَّ اللَّهَ﴾ [رقم: ۲۹] تفسیر په دویم آیت راوړلو سره فرمائیلې دې چه ﴿وَيْكَأَنَّ﴾ په اصل کښې (ألم تر أن) په معنی کښې دې یعنی ﴿وَيْكَأَنَّ اللَّهَ﴾ معنی ده آیا تاسو نه ګورئې یا نه پوهیږئې چه الله تعالی...... إلخ. ﴿وَيْكَأَنَّ﴾ کلمه مفرد ده. امام نسفي رحمه الله فرمائي چه دا کلمه مرکب ده. په دې کښې لفظ (وي) جدا او (كأن) جدا دې او لفظ (وي) اسم فعل دې کوم چه د حسرت او ندامت د اظهار د پاره راځي.[3]

ابوالحسن رحمه الله فرمائي چه (وي) اسم فعل دې 'ك' خطاب د پاره دې او 'أن' نه مخکښې لام مضمر دې او مطلب اظهار د تعجب او د هغې علت ذکر کول دي چه بیشکه قارون سره د خپل مال او متاع سره په زمکه کښې ورخښول بوه حیرانونکې واقعه ده او هم دغه وجه ده چه الله تعالی چاله غواړي وسعت ورکوي او په چا باندې چه غواړي نو هم دغه شان په هغه باندې رزق تنګوي.[4]

امام فراء رحمه الله یوه واقعه نقل کړې ده چه یوې اعرابي ښځې خپل خاوند ته اووئیل: (أين ابنك؟) ستا ځوئې چرته دې؟ خاوند ورته اووئیل: (ويكأنه وراء البيت) امام فراء رحمه الله اووئیل د دې مطلب دا دې: (أما ترينه وراء البيت).[5] ولې ته نه ګورې چه د کور نه شاته دې. شیخ زکریا رحمه الله فرمائي چه د مولانا حسین علي فنجابي رحمه الله په تقریر کښې دي: لفظ 'ويك'، 'ألم تر' په معنی کښې دې او د مولانا محمد حسن مکي رحمه الله په تقریر کښې دي چه دلته امام بخاري رحمه الله دا خود دل غواړي چه 'ويك' یو مستقل کلمه ده او 'أن' یوه جدا کلمه ده لکه چه 'لم' او 'تر' دواړه جدا جدا

---

[1] المصدر السابق.
[2] فتح الباري: ۸/۵۵٤.
[3] فتح الباري: ۸/۵٤ عمدة القاري: ۱۵/۳۱۰ روح المعاني سورة القصص رقم الآية: ۸۲.
[4] عمدة القاري: ۱۵/۳۱۰.
[5] عمدة القاري: ۱۵/۳۱۰.

كلمې دي. دلته دا مراد نه دی چه دلته دې دواړو "ويكأن" او "ألم‌تر" معنی يو ده. دغه شان مولانا محمد حسن مكی رحمه الله فرمانی چه "كأن" دلته د تشبيه دپاره نه دې بلكه "ك" د شاتنني كلمې "وي" جز دې.

مفسر امام شهاب الدين رحمه الله خپل تفسير الدر المصون كښې "ويكأن" په تفسير كښې مختلف مذاهب تحرير فرمائيلي دي. هغه ليكي: ① اولنې مذهب دادې چه "وي" مستقل كلمه او اسم فعل دې د كوم معنی چه تعجب او حيراتيا راځي. او "ك" تعليليه دې او "أن" د خپل خبر سره "ك" جاره دپاره مجرور دې او د آيت مفهوم دې چه هغه خلق چه د قارون په شان به نی دخان كيدلو تمنا كوله د قارون انجام په ليدو سره نی تعجب او حيراتيا اظهار اوكړو. او بيانی هم په خپله علت بيانولوسره داسې گويان شو چه بيشكه هم الله تعالی چاته چه غواړی وسيع رزق وركوی او چاله چه غواړی په هغه باندې د رزق دروازې راتنگ كړی. ددې تفسير تقاضا داده چه لفظ "وي" باندې وقف اوكړې شی لكه څنگه چه به امام كسائی رحمه الله دلته وقف كولو.

② "وي" مستقل كلمه ده او "كأن" هم يو مكمل كلمه ده چه د تشبيه دپاره استعماليږی مگر دلته د دې معنی خبر او يقين ده. مطلب دا چه دغه خلقو اول د قارون په انجام باندې د حيراتيا اظهار اوكړو او بيانی د دې خبرې خبرور كولو چه بيشكه هم الله تعالی رزق وسيع كوی او راتنگوی. ددې مذهب په اعتبار سره هم په "وي" وقف كول مناسب دی.

③ "وي"، "لا" او "أن" درېواړه مستقل كلمات دی. "وي" د اظهار تعجب دپاره استعماليږی او كاف صرف خطاب دې او "أن" دعامل محذوف معمول دې او هغه محذوف عامل "أعلم" دې او مفهوم د آيت دادې: اې مخاطب! مونږ ته د قارون په انجام باندې تعجب دې او زه پيژنم چه هم الله تعالی د رزق وسيع كونكې او تنگی كونكې دې. په دې كښې چونكه "ويك" جمله مركبه ده اوددې مذهب مطابق "ويك" باندې وقف كول مناسب دی او ابوعمرو هم داسې كول.

④ "ويك" اصل كښې "ويلك" دې د مينځ نه صرف لام حذف كړې شو نو "ويلك" نه "ويك" جوړ شو. ددې مذهب په اعتبار سره هم "ويك" باندې وقف كول مناسب دی لكه چه ابوعمر رحمه الله وقف كولو. د امام كسائی رحمه الله يونس رحمه الله او ابوحاتم رحمه الله هم دغه مذهب دې.

قرآن مجيد كښې دا لفظ دوو ځايونو كښې نقل شوې دې او په دواړو ځايونو كښې يو بل لفظ سره متصل استعمال شوې دې. يعنی "وكأن" كښې "أن" سره او "ويكأنه" كښې "ه" ضمير سره. ټولو قراء د رسم په اتباع باندې دلته وقف نه دې كړې. مگر امام كسائی رحمه الله "وي" باندې او ابوعمرو رحمه الله "ويك" باندې وقف كړې.

⑤ "ويكأن" پوره په پوره يو مستقل كلمه بسيط ده كومه چه "ألم‌تر" معنی كښې ده او هم دغه تفسير د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دې د امام فراء رحمه الله او امام كسائی نه نقل دی چه "ويكأن"، "أماترى، أي: صنع الله" معنی كښې دې.[1]

د امام بخاری رحمه الله ذكر كړې شوی آثار صرف مستملی او كشميهنی د روايت نه ثابت دی.[2]

## ۳۵ - باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾ الآيَةَ/هود: ۸۴/.

**د ترجمة الباب مقصد**: ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله د حضرت شعيب عليه السلام تذكره كول غواړی. حضرت شعيب عليه السلام د مدين طرف ته مبعوث كړې شوې وو. مدين د حضرت ابراهيم عليه السلام د دريمې ښځې خونی وو اود ده نه چه كوم نسل خور شوې هغه مدين ياديږی.[1]

---

[1] الدر المصون: ۳۵٤/۵ دار الكتب العلمية، الكنز المتواری: ۳۷۰/۱۳.

[2] فتح الباری: ۵۵٤/۸ عمدة القاری: ۳۱۱/۱۵.

**مدین یا اصحاب ایکه:** دا قبیله په کوم مقام باندې آباده وه؟ دَ قصص القرآن مؤلف عبدالوهاب نجار تحقیق دادې چه دا په حجاز کښې شام سره متصل داسې خائې کښې آباده وه دَ کوم عرض البلد چه دَ افریقې دَ جنوبی صحرا عرض البلد مطابق جوړېږي. بعض وائي شام سره متصل وه. قرآن مجید دَدې قبیلې دَ آبادئی متعلق دوه خبرې خودلې دي: ① یو دا چه هغه په امام مبین باندې آباده وه. ﴿وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ﴾ یعنی دَلوط علیه السلام او شعیب علیه السلام دواړو قومونه په لوئی شاهراه باندې آبادوو. دَ عربو دَ جغرافیه مطابق چه کوم شاهراه سوداګر قافلې شام، فلسطین، یمن بلکه دَ مصر پورې بوځې او دَ بحرقلزم دَمشرقی غاړې سره تیریدلو، قرآن پاک هم دې ته امام مبین (کولاؤ او صفا شاهراه) وائي ځکه چه صیف (ګرمی) او شتاء (یخنی) په دواړو زمانو کښې دَ قریشی قافلو دَپاره دا مشهور او لوئی تجارتی لار وه.

② دویم دا چه ﴿أَصْحَٰبُ ٱلْـَٔيْكَةِ﴾ (دَځنګل والا) وو. عربی کښې (ایکه) هغه شنو اوتازه جهاړو بوټو ته وائی چه دَ شنو تازه ونو دَ کثرت دَ وجې نه په ځنګلونو کښې راتوکیږی اودَ یو جهاړې شکل اختیاروی.

دَدې دواړو تصریحاتو نه معلومیږی چه دَ مدین قبیله بحرقلزم مشرقی غاړې او عرب مغربی شمال کښې داسې خائی کښې آباد وو چه شام سره متصل دَحجاز آخری حصه ورته وئیلې شی اودَ حجاز والو ته شام فلسطین بلکه دَمصر پورې تلو کښې دَهغې کنډرې په لاره کښې پرتې وې کوم چه دَ تبوک بالمقابل واقع وو.[۲]

**ایا مدین او اصحاب ایکه هم یوه قبیلې ده؟:** مدین او اصحاب الایکه هم دَ یوې قبیلې دوه نومونه دی اوکه دواړه جدا جدا قبیلې دی؟ دې سلسله کښې دَ مفسرینو نه مختلف اقوال نقل دی دَ بعض حضراتو رائې ده چه دواړه جدا جدا قبیلې وې. مدین متمدن او دَښاریو قبیله وه او اصحاب الایکه کلی وال یا صحرایان او دَ بدووانو قبیله وه کومه چه په اورین ځنګل کښې آباده وه. په دې وجه هغوی ته دَ بن والا یا ځنګل والا او وئیلې شو او آیت ﴿وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ﴾ کښې هما ضمیر تثنیه ده هم دغه دواړه مراد دی نه چه مدین او قوم لوط.[۳] خوجمهور مفسرین دواړه هم یوه قبیله ګرځوی او فرمائی چه دَ آب وهوا په لطافت دَنهرونو او آبشارونو دکثرت سره دا مقام داسې ښکلې ښائسته جوړکړې و اودلته دَ میوو دانو او خوشبوداره ګلونو دومره باغونه او چمنونه وو که یو سړې دَ آبادئی نه بهر اودریدو سره نظاره کوله نوهغه به داسې معلومیدله چه دا یو ډیر ښائسته آباد او دَ ګڼرو ونو ځنګل دې. هم په دې وجه قرآن کریم دې ته (ایکه) وئیلو سره متعارف کړه.[۴]

**یواشکال اودَ هغې جواب:** دلته اشکال کیدې شی چه کله دَدواړو قبیله یوه ده نو بیا دَقرآن مجید آیت ﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾ کښې اهل مدین سره دَ شعیب علیه السلام نسبی رشتې تصریح فرمائیلې اودَ ایکه په ذکر کښې دَدې نه سکوت ولې اختیار کړې؟

---

[۱]) قصص القرآن: ۲۳۷/۱.

[۲]) قصص القرآن: ۲۳۸/۱-۲۳۷.

[۳]) قصص القرآن: ۲۳۸/۱.

[۴]) المصدر السابق.

مفسرین حضرات دَدي دا جواب ورکوی چه ایکه دَ یوې ونې نوم وو او پوره قبیلې به دَدې عبادت کولو. په دې وجه قرآن مجید دَ شعیب علیه السلام سره دَدې نسبي رشته ذکر نه کړه اودمذهبی نسبت تصریح ئې اوفرمائیله.

إِلَى أَهْلِ مَدْيَنَ، لِأَنَّ مَدْيَنَ بَلَدٌ، وَمِثْلُهُ: ﴿وَاسْأَلِ الْقَرْيَةَ﴾ /یوسف: ۸۲/، وَاسْأَلِ ﴿الْعِيرَ﴾ /یوسف: ۸۲/: يَعْنِي أَهْلَ الْقَرْيَةِ وَأَهْلَ الْعِيرِ. ﴿وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا﴾ /هود: ۹۲/: لَمْ تَلْتَفِتُوا إِلَيْهِ. يُقَالُ إِذَا لَمْ تَقْضِ حَاجَتَهُ: ظَهَرْتَ حَاجَتِي وَجَعَلْتَنِي ظِهْرِيًّا.

آیت دې ﴿وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا﴾ دې کښې لفظ (أهل) مقدر دې ځکه چه مدین دَ ښارنوم دې اودَ شعیب علیه السلام بعثت دَ دې ښاراوسیدونکوطرف ته شوې وو. لکه چه ﴿وَاسْأَلِ الْقَرْيَةَ﴾ وَاسْأَلِ ﴿الْعِيرَ﴾ [یوسف: ۸۲] دواړو کښې مضاف یعنی لفظ اهل محذف دې. یعنی (أهل القریة وأهل العیر).

﴿وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا﴾: لَمْ تَلْتَفِتُوا إِلَيْهِ: دَ سورت هود آیت دې ﴿قَالَ يَا قَوْمِ أَرَهْطِي أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ وَاتَّخَذْتُمُوهُ وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا ۖ إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ﴾ ارقم الآية: ۹۲] یعنی شعیب علیه السلام خپل قوم ته اووئیل اې زما دَ قوم خلقو آیا دَ الله تعالی نه زیات په تاسو باندې زما دَ اهل څه دباؤ یا زور شته؟ او الله تعالی ستاسو دپاره هیڅ هم نه شو چه تاسو شاته واچولو؟ کوم څه چه تاسو کوئی زما دَ رب احاطه علم نه بهر نه دی. (ظهریا) ظَهر (شا) طرف ته منسوب دې. چه یو سړې دَبل حاجت پوره نه کړی یا هغه ته اهمیت ورنه کړی نوهغه وائی چه (ظهرت بحاجتی)، تازما حاجت شاته اوغورزولو.

امام بخاری رحمه الله ﴿وَاتَّخَذْتُمُوهُ وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا﴾ معنی کولوسره اوفرمائیل (لم تلتفتوا إلیه) یعنی تاسو خلقو دَالله تعالی طرف ته توجو او التفات اونه کړو.

قَالَ: الظِّهْرِيُّ أَنْ تَأْخُذَ مَعَكَ دَابَّةً أَوْ وِعَاءً تَسْتَظْهِرُ بِهِ. مَكَانَتُهُمْ وَمَكَانُهُمْ وَاحِدٌ. ﴿يَغْنَوْا﴾ /الأعراف: ۹۲/: يَعِيشُوا. ﴿تَأْسَ﴾ /المائدة: ۲۶، ۶۸/: تَحْزَنْ. ﴿آسَى﴾ /الأعراف: ۹۳/: أَحْزَنُ.

دَ قال ضمیر فاعل امام بخاری رحمه الله طرف ته راجع دې. وئیلې شی چه "ظهری" هغه دابه (څناور) ته هم وائی دکوم نه چه سړې قوت او سهارا حاصلوی. که چرې هغه څناور کوم چه په سورلئی کښې استعمالیږی سترې شی نو بیا به دویم څناور استعمالولې شی. دا لکه چه دَ مددګار په معنی کښې هم راځی. ځکه چه هغه هم دَ مددګار کار ورکوی.

**قوله: مكانتهم ومكانهم واحد:** سورت انعام کښې دَ حضرت شعیب علیه السلام په قصه کښې دی. ﴿وَيَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ﴾ ارقم الآیة: ۹۳] اې زما قومه تاسو په خپل حالت باندې عمل کوئی. امام بخاری رحمه الله خودل غواړی چه "مکان" او "مکانة" دواړه دَ یوشان معنې دی لکه مقام او مقامة. دَ سورت هود آیت دې. ﴿وَأَخَذَتِ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دِيَارِهِمْ جَاثِمِينَ ۝ كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۗ﴾ ارقم الآیة: ۶۸-۶۷] اوهغه ظالمان یوخطرناک آواز راګیر کړل، بیا سحر په خپلو کورونو کښې پرمخې پراته پاتې شو، لکه چه کله هلته اوسیدلې نه وو.

**قوله: يغنوا: يعيشوا:** مَغْنَى کورته وائی. دَدې جمع مغانی راځی. امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل یغنوا معنی ده یعیشوا یعنی هغوی په دې کښې هډو اوسیدلې نه وو.

**قوله: تأس: تحزن آسى: أحزن:** دَ اولنی لفظ سره دَ سورت مانده آیت طرف ته اشاره ده: ﴿فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ﴾ [الآیة: ۲۶] پس دَ انکار کونکو په حال باندې هیڅ افسوس مه کوه. امام بخاری رحمه الله (تأس) معنی کړې ده تحزن یعنی مه خفه کیږه. دا آیت دَحضرت موسی علیه السلام دَ قصې په ضمن کښې وارد شوې دې. دلته امام بخاری رحمه الله استطراداً ذکرکړې دې.[1]

[1] فتح الباري: ۵۵۶/۸

دَ کیف آسیٰ تفسیر امام بخاري رحمه الله (احزن) سره کړې دې. یعني خپل ځان ولې خفه کوې. دَ سورت اعراف آیت دې.
﴿فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسٰلٰتِ رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۚ فَكَيْفَ اٰسٰى عَلٰى قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ﴾ [رقم الآية: ۹۳] شعيب علیه السلام مخ واړولو او وئې وئیل اې زما قومه ما تاسو ته دَ خپل رب احکام اورسول او ما ستاسو دَ پاره خیرخواهي اوکړه نو بیا دَ کافرانو په قوم باندې ولې غم اوکړم؟
وَقَالَ الْحَسَنُ: ﴿إِنَّكَ لَأَنْتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ﴾ /هود: ۸۷/: يَسْتَهْزِئُونَ بِهِ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: لَيْكَةُ الْأَيْكَةُ. ﴿يَوْمِ الظُّلَّةِ﴾ /الشعراء: ۱۸۹/: إِظْلَالُ الْغَمَامِ الْعَذَابَ عَلَيْهِمْ.
دَ سورت هود آیت: ﴿قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ۭ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ الرَّشِيْدُ﴾ [رقم الآية: ۸۷] هغوی اووئیل اې شعیب! آیا ستا مونځ تا ته هم دغه حکم درکوی چه مونږ دا څیزونه پرېږدو دَ کوم چه زمونږ پلارانو نیکونو عبادت کولو یا دَ خپلو مالونو نه دَ خپل خواهش مطابق معامله اونه کړو. بیشکه تاسو بوج اوچتونکې او نیک چلن یئې. هغوی طنز او تعریض کولوسره شعیب علیه السلام ته حلیم او رشید وئیلې وو او غرض ئې دې دې عکس وو چه ته (نعوذبالله) سفیه او سرکش ئې. (۱)
**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: لَيْكَةُ الْأَيْكَةُ:** دَ امام بخاري رحمه الله اشاره دَ سورت شعراء آیت ﴿قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ۭ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ الرَّشِيْدُ﴾ [رقم الآية: ۱۷۶] طرف ته ده. (الأيكة) په مجاهد رحمه الله (لَيْلَة) په وزن باندې (ليكة) لوستلو.
**قوله: يَوْمِ الظُّلَّةِ: إِظْلَالُ الْغَمَامِ الْعَذَابَ عَلَيْهِمْ:** دَ سورت الشعراء آیت: ﴿فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ ۭ اِنَّهٗ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ﴾ [رقم الآية: ۱۸۹] یعني قوم شعیب علیه السلام لره دروغ اوګنړلو، لهذا دغه خلق دَ سائبان والا دَ ورځې عذاب راګیر کړل، بیشکه هغه دَ لوئې ورځې عذاب وو. امام بخاري رحمه الله یوم الظلة تفسیر کړې دې چه دَ دې نه اوریځې دَ سائبان په شکل کښې په هغوی باندې عذاب جوړېدو سره راښکاره کېدل مراد دې.
علامه قرطبي رحمه الله لیکلې دی چه هوا منع کړې شوه سخته ګرمي راولیګلې شوه لهذا هغوی کورونه پرېخودل او دَ ونو او جهاړو خواته راجمع شو. بیا الله تعالیٰ اوریځ راولیګله دَ کومې په سوري کښې چه دَ پناه اخستلو دَ پاره یوځائې کښې راجمع شو. کله چه ټول رایوځائې شو نو هم هلته اوسوزولې شو. (۲) په یو بل روایت کښې دی چه دَ اوریځو په راتلوسره په فضاء کښې یخوالې راپیدا شو هغوی ټول دَ دې لاندې راجمع شو نو په هغوی باندې اور راوورولې شو او ټول اوسوزېدل. (۳)

## ۳۶- باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دَ دې باب لاندې امام بخاري رحمه الله دَ حضرت یونس علیه السلام حالات بیانول غواړي. په دې سلسله کښې امام بخاري رحمه الله دَ خپل عادت مطابق دَ حضرت یونس علیه السلام دَ حالاتو سره متعلق آیات نقل کړی دی او دَ بعض الفاظو تفسیر ئې کړې دې او بیائې احادیث درج کړی دی.
**حضرت یونس علیه السلام:** دَ حضرت یونس علیه السلام دَ پلار نوم "متیٰ" دې. دَ دې نه پورته سلسله دَ نسب نه مؤرخینو لاعلمي ښکاره کړې ده. حافظ ابن حجر رحمه الله اعتراف کړې دې چه دَ ده سلسله نسب سره متعلق هیڅ تحقیقي خبره ما ته

(۱) عمدة القاري: ۴۳۰/۱۵ وفتح الباري: ۵۵۶/۸.
(۲) الجامع الأحكام القرآن للقرطبي: ۱۷/۱۶ مؤسسة الرسالة.
(۳) عمدة القاري: ۴۳۱/۱۵.

ملاؤ نه شوه. (۱). حافظ عبدالرزاق رحمه الله یو روایت نقل کړي دي چه متّٰی د هغه د مور نوم دې (۲) دا قول مردود دې. اصح دادې چه متّٰی د هغه د والد صاحب نوم دې. (۳) د باب لاندې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د روایت الفاظ (ونسبه إلی أبیه) په دې باندې په صراحت سره دلالت کوي.

د حضرت یونس علیه السلام پلار متّٰی د الله تعالی ډیر بزرګ او نیک بنده وو. د هغه څوك څوئی نه وو. د نارینه اولاد د هغه ډیر لوئې خواهش وو. چنانچه متّٰی د خپلې ښځې سره د هغه چینې خواته لاړو په کوم کښې چه حضرت ایوب علیه السلام د صحت د پاره غسل کړې وو. ښځې او خاوند دواړو په دغه چینه کښې غسل اوکړو. صلاة حاجت ئې اوکړو او د الله تعالی نه ئې دعا اوغوښتله چه هغوی ته یو مبارك څوئی ورکړي. الله تعالی د هغوی دعا قبوله کړه او یونس علیه السلام په صورت کښې ئې یو څوئی ورکړو. یونس علیه السلام د مور په خیټه کښې وو. دې وخت کښې لا حمل د څلورو میاشتو وو چه متّٰی وفات شو. (۴)

قرآن مجید حضرت یونس علیه السلام ته ذوالنون (سورة الأنبیاء) او صاحب الحوت (سورة الصافات) هم وئیلې دي. د ۲۸ کالو په عمر کښې د اهل نینوی طرف ته د هغوی د اصلاح او تربیت د پاره مبعوث کړې شو. (۵)

**د حضرت یونس علیه السلام د نبوت زمانه او د دعوت مقام:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د مؤرخینو په نیز د حضرت یونس علیه السلام بعثت په هغه زمانه کښې شوې کوم وخت چه په ایران کښې طوائف الملوکی دور وو. (۶)

مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله فرمائی چه جدید محققینو فارس کښې حکومت په دریو ادوارو کښې تقسیم کړې دې. ① یو د حمله سکندر نه وړاندې. ② دویم پارتهوی حکومت یعنی طوائف الملوکی. ③ دریم ساسانی زمانه. رومبې وخت د عروج او ارتقاء وخت شمیرلې کیږي او د دې شروع تقریباً ۵۵۹ ق م نه کیږي چه تقریباً ۳۷۲ ق م، یعني په دوو صدو باندې ختمیږي او دویم زمانه تقریباً ۳۷۲ ق م نه شروع کیږي او د ۱۵۰ء پورې رسیږي او دې ته د طوائف الملوکی دور وئیلې شي او دې نه پس ساساني دور حکومت شروع کیږي. (۷)

مولانا سیوهاروی رحمه الله فرمائی چه د دې تحقیق په رڼا کښې د حافظ ابن حجر رحمه الله د روایت مطابق د یونس علیه السلام زمانه ۳۷۲ ق م نه واخله د حضرت عیسٰی علیه السلام د ولادت په مینځ کښې کیدل پکاردی مګر دا قول په تاریخی نقطه نظر سره غلط دې. ځکه چه مؤرخینو په دې باندې اتفاق دې چه د بابلیانو په لاس د آشوریانو دا مشهور ښار (نینوی) ۶۱۲ ق م کښې تباه او برباد شوې وو. دې نه علاوه د اهل کتاب روایات هم شهادت ورکوي چه د حضرت یونس علیه السلام د زماني نه پس ۶۹۰ ق م کښې کله نینوی دوباره کفر او شرك، ظلم او ستم شروع کړو نو بیا یو اسرائیلي نبي ناحوم دوباره هغوی پوهه کړل او د هدایت او رشد دعوت ئې ورکړو او کله چه هغوی هیڅ پرواه اونه کړه نو د نینوی د تباهئ پیشنګوئي ورکړه او د دې نه اویا کاله پس ۶۱۲ ق م کښې نینوی تباه او برباد شوه. لهٰذا د یونس علیه السلام زمانه د ۶۹۰ ق م نه مخکښې کیدل پکاردی. غالباً د شاه عبدالقادر نور الله مرقده دا قول صحیح دې چه یونس علیه السلام د حزقیل علیه السلام د زماني سړې دې چنانچه هغه فرمائی: د حزاقیل د دوستانو نه وو یونس علیه السلام، ډیر په شوق ئې عبادت اوکړو او د دنیا نه جدا شو. حکم اوشو چه دې اولیږه ښار د نینوی ته چه مشرکان منع کړي د

(۱) فتح الباري: ۵۵۷/۸قال ابن حجر رحمه الله: ولم أقف في شيء من الأخبار علی اتصال نسبه

(۲) فتح الباري: ۵۵۷/۸وعمدة القاري: ۳/۱۶.

(۳) فتح الباري: ۵۵۷/۸.

(۴) عمدة القاري: ۳/۱۶.

(۵) قصص القرآن: ۵۷۰/۲.

(۶) فتح الباري: ۵۵۷/۸.

(۷) قصص القرآن: ۵۷۳/۲.

بتانو دَ عبادت نه (۱) نينوى عراق كښې موصل سره نيزدې يو مشهور ښار وو. دَدې خائې دَ اوسيدونكو دَهدايت او رشد دپاره دَحضرت يونس عليه السلام ظهور اوشو.(۲) حضرت شاه عبد القادر رحمه الله فرمائى چه دَ يونس عليه السلام وفات هم په دې ښار كښې شوې او هم دلته دَهغه قبر دې.(۳)

إلى قوله: ﴿وَهُوَ مُلِيمٌ﴾ قال مجاهد: مُذنِبٌ. المَشحُونُ: المُوقَرُ. ﴿فَلَوْلَا أَنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِينَ﴾ الآية. ﴿فَنَبَذْنَاهُ بِالْعَرَاءِ﴾ بوجه الأرض ﴿وَهُوَ سَقِيمٌ ۝ وَأَنْبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِنْ يَقْطِينٍ﴾ من غير ذات أصل: الدباء ونحوه ﴿وَأَرْسَلْنَاهُ إِلَى مِائَةِ أَلْفٍ أَوْ يَزِيدُونَ ۝ فَآمَنُوا فَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَى حِينٍ﴾/الصافات: ۱۳۹ - ۱۴۸/. ﴿وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادَى وَهُوَ مَكْظُومٌ﴾/القلم: ۴۸/: كظيم: وهو مغموم.

دَ سورت صافات آيات دى: ﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ۝ إِذْ أَبَقَ إِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ ۝ فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِينَ ۝ فَالْتَقَمَهُ الْحُوتُ وَهُوَ مُلِيمٌ ۝ فَلَوْلَا أَنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِينَ ۝ لَلَبِثَ فِي بَطْنِهِ إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ ۝ فَنَبَذْنَاهُ بِالْعَرَاءِ وَهُوَ سَقِيمٌ ۝ وَأَنْبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِنْ يَقْطِينٍ ۝ وَأَرْسَلْنَاهُ إِلَى مِائَةِ أَلْفٍ أَوْ يَزِيدُونَ ۝ فَآمَنُوا فَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَى حِينٍ﴾ (۴)

او يقينا يونس عليه السلام دَ پيغمبرانو نه وو. كوم وخت چه هغه دَ ډكې كشتئ طرف ته منډه كړه لاړو، بيا هغه په خسنړې ويستو كښې شريك شو او په خسنړې كښې مغلوب شو، بيا كب هغه يو نوړئ كړو په داسې حال كښې چه هغه خپل ځان ملامت كولو، نو كه هغه دَ تسبيح كونكو نه وې نو دَ كب په خيټه كښې به دَ هغه ورځې پورې پاتې وو په كومه ورځ چه به مړى ژوندې كولې شى. بيا مونږ هغه په داسې حال كښې په يو ميدان كښې واچولو چه هغه بيمار وو او مونږ په هغه باندې يو خيليدار بوټې راؤټوكولو او مونږ هغه دَ يو لاك يا دې نه زياتو خلقو طرف ته پيغمبر جوړولو سره ليږلې وو نو هغه خلقو (دَعذاب راتلونه وړاندې دَ عذاب آثار ليدو سره) ايمان راوړو نو مونږ هغوى ته دَ يوې زمانې پورې دَ ژوند نه فائده اوچتولو موقع وركړه.

مفسرينو حضراتو ليكلى دى چه كله اهل نينوى دَ حضرت يونس عليه السلام تكذيب اوكړو او دَهغه په دعوت پورې خنداګانې كولې نو يونس عليه السلام هغوى سره وعده اوكړه چه په دريو ورځو كښې دننه به په تاسو عذاب راځى. كله چه په دغه وعيد سره هم په هغوى كښې دَ اصلاح آثار پيدا نه شو نو يونس عليه السلام هغوى پريخودل او لاړو. په دريمه ورځ په آسمان باندې تورې اوريځې راخورې شوې او پوره ښارئې پټ كړو. په ټولو كښې ويره خوره شوه او يونس عليه السلام پسې لټون شروع كړو. هغوى ته دَ يونس عليه السلام په صداقت باندې يقين راغلې وو. په تلاش باندې هغه ملاؤ نه شو نو وړو، لويو، خوانانو او بوډاګانو ټولو سوال زارى شروع كړه او دَ ايمان اظهار كولو سره ئې په صدق دل سره توبه اوكړه نو الله تعالى دَهغوى نه عذاب اخوا كړو.(۵)

يونس عليه السلام ته دَدې صورت حال علم نه وو هغه دا اوګنړل چه عذاب رانغلو. زه به دَهغوى په مخكښې دروغژن شم دهغه خائې نه اووتلو. دَ درياب غاړې له لاړو او نورو خلقو سره په كشتئ كښې سور شو. دَ لږ سفر كولو نه پس كشتئ اودريده نو يونس عليه السلام پخپله اوفرمائيل (إن معكم عبدا أبق من ربه وأنها لا تسير حتى تلقوه) يعنى تاسو سره څوك داسې غلام دې چه دَ خپل رب دَ اطاعت نه تختيدلې دې او تاسو خلقو چه تر كومې پورې دغه غلام په سمندر كښې اونه غورزونې دا كشتئ به روانيږى. نو بيا په خسنړې اچولو باندې اتفاق اوشو چه دَ چا په نوم

---

(۱) قصص القرآن: ۲/۵۷۴ نوراوګورئ: موضح القرآن: ۴۲۷.

(۲) قصص القرآن: ۲/۵۲۸.

(۳) موضح القرآن: ۴۲۸.

(۴) سورت الصافات: ۱۳۹ — ۱۴۸.

(۵) دتفصيل دپاره اوګورئ الجامع لأحكام القرآن للقرطبى: ۱۵/۱۲۵،۱۲۱ وتفسير الثعالبى: ۵/۲۴۰-۲۳۹ وزاد المسير فى علم التفسير لأبى الفرج ابن الجوزى: ۶/۳۲۲-۳۲۱ وروح المعانى: ۲۳/۱۹۰.

باندې خسرې راوخی هغه به دریاب ته غورزولې شی. خسرې د یونس علیه السلام په نوم باندې راوتلو نو یونس علیه السلام اوفرمائیل: (أنا الآبق) او هم پخپله ئی دریاب ته ورټوپ کړو. د الله تعالی په حکم سره هغه یو کب یوه نوړنی کړو (۱)
بزار رحمه الله او ابن جریر رحمه الله یو مرفوع روایت نقل کړې دې چه دغه کب ته الله تعالی حکم ورکړې وو چه (أن لا تخدش له لحما ولا تکسرن له عظما) (۲) یعنی د ده د بدن د یوې حصې غوښه مه خوره او یو هډوکې ئی مه ماته وه. د سورت الأنبیاء آیت دې: ﴿فَنَادَىٰ فِي الظُّلُمَاتِ أَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ﴾ [رقم الآیة: ۸۷] یعنی کله چه یونس علیه السلام د کب خیټې ته اورسیدو نو په تیارو کښې آواز اوکړو اې زما ربه تا نه سوا بل څوک معبود نشته دې. ته پاك ئی. بیشکه زه د ظلم کونکونه یم. د ظلمات نه درې تیارې یعنی د شپې تیاره د سمندر او د کب د خیټې تیاره مراد ده. لکه چه یونس علیه السلام د کب په خیټه کښې هم په تسبیح او تهلیل کښې مشغول وو. د دې دعا په برکت سره الله تعالی هغه د دې امتحان نه خلاص کړو. کب ته حکم اوشو چه یونس علیه السلام په اوچه باندې واچوه. کله چه کب هغه د دریاب په غاړه باندې قې کړو نو الله تعالی ورته سورې ورکولو د پاره د کدو د بوټی خیلئی راؤتوکوله. کب په خیټه کښې پاتې کیدو د وجې نه هغه کچه شوې وو او د هغوی هینت د یونوی راپیدا شوی بچی، بې وېښتو او بې وزرو بچی په شان شوې وو. په دې وجه ورته د سورې ضرورت وو (۳) بعض روایاتو کښې راځی الله تعالی یوه چیلئی د هغه د پاره مسخر کړې وه هغه چیلئی به راتله او یونس علیه السلام باندې به ئی پیئی څکول اوتله به. (۴)

**قال مجاهد: مذنب، المشحون: الموقر:** آیت دې: ﴿فَالْتَقَمَهُ الْحُوتُ وَهُوَ مُلِيمٌ﴾ ملیم معنی ده هغه سړې چه د ملامتیا کار اوکړی. په کوم چه هغه ملامته کړې شی. (۵) مجاهد رحمه الله د دې معنی مذنب کړې ده. یعنی ګناهګار. شارح بخاری احمد بن اسماعیل شافعی ثم حنفی رحمه الله فرمائیلی دی چه د مجاهد رحمه الله تفسیر د ادب نه خلاف دې یو نبی مرسل ته مذنب وئیل د ادب طریقه نه ده. (۶) د لفظ مشحون تفسیر امام بخاری رحمه الله موقر سره کړې ده یعنی درنه کشتئی. د وقر معنی ده بوج وزن. موقر د دې نه د اسم مفعول صیغه ده. دا تفسیر ابن عباس رضی الله عنهما طرف ته منسوب دې. (۷)

**﴿فَنَبَذْنَاهُ بِالْعَرَاءِ﴾: بوجه الأرض:** آیت دې: ﴿فَنَبَذْنَاهُ بِالْعَرَاءِ وَهُوَ سَقِيمٌ﴾ امام بخاری رحمه الله د عراء تفسیر وجه الأرض سره کړې دې. یعنی په مخ د زمکې. عراء میدان او کولاؤ خانې ته وائی چه د ونو بوټونه خالی وی. (۸)

---

(۱) مصنف ابن أبي شيبة كتاب الفضائل باب ماذكر فيما فضل به يونس بن متى صلى الله عليه وسلم: ۵۴۶/۱۶ رقم الحديث: ۳۲۵۲۷ إدارة القرآن والعلوم الإسلامية.

(۲) مسند البزار: ۳۴/۱۵ رقم: ۸۲۲۷ مكتبة العلوم والحكم، تفسير الطبري: ۳۸۵/۶ دار هجر، تفسير ابن كثير: ۳۶۷/۵ دار طيبة للنشر والتوزيع تاريخ الأمم والملوك للطبري: ۳۷۷/۱ والجامع لأحكام القرآن للقرطبي: ۲۶۶/۱۴ وما بعده، مؤسسة الرسالة.

(۳) فتح الباري: ۵۵۹/۸ وإرشاد الساري: ۳۶۰/۷.

(۴) إرشاد الساري: ۳۶۰/۷.

(۵) الكوثر الجاري إلى رياض أحاديث البخاري: ۲۹۷/۶ دار إحياء التراث العربي بيروت ۱۴۲۹ هجري.

(۶) الكوثر الجاري: ۲۹۷/۶.

(۷) فتح الباري: ۵۵۸/۸.

(۸) فتح الباري: ۵۵۸/۸.

﴿مِنْ يَقْطِيْنٍ﴾: مِنْ غَيْرِ ذَاتِ أَصْلٍ: اَلدُّبَّاءُ وَنَحْوُهُ: آيت دي: ﴿وَأَنْبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِنْ يَقْطِيْنٍ﴾ امام بخاري رحمه الله فرمائيلى دى چه (يقطين) نه مراد هغه ونه ده دکومې چه جرړه نه وى مثلاً کدو وغيره. امام عبيده رحمه الله فرمائى (كل شجرة لا تقوم على ساق فهى يقطين نحو الدباء والحنظل والبطيخ)[1]

يعنى هرهغه ونې ته يقطين ونيلى شى چه په خپله جرړه باندې اودريدې نه شى لکه کدو حنظل مرغونى خربوزه اوختکې وغيره. خو مشهوره هم دغه ده چه آيت کښې (يقطين) نه کدو بوټې مراد دې. دکدو باره کښې په يومرفوع حديث کښې رسول اكرم ﷺ فرمائى: (وهى شجرة أخى يونس)[2]

﴿وَأَرْسَلْنَاهُ إِلَى مِائَةِ أَلْفٍ أَوْ يَزِيدُونَ ۝ فَآمَنُوا فَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَى حِيْنٍ﴾: اومونږ هغه يو لاکه يا دې نه زياتو کسانو طرف ته ليګلې وو نوهغه خلقو ايمان راوړو نو مونږ هغوى له دَ يوې زمانې پورې عيش ورکړو. لفظ أو کښې مختلف توجيهات دى. امام فراء رحمه الله فرمائى چه دا دَ بل په معنى کښې دې[3] يعنى مونږ هغه لاکه بلکه دَدې نه زياتو کسانوطرف ته ليګلې وو. بعض حضراتو فرمائيلى أودلته دَ واو په معنى کښې دې. دَدې تائيد دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَدې قول نه کيږى. (انهم كانوا مأة وثلاثين ألف)[4] امام اخفش رحمه الله او زجاج رحمه الله فرمائى: (أو يزيدون فى تقديركم)[5]. په دې صورت کښې به أو دَشك دَ پاره وى او مطلب به داشى چه هغه خلق دَ کتونکو دَاندازې مطابق يو لاکه يا دې نه زيات ښکاريدل، يعنى دوى ته شك کيدلو چه دَهغوى تعداد يو لاکه دې يا دَدې نه زيات دې.[6] شاه عبدالقادر رحمه الله دَدې په تفسير کښې ليکى چه که چرې عاقل بالغ ئې شميرلې نو لاکه وو او که تول ئې شامل شميرلې نو زيات وو، دا الله تعالى ته شك نه دې.[7]

﴿وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ إِذْ نَادَى وَهُوَ مَكْظُوْمٌ﴾: كَظِيْمٌ، وَهُوَ مَغْمُوْمٌ: دا دَ سورت قلم آيت دې. خطاب رسول الله ﷺ ته دې چه دکب والا په شان مه کيږه کوم وخت چه هغه (خپل رب ته) آواز اوکړو اوهغه ډيرزيات خفه وو. يعنى ته صبر اوکړه اودَ يونس عليه السلام په شان تادى مه کوه. (كظيم) نه دامام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه (مكظوم) دَمفعول په وزن باندې دې اودَ (كظيم) په معنى کښې دې کوم چه دَ فعيل په وزن باندې دې.[8] بيا (كظيم) تفسير ئې په مغموم سره کړې.

[۳۲۳۱]- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي الأَعْمَشُ، ح حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ

---

[1]) فتح البارى: ۸/۵۵۸.
[2]) عمدة القارى: ۱۶/٤ وفتح البارى: ۸/۵۵۸.
[3]) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى: ۱۵/۱۳۲.
[4]) الكوثر الجارى: ۶/۲۹۷.
[5]) الجامع الأحكام القرآن للقرطبى: ۱۵/۱۳۲ الكوثر الجارى: ۶/۲۹۷
[6]) الكوثر الجارى: ۶/۲۹۷.
[7]) موضع القرآن: ۵۸۶ سورة الصافات آيت نمبر: ۱٤۷.
[8]) عمدة القارى: ۱۵/۵

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ" زَادَ مُسَدَّدٌ: «يُونُسَ بْنِ مَتَّى» [ص ۵۱۳] [۴۵۲۶، ۴۳۲۷] (۱)

ترجمه: دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمانیلی دی هیڅ یوسړې دې داسې نه وائي چه زه د یونس علیه السلام نه بهتریم. د مسدد رحمه الله په یو روایت کښې یونس بن متي دي، یعني د والد صاحب طرف ته د نسبت سره.

## تراجم رجال

مسدد: دا مسدد بن مسرهد اسدی کوفی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه) لاندې تیره شوې ده. (۲)

سفیان: دا مشهور محدث سفیان بن سعید ثوری رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب علامة المنافق) لاندې تیره شوې ده. (۳)

اعمش: دا ابومحمد سلیمان بن مهران اسدی کوفی رحمه الله دي. أعمش په لقب سره مشهور دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تیره شوې ده. (۴)

ابونعیم: دا ابونعیم الفضل بن دکین رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب فضل من استبرأ لدینه) لاندې تیره شوې ده. (۵)

ابووائل: دا شقیق بن سلمه اسدی تابعی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (کتاب الایمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لا یشعر) لاندې تیره شوې ده. (۶)

عبدالله: دا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دي. دَدوی تفصیلی تذکره (کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تیره شوې ده. (۷)

[۳۲۳۲] - حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى وَنَسَبَهُ إِلَى أَبِيهِ» [ص ۵۱۵] [ر: ۳۰۶۷] (۸)

ترجمه: دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمانیلی: دَ یوسړی دَپاره مناسب نه دی چه هغه (زما باره کښې) داسې اووائي چه زه دَیونس بن متي علیه السلام نه بهتریم. رسول اکرم ﷺ حضرت یونس علیه السلام دَ هغه دَ پلار طرف ته نسبت اوکړو.

---

۱) أخرجه البخاري أیضاً في کتاب التفسیر باب قوله: ﴿إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ﴾ رقم: ۴۶۰۳ وباب قوله: ﴿وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ في سورة الصافات، رقم: ۴۸۰۴ وعند أبي داؤد في کتاب السنة باب في التخییر بین الأنبیاء رقم: ۴۶۷۰

۲) کشف الباري: ۴/۴۸۸.

۳) کشف الباري: ۲/۲۷۸.

۴) کشف الباري: ۲/۲۵۱.

۵) کشف الباري: ۲/۶۶۹

۶) کشف الباري: ۲/۵۵۹.

۷) کشف الباري: ۲/۲۵۷.

۸) مر تخریجه في نفس الکتاب باب قول الله تعالی: ﴿وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَى﴾ رقم: ۳۳۹۵.

## تراجم رجال

**حفص بن عمر:** دَدوى تذكره (كتاب الوضوء باب: إذاشرب الكلب فى إناء أحدكم الخ) لاندې اوګورئ.

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج بن الوردا العتكى الواسطى رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب من سلم المسلمون من لسانه ويده) لاندې تيره شوې ده.[1]

**قتادة:** دا قتاده بن دعامه رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه) لاندې تيره شوې ده.[2]

**ابوالعالية رفيع بن مهران:** هم دَدې كتاب په شروع كښې دَدوى تعارف تيرشوې دې.[3]

**ابن عباس:** دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حالات (بدء الوحى) څلورم حديث لاندې او (كتاب الإيمان باب كفران العشير وكفر دون كفر) لاندې تير شوى دى.[4]

[۳۲۳۳]- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، عَنِ اللَّيْثِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: بَيْنَمَا يَهُودِيٌّ يَعْرِضُ سِلْعَتَهُ، أُعْطِيَ بِهَا شَيْئًا كَرِهَهُ، فَقَالَ: لَا وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى عَلَى الْبَشَرِ، فَسَمِعَهُ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَقَامَ فَلَطَمَ وَجْهَهُ، وَقَالَ: تَقُولُ: وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى عَلَى الْبَشَرِ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا؟ فَذَهَبَ إِلَيْهِ فَقَالَ: أَبَا الْقَاسِمِ، إِنَّ لِي ذِمَّةً وَعَهْدًا، فَمَا بَالُ فُلَانٍ لَطَمَ وَجْهِي، فَقَالَ: «لِمَ لَطَمْتَ وَجْهَهُ» فَذَكَرَهُ، فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى رُئِيَ فِي وَجْهِهِ، ثُمَّ قَالَ: "لَا تُفَضِّلُوا بَيْنَ أَنْبِيَاءِ اللَّهِ، فَإِنَّهُ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ، فَيَصْعَقُ مَنْ فِي السَّمَوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ، إِلَّا مَنْ شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ أُخْرَى، فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ بُعِثَ، فَإِذَا مُوسَى آخِذٌ بِالْعَرْشِ، فَلَا أَدْرِي أَحُوسِبَ بِصَعْقَتِهِ يَوْمَ الطُّورِ، أَمْ بُعِثَ قَبْلِي، وَلَا أَقُولُ: إِنَّ أَحَدًا أَفْضَلُ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى" [ص ۵۱۶] [ر: ۲۲۸۰][5]

**ترجمه:** دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه يوځل يو يهودى دَخرڅ دَپاره خلقوته خپل سامان خودلو هغه ته دَهغه دَسامان چه كوم قيمت وركړې شو هغه په دغې راضى نه وو. په دې باندې هغه اووئيل چه هيڅ كله نه، په هغه ذات قسم! چاچه موسٰى عليه السلام دَټولو انسانانونه بزرګ ګرځولې دې. دا جمله يو انصارى صحابى رضي الله عنه واورېده هغه پاسيدو او دغه يهودى نى په مخ باندې يوڅپيړه اووهلو او ونى وئيل دَرسول الله صلى الله عليه وسلم په موجوګئى كې ته داسې قسم خورې. په دې باندې يهودى دَحضورپاك په خدمت كښې حاضرشو اوونى وئيل اې ابوالقاسم! زما مسلمانانوسره دَامن اوصلح عهدوپيما دې. بيا دَفلانكى سړى به څه حال وى چه مسلمان دې او هغه زه په مخ په څپيړه باندې اووهلم؟ هغه چه وجه بيان كړه نو حضورپاك غصه شو بيانئى اوفرمائيل دَالله تعالى په انبياؤ كښې خپل مينځ كښې يو له په بل باندې فضيلت مه وركوئى. كله چه شپيلئى پوكولې شى نو دَآسمان او زمكې ټول مخلوق باندې به بې هوشى راشى سوا دَهغوى نه څوك چه الله تعالى غواړى (په هغوى به بې هوشى نه راځى) بيا

---

[1] كشف البارى: ۶۷۸/۱

[2] كشف البارى: ۳/۲.

[3] ص: ۷۶.

[4] كشف البارى: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲

[5] مرتخريجه فى الخصومات باب مايذكر فى الإشخاص والخصومة بين المسلم واليهود، رقم: ۳۴۱۱.

به په دويم خل شپيلنى پوكوهلې شى او دَ تولو نه اول به ما اوچتولې شى. ليكن زه به گورم چه موسى عليه السلام به عرش نيولې ولاړ وى اوس ما ته معلومه نه ده چه دانى هغه ته دَكوه طور دَ بې هوشنى بدله وركړې وه يا زما نه هم اول دَ ده بې هوشى ختمه كړې شوې وه. او زه خو دا هم نه وايم چه يو كس دَ يونس بن متى نه افضل دې

## تراجم رجال

**يحيى**: دا ابوزكريا يحيى بن عبدالله بكير القرشى المخزومى رحمه الله دې. دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده.[1]

**الليث**: دا ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې. دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده.[2]

**عبدالعزيز بن ابى سلمة**: دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده.[3]

**عبدالله بن الفضل**: دا حضرت عبدالله بن الفضل بن العباس بن ربيعه بن الحارث بن عبدالمطلب بن هاشم مدنى رحمه الله دې دوى دَ حضرت انس بن مالك رضى الله عنه، نافع بن جبير بن سلمه، امام اعرج، ابوسلمه بن عبدالرحمن، سليمان بن يسار او عبيدالله بن ابى رافع رحمهم الله وغيره نه دَ حديث روايت كړې دې او دَدوى نه امام مالك، موسى بن عقبه، عبيد الله بن عمر، عبدالرحمن بن ثابت بن ثوبان، عبدالعزيز بن عبدالله بن ابى سلمه، ابواسحاق، زياد بن سعد، ابواويس، صالح بن كيسان او امام زهرى رحمهم الله دَ حديث روايت كوى.[4] صالح بن كيسان رحمه الله او امام زهرى رحمه الله دواړه حضرات دَ حضرت عبدالله بن الفضل دَ زمانې وو.[5]

**اعرج**: دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدنى قرشى رحمه الله دې. دَدې دواړو حضراتو تذكره (كتاب الإيمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الإيمان) لاندې تيره شوې ده.[6]

**ابوهريرة**: دا صحابى رسول حضرت ابوهريره رضى الله عنه دې. دَدې پورته ذكرشوو ټولو رواة حالات ما قبل كښې تير شوى دى.[7]

[٣٢٣٤]- حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، سَمِعْتُ حُمَيْدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ: أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى" [ص ٥١٨][٤٣٢٨، ٤٣٥٥، ٤٥٢٧][8]

ترجمه: دَ حضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى: دَ يو سړى دَپاره دا وئيل مناسب نه دى چه زه دَ يونس بن متى عليه السلام نه افضل يم

## تراجم رجال

**ابوالوليد**: دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى رحمه الله دې. دَدوى تذكره (كتاب العلم باب إثم من كذب على النبى صلى الله عليه وسلم) لاندې تيره شوې ده.[1]

---

[1] كشف البارى: ٣٢٣/١.

[2] كشف البارى: ٣٢٤/١.

[3] كشف البارى: ٥١٨/٤.

[4] شيوخ او تلامذه دَ تفصيل دَپاره اوگورئ: تهذيب الكمال: ٤٣٣/١٥-٤٣٢ تهذيب التهذيب: ٣٥٨/٥-٣٥٧.

[5] المصدر السابق.

[6] كشف البارى: ١١/٢-١٠.

[7] كشف البارى: ٦٥٩/١.

[8] والحديث مر تخريجه فى الحديث السابق.

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج بن الورد العتکی الواسطی رحمه الله دي. د دوی تذکره (کتاب الإیمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده) لاندې تیره شوې ده.[1]

**سعد بن ابراهیم:** د دوی تذکره (کتاب الوضوء باب الرجل یوضئ صاحبه) لاندې اوګورئ.

**حمید بن عبدالرحمن:** دا حمید بن عبد الرحمن بن عوف رحمه الله دي. د دوی تذکره (کتاب الإیمان باب تطوع قیام رمضان من الإیمان) لاندې تیره شوې ده. کشف الباري ۶۵۹/۲.

**ابوهریره:** دا صحابی رسول حضرت ابوهریره رضي الله عنه دي. د دې پورته ذکرشوو ټولو رواة حالات ماقبل کښې تیرشوی دی.[2]

**شرح احادیث**

د حضرت موسی علیه السلام د تذکره په ضمن کښې خودلې شوې وو چه تفضیل بین الأنبیاء د قرآنی نص نه ثابت دي دغه شان پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د وحی په ذریعه خودلې شوې وو چه تاسو افضل البشر او د ټولو انبیاؤ سردار یئ. یوښکاره کتونکي سرې دا سوال کولې شي چه کله حضورپاک ته د افضل البشر کیدو خبر د اول نه ورکړې شوې وو نو بیا حضورپاک په نورو انبیاء کرامو باندې د خپل افضلیت نه ولې نهی کوی؟

شارحین حضراتو د دې اشکال مختلف جوابونه ورکړی دی کوم چه د موسی علیه السلام د تذکرې په ضمن کښې تیر شوی دی. حقیقت دادې چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د حضرت یونس علیه السلام ذکر په دې خصوصیت او اهتمام سره ځکه اوفرمائیلو چه د هغوی په حالات او واقعات کښې د بشری تقاضو لاندې کیدونکې لغزش ذکر راغلې دې چه هغه د بدنامئ د ویرې د تادئی مظاهره کولو سره خپل قوم پریخودو لاړو اوخپل نفس نی ملامت کولو دغه شان رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته ﴿وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ﴾ د یونس علیه السلام په شان د بې صبرنی اوتادنی فیصله کولو نه د منع کیدو تلقین لوکړې شو. په دې واقعاتو سره د حضرت یونس علیه السلام په شان اقدس کښې د تنقیص شانبه شان پیدا کیدې شوه په دې وجه حضورپاک په اوچته طریقه کښې د حضرت یونس علیه السلام شان ښکار کړو دې د پاره چه د تنقیص د اړخ راوتلو ټولې لارې ختمې شی او د هغوی د حالاتو مطالعه کونکی په زړه کښې یو ذره برابر منفی خیال پیدا نه شی.[4]

اولنې روایت د ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل دې په هغې کښې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (لایقولن أحدکم إني خیر من یونس) یعنی څوک دې داسې نه وائی چه زه د یونس علیه السلام نه بهتر یم. امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل چه د مسدد رحمه الله په روایت کښې د ابن متی اضافه ده. دویم روایت د ابن عباس رضي الله عنهما دې (ما ینبغي لعبد أن یقول إني خیر من یونس بن متی ونسبه إلی أبیه) یعنی یوبنده له داسې نه دی وئیل پکار چه زه د یونس بن متی نه بهتریم بیا حضورپاک یونس علیه السلام ته د هغه د پلار نسبت ورکړو.

امام طحاوی رحمه الله په روایت کښې اضافه هم ده. (أنه سبح الله في الظلمات)[5] مطلب دادې چه ماته په یونس علیه السلام باندې ځکه فضیلت مه راکوئی چه هغه په تیارو کښې د الله تعالی تسبیح کړې. حافظ ابن حجر رحمه الله وائی چه په دې جمله

---

[1] کشف الباري: ۱۵۹/٤.

[2] کشف الباري: ۶۷۸/۱.

[3] کشف الباري: ۶۵۹/۲.

[4] فتح الباري: ۵۵۸/۸ وعمدة القاري: ۵/۱۶.

[5] مشکل الآثار للطحاوي: ٤۷/۳ بیان مشکل ما روی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم من نهیه أن یقال: هو خیر من یونس بن متی.

سره دَجهت خيريت طرف ته اشاره مقصود ده چه يونس علیه السلام ته په تياروكښې دَالله تعالى دَ ذكر او تسبيح بوداسې فضيلت حاصل دې چه بل چاته حاصل نه دې.[1]

**قوله: ونسبه إلى أبيه:** اشارتًا په هغه حضراتو باندې رد دې چه وائي متّى دَ يونس علیه السلام دَ مور نوم دې. تفسير عبدالرزاق كښې نقل دي چه متى دَحضرت يونس علیه السلام دَ مور نوم دې مګر دا قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما په مذكوره بالا روايت سره مردود كيږي اوهم دغه صحيح دې.[2] محدث عبدالرزاق رحمه الله نه علاوه علامه مناوي رحمه الله هم متى دحضرت يونس علیه السلام دمور نوم ګرځولې دې. هغه فرمائي چه سوا دَ حضرت يونس علیه السلام هيڅ يو نبى دَ خپلې مور په نسبت سره مشهور نه دې.[3] راجح دادى چه متّى نې دَپلار نوم دې.

## ۳۷- باب: ﴿وَاسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ إِذْ يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ﴾

يَتَعَدَّوْنَ يُجَاوِزُوْنَ فِي السَّبْتِ ﴿إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا﴾ شَوَارِعَ، إِلَى قَوْلِهِ: ﴿كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ﴾/الأعراف: ۱۶۳-۱۶۶/. پوره آيت دادې: ﴿وَاسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ إِذْ يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ لَا تَأْتِيهِمْ كَذَلِكَ نَبْلُوهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ﴾

رسول اكرم صلی الله علیه وسلم ته خطاب دې چه تاسو دَدغه (يهوديانو) نه دَ دغه كلي والو دَحال پوښتنه اوكړئ، كوم چه درياء شور يعنى تريودرياب سره نيز دې آباد وو. كله چه هغوى دَ هفتې په معامله كښې دَحد نه تير شو. كله چه به هغوى له كبان دَهفتې په ورځ: اوبو دَ سردَ پاسه راتلل او په كومه ورځ چه به هفته نه وه نو نه به راتلل. مونږ په هغوى داشان امتحان اوكړو، خكه چه هغوى نافرمانه وو.

بنواسرائيل چه څومره سركش او نافرمانه وو هم هغه شان په هغوى باندې قسم قسم ازميښتونه هم راتلل. هغوى دَ هفتې په ورځ دَ كبانو دَ ښكار نه منع كړې شوې وو اوهغوى داسې په ازميښت كښې واچولې شو چه به هغه ورځ به دَ سمندر دَ اوبودَ پاسه دَ كبانو سيلونه تيريدل او ښكاريدل به. چنانچه هغوى دا حيله اختيار كړه چه دَ هفتې نه يوه ورځ وړاندې يا دَ هفتې په ورځ په درياب كښې جالونه خواره كړل په جال كښې به كبان اونختل نودَ اتوار په ورځ به دې ويناكولوسره كبان راويستل چه دا پخپله په جال كښې اينختى دى دا خو مونږ ښكار كړې نه دى.[4] دغه شان به بني اسرائيلو دَ هفتې په ورځ دَ الله تعالى په حكم كښې تجاوز كولو. پورتنى آيت كښې: ﴿إِذْ يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ﴾ نه هم دَ دغه تجاوز طرف ته اشاره ده.

**قوله: شرّعاً: شوارع:** شُرّعًا دَ شارع جمع ده اودا دَ شَرَعَ نه ماخوذ دې چه دَ أشرَفَ په معنى كښې دې. يعنى هغه كبان به دَ اوبو دَ سردَ پاسه په كثرت سره اخوا ديخوا ګرځيدل دوه آياته پريخودو سره په وړاندې آيت كښې دى: ﴿فَلَمَّا

---

[1] فتح الباري: ۸/۵۵۸.
[2] تفسير عبدالرزاق: ۲/۱۸۱دارالكتب العلمية. فتح الباري: ۸/۵۵۷.
[3] فيض القدير: ۴/۸۳ رقم الحديث: ۶۰۳۰دارالمعرفة.
[4] فتح الباري: ۸/۵۶۰.

عَتَوْا عَمَّا نُهُوا عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ﴾[1] یعنی بیا چه کله هغوی په دغه کار کښې د حد نه وړاندې شو د کوم نه چه منع کړې شوي وو نو مونږ هغوی ته حکم ورکړو چه ذلیل کیدونکي بیزوګان شئ. د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روایت کښې دي د هغوی خوانان بیزوګان او بوډاګان خنزیران جوړ کړې شو.[2] د دې عذاب نه پس هغوی څه موده ژوندي پاتې کیدونه پس بیا مړه شو.[3]

په آیت کښې چه د کوم کلي ذکر راغلې دې د هغې نه کوم یو کلې مراد دې؟ په دې سلسله کښې د مفسرینو اقوال مختلف دي. خود جمهورو قول دا دې چه دې نه ایله مراد دې،[4] دا هغه کلې دې چه د مصر نه د مکې په لار راتلونکو حاجیانو په لار کښې راځي.

امام بخاري رحمه الله د باب لاندې د اصحاب الایکه قصې سره متعلق څه مسند روایت نه دې نقل کړې. البته محدث عبدالرزاق رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما یو حدیث او امام مالک رحمه الله د یزید بن رومان رحمه الله یو روایت نقل کړې دې. مګر د محدث عبدالرزاق رحمه الله روایت کړې شوې روایت په سند کښې یو راوي مبهم دې او د امام مالک رحمه الله په روایت کښې معضل دې. روایت دا دې چه کله دغه خلقو د کبانو په ښکار کښې دا حیله اختیار کړه چه د هفتې په ورځ به نې جال خور کړو او د اتوار په ورځ به جال کښې اینختې د هغه کبانو ښکار به نې کولو نو په هغوی کښې څه خلقو دغه حیله باز منع کړل او یوې ډلې دا اوونیل چه دوی په خپل حال باندې پرېږدئ. بیا چه کله یوه ورځ سحر شو نو خلقو ته هغه حیله باز نه ښکاریدل په کوم چه خلقو یو سرې ته اوونیل چه پاس اوخیژه اوګوره چه هغه خلق چرته لاړل. کله چه هغه سرې په چت باندې ختو سره او کتل نو هغوی ټول بیزوګان جوړ شوي وو خلق د ننه داخل شو او هغوی ملامته کول او چا چه منع کړې وو هغوی وئیل: (ألم ننقل لکم، ألم ننهکم؟) یعنی ولې مونږ تاسو منع کړې نه وئ؟ هغوی په سرونو سره اشاره کولو سره د خپل جرم اعتراف کولو. هم دغه روایت د حضرت قتاده رحمه الله نه هم نقل دې.

ابن ابي حاتم رحمه الله د مجاهد په طریق سره د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې دي چه اصحاب السبت د صورتونو مسخ کیدو نه پس ډیر کم ژوندي پاتې شو بیا هلاک کړې شو. ابن جریر رحمه الله د عوفي رحمه الله په طریق سره د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړې چه اصحاب السبت کښې چه کوم خوانان وو هغوی بیزوګان جوړ کړې شو او کوم چه بوډاګان وو هغه خنزیران جوړ کړې شو.[5]

**د سیاق اوسباق سره د باب مناسبت:** په ظاهره په دې باب باندې اشکال وارد کیږي چه د ایله یا اهل ایله د حضرت یونس علیه السلام سره څه تعلق دې چه په دې باندې امام بخاري رحمه الله باب قائم کړې دې؟

د دې باب لاندې حافظ ابن حجر رحمه الله د دې اعتراض جواب صراحتاً یا اشارتاً نه دې ورکړې. خود فتح الباري مقدمه هدی الساري کښې هغوی د دې جواب ورکړې دې چه د حضرت یونس علیه السلام نه تسامح او غلطي اوشوه نو هغه نې د کب نوړنې جوړولو سره د امتحان او ازمینښت نه تیر کړو او هغه د امتحان د دې ډیرې سختې مرحلې نه کامیاب او کامران راواپس شو. بیا هم په دغه مناسبت سره د حضرت یونس علیه السلام حالاتو په ضمن کښې امام بخاري رحمه الله د اهل ایله تذکره اوکړه چه هغوی هم د کبانو په ذریعه په امتحان کښې واچولې شو، نو چه د ایله کومو خلقو د صبر او استقامت نه کار واخستو هغوی د یوم السبت د ورځې د کبانو د ښکار نه منع شو نو په

---

[1] [الأعراف: ۱۶۷]

[2] فتح الباري: ۵۶۰/۸ وعمدة القاري: ۱۶/۸ وإرشاد الساري: ۳۶۳/۷.

[3] فتح الباري: ۵۶۰/۸.

[4] أنوار التنزيل وأسرار التأويل للإمام البيضاوي: ۳۶۴/۱ وفتح الباري: ۵۵۹/۸.

[5] فتح الباري: ۵۶۰/۸.

نتیجه کښې کامیاب شو او د الله تعالی د عذاب نه محفوظ پاتې شو. او کومو خلقو چه صبر اونه کړو هغوی په دغه امتحان کښې ناکام شو او د الله تعالی د حکم نافرمانی کولوسره نی د کبانو ښکار اوکړو او په عذاب کښې راګیر کړې شو او هلاک او برباد کړې شو.[1]

**د شیخ الحدیث مولانا محمدزکریا رحمه الله رائې:** شیخ الحدیث مولانا زکریا رحمه الله فرمائی د دې باب مناسبت د حضرت یونس علیه السلام د تذکره سره نه دې بلکه د دې مناسبت وړاندې باب سره دې کوم چه د حضرت داؤد علیه السلام په تذکره باندې مشتمل دې ځکه چه د مفسرین کرام په نیز آیت کښې د اهل ایله چه کومه واقعه بیان کړې شوې ده، هغه د حضرت داؤد علیه السلام د نبوت په زمانه کښې پیښه شوې ده. په دې وجه د حضرت داؤد علیه السلام تذکره سره د دې مناسبت ظاهر دې. والله اعلم.[2]

## ۳۸- باب: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی: ﴿وَاٰتَیْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا﴾/النساء: ۱۶۳/.

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې باب نه د حضرت داؤد علیه السلام د حالاتو شروع کیږی وړاندې نور ابواب هم د هغوی په حالاتو باندې قائم کړې شوی دی. دلته امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه حضرت داؤد علیه السلام صاحب رسالت پیغمبر وو او هغه ته زبور ورکړې شوې وو.[3]

د جمهور مؤرخینو په نیز حضرت داؤد علیه السلام اسرائیلی وو او د یهوذا د نسل نه وو او د هغوی سلسله نسب داده:
داؤد بن ایشار بن عوید بن عابر بن سلمون بن نحشون بن عویناذب بن ارم بن حصرون بن فارص بن یهوذ ابن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم.[4]

**حلیهٔ مبارکه:** محمد بن اسحاق رحمه الله د وهب بن منبه رحمه الله نه د حضرت داؤد علیه السلام حلیه مبارکه داسې نقل کړې ده:
ټیټ قد، آسمانی رنګې سترګې، په بدن باندې ویښته د یرکم د مخ او بشره نه نی طهارت د قلب او نفاست طبع ښکاره کیدل.[5]

الله تعالی هغوی ته نبوت او رسالت سره حکومت او سلطنت هم ورکړې. هم د دغه دوو نعمتونو ذکر د قرآن مجید کښې په دې آیت کښې راغلې دې. ﴿وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ﴾ الله تعالی هغوی ته حکومت او حکمت (نبوت) ورکړو او په خپله مرضئی چه څه غوښتل ورته نی اوخودل.

د حضرت آدم علیه السلام نه پس تولو انبیاء کرامو کښې صرف هم دوی ته د خلیفة الله لقب ورکړې شو. د سورت ص آیت دې. ﴿يٰدَاوٗدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِى الْاَرْضِ﴾ داؤد علیه السلام په شروع کښې د طالوت په فوج کښې د یو سپاهی په حیثیت سره شامل شوې وو. بیا په جنګی معرکو کښې غیرمعمولی شجاعت او فتوحات کښې ښکلې کارکردګی کولو په سبب قبیله یهوذا هغوی خپل بادشاه منتخب کړو او د دوو کالو د کشمکش نه پس نورو قبیلو هم په اتفاق سره د هغوی بادشاهی اومنله. تراووه کالو پورې هبرون (موجوده الخلیل) د خپل حکومت مرکز اوساتلو دې نه پس یروشلم د دښمنانو د قبضې نه ویستو سره خپل دارالحکومت جوړ کړو. خپل خواؤشا حکمرانان نی مسخر او مغلوب کولوسره د حکومت پولې ښه خورې کړې.[6]

---

[1] هدی الساری: ۶۶۲الفصل العاشر، ذکر مناسبة الترتیب المذکور بالأبواب المذکورة إلخ، دارالسلام.
[2] الکنزالمتواری: ۳۷۹/۱۳.
[3] عمدة القاری: ۵/۱۶.
[4] البدایة والنهایة: ۱۱/۲.
[5] البدایة والنهایة: ۱۱/۲نوراوګورئی: قصص القرآن: ۴۳۳/۲.
[6] قصص القرآن: ۴۲۵/۲.

دَ دنیاوي شان شوکت او وقار او عزت سره دَ الله تعالی دَ وحي نزول او دَ لارخودنې دَهغوی هیبت او عظمت نور هم زیات کړي وو. رعایا ته یقین وو چه څه معامله وی که هغه سخته وی او نه حل کیږي یا په دروغو ونیلو سره یوه خبره کمه کوو زده پیش کړې شي نو دَالله تعالی وحي دَهغه لارخودنه کوی او دَ معاملې حقیقت هغوی ته ښکاره کولې شی. حافظ ابن کثیر رحمه الله دَ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما یو روایت نقل کړي دې چه یو خل دوو کسانو دَ یو غوټي په معامله کښې حضرت داؤد علیه السلام ته حاضر شو دواړه دَ دې دَ ملکیت دعوی کوله او هریو بل ته غاصب ونیلې. حضرت داؤد علیه السلام فیصله بلې ورځې پورې اوزنډوله او په دویمه ورځ ئې مدعی ته اوونیل چه دَ شیې الله تعالی په ما باندې وحي نازل کړه چه ته قتل کړې شي په دې وجه ته صحیح او نیغه خبره اوکړه. مدعی اوونیل زما بیان خو قطعاً حق او صداقت باندې مبني دې لیکن دَ دې واقعې نه وړاندې ما دې مدعی علیه پلار نه دهوکه ورکولو سره قتل کړې وو. دې اوریدو سره حضرت داؤد علیه السلام هغه قصاصاً قتل کولو حکم ورکړو.[1]

دَ الله تعالی دَ وحي دَ دې قسم واقعاتو دوجې نه سرکش او متمرد خلق به نور هم مغلوب وو. دَ عدل او انصاف دَ وجې نه په معاشره کښې سکون او امن وو. دَ سلطنت په حدود کښې دَحضرت داؤد علیه السلام دَهیبت او ویرې نه وران کارو دَ بغاوت او فساد کولو حوصله نه شوه کولې.

**دَحکومت موده او وفات:** سنن ترمذی او مسند احمد کښې دَحضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دې چه رسول اکرم ﷺ فرمائیلی دی چه عالم بالا کښې کله چه دَ حضرت آدم علیه السلام دَ شا نه دَ هغوی ذریت رابهر کړې شو دَهغه مخې ته پیش کړې شو نو هغه دَ یو بنانسته پرقیدونکی تندی والا سړي لیدو سره عرض اوکړو. پروردګاره دا څوک دې؟ جواب ورکړې شو ستا په اولاد کښې ډیر روستو راتلونکې هستی داؤد دې. حضرت آدم علیه السلام عرض اوکړو دَدَه عمر څومره مقرر کړې شوې دې؟ اوفرمائیلې شو شپیته کاله. حضرت آدم علیه السلام عرض اوکړو زه دَ څلویښت عمر څلویښت کاله دې خوان ته وربخښم. کله چه دَ آدم علیه السلام دَ وفات وخت راغلو نو آدم علیه السلام ملك الموت ته اوونیل چه اوس خو لا زما عمر څلویښت کاله باقي دی. دَ اجل فرښتې اوونیل تاسو نه هیره شوې تاسو دَ عمر حصه دَ عمر څپل یو خونی داؤد ته وربخښلې دې.[2]

دَ دې روایت نه معلومه شوه چه دَحضرت داؤد علیه السلام عمر سل کاله شو. دَ تورات په باب سلاطین او تواریخ کښې دی چه حضرت داؤد علیه السلام په اسرائیلیانو باندې څلویښت کاله حکومت کړې.[3] جعفر بن محمد رحمه الله وائی چه حضرت داؤد علیه السلام اویا کاله حکومت کړې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه دَحضرت داؤد علیه السلام انتقال ناڅاپی سبت

---

[1]) البداية والنهاية: ١٣/٢ وقصص القرآن: ٤٣٥/٢.

[2]) قال الترمذی حدثنا عبدالله بن حميد، حدثنا أبونعيم حدثنا هشام بن سعد عن زيد بن أسلم عن أبي صالح عن أبي هريرة – رضي الله عنه – قال: قال رسول الله ﷺ: لما خلق الله آدم مسح ظهره فسقط من ظهره كل نسمة هوخالقها من ذريته إلى يوم القيامة، وجعل بين عيني كل إنسان منهم وبيصا من نور، ثم عرضهم على آدم فقال: أي رب من هؤلاء؟ قال: هؤلاء ذريتك. فرأى رجلا منهم، فأعجبه وبيص ما بين عينيه فقال: أي رب من هذا؟ قال: هذا رجل من آخر الأمم من ذريتك يقال له داؤد. قال: رب وكم جعلت عمره؟ قال: ستين سنة قال: أي رب زده من عمري أربعين سنة. فلما انقضى عمر آدم جاءه ملك الموت قال: أولم يبق من عمري أربعون سنة؟ قال: أولم تعطها ابنك داؤد؟ قال فجحد، فجحدت ذريته ونسي آدم فنسيت ذريته، وخطئ آدم فخطئت ذريته. أخرجه الترمذي في تفسير القرآن باب :٨ رقم: ٣٠٧٦ ومن سورة الأعراف، وأحمد في مسنده: ٢٩٩/١.

[3]) قصص القرآن: ٤٥٥/٢.

(هفتې) په ورځ اوشو. هغه دَ هفتې په ورځ دَ معمول په عبادت کښې مشغول وو او دَ مرغانو سیل وزرې خورې کړې په هغه باندې سورې کړې ووچه ناڅاپې په دغه حالت کښې وفات شو.[1]

الزُّبُرُ الْكُتُبُ، وَاحِدُهَا زَبُورٌ، زَبَرْتُ كَتَبْتُ. ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُدَ مِنَّا فَضْلًا يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ﴾. قَالَ مُجَاهِدٌ: سَبِّحِي مَعَهُ ﴿وَالطَّيْرَ وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ ۝ أَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتٍ﴾ الدُّرُوعَ ﴿وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ﴾ الْمَسَامِيرِ وَالْحَلَقِ، وَلَا تُدِقَّ الْمِسْمَارَ فَيَتَسَلْسَلَ، وَلَا تُعَظِّمْ فَيَفْصِمَ ﴿وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝﴾ /سبأ: ۱۰-۱۱/.

**قوله: الزُّبُرُ الْكُتُبُ، وَاحِدُهَا زَبُورٌ، زَبَرْتُ: كَتَبْتُ:** زبور په حضرت داؤد علیه السلام باندې دَ نازلیدونکې آسمانی صحیفې نوم دې. دَ اکثر ائمه تفسیر په نیز دا دَ الله تعالی دَ تحمید تمجید اوداؤد علیه السلام دَ دعاګانو اومناجات مجموعه وه او په دې کښې احکام او نواهی نه وو. چنانچه علامه بغوی رحمه الله معالم التنزیل کښې فرمائی: یعنی زبور هغه کتاب دې چه الله تعالی حضرت داؤد علیه السلام ته خودلې وو. دا صحیفه ۱۵۰ سورتونو مجموعه وه اودې ټول مضامین دعا، تحمید تمجید او ثنا، باندې مشتمل وو. په دې کښې حلال حرام او فرائض اوحدود نه وو.[2]

**الزُّبُرُ الْكُتُبُ:** دا دَ زبور جمع ده اودَې معنی ده کتابونه. چنانچه دَ زبرت معنی ده کتبت. حضرت قتاده رحمه الله اومجاهد رحمه الله غوندې ائمه دَتفسیر رائې هم دا ده چه زُبُردَ کُتُب په معنی کښې دې. امام راغب اصفهانی رحمه الله فرمائی: «وكل كتاب غليظ الكتابة يقال له زَبُور، وخصّ الزبور بالكتاب المنزل على داود عليه السلام: ﴿وَآتَيْنَا دَاوُدَ زَبُورًا﴾ [الإسرا: ۵۵]، ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ﴾ [الأنبياء: ۱۰۵]، وقيل: بل الزَّبور كل كتاب صَعُب الوقوف عليه من الكتب الإلهية، قال: ﴿وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ ۝﴾ [الشعراء: ۱۹۶]، قال: ﴿وَالزُّبُرِ وَالْكِتَابِ الْمُنِيرِ ۝﴾ [آل عمران: ۱۸۴]، ﴿أَمْ لَكُمْ بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ۝﴾ [القمر: ۴۳]، وقال بعضهم: الزبور اسم للكتاب المقصور على الحكم العقلية دون الأحكام الشرعية، والكتاب لما يتضمن الأحكام والحكم ويدل على ذلك أن زبور داود عليه السلام لا يتضمن شيئًا من الأحكام.»[3]

یعنی هر هغه کتاب دکوم کتابت چه غلیظ وی هغه ته زبور وئیلې شی. خو زبور په داؤد علیه السلام باندې نازلیدونکی کتاب دَپاره خاص کړې شوې دې لکه چه ارشاد دې: ﴿وَآتَيْنَا دَاوُدَ زَبُورًا﴾ یوقول دادې چه دَ الله تعالی په کتابونوکښې په هرهغه کتاب باندې دَ زبور اطلاق کیږی په کوم باندې چه پوهیدل ګران وی. ارشاد دې: ﴿وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ ۝﴾ اودا لیکلې شوی دی دَ پخوانو په کتابونوکښې، نور فرمائی: ﴿وَالزُّبُرِ وَالْكِتَابِ الْمُنِيرِ ۝﴾ او ﴿أَمْ لَكُمْ بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ۝﴾ آیا ستاسو دَپاره په کتابونو کښې نجات لیکلې شوې دې؟ بعض حضراتو فرمائیلی زبور دَهغه کتاب نوم دې په کوم کښې چه صرف عقلی حکمتونه وی اواحکام شرعیه نه وی او کتاب هغې ته وائی کوم چه په حکمونو اوحکمتونو دواړو باندې مشتمل وی. په دې باندې دلیل دادې چه دَحضرت داؤد علیه السلام په زبور کښې یوهم حکم نشته دې.

---

[1] قصص القرآن: ۲/۴۵۶.

[2] داخبره دې واضحه وی چه دَموجوده زبور هم ۱۵۰حصې دی کوم نه چه دَاهل کتاب په اصطلاح کښې مُزبورُ وئیلی شی مګر داهغه اصل زبور نه دې کوم چه په حضرت داؤد علیه السلام باندې نازل شوې وو. بلکه محرفین اهل کتاب دَدې په اکثر مضامینو کښې بدلون کړې دې موجوده زبور هم په دې تحریف باندې یو ښکاره شهادت دې دَکوم په بعض مضامین باندې دَ داؤد علیه السلام نوم درج دې نو په بعض باندې دَ فورح نوم لیکلې دې کوم چه دَنغمې ویونکو استاذ وو او په بعض باندې دَ نورو خلقو نومونه دی. په دې کښې دَداسې قصو او کهانو تذکره هم ملاویږی کومې چه دَحضرت داؤد علیه السلام نه په سونو کلونو پس پیښې شوی دی. اوګورئی لغات القرآن: ۳/۱۳۰.

[3] مفردات الأصفهاني، ص: ۲۳۶.

**داؤد علیہ السلام سره دَ غرونو او مرغانو دَتسبیح بیان:** ﴿وَلَقَدْ اٰتَیْنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا یٰجِبَالُ اَوِّبِیْ مَعَهٗ وَالطَّیْرَ وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِیْدَ﴾ یعنی داؤد علیہ السلام ته مونږ دَخپل طرف نه لوئی نعمت ورکړې وو (چنانچه مونږ غرونوته حکم ورکړې وو چه) اې غرونو داؤد علیہ السلام سره بار بار تسبیح کوئی. یعنی چه کله داؤد علیہ السلام په ذکرکښې مشغول وی نو تاسو هم هغه سره شامل کیږئی.

اوّبی: دَ تأویب نه مشتق دې، یعنی دوباره کول او راګرځول. امام بخاری رحمہ اللہ دَحضرت مجاهد رحمہ اللہ قول نقل کولوسره دَدې تفسیر سبحی سره کړې دې، یعنی تسبیح کوئی. دَحضرت داؤد علیہ السلام آواز ډیر خوږ وو او په خوږ آواز کښې به ئې دَ الله تعالی تسبیح اوتحمید کولو. الله تعالی غرونو او مرغانوته هم حکم ورکړې وو چه تاسو هم صرف په زبان حال سره نه بلکه په زبان قال سره ده سره په یوځائې زما تسبیح کوئی. کله چه به په خوند او سرور کښې دَحضرت داؤد علیہ السلام دَ ژبې نه دَ الله تعالی تسبیح او تهلیل نه ګویا کیدلې نو مرغئې اوغرونه یوازې نه بلکه امام رازی رحمہ اللہ وائی چه لوئې واړه کاڼړی ټول به هغه سره په تسبیح او ثناء کښې مشغول کیدل (۱)

﴿وَالطَّیْرَ وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِیْدَ اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ﴾ اَلدُّرُوْعُ: او الوتونکو مرغوته هم دغه حکم وو (چه هغه سره یوځائې زما تسبیح بیان کړئې) او مونږ دَهغه دپاره اوسپنه نرمه کړې وه دې دپاره چه کولاؤ زغرې جوړې کړې.

لفظ جبال تقدیراً منصوب دې لهذا الطیر په محل جبال باندې معطوف کیدو دَ وجې نه منصوب دې علامه انور شاه کشمیری رحمہ اللہ فرمائی چه والطیر مفعول معه کیدو دَ وجې نه منسوب دې او دَ ابن هشام رحمہ اللہ دا وینا چه: په قرآن کریم کښې دَ مفعول معه هیڅ یو مثال نه وینم صحیح نه ده، بلکه په قرآن کریم کښې دَدې مقام نه علاوه هم په څو مقاماتوکښې مفعول معه وارد دې (۲)

په دې آیت کښې دَ داؤد دَ دویمې معجزې بیان دې چه دَهغه دپاره اوسپنه موم یا دَ اور په شان نرمه کړې شوې وه. په لاس کښې به ئې اوسپنه اخستله او تار په شان به ئې تاوله دې نه چه به ئې څه غوښتل جوړول به ئې، نه به دَ اور اوګرمولو ضرورت پیښیدو او نه دَ سټك وغیره یا نورو آلاتو.

سابغات دَموصوف محذوف دروعا صفت دې. أي: دروعاسابغات (۳) یعنی کولاؤ او ارتې زغرې دی. امام بخاری رحمہ اللہ په الدروع سره اشاره اوکړه چه سابغات نه ارتې اوکولاؤ زغرې مراد دی.

﴿وَقَدِّرْ فِی السَّرْدِ﴾ اَلْمَسَامِیْرُ وَالْحَلَقُ: آیت دې ﴿وَقَدِّرْ فِی السَّرْدِ﴾ قدر دَتقدیر نه مشتق دې. یعنی اندازه کول، اودَ سرد معنی ده یوځائې کول. مطلب دادې چه په زغره جوړولوکښې دَ اندازې لحاظ کوه چه نه زیاته درنه وی اونه زیاته سپکه اودومره مضبوطه وی چه په اغوستونکی باندې دَ توری وار اثر اونه کړې شي.

اَلْمَسَامِیْرُ وَالْحَلَقُ: مسامیر دَمسمار جمع ده. یعنی میخ اوحَلَق. دَ حَلَقَةٌ جمع ده په معنی دَ زنځیر کړئې. امام بخاری رحمہ اللہ دَ سرد تفسیر کړې دې چه میخ ټکوهلو او کړو جوړولوکښې دَ اندازې لحاظ کوه.

وَلَا تُدِقَّ الْمِسْمَارَ فَیَتَسَلْسَلَ، وَلَا تُعَظِّمْ فَیَفْصِمَ: یعنی میخونه دومره مه نری کوه چه په سوروکښې دَ خوزیدو دَ وجې نه زغره زوړند اوخوزیږی اومه ئې دومره پیړ او لوئې جوړه وه چه مات شي.

---

(۱) التفسیر الکبیر للإمام الرازی سورة النساء رقم الآیة: ۱۰، ۲۴۶/۲۵دارالفکر.

(۲) فیض الباری: ۳۹۰/٤.

(۳) التفسیر الکبیر للإمام الرازی سورة النساء رقم الآیة: ۱۰، ۲۴۶/۲۵دارالفکر.

[٣٢٣٥]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ «خُفِّفَ عَلَى دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلاَمُ القُرْآنُ، فَكَانَ يَأْمُرُ بِدَوَابِّهِ فَتُسْرَجُ، فَيَقْرَأُ القُرْآنَ قَبْلَ أَنْ تُسْرَجَ دَوَابُّهُ، وَلاَ يَأْكُلُ إِلَّا مِنْ عَمَلِ يَدِهِ» رَوَاهُ مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ صَفْوَانَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ص ٥٣٠][ر: ١٩٦٧][١]

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد مسندی بخاری رحمه الله دي. (كتاب الإيمان باب أمور الإيمان) لاندې دَدوی تذکره تيره شوې ده. [٢]

**عبدالرزاق:** دا ابوبکر عبدالرزاق بن همام الصنعانی رحمه الله دي. دَدوی تذکره (كتاب الإيمان باب حسن إسلام المرء) لاندې تيره شوې ده. [٣]

**معمر:** دا ابوعروه معمر بن راشد ازدی بصری رحمه الله دي. دَ دوی تذکره (كتاب العلم باب كتابة العلم) لاندې اوګورئ. [٤]

**همام:** دا همام بن منبه بصری رحمه الله دي. دَدوی تذکره (كتاب العلم باب السمر في العلم) لاندې تيره شوې ده. [٥]

**قوله: خُفِّفَ على داؤد القرآن، فكان يأمر بدوابه.... إلخ:** په داؤد عليه السلام باندې قرآن يعنې دَ زبور لوستل دومره آسان کړې شوې وو چه هغه به په خپلو خناورو باندې زين ترلو حکم ورکولو نو په خناورو باندې به دَ زين ترلو نه وړاندې پوره لوستلې وو. دکشميهنی په روايت کښې دی (خفف على داؤد القرآءة) [٦] علامه کرمانی رحمه الله اوفرمائيل دلته دَ قرآن نه تورات يا زبور مراد دي [٧] او په دې باندې دَعلامه توربشتی رحمه الله په قول دَ قرآن اطلاق دې خبرې طرف ته اشاره کولو په غرض سره کړې شوې ده چه دا کتاب هم معجزه ده لکه چه قرآن کريم معجزه ده. [٨]

**دَلفظ قران تحقيق:** دَغفران او کُفران په شان لفظ قرآن هم مصدر دې اودَ دې معنی ده لوستل. اصالتًا لفظ "قَرْءٌ" معنی دَ جمع کولو راځي او په دې وجه اکثر مفسرينو او اهل لغت په لفظ قرآن کښې دَ جمع مفهوم مخې ته ساتلې دې يعنې قرآن ته قرآن په دې وجه وائي چه دا قصص او حکايات، اوامر او نواهي، وعده وعيد اوَد آياتونو او سورتونو مجموعه ده. [٩] په مونځ باندې هم دَ قرآن اطلاق کيږی خکه چه په مانځه کښې قراءت کيږی لکه چه جزء يعنې قراءت نه مجازاً پوره مونځ مراد اخستې شی. [١٠]

---

[١] مر تخريجه في كتاب البيوع باب كسب الرجل وعمله بيده رقم: ٢٠٧٣.
[٢] كشف الباري: ٦٥٧/١.
[٣] كشف الباري: ٣٢١/٢.
[٤] كشف الباري: ٣٢١/٤.
[٥] كشف الباري: ١٦٧/٤.
[٦] عمدة القاري: ١٠/١٦ وإرشاد الساري: ٣٣٦/٧.
[٧] شرح الكرماني: ٦٠/١٤ وعمدة القاري: ١٠/١٦.
[٨] عمدة القاري: ١٠/١٦ وإرشاد الساري: ٣٦٦/٧.
[٩] النهاية في غريب الحديث: ٤٢٩/٢.
[١٠] المصدر السابق.

**قوله: ولا يأكل إلا من عمل يده** او صرف د خپل لاس ګټه به ئې خوړله. يعنى زغرې به ئې جوړولې او په هغې به ئې ژوند تيرولو

**حضرت داؤد عليه السلام ته د زغرې جوړولو او خودلو حكمت:** د حافظ ابن عساكر رحمه الله روايت دې حضرت داؤد عليه السلام به په خپل دور خلافت كښې لباس بدلولو سره بازار كښې د خپل خان، د خپل كاروبار سلطنت د حال پوښتنه كوله. عموماً به خلقو تعريف كولو. يوه ورځ الله تعالى په انسانى شكل كښې يوه فرښته راوليږله. حضرت داؤد عليه السلام د هغې نه هم د دغه حال تپوس اوكړو كوم چه به ئې د نورو نه كولو چه وايه كه نه روره داؤد څنګه سړې دې؟ د هغه حكومت څنګه دې؟ فرښتې جواب وركړو چه سړې خو ښه دې خو چه په هغه كښې يو خوئى نه وې دې اوريدو سره حضرت داؤد عليه السلام فكرمند شواو معلومات ئې اوكړه هغه كوم خوئى دې؟ فرښتې اووئيل چه هغه پخپله د بيت المال نه خوراك كوى او خپل بال بچ باندې هم د دې نه خوروى دې خبرې اوريدو سره هغه ته تنبيه اوشوه او د الله تعالى نه ئې سوال اوكړو چه زما د پاره څه داسې سبب جوړكړې په كوم سره چه زما او زما د بال بچ ګذاره كيږى. الله تعالى هغه ته د زغرې جوړولو هنر اوخودلو او د هغه د پاره ئې اوسپنه نرمه كړه (۱) داؤد عليه السلام به روزانه يوه زغره جوړوله او په شپږ زره درهم باندې به ئې خرڅوله په دې كښې به ئې دوه زره درهم په خپل ځان باندې او په خپل بال بچ باندې خرچ كولو او باقى څلور زره درهم به ئې په فقيرانو د بنى اسرائيل صدقه كولې (۲)

**د حديث نه مستنبط فوائد:** حديث باب كښې دى چه په څناور باندې زين تړلو كښې څومره وخت لګى د دې نه په كم وخت كښې به داؤد عليه السلام د زبور تلاوت كولو. دا د حضرت داؤد عليه السلام معجزه وه. د كومو خلقو زړه چه د الله تعالى د ياد نه غافل نه وى او هغه په كثرت سره اذكار او اوراد اهتمام كوى نو الله تعالى د هغوى په هر عمل كښې بركت اچوى. چنانچه امام نووى رحمه الله د بعض صلحاء باره كښې فرمائى چه په شپه ورځ كښې به د قرآن مجيد اته ختمونه كول په شپه كښې او څلور په ورځ كښې (۳)

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائيلى چه څنګه الله تعالى د خپل بعض بندګانو د پاره مسافت مكانى راغونډوى هم دغه شان زمانه هم راغونډوى. داسې خوارق عادت امورهم تائيد او فيض ربانى سره كيدې شى. قسطلانى رحمه الله ليكى چه شيخ الاسلام برهان بن ابى شريف ماته خودلى دى چه هغه به په شپه ورځ كښې د قرآن مجيد پنځلس ختمونه كول (۴)

**رواه موسى بن عقبة عن صفوان عن عطاء بن يسار عن ابي هريرة** امام بخارى د مذكوره حديث دويم طريق بنانى چه دا حديث د موسى بن عقبة عن أبي هريرة رضي الله عنه په طريق سره هم مروى دې. خلق أفعال العباد كښې امام بخارى رحمه الله دا موصولاً روايت كړې دې (۵)

[۳۲۳۶]- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ، أَخْبَرَهُ وَأَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: أُخْبِرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي أَقُولُ: وَاللَّهِ لَأَصُومَنَّ النَّهَارَ، وَلَأَقُومَنَّ اللَّيْلَ مَا

---

(۱) تفسير ابن كثير: ۲۶۳/۱۱ تاريخ دمشق لابن عساكر: ۱۷، ۱۹ دار الفكر.

(۲) تفسير ابن كثير سورة النساء رقم الآية: ۱۰، ۲۶۲/۱۱ مؤسسة قرطبة، مكتبة أولاد الشيخ للتراث.

(۳) عمدة القارى: ۸/۱۶ دار الكتب العلمية.

(۴) إرشاد السارى: ۳۶۶/۷.

(۵) فتح البارى: ۵۶۳/۸.

عِشْتُ" فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنْتَ الَّذِي تَقُولُ وَاللّٰهِ لَأَصُومَنَّ النَّهَارَ وَلَأَقُومَنَّ اللَّيْلَ مَا عِشْتُ» قُلْتُ: قَدْ قُلْتُهُ قَالَ: «إِنَّكَ لَا تَسْتَطِيعُ ذٰلِكَ، فَصُمْ وَأَفْطِرْ، وَقُمْ وَنَمْ، وَصُمْ مِنَ الشَّهْرِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَإِنَّ الْحَسَنَةَ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، وَذٰلِكَ مِثْلُ صِيَامِ الدَّهْرِ» فَقُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، قَالَ: «فَصُمْ يَوْمًا وَأَفْطِرْ يَوْمَيْنِ» قَالَ: قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ، قَالَ: فَصُمْ يَوْمًا وَأَفْطِرْ يَوْمًا، وَذٰلِكَ صِيَامُ دَاوُدَ وَهُوَ أَعْدَلُ الصِّيَامِ" قُلْتُ إِنِّي أُطِيقُ أَفْضَلَ مِنْهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، قَالَ: «لَا أَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ» [ص ٥٣٣-٥٣٤] [ر: ١٠٧٩] [1]

ترجمه: په روايت كښې دي چه رسول الله ﷺ ته خبرور كړې شو (يعنى چا ورته اوخودل) چه زه داسې وايم: په خدائې تول عمر به د ورځې روژه ساتم او د شپې به په مانځه كښې اودريږم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل هم تا به وئيل چه په الله تعالى باندې قسم تر كومې پورې ژوندې يم روژه به ساتم او د شپې به په مانځه اودريږم؟ عبدالله بن عمرو ﷺ وائى چا عرض اوكړو بيشكه هم ما وئيلى وو. رسول اكرم ﷺ ورته اوفرمائيل ته د داسې كولو طاقت نه شى لرلې. روژه هم ساته او افطار هم كوه، د شپې تهجد د پاره پاسه او اوده كيږه هم او په هره مياشت كښې درې ورځې روژه ساته خكه چه د هرې نيكئى ثواب لس چنده ملاويږى. (يعنى په يوه نيكئى باندې د لسو په حساب باندې د دريو ديرش نيكئى شوې. اودا د صيام الدهر د ثواب برابر دى. عبدالله بن عمرو ﷺ عرض اوكړو يا رسول الله زما د دې نه زيات طاقت دې. حضورپاك اوفرمائيل (فصم يوما وأفطر يومين) يوه ورځ روژه ساته او دوه ورځې افطار كوه. وائى چه ما عرض اوكړو يارسول الله زما د دې نه زيات طاقت دې. حضورپاك اوفرمائيل (فصم يوما وأفطر يوما ذلك صيام داؤد) نوييا يوه ورځ روژه كوه او يوه ورځ كوجه كوه. هم دا د داؤد عليه السلام روژه ده او هم دغه عادلانه روژه ده. په بل روايت كښې دى چه افضل الصيام يعنى هم دغه د ټولو نه افضل روژه ده. عبدالله بن عمرو ﷺ وائى ما عرض اوكړو (انى أطيق أفضل منه يارسول الله) زما د دې نه د افضل طاقت دې. حضورپاك اوفرمائيل: (لا أفضل من ذلك) دې نه افضل والا هيڅ يوه روژه نشته دې. كتاب الصوم كښې دا حديث په تفصيل سره تيرشوې دې.

**تراجم رجال**

**يحيى:** دا ابوزكريا يحيى بن عبدالله بكير القرشى المخزومى رحمه الله دې. [2]

**الليث:** دا ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې. [3]

**عقيل:** دا عقيل بن خالد بن عقيل ايلى رحمه الله دې. د دوى تذكره وړاندې تيره شوې ده. [4]

**ابن شهاب:** د دوى تذكره بدءالوحى لاندې تيره شوې ده. [5]

**سعيد بن المسيب:** د دوى تذكره (كتاب الايمان باب من قال: إن الايمان هو العمل) لاندې تيره شوې ده. [1]

---

[1] مرتخريجه فى كتاب التهجد باب من نام عندالسحر رقم: ١١٣١.

[2] كشف البارى: ٣٢٣/١.

[3] كشف البارى: ٣٢٤/١.

[4] كشف البارى: ٤٥٥/٣.

[5] كشف البارى: ٣٢٦/١.

ابوسلمة: دا ابوسلمه عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دی. دَ دوی تذکره (کتاب الایمان باب صوم رمضان احتسابا من الایمان) لاندې تیره شوې ده. (۲)

عبدالله بن عمرو: دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۳)

دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت: حدیث باب کښې دی: (صیام داؤد علیه السلام) او باب سره دَدې مناسبت ښکاره دی.

[۳۲۳۷]- حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ، حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَلَمْ أُنَبَّأْ أَنَّكَ تَقُومُ اللَّيْلَ وَتَصُومُ النَّهَارَ» فَقُلْتُ: نَعَمْ، فَقَالَ: «فَإِنَّكَ إِذَا فَعَلْتَ ذَلِكَ هَجَمَتِ الْعَيْنُ، وَنَفِهَتِ النَّفْسُ، صُمْ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَذَلِكَ صَوْمُ الدَّهْرِ، أَوْ كَصَوْمِ الدَّهْرِ» قُلْتُ: إِنِّي أَجِدُ بِي، - قَالَ مِسْعَرٌ يَعْنِي قُوَّةً - قَالَ: «فَصُمْ صَوْمَ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ، وَكَانَ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا، وَلَا يَفِرُّ إِذَا لَاقَى» [ص ۵۳۵-۵۳۶][ر: ۱۰۷۹] (۴)

ترجمه: دَ حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته اوفرمائیل چه ماته خبر راکړې شوې دې چه ته ټوله شپه قیام کوې او دَ ورځې روژه ساتې، هغه عرض اوکړو او جی رښتیا دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل که داسې کوې نو ستا سترګې به (کمزورتې) نه دننه ورښکته شی اوته به کمزورې شې. هره میاشت کښې درې روژې ساته دا همیشه روژه ساتل دی یائی اوفرمائیل دادَ همیشه روژې ساتلو برابر دی. عبدالله بن عمرو رضی الله عنه وائی چه ما عرض اوکړو زه په خپل ځان کښې (دې نه) زیات طاقت وینم. حضورپاك اوفرمائیل ته دَ داؤد علیه السلام روژه ساته هغه به یوه ورځ روژه ساتله او بله ورځ به نې کوجه وه او په جنګ کښې به نې دَ دښمن نه مخ نه اړولو.

## تراجم رجال (۴)جاری

خلاد بن یحیی: دَدوی تذکره (کتاب الغسل باب من بدأ بشق رأسه الأیمن) لاندې تیره شوې ده.

مسعر: دَدوی تذکره (کتاب الوضوء باب الوضوء بالمد) لاندې تیره شوې ده.

حبیب بن ابي ثابت: دَ دوی تذکره (کتاب الصوم باب صوم داؤد علیه السلام) لاندې تیره شوې ده.

ابوالعباس: دَدوی تذکره (کتاب التهجد باب (بلا ترجمة بعد باب ما یکره من ترك قیام اللیل) لاندې تیره شوې ده.

عبدالله بن عمرو بن العاص: دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۵)

غوره عبادت هغه وی په کوم کښې چه مشقت زیات وی. که سړې پرله پسې روژه ساتی نو نفس دَ روژې عادت شی او په هغې کښې دَمشقت نوم هم څه څیز باقی نه پاتې کیږی. خو په یو ورځ روژه او بل ورځ کوجه کښې مشقت هم زیات دې او دَ عادت جوړیدو امکان هم نه وی. په دې وجه دَ صوم الدهرنه دَدې فضیلت زیات دې. (۶)

---

۱) کشف الباری: ۱۵۹/۲.

۲) کشف الباری: ۳۲۳/۲.

۳) کشف الباری: ۶۷۹/۱

۴) مرتخریجه فی کتاب الجهاد باب من نام عندالسحر رقم: ۱۱۳۱.

۵) کشف الباری: ۶۷۹/۱

۶) إرشادالساری: ۳۶۸/۷.

أجدلي: بعض نسخوکښې "أجدني" دي يعني زه په خپل خان کښې ويتم
په حديث باب کښې د صوم داؤد الفاظ راغلى دى نو ترجمة الباب سره ددې مناسبت ښکاره دې.

## ۳۹ - باب: أَحَبُّ الصَّلاَةِ إِلَى اللّٰهِ صَلاَةُ دَاوُدَ،

**وَأَحَبُّ الصِّيَامِ إِلَى اللّٰهِ صِيَامُ دَاوُدَ: كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَيَقُومُ ثُلُثَهُ، وَيَنَامُ سُدُسَهُ. وَيَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا.**

**دَترجمة الباب مقصد:** دَخپل عادت مطابق امام بخاری رحمه الله حديث دَباب عنوان جوړ کړې دې امام بخاری رحمه الله دَ حضرت داؤد علیه السلام عبادات بیانول غواړی چه دَ الله تعالى په نيزخوښ کړې شوې مونځ دَ داؤد علیه السلام مونځ وو او په روژو کښې دَ داؤد علیه السلام روژه. داؤد علیه السلام به نیمه شپه اوده کیدو بیا به دریمه حصه دَ شپې په عبادت کښې مشغول شو بیا سدس لیل کښې اوده کیدو. یوه ورځ به ئې روژه ساتله یوه ورځ به ئې کوجه وه.

**قَالَ عَلِيٌّ: وَهُوَ قَوْلُ عَائِشَةَ: مَا أَلْفَاهُ السَّحَرُ عِنْدِي إِلاَّ نَائِمًا.** [ر: ۱۰۸۲].

حافظ ابن حجر رحمه الله وائی چه دَ علی نه کیدی شی چه دَ امام بخاری رحمه الله شیخ علی بن المدینی رحمه الله مراد دې (۱) دَمستملی او کشمیهنی په نسخوکښې دا قول ساقط دې. (۲)

علی ابن المدینی رحمه الله "وینام سدسه" مطلب واضح کولودپاره دَحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها روایت بیان کړې دې "ماألفاه السحر عندي إلا نائما" يعنی رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به دَ پیشمنی وخت نه موندلو مگر اوده. تهجد کولو نه پس به سدس لیل يعنی دَ شپې آخری حصه کښې حضورپاك آرام کولو دې دپاره چه دَ ورځې تازه وی او دادَ حضورپاك معمول وو. علی بن المدینی رحمه الله مقصد دادې چه حدیث عائشه رضی الله عنها معمول هم دَداؤد علیه السلام دَمعمول موافق خودلې شوې دې چه هغه به سدس لیل کښې آرام فرمائیلو. (۳)

روايت کښې "السحر" بنا ء برفاعليت مرفوع دې او "ألفاه" ضمير مفعول رسول الله صلی الله علیه وسلم طرف ته راجع دې (۴).

دَحضرت عائشه رضی الله عنها دا روايت (کتاب التهجد، باب من نام عند السحر) لاندې (موسی بن إسماعيل، عن إبراهيم بن سعد عن أبيه عن أبي سلمة عن عائشة) په طريق سره موصولاً تيرشوې دې.

[۳۲۳۸] - **حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَوْسٍ الثَّقَفِيِّ، سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَحَبُّ الصِّيَامِ إِلَى اللّٰهِ صِيَامُ دَاوُدَ، كَانَ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا، وَأَحَبُّ الصَّلاَةِ إِلَى اللّٰهِ صَلاَةُ دَاوُدَ كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَيَقُومُ ثُلُثَهُ، وَيَنَامُ سُدُسَهُ»** [ص ۵۳۸] [ر: ۱۰۷۹] (۵).

ترجمة الباب او حديث دواړه هم بر دی. دواړو کښې سوا دَ تقديم او تاخير نه بل څه خاص فرق نشته

---

(۱) فتح الباري: ۵۶۳/۸.
(۲) المصدر السابق.
(۳) فتح الباري: ۵۶۳/۸.
(۴) عمدة القاري: ۱۲/۱۶ وفتح الباري: ۵۶۳/۸.
(۵) مر تخريجه في كتاب التهجد، باب من نام عند السحر، رقم الحديث: ۱۱۳۱.

**تراجم رجال**

**قتیبة بن سعید** دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده (۱)
**سفیان** دا مشهور محدث سفیان ثوری رحمه الله دې (۲)
**عمرو بن دینار** داعمرو بن دینار مکی رحمه الله دې (۳)
**عمرو بن اوس الثقفي** دَدوی تذکره (کتاب التهجد، باب ترك القیام للمریض) لاندې اوګورئ.
**عبدالله بن عمرو بن العاص** دا صحابی رسول دې دَدوی تذکره هم ماقبل کښې تیره شوې ده (۴)

## ۴۰ - باب: ﴿وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُدَ ذَا الْأَيْدِ إِنَّهُ أَوَّابٌ﴾ إِلَى قَوْلِهِ: ﴿وَفَصْلَ الْخِطَابِ﴾ /ص: ۱۷-۲۰/.

قَالَ مُجَاهِدٌ: الْفَهْمُ فِي الْقَضَاءِ.

**دَترجمة الباب مقصد:** دَدې باب لاندې امام بخاری رحمه الله دَحضرت داؤد علیه السلام خصائص او معجزات بیانول غواړي. امام بخاری رحمه الله دَ خپل عادت مطابق هم په قرآنی آیات باندې ترجمه قائم کړې ده. سورت ص کښې دی.
﴿وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُدَ ذَا الْأَيْدِ إِنَّهُ أَوَّابٌ ۝ إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ۝ وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً كُلٌّ لَهُ أَوَّابٌ ۝ وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ۝﴾ [۱۷ - ۲۰] او زمونږ بنده داؤد یاد کړئ چه ډیر طاقتور وو بیشکه هغه رجوع کونکې وو. مونږ غرونه په دې کارباندې لګولی وو چه هغوی دې ماښام او دَ نمر راختلو په وخت هغه سره تسبیح کوی او مرغئی هم کومې چه به راپوخائی کولې شوې دې ټولو به هغه سره یوځائی دَ الله تعالی ښه ذکر کولو او مونږ دَهغه سلطنت ته استحکام ورکړې وو او مونږ هغه ته دَ هوښیارتوب او فیصله کونکو خبرو طریقه ورکړې وه.
**دَ فصل الخطاب تفسیر:** قال مجاهد: الفهم فی القضاء..... دَ فصل الخطاب تفسیر کوی چه دَمجاهد رحمه الله په نیز دَدې مطلب دادې چه الله تعالی هغه ته معاملات باندې پوهیدلو او دَصحیح فیصلې کولو بصیرت ورکړې وو هم دَمجاهد رحمه الله یو قول دَ ابن جریج رحمه الله په طریق باندې نقل دې په هغې کښې دَ فصل الخطاب تفسیر (العدل فی الحکم) سره کړې شوې دې (۵) یعنی دَ داؤد علیه السلام فیصله په عدل او انصاف باندې مبنی وه. دَ بعض حضراتو په نیز دَ فصل الخطاب نه امابعد مراد دې. دَامام شعبی رحمه الله رائې هم دغه ده. چنانچه ابن جریر رحمه الله په صحیح سند سره دَامام شعبی رحمه الله نه داحدیث نقل کړې دې (اول من قال أما بعد داؤد النبی صلی الله علیه وسلم وهو فصل الخطاب) (۶) یعنی دَ ټولو نه اول داؤد نبی علیه السلام امابعد اووئیل او هم دغه فصل الخطاب دې

﴿وَلَا تُشْطِطْ﴾ لَا تُسْرِفْ ﴿وَاهْدِنَا إِلَى سَوَاءِ الصِّرَاطِ ۝ إِنَّ هَذَا أَخِي لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً﴾ يُقَالُ لِلْمَرْأَةِ نَعْجَةٌ، وَيُقَالُ لَهَا أَيْضًا شَاةٌ ﴿وَلِيَ نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا﴾ مِثْلُ ﴿وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا﴾ /آل عمران: ۳۷/: ضَمَّهَا ﴿وَعَزَّنِي﴾ غَلَبَنِي، صَارَ أَعَزَّ مِنِّي، أَعْزَزْتُهُ جَعَلْتُهُ

---

(۱) کشف الباری: ۱۸۹/۲.
(۲) کشف الباری: ۲۷۸/۲.
(۳) کشف الباری: ۳۰۹/٤.
(۴) کشف الباری: ۶۷۹/۱
(۵) فتح الباری: ۵۶٤/۸ وعمدة القاری: ۱۲/۱۶.
(۶) فتح الباری: ۵۶٤/۸.

عَزَّنِي ﴿فِي الْخِطَابِ﴾ يُقَالُ: الْمُحَاوَرَةُ ﴿لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَى نِعَاجِهِ ۖ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ﴾ الشُّرَكَاءِ ﴿لَيَبْغِي - إِلَى قَوْلِهِ - أَنَّمَا فَتَنَّاهُ﴾. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: اخْتَبَرْنَاهُ، وَقَرَأَ عُمَرُ: فَتَّنَّاهُ، بِتَشْدِيدِ التَّاءِ ﴿فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ﴾/ص: ۲۲-۲۴/

﴿وَلَا تُشْطِطْ﴾ لا تسرف: آیت دی: ﴿وَهَلْ أَتَاكَ نَبَأُ الْخَصْمِ ۘ إِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ۝ إِذْ دَخَلُوا عَلَىٰ دَاوُودَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ ۖ قَالُوا لَا تَخَفْ ۖ خَصْمَانِ بَغَىٰ بَعْضُنَا عَلَىٰ بَعْضٍ فَاحْكُم بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَا إِلَىٰ سَوَاءِ الصِّرَاطِ ۝﴾ [ص: ۲۱ - ۲۲] یعنی آیا تاته د دغه مقدمه والو خبر رسیدلې دې کوم وخت چه هغوی د محراب په دیوال باندې اوختو سره راغلل. کله چه هغوی داؤد له راغلل نو هغه ددوی نه اوویریدلو (چه دسختې څوکئې نه باوجود دا خلق څنګه دننه داخل شو) هغوی اوونیل ویرېږه مه مونږ د یوې جګړې فریق یو. مونږ کښې یو د بل سره زیاتي کړې دې. اوس ته زمونږ په مینځ کښې په حق سره فیصله اوکړه او بې انصافی مه کوه او مونږ ته نیغه لار اوښایه.

امام بخاری رحمه الله (لا تشطط) تفسیر کړې دې (لاتسرف) یعنی زیاتي مه کوه. دا د (إشطاط) نه دې او ددې معنی ظلم کولو دحد نه د زیاتی کولو او د ډیر لرې کیدو ده.(۱)

﴿إِنَّ هَٰذَا أَخِي لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً﴾: آیاتونه دی. ﴿إِنَّ هَٰذَا أَخِي لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً وَلِيَ نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ ۝ قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ ۖ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ۗ وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ۝ فَغَفَرْنَا لَهُ ذَٰلِكَ ۖ وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ ۝﴾ [ص: ۲۳] یعنی مقدمه پیش کونکو دواړو نه یو اوونیل دا زما رور دې ده سره یو کم سل ګډې دی او ما سره هم یوه ګډه ده. نودې وانې چه هغه هم ماته حواله کړه او ده د خبرو اترو په زور سره زه دباؤ کړې یم. داؤد علیه السلام اوونیل بیشکه ده په تا باندې ظلم کړې چه ستا ګډ ئې په خپلو ګډو کښې شامل کولو مطالبه اوکړه او اکثر شریک ملګری په یو بل باندې زیاتي کوی. سوا دهغوی نه چاچه ایمان راوړې دې او چاچه نیک عمل کړې دې او داسې خلق ډیر کم دی. او داؤد علیه السلام ته خیال راغلو چه مونږ ددوی امتحان اخستې دې. په دې وجه هغوی د خپل رب نه معافی اوغوښتله او ټیټیدو سره په سجده کښې راپریوتل او د الله تعالی طرف ته رجوع شو په دې وجه مونږ هغوی په دې معامله کښې معاف کړل او بیشکه دهغوی دپاره مونږ سره خاص قربت حاصل دې او ښه انجام.

**دحضرت داؤد علیه السلام امتحان:** ددې آیاتونو دتفسیر لاندې انتهائي فضول قسم اسرائیلي واقعه نقل کولې شی چه داؤد علیه السلام د خپلې عبادت خانې د څېر نه لاندې بهر او کتل نو دخپل فوج یو مشر اوریاه په ښځه باندې نظر پریوتلو. دهغې په حسن باندې عاشق شو او په زړه کښې خیال راغلو که ددې خاوند جنګ له اولیګلې شی او په هغې کښې دې شهید شی نو هغه به پخپله دې سره نکاح اوکړی. اوریاه داؤد علیه السلام یو جنګ ته اولیګلو په کوم کښې چه هغه شهید شو. دهغه د شهادت نه پس داؤد علیه السلام دهغه ښځې سره واده اوکړو حالاتکه ددې نه علاوه دهغه ډیرې بیبیانې وې. چونکه داکار د یو پیغمبر شان نه خلاف وو په دې وجه د تنبیه په غرض سره الله تعالی دوه فرښتې د مدعی او مدعی علیه په شکل راولیګلې. په کوم کښې چه هغوی د یو فرضی واقعې په پرده داؤد علیه السلام ته تنبیه ورکولو کوشش اوکړو چه دهغه طرز عمل زیاتي او بې انصافی ده.(۲)

دا واقعه قطعاً د خان نه او بې بنیاده ده. انبیاء کرام د معاشره د اصلاح د یو عظیم مشن د پوره کولو دپاره رالیګلې شی هغوی د الله تعالی په حفاظت کښې وی او په تکوینی توګه دهغوی نه داسې یو عمل نه صادریږي چه د معاشره په نظر کښې د اعتراض قابل وی. حضرت داؤد علیه السلام د الله تعالی یو جلیل القدر پیغمبر وو هغه د خپل امت د هدایت او اصلاح دپاره رالیږلې شوې وو چه هغوی ته د توحید دعوت ورکړی دتهذیب درس ورکړی د حیا او پاکدامنئ تعلیم ورکړی. دکوم مصلح انسانیت د بعثت مقصد چه نورو ته د حیاء او پاکوالی طریقې

---

(۱) لغات القرآن: ۱۲۸/۲.

(۲) قصص القرآن: ۴۸۵/۲.

خودل وي دهغه طرف ته د داسې فضولیات واقعه د نسبت تصور هم نه شي کیدې چه هغه به د چا نکاح شوې ښځې ته د خوښئې په نظر سره کوري او بیا د هغې د حاصلولو دپاره به دهغې خاوند د مرګ خلې ته د ورديکه کولو چلونه کوي (العیاذ بالله)

د آیاتو سیاق اوسباق او اسلوب کلام هم د دې واقعې په ډیر زور سره تردید کوي چنانچه امام رازي رحمه الله تفسیر کبیر کښې فرمائي چه الله تعالی رسول اکرم ﷺ ته دکافرانو د ظلمونو په مقابله کښې د صبر تلقین فرمائیلې او د یو بې مثاله نمونې په حیثیت سره ئې دحضرت داؤد علیه السلام ذکر او فرمائیلو مګر په دې مقام باندې د حضرت داؤد علیه السلام ذکر سره د حضورپاك زړه ساتنه مقصود وه چه د هغه زړه دې د مکې د کافرانو د ظلمونو سره نه خرابیږي که چرې د داؤد علیه السلام نه یو داسې عمل شوې وې نوهغه به چرې هم د نمونې جوړولو د پاره نه پیش کولو ﴿اِصْبِرْ عَلٰی مَا یَقُوْلُوْنَ وَاذْکُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ﴾ په مضمون او طرز کلام باندې د غور ضرورت دې بیا دا چه د مذکوره قصې شروع ﴿وَهَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ﴾ الفاظ سره شوې ده دکوم نه چه د داؤد علیه السلام مدح او تعظیم مقصود دې کوم چه د دې خبرې واضح دلیل دې چه د اوریاه قصه باطل ده.

دویمه خبره دا ده چه په اسرائیلي روایت کښې حضرت داؤد علیه السلام دخواهش نفس نه مغلوب یو داسې انسان په کردار کښې خودلې دې کوم چه د چاد قتل کولو اود قتل نه پس دهغه ښځه حاصلولو کښې هیڅ تأمل نشته دغه شان د داؤد علیه السلام په تعریف کښې قرآن پاك ﴿ذَا الْاَیْدِ﴾ او ﴿اَوَّابٌ﴾ الفاظ بیان کړې دی یعنی طاقت والا به خپل نفس باندې قابو موندونکې، د الله تعالی طرف ته رجوع کونکې. سوال دا دې چه کوم سړې دچاد عزت او حیاء پرواه نه لري هغه د داسې مدح او ثناء کرامت او عظمت مستحق کیدې شي؟ قرآن پاك د حضرت داؤد علیه السلام باره کښې فرمائیلي ﴿وَاٰتَیْنٰهُ الْحِکْمَةَ﴾ یعنی مونږ هغه ته علم حکمت او معرفت ورکړې وو او حکمت نوم دې د کمالات علمیه او عملیه اونکاره خبره ده چه یو داسې سړې چه د دې قسم افعال مرتکب وي هغه حکیم څنګه کیدې شي؟ قرآن پاك وائي چه مونږ هغه ته فصل الخطاب ورکړې یعنی د فیصلې کونکې خبرې کولو صلاحیت ورکړې چه هره خبره دې د عدل او انصاف په تله کښې تللې شوې وي نو آیا داسې سړې چه د دې قسم عمل ارتکاب کوي دهغه باره کښې دا تصور کیدې شي چه دهغه هره خبره به د عدل او انصاف په تله کښې تللې شوې وي؟

بیا د کلام شروع دهغه د مدح او ثناء نه او انتهاء داسې بې مثاله عنایت او نوازش سره شوې ده چه آیت ﴿وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰی وَحُسْنَ مَاٰبٍ﴾ کښې دحضرت داؤد علیه السلام دپاره دخاص قربت او بهترین خانې اعلان کړې شوې آخر دا چه دخلافت برحق په اعزاز سره عزت ورکړې شو. د دې وجوهاتو په رڼا کښې داخبره به بغیر د څه تردد نه منلې کیږي چه دا قصه صرف د یهودیانو د خپل خان نه جوړه کړې ده دکوم په ذریعه چه هغوی د الله تعالی د اولوالعزم پیغمبرانو تقدس دخپو لاندې کول غواړي. هم په دې وجه جمهور مفسرین او محققین علماء د دې واقعې په بې اصل کیدو باندې اتفاق کړې دې. [1]

د دې سلسلې هیڅ یو روایت د استناد درجې ته نه دې رسیدلې. حافظ ابن کثیر رحمه الله تصریح کړې ده چه د دې واقعه سره متعلق د رسول الله ﷺ نه هیڅ یو حدیث نه دې نقل [2] البته ابن ابی حاتم رحمه الله دلته یو روایت نقل کړې دې د کوم سند چه صحیح نه دې. څکه چه د دې په سند کښې یزید الرقاشي دې. داسې سړې د دې چه د صالحین نه دې مګر په اجماع دمحدثینو حضراتو ضعیف الحدیث او ساقط الاعتبار دې. [3] تفسیر خازن کښې دسعید بن

---

[1] تفسیر ابن کثیر: ۱۲/۸۲-۸۱ سورة ص الآیات: ۲۱ - ۲۵ مؤسسة قرطبة، تفسیر الإمام الرازي: ۲۶/۱۹۴-۱۸۹ سورة ص، دار الفکر، تفسیر الخازن: ۴/۳۶ دار الکتب العلمیة.

[2] تفسیر ابن کثیر: ۱۲/۸۲-۸۱ سورة ص الآیات: ۲۱ - ۲۵ مؤسسة قرطبة.

[3] تفسیر ابن کثیر: ۱۲/۸۲-۸۱ سورة ص الآیات: ۲۱ - ۲۵ مؤسسة قرطبة.

المسیب رحمه الله یو روایت دی چه حضرت علی رضی الله عنه فرمائیلی دی: (من حدثکم بحدیث داؤد علی ما یرویه القصاص جلدته مائة وستین جلدة، وهو حد الفریة علی الأنبیاء)[1] مطلب دا چه قصې ویونکی خلق څنګه بیان کوی که څوک په تاسو کښې څوک سړی د داؤد علیه السلام باره کښې داسې څه خبره اوکړی نوزه به هغه یوسل شپیته کوړی وهم هم دغه په انبیاء باندې د بهتان لګولو سزا ده.

**د مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله تحقیق:** په آخر کښې دا سوال باقی پاتې کیږی چه کله دغه مذکوره واقعه د ځان نه او دروغ ده نو بیا هغه کوم یو امتحان وو په کوم کښې چه د اخته کیدو نه پس داؤد علیه السلام فوری توګه باندې د الله تعالی په دربار کښې په سجده کیدو سره د ځپل بخشش درخواست کوی؟

مفسرینو حضراتو د دې فتنې مختلف توجیهات کړی دی لیکن د قرآن په نظم کلام او سیاق او سباق د ټولو نه نیزدې توجیه هغه ده کومه چه مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله کړې ده. مولانا فرمائی چه زمونږ په نیز د آیات بهترین توجیه هغه ده د کوم بنیاد چه د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما په دې اثر باندې قائم دې. حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه حضرت داؤد علیه السلام د تقسیم کار په رڼا کښې خپل معمولات په څلورو ورځو کښې داسې تقسیم کړې وو. چه یوه ورځ د خالص عبادت د پاره، یوه ورځ د مقدماتو د فیصلې د پاره. یوه ورځ خالص ذات د پاره او یوه د بنی اسرائیلو د رشد او هدایت د پاره عام وه.[2]

د حضرت داؤد علیه السلام یوه ورځ هم د عبادت نه خالی نه وه لیکن کومه ورځ چه د عبادت د پاره خاص وه د هغه په نیز د هغې زیات اهمیت وو. حجره به بندولې شوه څوک نه شو ورکولې والا ته به حکم ورکولې شو چه هغه دې څوک هم د ننه نه پریږدی د پاره چه په عبادت او تسبیح او تحمید کښې څه خلل وانچولې شی. قرآن کریم د هغوی د شخصیت هم دا اړخ ﴿إِنَّهُ أَوَّابٌ﴾ ونیلو سره راښکاره کړې دی.[3]

حضرت داؤد علیه السلام د نبوت او خلافت په منصب باندې فائز وو او د دې منصب بنیادی مقصد، هدایت خلق او خدمت خلق وو. چونکه هغوی یوه ورځ د عبادت د پاره خاص کړې وه او په دغه ورځ په عامو خلقو باندې خپلې دروازې بندول د نبوت او خلافت د منصب د تقاضو منافی وه په دې وجه الله تعالی د دې عادت ختمولو د پاره حضرت داؤد علیه السلام په داسې امتحان کښې راګیر کړو چه دوه کسان د چا په مینځ کښې چه یو خاص مناقشه وه په دغه مخصوص ورځ کښې د حجرې په دیوال باندې راؤختو سره د ننه داخل شو خلاف عادت د دغه شان دوه کسان په حجره کښې د ننه موجود کیدو سره خود د بشری تقاضې د وجې نه اوویریدو د دې کیفیت په کتو سره دواړو عرض اوکړو تاسو ویریږئ مه زمونږ د نا خاپې راتلو وجه دا معامله ده مونږ تاسو له د دې فیصله کولو د پاره راغلی یو. قرآن مجید په دې مقام باندې د قضیې صرف هم دا اړخ بیان کړې دې د کوم تعلق چه رشد او هدایت سره وو یعنی د طاقتور کمزوری سره ظلم او زیاتی کول.

د فریقینو فیصله کولو نه پس حضرت داؤد علیه السلام فوری خبردار شو چه زه الله تعالی په دې ازمینت کښې ولې راګیر کړم. د الله تعالی په دربار کښې سر په سجده کیخودو سره استغفار اوکړو. الله تعالی د هغه استغفار قبلولو سره د هغه په عظمت کښې زیاتوالې اوکړو او نصیحت نې ورته اوکړو چه اې داؤد علیه السلام مونږ ته په زمکه کښې خپل خلیفه جوړولو سره لیګلې نې. په دې وجه ستا فرض دی چه د الله تعالی د دې نیابت پوره پوره حق ادا کړې. په دې لار کښې د عدل او انصاف د تقاضو پوره پوره خیال اوساتې او د صراط مستقیم نه اخوا کیدو سره کله هم د افراط او تفریط لار اختیار نه کړې.

---

[1]) تفسیر الإمام الرازي: ۱۹۲/۲۶سورة ص. دارالفکر تفسیر الخازن: ۳۶/٤دارالکتب العلمیة.

[2]) قال الآلوسي: وعن ابن عباس رضی الله عنهما وکان علیه السلام کما روی عن ابن عباس: جزآزمانه أربعة أجزاء یوما للعبادة، ویوما للقضاء ویوما لاشتغال بخاصة نفسه، ویوما لجمیع بنی إسرائیل.

[3]) قصص القرآن: ٤٥٣/٢.

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د حضرت داؤد عليه السلام د دې ازمينبت ذکرکولو سره فرماني: يوځل داؤد عليه السلام الله تعالى ته په فخرسره عرض اوکړو اې ربه په شپه او ورځ کښې يوساعت داسې نه دې تيرشوې چه داؤد يا آل داؤد نه يوکس د يو لمحې دپاره هم ستا تسبيح اوتهليل کښې مشغول نه وي پاتې. الله تعالى ته د څپل مقرب پيغمبر دا فخريه انداز خوښ نه شو. وحې راغله چه اې داؤد! دا څه چه هم دې صرف زمونږ په ورکړه او زمونږ په فضل اوکرم سره دې ګنې په تاکښې او ستا په اولاد کښې دا طاقت جرته دې چه هغوى په دغه ترتيب سره قائم پاتې شي اوس چه کله تا دا دعوى کړې ده نوزه به تا په ازمينبت کښې اچوم. حضرت داؤد عرض اوکړو يا الله! چه کله خبره داسې ده نو د اول نه به ماته خبر راکوې ليکن د ازمينبت په معامله کښې د حضرت داؤد عليه السلام سوال قبول نه شو او حضرت داؤد عليه السلام په دغه فتنه کښې واچولې شو کومه چه په قرآن مجيد کښې ذکر ده.[1]

مستدرك حاكم کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا روايت علامه ذهبي صحيح او حسن ګرځولې دې او که په دې کښې ابن عباس رضي الله عنهما د دې فتنې او ازمينبت کوم تفسير کړې دې هغه د هغه تولو توجيهاتو په مقابله کښې راجح او غوره دې کوم چه بعض د تفسير په کتابونو کښې کړې شوې دې.[2] خلاصه دا ده چه حضرت داؤد عليه السلام د خصمين فيصله کونکو کښې داسې مشغول شو چه د عبادت نه غافل شو. دغه فتنې او ازمينبت سره هم د دې طرف ته اشاره ده. حضرت تهانوى رحمه الله دې ازمينبت سره متعلق د ير زړه راښکونکې تفسير بيان کړې دې.[3]

**قوله: يقال للمرءة نعجة ويقال لها أيضا: شاة:** مطلب دا دې چه په عربى ژبه کښې لکه څنګه چه په ګډو چيلو باندې د نعجة اطلاق کيږي. دغه شان په ښځه باندې هم عموماً د دې اطلاق کيږي.

**قوله: فقال أكفلنيها، مثل وكفلها زكريا: ضمها:** دلته امام بخاري رحمه الله بيان کوى چه په آيت کښې کفل په معنى د ضم دې. لکه چه ﴿وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا﴾ کښې د ضم په معنى کښې دې (اي: ضمزكريامريمبنت عمران الى نفسه) يعنى زكريا عليه السلام مريم بنت عمران رضي الله عنها په څپل كفالت کښې واخسته څپل خان سره ئې ملاؤ کړه. نو دلته هم کفل په دې معنى کښې دې. ابن عباس رضي الله عنهما (اكفلنيها) معنى کړې ده (أعطنيها).[4]

**قوله: عزني: غلبني صار أعزمني، أعززته، جعلته عزيزا:** آيت کښې دې: ﴿وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ﴾ امام بخاري رحمه الله (عزني) معنى بيان کړې ده (غلبني صار أعزمني) يعنى د هغه خبرې اترې په ما باندې غالب شوې زمانه زيات زور آور او زبردست شو. قتاده رحمه الله (عزني) معنى کړې ده (قهرني وظلمني) يعنى هغه ما زوروى. په ما باندې ظلم او زياتې کوى.[5]

**قوله: في الخطاب: يقال المحاورة:** دلته امام بخاري رحمه الله فرمانى چه په دې آيت کښې خطاب معنى ده محاوره يعنى په څپل مينځ کښې خبرې اترې کول، د کلام تبادله کول.

---

[1] وفي المستدرك على الصحيحين للحاكم عن طريق موسى بن عقبة عن كريب عن ابن عباس –رضي الله عنهما– قال: ما أصاب داؤد ما أصابه بعد القدر إلا من عجب به من نفسه، وذلك أنه قال: يارب ما من ساعة من الليل ولا نهار إلا وعابد من آل داؤد يعبدك، يصلي لك، أويسبح، أو يكبر، وذكر أشياء، فكره الله ذلك فقال: يا داؤد إن ذلك لم يكن إلا بي فلولا عوني ما قويت عليه، وجلالي لأكلتك إلى نفسك يوما قال: يارب فأخبرني به، فأصابته الفتنة ذلك اليوم. وقال الذهبي في التلخيص: صحيح.

[2] د تفصيل دپاره اوګورئ: قصص القرآن: ۲/۴۵۵-۴۵۳.

[3] بيان القرآن: ۳/۲۷۷.

[4] إرشادالساري: ۷/۳۷۰.

[5] فتح الباري: ۸/۵۶۴وعمدة القاري: ۱۶/۱۴.

**قوله: فتناه: قال ابن عباس: اختبرناه، وقرأ عمر بتشديد التاء:** آیت دي ﴿وَظَنَّ دَاوُدُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ﴾ امام بخاري رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کولوسره لفظ (فتناه) تفسیر کوی. ابن عباس رضي الله عنهما وائي دَدې معنی ده (اختبرناه) یعنی مونږ امتحان واخستلو، هغه مو په ازمیښت کښې واچولو. دا قول حافظ ابن جریر رحمه الله او ابن ابی حاتم رحمه الله دعلی بن ابی طلحه په طریق سره موصولاً نقل کړې دې.[1]

حضرت عمر رضي الله عنه دَ لفظ (فتناه) تاء، تشدید سره لوستله. ابورجاء عطاردي رحمه الله او حسن بصری رحمه الله نه هم دَ تشدید قرءة نقل دي.[2] خو دَ جمهور مفسرینو په نیزدا قول قرءات شاذه نه دې.[3]

[۳۲۳۹] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ، حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ: سَمِعْتُ الْعَوَّامَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَسْجُدُ فِي ص؟ فَقَرَأَ: ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ﴾ - حَتَّى أَتَى - ﴿فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ﴾ [الأنعام: ۹۰]. فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ أُمِرَ أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِمْ" [ص ۵۴۸] [۴۳۵۶، ۴۵۲۸، ۴۵۲۹، وانظر: ۱۰۱۹][4]

**ترجمه:** مجاهد بن جبر رحمه الله وائي چه ما دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوکړو چه آیا زه په سورت ص کښې دَ تلاوت سجده اوکړم؟ نوهغه دَ سورت ص دا آیت اوونیل: ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ﴾ تر دې چه دې آیت ته راورسیدو ﴿فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ﴾ یعنی ته هم دَهغوی په لاره باندې تګ کوه. بیا ئې اوونیل ستاسو پیغمبر یعنی رسول اکرم ﷺ ته هم دَدې انبیاء کرامو په لاربانديِ دَ تلوحکم ورکړې شوې دې. دا حکم صرف دَ دین په بنیادی عقائد او اصول کښې وو خکه چه دَ انبیاء اصول او شرائع یو دي البته په فروعاتو کښې اختلاف پاتې دې په کوم چه رسول اکرم ﷺ ته دَ نورو انبیاء کرامو اقتداء او هغوی پسې دَ تللو حکم نه دې ورکړې شوې.

**تراجم رجال**

**محمد:** دې نه کوم شیخ مراد دې؟ په دې کښې درې احتمالات دی: ① محمدبن سلام مراد وی، ② محمدبن المثنی مراد وی، ③ محمدبن بشار مراد وی. بعض حضراتو په محمد بن سلام رحمه الله باندې جزم کړې دې.[5]

دَدریوارو شیوخو تذکره وړاندې تیره شوې ده.[6]

**سهیل بن یوسف:** دَدوی تذکره هم وړاندې تیره شوې ده.[7]

---

[1] فتح الباری: ۵۲٤/۸.

[2] فتح الباری: ۵٦٤/۸ وعمدة القاری: ۱٤/۱٦.

[3] فتح الباری: ۵٦۵/۸ وعمدة القاری: ۱٤/۱٦.

[4] والحديث رواه الإمام البخاري فی كتاب التفسير باب قوله ﴿أُولَئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ﴾ رقم الحديث: ۴٦۲۲ وباب سورت ص، رقم الحديث: ۴۸۰٦-۴۸۰۷ والترمذی فی الصلاة باب ماجاء فی السجدة فی ص، رقم الحديث: ۵۷۷ وأبوداؤد فی الصلاة باب السجود فی ص، رقم الحديث: ۱۴۰۹ والنسائی فی سجود القرآن، السجود فی ص، رقم الحديث: ۹۵۸.

[5] عمدة القاری: ۱٤/۱٦.

[6] محمدبن سلام (كشف الباری: ۹۳/۲) محمد بن المثنی (كشف الباری: ۲۵/۲) محمدبن بشار المعروف ببندار (كشف الباری: ۲۵۸/۳).

[7] كشف الباری كتاب الجهاد ص: ۴۳۸.

**العوام:** دا عوام بن حوشب شیبانی رحمه الله دی. د دوی تذکره (کتاب البیوع، باب مایکره من الحلف فی البیع) لاندې تیره شوې ده.

**مجاهد:** دا مجاهد بن جبر مکی رحمه الله دی. د دوی تذکره (کتاب العلم، باب الفهم فی العلم) لاندې تیره شوې ده.[1]

**ابن عباس:** د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حالات (بدء الوحی)، څلورم حدیث لاندې او (کتاب الإیمان، باب کفران العشیر وکفر دون کفر) لاندې تیر شوی دی.[2]

دا روایت وړاندې کتاب التفسیر کښې هم راځی په هغې کښې دا اضافه هم ده (فسجدها رسول الله صلی الله علیه وسلم)[3] یعنی رسول الله ﷺ په دې آیت باندې سجده اوکړه. د احنافو په نیز د سورت ص په دې آیت ﴿وَخَرَّ رَاكِعًا وَّأَنَابَ﴾ باندې سجده د تلاوت واجب ده.[4] سعید بن جبیر رحمه الله عن ابن عباس رضی الله عنهما په طریق سره د رسول الله ﷺ یو روایت کښې هغوی د سورت ص د سجده تلاوت باره کښې فرمائیلی: (سجدها داؤد توبة ونحن نسجدها شکراً) یعنی داؤد علیه السلام د توبه په توګه سجده کړې وه او مونږ دا سجده د شکریه په توګه سره ادا کوو.[5]

**قوله: ومن ذریته:** علامه ابن جریر طبری رحمه الله وائی چه (ومن ذریته) ضمیر د نوح علیه السلام طرف ته راجع دی.[6] ځکه چه په آیت کښې اقرب المذکورین هم هغه دی. علامه عینی رحمه الله رائې هم دغه ده.[7] بعض حضرات وائی ضمیر حضرت ابراهیم علیه السلام ته راجع دی. ځکه چه په سیاق آیت کښې هم د هغوی ذکر کیږی لیکن په دې صورت کښې اشکال وارد کیږی چه لوط علیه السلام خو د ابراهیم علیه السلام په ذریت کښې نه دی بلکه د هغه د رور هاران بن آذر د اولاد نه دی. د دې قول په رڼا کښې لوط علیه السلام د ابراهیم علیه السلام په ذریت کښې تسلیم کول به لازم راځی. د دې جواب دادې چه تغلیباً لوط علیه السلام هم د ابراهیم علیه السلام په ذریت کښې داخل دی.[8]

[۳۲۴۰]- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «لَيْسَ ص مِنْ عَزَائِمِ السُّجُودِ، وَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ فِيهَا» [ص ۵۵۰] [ر: ۱۰۱۹][9]

**ترجمه:** حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وائی چه د سورت ص سجده د هغه سجدو نه نه ده کومې چه واجب دی. البته ما رسول الله ﷺ لیدلی چه حضور پاک به په دې کښې سجده کوله.

## تراجم رجال

**موسی بن اسماعیل:** دا ابوسلمه موسی بن اسماعیل تبوذکی بصری رحمه الله دی. د دوی تذکره (کتاب العلم، باب من أجاب الفتیا بإشارة الید والرأس) لاندې تیره شوې ده.[1]

---

[1] کشف الباری: ۳۰۷/۳.
[2] کشف الباری: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.
[3] صحیح البخاری کتاب التفسیر سورة ص، رقم الحدیث: ۴۸۰۷.
[4] تفسیر المظهری: ۱۲۳/۶ دارالکتب العلمیة.
[5] انظر سنن النسائی باب سجود القرآن السجود فی ص، رقم الحدیث: ۹۵۸ وانظر صحیح ابن خزیمة باب ذکر العلة التی لها سجد النبی صلی الله علیه وسلم، وسنن البیهقی الکبری: ۴۵۲/۲ کتاب الصلاة دارالکتب العلمیة بیروت.
[6] جامع البیان للطبری: ۲۶۰/۷.
[7] عمدة القاری: ۱۵/۱۶.
[8] عمدة القاری: ۱۵/۱۶.
[9] والحدیث مر تخریجه فی کتاب سجود القرآن، باب سجدة، ص: ۱۰۶۹.

**وهیب:** دا وهیب بن خالد بن عجلان باهلي بصري رحمہ اللہ دي.[1]

**ایوب** دامشهور محدث ایوب سختیاني رحمہ اللہ دي دَدوی حالات (کتاب الإیمان باب حلاوة الإیمان) لاندې تیر شوی دی.[2]

**عکرمة:** دا مشهور امام حدیث وتفسیر ابو عبدالله عکرمه مولی ابن عباس رضی اللہ عنہ دي دَدوی حالات (کتاب العلم باب قول النبي صلی الله علیه وسلم: اللهم علمه الکتاب) لاندې تیرشوی دی.[3]

**ابن عباس:** دَحضرت ابن عباس رضی اللہ عنہما حالات (بدء الوحي) څلورم حدیث لاندې او (کتاب الإیمان باب کفران العشیر وکفر دون کفر) لاندې تیر شوی دی.[4]

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** باب سره په ظاهره دَدې حدیث هیڅ تعلق نشته دې لیکن چونکه په سورت ص کښې دَحضرت داؤد علیہ السلام دَ توبه دَ سجدې ذکر دې او حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہما په دې روایت کښې دَ رسول اکرم صلی اللہ علیہ وسلم سجده دَ حضرت داؤد علیہ السلام دَ سجده توبه دَ قبلیدو په شکر کښې وه. په دې مناسبت سره امام بخاري رحمہ اللہ دا روایت دلته ذکر کړې دې. والله اعلم.[5]

## ۴۱- باب: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى: ﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمٰنَ نِعْمَ الْعَبْدُ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ﴾ /ص: ۳۰. الرَّاجِعُ الْمُنِيبُ

بعض نسخوکښې دلته دَ باب اضافه نشته دې صرف آیت نقل کړې شوې دې.[6]

**دَترجمة الباب مقصد:** ښکاره خبره ده چه دَدې باب لاندې امام بخاري رحمہ اللہ دَ حضرت سلیمان تذکره او دَهغه فضائل اومناقب بیانول غواړي.

**حضرت سلیمان علیہ السلام:** حضرت سلیمان علیہ السلام دَ حضرت داؤد علیہ السلام خوئی وو. الله تعالی هغوی ته دَمال اودولت دَ زیاتوالی سره سره وسیع اوعریض اومستحکم سلطنت او حکومت ورعطاء کړې وو. هوا مرغئی ځناور او جنات ټول نی دَ هغه دپاره مسخر کړې وو. دغه شان حیوانات او جنات هم دَ سلیمان علیہ السلام دَ حکم خلاف ورزی کولو جراءت نه شو کولې.

امام بخاري رحمہ اللہ په دې آیت باندې باب ترلې دې. ﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمٰنَ ۭ نِعْمَ الْعَبْدُ ۭ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ﴾ یعنی مونږ داؤد علیہ السلام ته دَ سلیمان علیہ السلام په شان خوئی ورکړو. هغه ځه ښه بنده وو او بیشکه ډیر رجوع کونکې وو. دلته مخصوص بالمدح محذوف دې او تقدیر عبارت دې: (نعم العبد سلیمان).

---

[1] کشف الباري: ۴۳۳/۱، ۴۷۷/۳.
[2] کشف الباري: ۱۱۸/۲.
[3] کشف الباري: ۲۶/۲.
[4] کشف الباري: ۳۶۳/۳.
[5] کشف الباري: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.
[6] عمدة القاري: ۱۵/۱۶دارالکتب العلمیة.
[7] عمدة القاري: ۱۶/۱۶-۱۵وإرشادالساري: ۳۷۱/۷.

**قوله: الراجع المنيب** امام بخاري رحمه الله د ﴿أَوَّابٌ﴾ تفسير «الراجع المنيب» سره كړې دې د راجع معنى ده د ګناهونه رجوع كونكې او منيب د أناب إنابة نه دې يعنى د طاعات په ذريعه د الله تعالى طرف ته رجوع كونكې متوجه كيدونكې (۱)

قتاده رحمه الله وائى «أواب» مطيع په معنى كښې دې اوسدى رحمه الله وائى داد مسبح په معنى كښې دې (۲)

**وَقَوْلِهِ: ﴿هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي﴾ /ص: ۳۵/. وَقَوْلِهِ: ﴿وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَى مُلْكِ سُلَيْمَانَ﴾ /البقرة: ۱۰۲/.**

د دې آيت تفسير به د باب اولنى حديث لاندې راځى ﴿وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَى مُلْكِ سُلَيْمَانَ﴾ [البقرة: ۱۰۲] د سورت بقره آيت دې ﴿وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَى مُلْكِ سُلَيْمَانَ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ﴾ دا آيت د يهوديانو باره كښې نازل شوې وو چه هغوى د هغه څيز اتباع او كړه كوم چه د سليمان عليه السلام په زمانه كښې به شيطانانو لوستلو او سليمان عليه السلام كفر نه دې كړې ليكن شيطانانو كفر اختيار كړو هغوى به خلقو ته جادو خودلو.

مفسرين حضرات فرمائى چه ﴿عَلَى مُلْكِ سُلَيْمَانَ﴾ كښې دوه احتمالات دى. يو احتمال دا دې چه لفظ «على» دلته د «في» په معنى كښې دې يعنى «في ملك سليمان» (۳) او ملك نه مراد شريعت دې او دويم احتمال دا دې چه دلته لفظ «تتلوا» د «تتقول» معنى ته متضمن دې او «تتقول» لفظ «على» سره متعدى كيږى لكه چه ارشاد بارى تعالى دې ﴿وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ﴾ [الحاقة ۴۴] دا دويم احتمال زيات مناسب دې خكه چه د حروف په مقابله كښې په افعال كښې مجاز اختيارول زيات اولى دى او هم دغه د بصريين مذهب دې بل د ذكر كړې شوى دواړو تاويلاتو ضرورت د دې وجې نه دې خكه چه كله فعل تلا لفظ على سره متعدى كيږى نو هغه وخت ضرورى كيږى چه د على مجرور داسې څيز وى د كوم مخې ته چه تلاوت كيږى لكه چه «تلوت على زيد القرآن» خودلته د على مجرور ملك دې او ملك د هغه شيانو نه دې د چا مخكښې چه تلاوت اوكړې شى. هم په دې سبب د دې خبرې ضرورت پيښ شو چه په دې خائى تاويل اوكړې شى چنانچه بعض على د في په معنى كښې اخستې دې او بعض دا وئيلى دى چه «تتلو» د «تتقول» معنى ته متضمن دې.

مفسرين حضرانو د دې آيت د تفسير لاندې ليكلى دى چه شيطانانو به په آسمان كښې د فرښتو هغه خبرې به غلا اوريدلې كومې چه به د راتلونكى وخت د امورو سره متعلق وې. شيطانانو به راتلل او دا خبرې به ئې ساحرانو ته خودلې او ساحرانو به د دې په رڼا كښې خلقو ته د مستقبل واقعات وراندې خودل او هغه به رښتيا واقع كيدل. په دې سره د بنى اسرائيل دا عقيده نوره هم پخه شوه چه جنات د غيبو په خبرو باندې پوهيږى. چنانچه بنو اسرائيل د غيب هغه ټولې خبرې كومې چه د ساحرانو نه اوريدلې وې په كاغذونو كښې ليكلو سره محفوظ كړلې. سليمان عليه السلام ته چه حقيقت معلوم شو نو هغه خپل كسان اوليګل او د دې قسم ټول كاغذونه او كتابونه ئې راجمع كولو حكم وركړو. سليمان عليه السلام دغه كتابونه په يو صندوق كښې واچول او د خپلې كرسئى لاندې ئې دفن كړل. شيطانانو چه به دغه كرسئى ته د نيزدې كيدو كوشش كولو نو سوزيدل به. چه كله سليمان عليه السلام وفات شو نو هغه بنى اسرائيلو كسنتلوسره راؤيستل. شيطانانو هغوى ته او خودل چه سليمان عليه السلام به د دې جادو په زور سره په انسانانو او جناتو باندې حكومت چلولو. د دې خائى نه په بنى اسرائيلو كښې دا خبره مشهوره شوه چه سليمان عليه السلام جادوګر

---

(۱) عمدة القارى: ۱۶/۱۶۱ وفتح البارى: ۸/۵۶۷.

(۲) فتح البارى: ۸/۵۶۷ وإرشاد السارى: ۷/۳۷۲.

(۳) الدر المصون على الكتاب المكنون: ۲/۲۹-۲۸ دار القلم، دمشق.

وو تردې چه هغه دَ انبیاء کرامو صحائف شاته اوغورزول اودغه راویستلې شوی کتابونه ئې خپل کړل او دَ جادو تعلیم اوتعلم دَهغوی محبوب مشغله جوړه شوه.[1]

﴿وَلِسُلَيْمَانَ الرِّيحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ ۖ وَأَسَلْنَا لَهُ عَيْنَ الْقِطْرِ ۖ﴾ أَذَبْنَا لَهُ عَيْنَ الْحَدِيدِ ﴿وَمِنَ الْجِنِّ مَن يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهِ ۖ وَمَن يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ ۝ يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِن مَّحَارِيبَ﴾ قَالَ مُجَاهِدٌ: بُنْيَانٌ مَا دُونَ الْقُصُورِ ﴿وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ﴾ كَالْحِيَاضِ لِلْإِبِلِ، وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: كَالْجَوْبَةِ مِنَ الْأَرْضِ ﴿وَقُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ ۚ اعْمَلُوا آلَ دَاوُودَ شُكْرًا ۚ وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ ۝ فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلَىٰ مَوْتِهِ إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ﴾ الْأَرَضَةُ ﴿تَأْكُلُ مِنسَأَتَهُ﴾ عَصَاهُ ﴿فَلَمَّا خَرَّ - إِلَى قَوْلِهِ - فِي الْعَذَابِ الْمُهِينِ﴾ /سبا: ۱۲-۱۴/.

**دَحضرت سلیمان علیه السلام معجزات:** ﴿وَلِسُلَيْمَانَ الرِّيحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَرَوَاحُهَا شَهْرٌ﴾ [سبا: ۱۲] دَ سورت سبا آیت دې یعنی مونږ دَسلیمان علیه السلام دَپاره هوا مسخر کړه، دَهغې دَ سحر چلیدل دَ یوې میاشت مسافت وو او دَهغې دَ ماښام چلیدل دَ یوې میاشت مسافت وو.

دا په سلیمان علیه السلام باندې دَ الله تعالی یوه لویه مهربانی وه چه دَهغه دَپاره ئې هوا مسخر کړې وه. سلیمان علیه السلام چه به چرته سفر کول وو هوا ته به ئې حکم ورکولو هغې به سلیمان علیه السلام او دَ هغه لښکر منزل مقصود ته رسولو. په دې آیت کښې دَ هوا رفتار دا خودلې شوې دې چه کله به هغه سحر چلیدله نو دَ هغه دور دَ رفتار سفر په لحاظ سره دَ یوې میاشتې فاصلې ته رسولو او هم دغه رفتار دَ ماښام په وخت کښې دَ چلیدو وو. لکه چه په ورځ کښې به سلیمان علیه السلام دَ دو میاشتو فاصله دَ هوا په ذریعه سحر او ماښام پوره کولو.[2]

مجاهد رحمه الله وائی سلیمان علیه السلام به سحر دَ دمشق نه وتلو سره به ماښام اصطخر ته رسیدلو سره قیلوله کوله یا به ئې ماښام دَ اصطخر نه وتلو سره سحر کابل ته به رسیدلو سره هلته قیلوله کوله دَ دمشق نه دَ اصطخر پورې او دَ اصطخر نه دَ کابل پورې سفر دَ یوې یوې میاشتې دَ مسافت برابر دې.[3]

﴿وَأَسَلْنَا لَهُ عَيْنَ الْقِطْرِ﴾ أَذَبْنَا لَهُ عَيْنَ الْحَدِيدِ: دا هم دَ سورت سبا دَ مذکوره آیت جز دې. دَ آیت ترجمه ده، او مونږ دَ هغه (سلیمان علیه السلام) دَپاره دَ تانبې چینه اوبهیوله. دَ أسلنا معنی امام بخاری رحمه الله أذبنا سره کړې ده. أسال دَ إسالة په معنی کښې دې، بهیول خو أذاب دَ إذابة په معنی کښې دَ ویلې کولو راځی. قطر امام بخاری رحمه الله دَحدید یعنی دَ اوسپنې په معنی کښې اخستې دې. لیکن داکثر مفسرینو په نیز دې نه نحاس یعنی تانبه مراد ده.[4]

تانبه دَ اوسپنې په شان کلك او مضبوط معدنیات نه ده. الله تعالی حضرت سلیمان علیه السلام ته دا نعمت ورکړو چه دَهغه دَپاره ئې تانبه دَ اوبو په شان سیال جوړ لو سره دَهغې چینه روانه کړه. قتاده رحمه الله وائی دا چینه په یمن کښې وه.[5]

﴿وَمِنَ الْجِنِّ مَن يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهِ ۖ وَمَن يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ ۝ يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِن مَّحَارِيبَ﴾ [سبا: ۱۲] آیت دې ﴿وَمِنَ الْجِنِّ مَن يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهِ ۖ وَمَن يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيرِ ۝ يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِن مَّحَارِيبَ وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ ۚ﴾ یعنی جنات کښې بعض هغه وو چه دَخپل

---

[1] روح المعانی سورة البقرة: ۱۰۲، ۳۳۸/۱-۳۳۷. إدارة الطباعة المنيرية، تفسير ابن كثير: ۵۱۳/۱ سورة البقرة: ۱۰۲. مؤسسة قرطبة.

[2] إرشادالساري: ۲۷۲/۷.

[3] عمدة القاري: ۱۷/۱۶.

[4] إرشادالساري: ۷۲/۷.

[5] عمدة القاري: ۱۷/۱۶.

پروردګار په حکم سره دهغوی په مخکښې کار کولو او (مونږ په هغوی باندې داخبره واضحه کړې وه چه) په دوی کښې کوم یو سړې زما دحکم نه خلاف کوی مونږ به په هغوی باندې دسوزکړې شوې اور مزه څکو. جناتو د سلیمان علیه السلام دپاره دهغه د خوښې مطابق لوئی لوئی عمارتونه او مجسمې اود حوضونو برابر لوئی لوئی لګنونه اوداسې دیګونه جوړول چه هم په یو ځائې باندې به پراته وو.

قَالَ مُجَاهِدٌ: بُنْيَانٌ مَادُوْنَ الْقُصُوْرِ: دلته امام بخاری رحمه الله د حضرت مجاهد رحمه الله قول نقل کړې دې چه محاریب داسې عمارتونو ته وائی کوم چه د محلات نه کم وی.

(وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ) كَالْحِيَاضِ لِلْإِبِلِ.....إلخ: تماثیل داد تمثال جمع ده. یعنی مجسمې. جناتو به دحضرت سلیمان علیه السلام په حکم سره دتانبې، اوسپنې او کاڼرونه تصویرونه اومجسمې جوړولې. په هغه زمانه کښې به په دیوالونو باندې تصویرونه تراشلې کیدل. او دهغه وخت په شریعت کښې مجسمه سازی جائز وه.(١)

جفان د جفنة جمع ده. لګن ته وائی.(٢) او جواب جمع د جابية ده یعنی حوض. (٣) امام بخاری رحمه الله وائی چه دا لګنونه به دومره لوئی لوئی وو (کالحیاض للإبل) لکه داوښانودپاره جوړکړې شوی حوضونه. ابن عباس رضی الله عنهما وائی (کالجوبة من الأرض) یعنی هغه لګنونه به دومره لوئی وو لکه دزمکې کندې.(٤) په روایاتوکښې راځی چه زر کسان به د یوتال نه چاپیره کیناستو سره خوراك کولو.(٥)

(فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَادَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ إِلَّا دَآبَّةُ الْأَرْضِ): پوره آیت دادې (فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَادَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖٓ إِلَّا دَآبَّةُ الْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ ۚ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَالَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ) بیا چه کله مونږ په حضرت سلیمان علیه السلام باندې دمرګ راوستلو حکم جاری کړو نوهغه جناتوته ئې د مرګ پته اونه لګوله مګر ونه چینجی کوم چه د هغوی همسا خوړلې وه چنانچه کله هغه پریوتلو نوجنات ته معلومه شوه چه که هغوی دغیبو علم پیژندلې نو د ذلت والا په تکلیف کښې نه راګیریدل.

سلیمان علیه السلام د اجل وخت چه کله رانیزدې شو اوهغه ته د وحی په ذریعه ددې خبر ورکړې شو نو سلیمان علیه السلام دعا اوکړه: (اللهم عم على الجن موتي حتى تعلم الإنس أن الجن لايعلمون الغيب) یعنی اې الله زما د مرګ نه جنات ناخبره اوساته، دې دپاره چه انسانانو ته یقین اوشی چه جنات د غیب خبرونه نه پیژنی.

نوچه کله د سلیمان علیه السلام د مرګ وخت رانیزدې شو نو یوه چوکه ئې واخسته په هغې باندې خپله زنه کیخوده او په تخت باندې کیناستو. هم په دې حالت کښې مرګ واقع شو او جناتودا ګنړل چه هغه ژوندې دې د بیت المقدس په آبادی کښې مشغول وو او درونډ سامان د اوړو راوړو تکالیف ئې برداشت کول. د سلیمان علیه السلام روح تلې وو لیکن په چوکه باندې ډډه لګولې ناست وو. چوکه (الأرضة) یعنی د وینو چینجی لګیدلې وو چه دابه ئې خوړله چه یوکال تیر شو نو چوکه ماته شوه اود سلیمان علیه السلام نعش راپریوتلو. نوبیا جنات ته علم اوشو چه دهغه روح خو تلې دې. اوس د جناتو مخې ته دا معمه وه چه د هغه مرګ کله واقع شوې او وینو چینجو څومره موده کښې چوکه خوړلې وی. جناتو د وینو چینجی په همسا باندې کیخوده نو هغوی چه په یوه شپه او ورځ کښې څومره حصه اوخوړله دهغې نه دوی اندازه اولګوله چه د سلیمان علیه السلام همسا د وینوچینجی په یوکال کښې خوړلې ده اود هغه

١) عمدة القاري: ١٧/١٦ وإرشادالساري: ٣٧٢/٧.
٢) المحكم والمحيط الاعظم: ٤٥٦/٧ دارالكتب العلمية، (ج.ف.ن)الدر المصون: ١٦٢/٩ دارالقلم دمشق.
٣) الدرالمصون: ١٦٢/٩ دارالقلم دمشق، كليات أبي البقاء ص: ٤٩ مؤسسة الرسالة.
٤) تفسير ابن كثير: ٢٦٥/١١ مؤسسة قرطبه، التفسير الكبير: ٢٤٩/٢٥ سورة السبا رقم الآية: ١٣ دارالفكر.
٥) عمدة القاري: ٢٦٥/١١ مؤسسة قرطبه، التفسير الكبير: ٢٤٩/٢٥ سورة السبا، رقم الآية: ١٣، دارالفكر.

دَ مرگ پوره يو كال شوي دي،[1] دغه وخت دَ سليمان عليه السلام عمر ۵۳ كاله وو. دَ حضرت داؤد عليه السلام دَ وفات نه پس ۱۲ كاله كښې حكمران جوړ شوي وو.[2] جناتو ونيل كه چرې هغوى ته اول حقيقت معلوم شوي وې نو هغوى به خپل خانونه په دې دَ محنت او مشقت په كارونو كښې هيڅ كله نه اچول او هغوى به پوشان دَ پوره كاله پورې دا ذلت نه اوچتولو.[3] جنات ته دَ علم غيب دعوىٰ وه دې واقعې دَ هغوى دعوىٰ بنكاره كړه او دَ دې خلاف واقعه كېدل ئې ثابت كړل.

﴿مِنْسَأَتَهُ﴾ عَصَاهُ. په آيت كښې دَ "منسأة" ذكر راغلې دې دې نه عصا يعني چوكه او همسا مراد ده. دا دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما قول دې او دا ابن ابى حاتم رحمه الله دَ على بن ابى طلحه رحمه الله په طريق سره موصولاً روايت كړې دې.[4]

مِنسَأة دا مِفْعَلة په وزن باندې دې. نسأ ينسأ (الشيء أوالأمر) نه دَ دې معنى ده مؤخر كول عرب وائى. (نسأت الإبل، إذا زجرت الإبل، أي: ضربتها بالمنسأة).[5]

﴿حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّي ۚ حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ۝ رُدُّوهَا عَلَيَّ ۖ فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوقِ وَالْأَعْنَاقِ ۝﴾ /ص: ۳۲: يَمْسَحُ أَعْرَافَ الْخَيْلِ وَعَرَاقِيبَهَا. ﴿الْأَصْفَادِ﴾ /ص: ۳۸: الْوَثَاقُ.

قَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿الصَّافِنَاتُ﴾ صَفَنَ الْفَرَسُ رَفَعَ إِحْدَىٰ رِجْلَيْهِ حَتَّىٰ تَكُونَ عَلَىٰ طَرَفِ الْحَافِرِ ﴿الْجِيَادُ﴾ /ص: ۳۱/ السِّرَاعُ. ﴿جَسَدًا﴾ /ص: ۳۴: شَيْطَانًا. ﴿رُخَاءً﴾ طَيِّبَةً ﴿حَيْثُ أَصَابَ﴾ /ص: ۳۶: حَيْثُ شَاءَ. ﴿فَامْنُنْ﴾ أَعْطِ.... ﴿بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ /ص: ۳۹: بِغَيْرِ حَرَجٍ.

## دَ حضرت سليمان عليه السلام دَ امتحان واقعه: ﴿حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّي ۚ حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ۝ رُدُّوهَا عَلَيَّ ۖ فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوقِ وَالْأَعْنَاقِ ۝﴾

دَ سورت ص آيت دې: ﴿إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصَّافِنَاتُ الْجِيَادُ ۝ فَقَالَ إِنِّي أَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّي حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ۝ رُدُّوهَا عَلَيَّ ۖ فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوقِ وَالْأَعْنَاقِ ۝﴾ [الآية: ۳۱ – ۳۳] يعني چه كله دَ ماښام وخت كښې هغه ته داسې اسونه وړاندې كړې شو چه په دريو خپو باندې ولاړ ښكلې (تيز رفتار) اسونه وو، نو سليمان عليه السلام اوونيل ما دَ خپل رب ذكر پريخودو او دَ مال محبت له مې ترجيح وركړه، تردې چه نمر په پرده كښې پټ شو.

دَ سليمان عليه السلام په خدمت كښې چه كوم اسونه پيش كړې شوي وو هغه جهاد فى السبيل الله كښې استعماليدل په هغوى باندې دَ الله تعالىٰ دَ دښمنانو سره دَ جهاد شوق دومره غالب شوې وو چه دَ مازيګر دَ مانځه ئې هډو خيال رانغلو او نمر ډوب شو. هغه دَ مونځ په فوت كېدو باندې سخت خفه شو چه دَ دې اسونو ياد زه دَ الله تعالىٰ دَ محبت نه غافل كړم. چنانچه سليمان عليه السلام خپلو خادمانو ته حكم وركړو دغه اسونه ماله واپس راولئى. اسونه دَ هغوى مخې ته پيش كړې شو. نو دَ هغوى په پنډو او ستونو باندې (په توره سره) لاس صفا كول شروع كړه. مطلب دَ مونځ دَ فوت كېدو خفګان دومره غالب شو چه دَ جوش او ايمانى غيرت نه مغلوب كېدو سره په توره دَ اسونو ستونه والوزول هغه ئې ذبح كړل او پنډئى هم ورله پرې كړې.[6]

بعض حضراتو ﴿فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوقِ وَالْأَعْنَاقِ﴾ مطلب دا بيان كړې دې چه سليمان عليه السلام دَ اسونو ستونو او پنډو باندې دَ محبت او مينې نه لاس راښكلو. دا تفسير دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې او ابن جرير رحمه الله دې ته اوجه الى

---

[1] إرشادالساري: ۳۷۳/۷التفسير الكبير: ۲۵۱/۲۵سورة السبا: ۱٤، دارالفكر.

[2] إرشادالساري: ۳۷۳/۷.

[3] إرشادالساري: ۳۷۳/۷التفسير الكبير: ۲۵۱/۲۵سورة السبا: ۱٤، دارالفكر.

[4] فتح الباري: ۵۶۷/۸.

[5] فتح الباري: ۵۶۷/۸.

[6] إرشادالساري: ۳۷۳/۷.

الصواب ونیلي دي (۱) لیکن جمهور وائي چه اوجه هم دغه ده چه د اسونو محبت هغه د الله تعالی د یاد نه غافل کړي وو په دې وجه تقربا الی الله ئې توره اوچته کړه او ټول ئې ذبح کړل. (۲)

**قوله: بمسح أعراف الخیل وعراقیبها** امام بخاري رحمه الله د آیت تفسیر داکړي دې چه سلیمان علیه السلام د اسونو د ستونو وېښته اودهغوی په پنډو باندې د مینې اومحبت لاس راښکلو. (۳) دلته امام بخاري رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما رائې ته ترجیح ورکړې ده

**قوله: أعراف** دا د عُرف جمع ده د اس د ستې وېښتو او د چرګ چارخولك ته وائي. (۴)

**قوله: عراقیب:** دا د عرقوب جمع ده د انسان د ګیټئي د پاسه پټې او د ځناور زنګون او پنډئي ته عُرقوب وائي (۵) په عربي لغت کښې د هرځاروی د شاتنو خپو زنګونو ته «عُرقوبان» او مخکښنو خپو دواړو زنګونو ته «رکبتان» وائي. (۶)

**الأصفاد: الوثاق. قال مجاهد: الصافنات: صفن الفرس....إلخ** امام بخاري رحمه الله د آیات د بعض الفاظ تفسیر کړي دي. آیت دې ﴿فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهِ رُخَاءً حَيْثُ أَصَابَ ۝ وَالشَّيَاطِينَ كُلَّ بَنَّاءٍ وَغَوَّاصٍ ۝ وَآخَرِينَ مُقَرَّنِينَ فِي الْأَصْفَادِ ۝ هَذَا عَطَاؤُنَا فَامْنُنْ أَوْ أَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝﴾ (۷) یعني مونږ د هغه د پاره هوا مسخر کړې وه چه د هغه په حکم سره چرته چه به هغه تللو په نرمئي سره به چلیدله او شریر جنات هم د هغه په قابو کښې ورکړي شوي وو. په هغوی کښې هر یو د عمارت جوړونکي او په سمندر کښې غوپه لګونکي وو اودوی نه علاوه نور د ـر جنات داسي وو چه په زنځیرونو کښې به تړلي شوي وو (او هغه ته ئې ونیلي وو چه) دا زمونږ ورکړه ده نو ته احسان کوه یعني صدقه کوه یا منع کوه په تاباندې د حساب هیڅ ذمه واري نشته دې. مطلب دادې چه دا ټول نعمتو ـه زمونږ ورکړه ده که ته چاته ورکوې او که نه ورکوې تا ته مالکانه اختیار درکړي شوي دي.

مجاهد رحمه الله وائي چه صافنات هغه اسونو ته وائي چه یو د خپه اوچته کړي او د نوك ځوکه په زمکه باندې لګولو سره (په دریو خپو باندې) اودریږي دا د اس د صحت مند کیدو او چاقیدو دلیل وي. د مجاهد رحمه الله دا قول فریابي رحمه الله موصولاً نقل کړي دي. (۸)

**الجیاد:** السراع یعني د جهاد تیز رفتار (سراع) اسونه مراد دي دا قول هم د مجاهد رحمه الله دې او فریابي رحمه الله دا موصولاً نقل کړي دي. (۹) جیاد د جواد جمع ده او یو قول دادې چه د جید جمع ده. (۱۰)

---

(۱) جامع البیان للطبري: ۱۵۶/۲۳ مصطفی البابي الحلبي مصر، نور اوګورئی فتح الباري: ۵۶۷/۸.
(۲) إرشادالساري: ۳۷۳/۸.
(۳) إرشادالساري: ۳۷۳/۸.
(۴) لسان العرب: ۱۵۶/۹ مادة عرف.
(۵) لسان العرب: ۱۶۶/۹ مادة عرق.
(۶) المعجم الوسیط، ص: ۵۹۶ مکتبة الشروق.
(۷) ص: ۳۹.
(۸) فتح الباري: ۵۶۷/۸.
(۹) المصدر السابق.
(۱۰) عمدة القاري: ۱۹/۱۶.

**دَحضرت سلیمان علیه السلام دَ یوبل ازمیښت واقعه: جسدا: شیطانا..... دې سره اشاره دَدې آیت طرف ته ده:** ﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَانَ وَأَلْقَيْنَا عَلَىٰ كُرْسِيِّهِ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ﴾ [ص: ۳۴] او بې شکه مونږه سلیمان علیه السلام په ازمیښت کښې اچولې وو او مونږه دَهغه په کرسئ باندې یو بدن اچولې وو بیا هغه دَ الله تعالى طرف ته رجوع شو.

امام بخاری رحمه الله دَ (جسداً) دا تفسیر کړې دې چه دې نه شیطان مراد دې. په دې سره په اصل کښې دَ مجاهد رحمه الله دَ روایت طرف ته اشاره ده کوم چه فریابی رحمه الله موصولاً نقل کړې دې. مجاهد رحمه الله وائی چه په آیت کښې (جسداً) نه شیطان مراد دې. دَهغه نوم آصف وو. حضرت سلیمان علیه السلام دَهغه نه تپوس اوکړو (کیف تفتن الناس) ته څنګه خلق په خپل دام کښې راګیروې اوْدَ هغوی په زړونو کښې وسوسې اچوې؟ آصف اووئیل ته ماته خپله ګوتمه راکړه (ونیلی شی چه په هغې باندې اسم اعظم لیکلې شوې وو اوْدَ سلیمان علیه السلام دَ سلطنت او حکومت راز هم په دغه اسم اعظم کښې پټ وو). سلیمان علیه السلام آصف ته خپله ګوتمه ورکړه نوهغه دا په سمندر کښې اوغورزوله. دغه شان دَ سلیمان علیه السلام دَ بادشاهت خاتمه اوشوه او آصف دَهغه په کرسئ باندې کیناستو. څه موده تیریدو نه پس یوې ښځې حضرت سلیمان علیه السلام له یو کب راوړو راغله. دکب خیټه اوڅیرلې شوه نو دَهغې نه هغه ګوتمه راووتله. دغه شان الله تعالى سلیمان علیه السلام ته حکومت راواپس کړو.[۱]

په یوبل روایت کښې دَهغه جنی شیطان نوم صرخ خودلې شوې دې.[۲] او مشهوره داده چه آصف دَ سلیمان علیه السلام دَ یو وزیر نوم وو چاسره چه دَالله تعالى اسم اعظم وو.[۳] لکه چه په آیت کښې دَ جسد نه مراد هم دغه جنی شیطان په تخت سلیمان باندې ناست وو او هم دغه هغه ازمیښت دې په کوم کښې چه سلیمان علیه السلام راګیر کړې شو.[۴]

لیکن حقیقت دادې چه دا روایت دَ اسرائیلیات نه دې او جمهور مفسرین دَدې قسم روایاتو تکذیب کړې دې. حافظ ابن کثیر رحمه الله دَدې روایاتو خلاصه نقل کولو نه پس تصریح کړې ده. (هذا کلها من الاسرائیلیات)[۵]

بعض مفسرینو دَ دې فتنې یو بل تفسیر کړې دې. دې حضراتو دصحیح بخاری او صحیح مسلم یو مرفوع روایت نقل کړې دې. په دې روایت کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی: سلیمان علیه السلام بن داؤد علیه السلام اوئیل چه نن شپه کښې به زه اویاؤ ښځو له ورځم (یعنی هغوی سره جماع کوم) په هغوی کښې به هره یوه حامله شی اوْدَ هرې ښځې نه به شهسوار پیدا کیږی چه جهاد فی سبیل الله به کوی. په دې موقع باندې هغه سره فرښته موجود وه هغې اووئیل چه انشاء الله اووایه. سلیمان علیه السلام په ژبه سره انشاء الله اونه وئیل اوْدَ الله تعالى دَ ذات نه چه دَ هرڅه کیدو کومه پخه عقیده وه هم په هغې باندې ئې یقین اوکړو. چنانچه هغه ښځوکښې دَ یوې نه بغیر دَ چا هم حمل اونه شو دَ یوې چه کوم حمل شوې و دَهغې نه نیمګړې بچې راپیدا شو دَ کوم چه یو طرف نه وو. بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه که هغه انشاء الله وئیلې وې نوټولو به دَ الله تعالى په لار کښې جهاد کولو یعنی دټولو به حمل کیدلو صحیح سالم بچې به ئې راپیدا کیدل اوْدَ الله تعالى په لار کښې به ئې جهاد کولو. دا حضرات فرمائی چه دَ فتنې نه هم دغه مراد دی چه انشاء الله نه وئیلو په نتیجه کښې نیمګړې بچې راپیدا شو او هم دَدې باره کښې په آیت کښې فرمائیلې شوی دی چه مونږ دَهغه په کرسئ باندې یوبدن واچولو. علامه بیضاوی رحمه الله او علامه آلوسی رحمه الله هم په خپل تفسیر کښې دا رائې راجح ګرځولې ده.[۶]

---

[۱] جامع البیان للطبری: ۱۵۷/۲۳وفتح الباری: ۵۶۸/۸وعمدة القاری:۱۶/۲۰-۱۹.

[۲] المصدرالسابق.

[۳] المصدرالسابق.

[۴] المصدرالسابق.

[۵] تفسیر ابن کثیر، سورة ص، رقم الآیة: ۳٤ – ۹۲/۱۲، ٤۰مؤسسة قرطبة.

[۶] تفسیربیضاوی: ۲۹/۵دارإحیاء التراث العربی، روح المعانی:۲۶۰/۲۳.

ليکن حقيقت دا دي چه دا تفسير هم محل نظر دي خکه چه د حديث په کومو کتابونو کښې دا حديث نقل دي دهغې په يو طريق کښې هم دا سې صراحت يا اشاره نشته دي چه رسول اکرم ﷺ يا بيا د حديث راوى حضرت ابوهريره دا واقعه د آيت مبارك تفسير فرمانيلې وى بلکه دا حديث د حضرت سليمان عليه السلام په واقعات کښې د يوې مستقل واقعې دا سې ذکر کوى لکه څنګه چه امام بخارى رحمه الله په دې باب کښې بعض نور واقعات بيان کړى دى.

رسول اکرم ﷺ په حقيقت کښې دَدې واقعې خودلو سره خپل امت ته دا سبق ورکول غوښتل چه که خپل کار په عزم سره کول غواړئى او په هغې کښې خير اوبرکت غواړئى نوتاسو له انشاء الله ضرور ونيل پکار دى دا روايت د عبرت او موعظت په سلسله کښې په مستقل حيثيت سره بيان شوې دې او د حضرت سليمان عليه السلام ازميښت اوالقاء جسد مجملات نه حل کوى. دانصاف لاره هم دغه ده چه کوم واقعات الله تعالى مبهم ساتلى او احاديثو کښې هم دَدغه ابهام تفصيل نه دې خودلې نودهغې د راکښلو ضرورت نشته دې دا ابهام هم دغه شان پريږدئى دمقصد خبره په آيت کښې داخودلې شوې ده چه سليمان عليه السلام الله تعالى په يو ازميښت کښې راګير کړې وو بيا هغه د الله تعالى طرف ته رجوع شو دکوم په نتيجه کښې چه هغه ته د اول نه هم زيات انعامات ورکړې شو.والله اعلم بالصواب.[1]

[٣٢٤١]-حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ عِفْرِيتًا مِنَ الجِنِّ تَفَلَّتَ البَارِحَةَ لِيَقْطَعَ عَلَيَّ صَلاَتِي، فَأَمْكَنَنِي اللَّهُ مِنْهُ فَأَخَذْتُهُ، فَأَرَدْتُ أَنْ أَرْبُطَهُ عَلَى سَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي المَسْجِدِ حَتَّى تَنْظُرُوا إِلَيْهِ كُلُّكُمْ، فَذَكَرْتُ دَعْوَةَ أَخِي سُلَيْمَانَ رَبِّ هَبْ لِي مُلْكًا لاَ يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي فَرَدَدْتُهُ خَاسِئًا» {عِفْرِيتٌ} [النمل: ٣٩] مُتَمَرِّدٌ مِنْ إِنْسٍ أَوْ جَانٍّ، مِثْلُ زِبْنِيَةٍ جَمَاعَتُهَا الزَّبَانِيَةُ" [ص ٥٦٣] [ر: ٤٤٩][2]

ترجمه: دحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمانيلى دى چه يو سرکش جن د شپې ناڅاپې زما مخې ته راغلو او زما په مونځ کښې ئې خلل اچولو کوشش اوکړو. الله تعالى ماته په هغه باندې قدرت راکړو او ما هغه اونيولو.

## تراجم رجال

**محمدبن بشار:** دا محمدبن بشار بن عثمان عبدى بصرى رحمه الله دې. دَدوى تذکره (کتاب العلم باب ماکان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعظة) لاندې تيره شوې ده.[3]

**محمدبن جعفر:** دا ابوعبدالله محمدبن جعفر هذلى رحمه الله دې. غندر د دوى لقب دې. دَدوى تذکره (کتاب الايمان باب ظلم دون ظلم) لاندې تيره شوې ده.[4]

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج بن الورد العتکى الواسطى رحمه الله دې. دَدوى تذکره (کتاب الايمان باب من سلم المسلمون من لسانه ويده) لاندې تيره شوې ده.[5]

---

[1]) قصص القرآن: ٤٧٥/٢-٤٧٤.

[2]) مرتخريجه فى کتاب الصلاة باب الأسير أو الغريم يربط فى المسجد: ٤٦١.

[3]) کشف البارى: ٢٢١/٣.

[4]) کشف البارى: ٢٥٠/٢.

[5]) کشف البارى: ٦٧٨/١

محمدبن زیاد محمدبن زیاد التوشی الجمعی رحمه الله دې. دَدوی تذکره (کتاب الوضوء باب غسل الأعقاب) لاندې تیره شوې ده

**قوله: تفلّت**. فلت یفلت نه دَدې معنی ده دَقبضې نه وتل، خلاصیدل. که چرې دا لفظ دَ من صله سره استعمال وی نو دَدې معنی به وی خلاصیدل اوکه چرې دې نه پس علی صله کښې راشی لکه تفلت علیه نو دَدې معنی به شی په چاباندې قبضه کول، حمله کول.[1] دلته په روایت کښې هم په دې معنی باندې استعمال شوې دې.

**قوله: البارحة**. برح یَبْرَحُ بَراحاً وبُرُوحاً المکان ومنه معنی ده جدا کیدل، اخواکیدل.[2] او البارحة تیرې شوې شپې ته وائی. دَدې اطلاق پس دَ زوال نه واخله تر دَ آخرې ورځې پورې وی.[3]

**قوله: فأردْتُ أن أربِطَه علی ساریة من سواري المسجد......**: ماغوښتل چه دې دَ جمات دَ ستنو نه یو ستن پورې اوتړم دې دپاره چه تاسو ټول دې په ورځ کښې اووینئ

**قوله: فذکرتُ دعوةَ أخي سلیمان......إلخ**: مګر ماته دغه وخت دَ خپل رور سلیمان دعایاده شوه چه هغه دَ الله تعالی نه دعا کړې وه چه ماته داسې سلطنت راکړه چه زما نه پس دَ بل چادپاره مناسب نه وی. نو دَدې دعا په یاد راتلوسره ما هغه ذلیل کرو پرې مې خودو. مطلب دادې چه په جنات باندې قابوپیدا کولو خصوصیت چونکه دَ سلیمان علیه السلام خواهش وو چه دهغه نه علاوه دې بل چاته حاصل نه وی په دې وجه رسول اکرم ﷺ دَ عفریت محبوس کولو قدرت پیدا کولو باوجود هغه پریخودو.[4]

**ایا جنات دَهغوی په اصل شکل کښې لیدل ممکن دی؟**: علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ نه علاوه هیڅوک هم جن دَهغه په اصل صورت کښې نه شی لیدلې. هغوی دَ قرآن دَدې آیت نه استدلال کړې دې. ﴿إِنَّهُ يَرَاكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ﴾ [الأعراف: ۲۷] یعنی بیشکه هغه (شیطان) اودهغه قوم تاسو په داسې توګه باندې وینی چه تاسو هغه نه شئ لیدلې. خو که جن چرته په بل څه شکل صورت کښې متشکل شی نو بیا هغه هرڅوک کتلې شی. لکه چه جن دَ مار په صورت کښې متشکل شوې وو نو یو انصاری صحابی په هغه باندې توره باندې وار اوکړو دَدې په نتیجه کښې دَ دغه انصاری مرګ واقع شوې وو.[5] دَ سورة اعراف هم دَدې آیت نه استدلال کولو سره امام شافعی رحمه الله فرمائی چه که چرې څوک دا دعوی اوکړی چه هغه جن دَ هغه په اصل شکل کښې لیدلې دې نو مونږ به دَ هغه دا دعوی رد کوو.[6]

خو بعض حضرات وائی چه په سورت اعراف کښې جنات کتلو مطلق نفی نه ده کړې شوې بلکه دَ ظاهر آیت نه معلومیږی چه جنات کتل دَعامو انسانانو دپاره هم ممکن دی ځکه چه په آیت کښې وارد شوې دَ جن دَ کتلو نفی هغه صورت سره مقید ده کله چه جن انسانانو ته ګوری دَدې نه ثابته شوه چه په عام حالاتو کښې جنات دَهغوی په اصل شکل کښې لیدل ممکن دی. والله اعلم.[7]

---

[1] تاج العروس: ۳۱/۵ مادة: فَلَتَ. دارالهدایة، التراث العربی.
[2] تاج العروس: ۳۱/۵ مادة: فَلَتَ. دارالهدایة، التراث العربی. المعجم الوسیط، ص: ۴۸ مکتبة الشروق الدولیة، لسان العرب: ۲۴۵/۲ مادة: برح.
[3] تاج العروس: ۳۰۶/۶ مادة: برح، دارالهدایة، التراث العربی.
[4] شرح ابن بطال کتاب الصلاة باب الأسیر والغریم یربَط بالمسجد: ۱۴۰/۲ دارالکتب العلمیة بیروت.
[5] شرح ابن بطال: ۱۴۰/۲.
[6] فتح الباری: ۵۶۸/۸.
[7] فتح الباری: ۵۶۸/۸.

**دحدیث باب نه مستنبط فائده:** علامه خطابی رحمه الله دحدیث باب نه استدلال کولوسره فرمائي چه اصحاب سلیمان علیه السلام جنات په نګ راتګ دهغوی په اصل صورت او شکل کښې کتل. والله اعلم[1]

**قوله: عفریت متمرد من إنس أوجان:** مطلب دا چه کوم انسان زیات سرکش او باغي وی او دغه شان په جنات کښې چه کوم زیات سرکش وی هغه ته عفریت ونیلی شي. عفریت اصل کښې سرکش جن ته ونیلی شي البته متمرد انسان باندې ددې اطلاق علی سبیل الاستعاره کولې شي

**قوله: مثل زبنية جماعته زبانية:** مثل زبنية نه دامام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه دبعض حضراتو په نیز آیت کښې عفریت ته عفرية ونیل هم صحیح دی. او دا زِبْنِيَة په وزن باندې دې د کوم جمع چه زبانية راځي. زبانية پولیس او سپاهي ته وائي دا زبن نه مشتق دې دکوم معنی چه دفع کول شړل دی.[2] ددې اطلاق د دوزخ په فرښتو باندې هم کړې شوې دې چه کافرانو له به په دوزخ کښې دیکې ورکوی[3]

زبانية په مفرد کښې مختلف اقوال دی. یوقول دادې چه ددې مفرد زبني دې. دویم قول دادې چه ددې مفرد زابن دې. دریم قول دادې چه زباني ددې مفرد دې. د یوجماعت رائې داده چه لفظاً ددې واحد نه راځي. پنځم او آخري قول دادې چه ددې مفرد (عفریت په وزن باندې) زبنيب دې.[4]

**د جنات اقسام اومراتب:** حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائي چه د جنات مختلف مراتب دی. ① د جنات د قبیلې عام افراد ته جني ونیلی شي. ② بیا د جنات نه چه څوك د انسانانو سره اختلاط ساتي هغه ته عامر ونیلی شي ③ کوم جن چه ماشومانو له ورځي اوهغوی تنګوی هغه ته روح ونیلی شي. ④ کوم جن چه خباثت کښې زیات شي هغه ته شیطان ونیلی شي ⑤ چه کوم خباثت او شرارت کښې د شیطان نه زیات شي هغه ته مارد ونیلی شي ⑥ او کوم چه د مارد نه هم وړاندې شي هغه ته عفریت وائي. امام راغب اصفهاني رحمه الله فرمائي چه کم خباثت کښې عفریت نه وړاندې شي هغه ته عفریت نفریت ونیلی شي[5]

**ترجمة الباب سره دحدیث باب مناسبت:** حدیث باب کښې دی (فذكرت دعوة أخي سليمان....) ترجمة الباب سره ددې مناسبت ظاهر دې.[6]

[۳۲۴۲] - حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ، حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قَالَ: سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى سَبْعِينَ امْرَأَةً، تَحْمِلُ كُلُّ امْرَأَةٍ فَارِسًا يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ، فَلَمْ يَقُلْ، وَلَمْ تَحْمِلْ شَيْئًا إِلَّا وَاحِدًا، سَاقِطًا أَحَدُ شِقَّيْهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

---

[1] المصدر السابق.
[2] فتح الباري: ۵۶۹/۸.
[3] فتح الباري: ۵۶۹/۸.
[4] اوګورئ: فتح الباري: ۵۶۹/۸-۵۶۸ وارشادالساري: ۳۷۵/۷.
[5] دتفصیل دپاره اوګورئ فتح الباري: ۵۶۹/۸ عمدة القاري: ۱۵/۱۶.
[6] عمدة القاري: ۲۱/۱۶.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ قَالَهَا لَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ" قَالَ شُعَيْبٌ وَابْنُ أَبِي الزِّنَادِ: تِسْعِينَ وَهُوَ أَصَحُّ

ص ۵۶۸] [۲۹۴۴، ۲۸۱۹، ۶۲۶۳، ۶۳۴۱، ۷۰۳۱ وانظر ۲۶۶۴] [1]

**ترجمه**: دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمانیلی دی سلیمان بن داؤد اوونیل: زه به نن شپه اویاؤ ښځوله ورځم یعنی هغوی سره به جماع کوم. هره یوه ښځه به شهسوار راوړی چه دَالله تعالی په لارکښې به جهاد کوی دَ هغوی یو مصاحب اوونیل: انشاء الله اووایه. دا مصاحب څوك وو؟ په دې کښې مختلف اقوال دی. راجح دادې چه دې نه یوه فرښته مراد ده.[2] دَ حدیث دَ الفاظونه هم دغه ظاهریږی.

لیکن سلیمان علیه السلام په ژبه سره انشاء الله اونه وئیل چنانچه یوې ښځې هم بچې رانوړو سوا دَ یوې نه او هغه هم داسې چه یو طرف ئې نه وو. رسول اکرم ﷺ اوفرمانیل: که چرې هغه انشاء الله وئیلې وې نو ټولو به دَ الله تعالی په لارکښې جهاد کولو. مطلب دادې چه انشاء الله وئیلو سره به دَ ټولو ښځو حمل کیدو او دَ هغوی بچی به لوئیدو سره شهسوار جوړیدل او دَ الله تعالی په لارکښې به ئې جهاد کولو.

## تراجم رجال

**خالد بن مخلد**: دا ابوالهیثم خالد بن مخلد القطوانی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب طرح الإمام المسئلة على أصحابه ليختبر ما عندهم من العلم» لاندې تیره شوې ده.[3]

**مغيرة بن عبدالرحمن**: دا مغیره بن عبدالرحمن بن عبدالله بن خالد بن حزام اسدی مدنی رحمه الله دې. دَدوی حالات «كتاب أبواب الاستسقاء باب دعاء النبي صلى الله عليه وسلم اجعلها سنين» لاندې تیرشوی دی.

**ابوالزناد**: دا عبدالله بن ذکوان مدنی قرشی رحمه الله دې.[4]

**اعرج**: دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدنی قرشی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره «كتاب الإيمان باب حب الرسول من الإيمان» لاندې تیره شوې ده.[5]

سلیمان علیه السلام په ژبه سره انشاء الله ولې اونه وئیل؟ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَ روایت باب الفاظ «فلم يقل» مطلب دانه دې چه هغه ښځه معامله الله تعالی ته حواله کولونه العیاذ بالله انکارکړې وو بلکه امر واقع دادې چه دَهغه عقیده کامل وه چه الله تعالی به دغه امیدپوره کوی. په دغه کلکه عقیده باندې اکتفاء کولو سره هغه په خپله ژبه باندې انشاء الله وئیل هیر کړه.[6] روایت باب کښې دَ نسیان تصریح نشته دې البته په نور طرق کښې دَدې صراحت راغلې دې. چنانچه دَ سفیان بن عیینه رحمه الله په طریق کښې «فنسي»[7] او دَمعمر رحمه الله په روایت کښې «فلم يقل ونسي» الفاظ راغلی دی.[8]

---

[1] والحديث أخرجه البخاري أيضاً في الأيمان باب الاستثناء: ۶۷۲۰ وباب كيف كانت يمين النبي صلى الله عليه وسلم؟: ۶۶۳۹ والمسلم في الأيمان باب الاستثناء في اليمين وغيرها: ۱۶۵٤.

[2] شرح مسلم للنووي: ۴۹/۲ كتاب الإيمان باب الاستثناء في اليمين وغيرها. قديمي.

[3] كشف الباري: ۱۱۵/۳.

[4] كشف الباري: ۲/۱۰.

[5] كشف الباري: ۱۱/۲-۱۰.

[6] فتح الباري: ۵۷۰/۸.

[7] انظر صحيح البخاري: ۹۹٤/۲ كتاب كفارات الأيمان باب الاستثناء في الأيمان: ۶۷۲۰

[8] انظر كتاب النكاح باب قول الرجل: لأطوفن الليلة على نسائي: ۵۲٤۲.

**قال شعیب وابن ابي الزناد: تسعین. وهو اصح**: دَ شعیب نه شعیب بن ابی حمزه الحمصی رحمه الله مراد دي او ابوالزناد نه عبدالله بن ذکوان رحمه الله مراد دي. دَ دواړو حضراتو ترجمه وړاندې تیره شوې ده.[1]

امام بخاري رحمه الله دا خودل غواړي چه دې دواړو حضراتو په خپلو روایتونو کښې «تسعین» دَ لس کم سلو بیان کړې دې او هم دغه اصح دې. دَ شعیب بن ابی حمزه رحمه الله تعلیق امام بخاري رحمه الله «کتاب الأیمان والنذور» کښې موصولاً روایت کړې دې.[2] اودَ عبدالله بن ذکوان رحمه الله تعلیق امام نسائي رحمه الله سنن کبرىٰ کښې «کتاب النذور باب إذا حلف رجل فقال له رجل: إن شاء الله، هل له استثناء» لاندې موصولاً نقل کړې دې.[3]

**دَحدیث نه مستنبط فوائد**: شراح حدیث دَ روایت باب نه مختلف فوائد او آداب مستنبط کړی دی: ① روایت باب کښې دی چه سلیمان علیه السلام اوفرمائیل: «لأطوفن اللیلة علی سبعین امرأة» دا جمله قسمیه ده. یعنی په الله باندې قسم؛ نن به زه اویاؤ ښځوسره جماع کوم. «لأطوفن» کښې لام جواب قسم په توګه واقع دې اوقسم محذوف دې. «والله» نو تقدیری عبارت به داسې شي: «والله لأطوفن» دَ سلیمان علیه السلام دَ دې قسم نه پس دَ فرښتې دَ خبرو اترو ذکر دې چه هغې سلیمان علیه السلام ته دَ انشاء الله وئیلو تلقین اوکړو اودې نه پس رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائی چه که سلیمان علیه السلام انشاء الله وئیلې وې نو دَهغه امید به پوره شوې وې.

شراح حدیث دَدې نه استدلال کولو سره وئیلی دی چه که چرې دَ یمین او استثناء په مینځ کښې دَ فرښتې دَ کلام په اندازه څه مختصر جمله راشي نو استثناء به منعقد شي.[4] لیکن علامه قرطبي رحمه الله فرمائي ممکن ده چه دَ فرښتې مذکوره کلام دَ سلیمان علیه السلام سره په خبرو اترو کښې شوې وي.[5] مطلب دادې چه فرښتې کومه خبره کړې په دغه وخت کښې هم دَ سلیمان علیه السلام خبره شروع وه اودَ دغه خبرواترو سلسله هډو بنده شوې نه وی. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي دَدې واقعې نه دا استدلال کړې شوې وو چه دَ یمین او استثناء په مینځ کښې مختصر کلام سره استثناء منعقد کیږي لیکن علامه قرطبي رحمه الله چه کومه توجیه دَ احتمال په درجه کښې وړاندې کړې ده دَدې دَمنلو په صورت کښې به دا استدلال باطل شي.[6]

② دَ روایت باب نه دویمه فائده دا ثابتیږي چه استثناء یعنی انشاء الله الفاظ په ژبه سره اداکول ضروری دی، صرف نیت کول کافی نه دی په دې باندې دَ ائمه اتفاق دې.[7] خودَ بعض مالکیه په نیز په زړه سره نیت کول هم کافی دی.[8]

③ سلیمان علیه السلام په یوه شپه لس کم سل ښځوسره جماع اوکړه. دَدې نه ثابتیږي چه انبیاء کرام په اشتغال بالعلوم والعبادات سره په رجولت او مردانګئ کښې هم کامل وی. دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دَ معجزاتونه دا هم وو چه حضورپاك هدایت تعلیم خلق اوکثرت عبادت غوندې بې پناه مصروفیات سره دَ خوراك څښاك په معمولی مقدارباندې کفایت کولو په کوم سره چه دَبدن مردانه قوت کمزورې او مضمحل کیږي. مګر حضورپاك به په یو

---

[1] دَ شعیب بن ابی حمزه دَ حالاتو دَپاره اوګورئی کشف الباري: ۴۸۰/۱ اودَعبدالرحمن بن ذکوان دَ تذکره دَپاره اوګورئی کشف الباري: ۱۰/۲.

[2] صحیح البخاري کتاب الأیمان والنذور باب کیف کانت یمین النبی صلی الله علیه وسلم رقم الحدیث: ۶۶۳۹.

[3] سنن النسائي الکبرىٰ: ۱۴۱/۳ رقم الحدیث ۴۷۷۲ إداره تألیفات أشرفیه.

[4] فتح الباري: ۸/۵۷۱.

[5] فتح الباري: ۵۷۱/۸.

[6] فتح الباري: ۵۷۱/۸.

[7] المصدر السابق.

[8] المصدر السابق.

غسل سره تولو ازواج مطهرات سره کوروالې کولو د کومو شمیرچه یولس وو. شراح دلته دا فرمائیلي دي چه د متقي اوپرهیزګار سړي مردانه طاقت د نورو په مقابله کښې ډیر زیات وي. خکه چه د کوم سړي په زړه کښې چه ویره نه وي هغه په نظر او نورو ناجائز لارو سره خپلو جذباتو له تسکین ورکوي. په دې وجه د هغه رجولت په خپل فطري حالت باندې باقي نه پاتې کیږي.(۱) الله تعالی دې مونږ تولو ته د تعفف او پاکدامنئ توفیق راکړي. آمین.

④ د ظن غالب په وجه باندې د مستقبل د یوې واقعې پیشنګوئي کول جائزدي. خکه چه سلیمان علیه السلام کومه پیشنګوئي کړې وه په هغې باندې هغوی د جزم اظهار کړې وو حالانکه هغه پیشنګوئي د وحی الهی نه مستفاد نه وه او که چرې وه نو د هغه خواهش به پوره کیدلو.(۲)

⑤ د انبیاء کرامو هیره شوې خبره وریادول جائز دي. په دې سره د هغوی د نبوت په منصب باندې هیڅ نقصان نه راځي.(۳)

[۳۲۴۳]-حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّ مَسْجِدٍ وُضِعَ أَوَّلَ؟ قَالَ: «المَسْجِدُ الحَرَامُ». قُلْتُ: ثُمَّ أَيٌّ؟ قَالَ: «ثُمَّ المَسْجِدُ الأَقْصَى» قُلْتُ: كَمْ كَانَ بَيْنَهُمَا؟ قَالَ: "أَرْبَعُونَ، ثُمَّ قَالَ: حَيْثُمَا أَدْرَكَتْكَ الصَّلاَةُ فَصَلِّ، وَالأَرْضُ لَكَ مَسْجِدٌ" ص ۵۷۲ [ر: ۳۱۸۶](۴)

**ترجمه**: حضرت ابوذر رضي الله عنه وائي ما عرض اوکړو یارسول الله کوم یو جمات د تولو نه اول جوړ شوې؟ حضورپاك جواب اوکړو مسجدحرام. ما عرض اوکړو بیا کوم یو؟ حضورپاك اوفرمائیل مسجد اقصی. ما عرض اوکړو د دې دواړو په مینځ کښې څومره فاصله وه؟ حضورپاك اوفرمائیل «أربعون» یعنی څلویښت کاله.
دحدیث د دې جزء سره متعلق تفصیلي بحث اول تیر شوې دې.

## تراجم رجال

**عمر بن حفص**: دا مهشور محدث عمر بن حفص بن غیاث نخعي الکوفي رحمه الله دې. د دوی تذکره «کتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق في الجنابة» لاندې تیره شوې ده.(۵)

**حدثناابي**: دا د عمر بن حفص پلار حفص بن غیاث بن طلق رحمه الله دې. د دوی تذکره هم «کتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق في الجنابة» لاندې تیره شوې ده.(۶)

**الاعمش**: دا ابومحمد سلیمان بن مهران اسدي کوفي رحمه الله دې. أعمش په لقب سره مشهور دې. د دوی تذکره «کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تیره شوې ده.(۷)

---

(۱) المصدر السابق.
(۲) فتح الباري: ۵۷۲/۸.
(۳) فتح الباري: ۵۷۲/۸.
(۴) تقدم تخریجه في کتاب نفس الکتاب تحت باب بلاترجمة بعد باب قوله تعالی یزفون إلخ رقم الحدیث: ۳۳۶۶.
(۵) کشف الباري: کتاب الغسل ص: ۴۶۴.
(۶) کشف الباري: کتاب الغسل ص: ۴۶۷.
(۷) کشف الباري: ۲۵۱/۲.

**ابراهيم التيمي**: دا ابراهيم بن يزيد بن شريك تيمي كوفي رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب خوف المومن من أن يحبط عمله وهو لايشعر» لاندې تيره شوې ده.[1]

**يزيد بن شريک**: دا مشهور صحابى حضرت يزيد بن شريك التيمي الكوفي الخضرمي رضي الله عنه دي. دَ دوى تذكره «كتاب فضائل المدينة، باب حرم المدينة» لاندې تيره شوې ده.

**عن ابي ذر**: دَ ابوذر غفاري رضي الله عنه تذكره «كتاب الايمان باب الذين يسب» لاندې تيره شوې ده.[2]

**ثم قال: حيثما ادركتک الصلاة فصلّ، والارض لک مسجد**: بيا حضورپاك اوفرمائيل چه ته كوم خائى دَ مونځ «وخت» اوموميې هم هلته مونځ كوه اوټوله زمكه ستادپاره جمات دى.

مطلب دا چه دَ الله تعالى په مخكښې سر په سجده كيدو دپاره دَزمكې يوه حصه مخصوص نه ده چرته چه غواړې مونځ كولې شې. دَ عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده په طريق سره يو مرفوع روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائيلى: «أينما أدركتني الصلاة تمسحت وصليت وكان من قبلي يعظمون ذلك، إنما يصلون فى كنائسهم» يعنى مابانديې كوم خائى كښې هم چه دَ مونځ وخت شو نومسح كولوسره به مونځ اوكړم. زما دَ بعثت نه وړاندې خلقويه داسې كول ګناه ګڼړله هغه خلقو به په خپلو كنيسااؤ كښې مونځونه كول.

**دَحديث باب ترجمة الباب سره مناسبت**: حديث باب كښې «ثم المسجد الأقصى» اوترجمة الباب سره دَدې مناسبت ښكاره دې. ځكه چه هم حضرت سليمان عليه السلام دَ مسجد اقصى جوړونكې وو.[3]

**دحديث باب نه مستنبط فوائد**: ① روايت كښې دى «حيثما أدركتك الصلاة فصل» په دې كښې دا اشاره ده چه مونځ په اول وخت كښې اداكول پكاردى.

② شراح حديث دَدې جملې نه دا فائده مستنبط كړې ده چه دَ مونځ وختونه پيژندل مستحب دى.

③ كه چرې دَ مونځ دپاره غوره خائى ملاؤ نه شى نو دا په عام خائى كښې ادا كول پكاردى. حضرت ابوذر رضي الله عنه چه كوم سوال كړې وو چه دَ ټولو نه اول دكوم جمات بنياد كيخودې شوې وو؟ نو حضورپاك داَبوذر رضي الله عنه په خبره باندې پوهه شوې وو چه هغه دَمونځ دَ اداكولو دپاره دغه مقام خاص كول غواړى. په دې وجه حضورپاك هغه ته تنبيه اوكړه چه دَ مونځ ادا كول په افضل مقام باندې موقوف نه دى بلكه دا په خپل وخت باندې چرته هم اداكول ضرورى دى.

④ شراح وائى چه دَدې روايت نه دَامت محمديه فضيلت هم ثابتيږى. پخوانى امتونو به دَ مخصوص مقام نه علاوه چرته بل خائى كښې عبادت نه شو كولې. دې امت ته دافضيلت حاصل دې چه دَدوى دپاره پوره زمكه مسجد اومصلى جوړه كړې شوې ده.

⑤ سائل چه كوم سوال پيش كړى هم دَهغه سوال په جواب كولو باندې اكتفاء نه دى كول پكار بلكه دَ داسې خبرې اضافه كول مستحب دى په كوم كښې چه هغه ته فائده وى.[4]

[۳۲۴۴] - حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ، حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَثَلِي وَمَثَلُ النَّاسِ،

---

[1] كشف البارى: ۵۴۴/۲.
[2] كشف البارى: ۲۳۸/۲.
[3] عمدة القارى: ۲۳/۷.
[4] مذكوره فوائد دپاره اوګورئى فتح البارى: ۵۷۲/۸.

كَمَثَلِ رَجُلٍ اسْتَوْقَدَ نَارًا، فَجَعَلَ الْفَرَاشُ وَهَذِهِ الدَّوَابُّ تَقَعُ فِي النَّارِ، ص ٥٧٥][٦١١٨، ٦٤٨٣][١]

## تراجم رجال

ابواليمان: دا ابواليمان حكم بن نافع بهرانی حمصی رحمه الله دي.[٢]
شعيب: دا ابوبشر شعيب بن مولى حمزه قرشی رحمه الله دي. دَدوى تذكره «بدءالوحى» لاندې تيره شوې ده.[٣]
ابوالزناد: دا عبدالله بن ذكوان مدنی قرشی رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان» لاندې تيره شوې ده.[٤]
عبدالرحمن: دا مشهور محدث عبدالرحمن بن هرمز الاعرج رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان» لاندې تيره شوې ده.[٥]
مثلى ومثل الناس كمثل رجل استوقد نارا.....الخ: دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى زما اودَ خلقو مثال دَ يوداسې سړى دې چاچه اور لګولې وى. دَ كتاب الرقاق په روايت كښې دا اضافه هم ده «فلما أضاءت ما حوله» كله چه اور څلور واړه طرفونه روښانه كړې. نو پتنګان او چينجى وغيره په دغه اور باندې راپريوځى. دكتاب الرقاق په روايت كښې دى: «فجعل الرجل يزعهن ويغلبنه فيقتحمن فيها، فأنا آخذ بحجزكم عن النار، وأنتم تقحمون فيها» يعنى چينجى وغيره په اور باندې راپريوځى نو اور لګونكې سړې هغه دَدې اور نه دَ راويستو كوشش كوى ليكن چينجى په ده باندې غالب راځى او هم په اور كښې پريوځى. دغه شان زه ستاسو ملاګانې رانيسم اودَ اور نه تاسو راؤكاږم اوتاسوئى چه هم په دې كښې پريوځئى.[٦]
دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت: ترجمة الباب سره دَدې حديث هيڅ مناسبت نشته بلكه ورانده روايت ترجمة الباب سره مطابقت لرى او په اصل كښې امام بخارى رحمه الله هم دغه حديث بيانول غوارې. علامه عينى رحمه الله فرمائيلى چه دَ اول حديث ترجمة الباب سره تعلق صرف په دې بنياد باندې دې چه راوى حديث څنګه حديث اوريدلې وو هم هغه شان ئى بيان كړو. او چونكه هغه دواړه احاديث په يو ځائى اوريدلى نوهم دغه شان ئى مخكښې هم روايت كړل.[٧]
قوله: وقال: كانت: په دې روايت كښې داتصريح نشته چه دا موقوف دې كه مرفوع. دَدې باره كښې علامه قسطلانى رحمه الله اوفرمائيل چه كه دَ قال قائل رسول الله صلى الله عليه وسلم وى نودا حديث به مرفوع وى اوكه قائل ابوهريره رضي الله عنه

[١] أخرجه البخارى أيضاً: ٩٥٩/٢فى كتاب الرقاق، باب الانتهاء عن المعاصى رقم: ٦٤٧٢وأخرجه مسلم: ٢٣٨/٢فى كتاب الفضائل باب شفقته – صلى الله عليه وسلم – على أمته ومبالغته فى تحذير هم مما يضرهم، رقم: ٢٢٨٣.
[٢] كشف البارى: ٤٨٩/١.
[٣] كشف البارى: ٤٨٠/١.
[٤] كشف البارى: ١٠/٢.
[٥] كشف البارى: ١١/٢.
[٦] كتاب الرقاق باب الانتهاء عن المعاصى رقم الحديث: ٦٤٨٣.
[٧] عمدة القارى: ١٧/١٦إدارة الطباعة المنيرية.

ري نو بيا به دا موقوف وي.[۱] البته پخپله امام بخاري رحمه الله كتاب الفرائض كښې دا روايت د ابو هريره رضي الله عنه نه مرفوعاً روايت كړې دې.[۲]

طبراني رحمه الله دا د ابو هريره رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل كړې دې.[۳] او سنن نسائي كښې هم «عن علي بن عياش عن شعيب عن ابي الزناد عن عبدالرحمن الأعرج عن أبي هريرة» په طريق سره مرفوعاً نقل دې.[۴]

**قوله: كانت امرأتان معهما ابناهما، جاء الذئب فذهب بابن أحدهما:** دوه ښځې وې دواړو سره خپل خپل خوني وو. شرمخ راغلو د يوې بچې اوچت كړو يوې رو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرماني چه د دې روايت په يو طريق كښې هم مانه د دغه دوو ښځو نوم معلوم نه شو.[۵]

**قوله: فقالت صاحبتها إنما ذهب بابنك، وقالت أخرى إنما ذهبت بابنك:** كله چه شرمخ ماشوم يوړو نو هغې سره چه كومه ښځه وه هغې اوونيل شرمخ ستا بچې اوړلې دې او كوم ماشوم چه بچ شوې دې هغه زما دې. دويمې وئيل ستا بچې نې اوړې دې دغه شان دواړه په خپل مينځ كښې په جګړه وې او «فتحاكما إلى داؤد» خپله فيصله ئې داؤد عليه السلام ته يوړه. د كشميهني په روايت كښې «فتحاكما» الفاظ او د شعيب په نسخه كښې «فاختصما» الفاظ نقل دي.[۶]

**قوله: فقضى به للكبرى، فخرجتا على سليمان بن داؤد فأخبرتاه:** داؤد عليه السلام د بچې فيصله د مشرې په حق كښې اوكړه. ځكه چه بچې هم د هغې په لاس كښې وو او دويمې سره څه ثبوت نه وو.[۷] بيا دواړه سليمان بن داؤد عليه السلام له لاړې. دواړو هغوى ته واقعه بيان كړه.

**قوله: فقال: أئتوني بالسكين، أشقه بينكما:** سليمان عليه السلام اوفرمائيل چاړه راوړئ زه دا بچې كټ كولو سره «دوه ټكړې كوم» او ستاسو دواړو په مينځ كښې تقسيم كوم.

**قوله: فقالت الصغرى: لا تفعل، يرحمك الله، هو ابنها فقضى به للصغرى:** كشرې ووئيل داسې مه كوه الله تعالى دې په تاسو باندې رحم اوكړى دغه بچې هم د دې «مشرې» دې. حضرت سليمان عليه السلام د هغه ماشوم فيصله د دغه كشرې په حق كښې اوكړه.

**يو اشكال او د هغې جواب:** دلته دا اشكال پيدا كيږى چه كله حضرت داؤد عليه السلام د مشرې په حق كښې فيصله كړې وه نو آيا د سليمان عليه السلام د پاره د دغه فيصلې ماتول جائز وو؟

① د دې اشكال يو جواب دا وركړې شوې دې چه داؤد عليه السلام فتوىٰ وركړې وه حكم ئې نه كړې.[۸] ليكن علامه قرطبي رحمه الله دا جواب دې وينا كولو سره رد كړې دې چه د نبي فتوىٰ او حكم د تنفيذ په لحاظ سره هم يو حيثيت لري.[۹]

---

[۱]) إرشادالساري: ۳۷۸/۷.

[۲]) انظر صحيح البخاري: كتاب الفرائض باب إذا ادعت المرأة ابنا، رقم الحديث: ۶۷۶۹.

[۳]) المعجم الأوسط: ۱۵۵/۳، رقم الحديث: ۲۷۷۱.

[۴]) سنن النسائي كتاب آداب القضاة، باب نقض الحاكم ما يحكم به غيره ممن هو مثله أو أجل منه، رقم الحديث: ۵۴۰۶.

[۵]) فتح الباري: ۵۷٤/۸.

[۶]) عمدة القاري: ۲٤/۱۶ وفتح الباري: ۵۷٤/۸ إرشادالساري: ۳۷۸/۷.

[۷]) إرشادالساري: ۳۷۸/۷.

[۸]) عمدة القاري: ۲٤/۱۶ وفتح الباري: ۵۷٤/۸.

② علامه داؤدى رحمه الله او واقدى رحمه الله فرمائى چه د دواړو حضراتو فيصله على سبيل المشوره وه. د سليمان عليه السلام په خيال كښې داؤد عليه السلام ته صحت ښكاره شو نوهغه هم دده رائې نافذه كړه.[1]
علامه عينى رحمه الله فرمائى چه كه د علامه قرطبى رحمه الله داخبره صحيح اوګرځولې شى چه د تنفيذ په باب كښې د نبى په حكم او فتوى كښې څه فرق نه وى نو بيا په اشكال وارد كيږى آيا د سليمان عليه السلام دپاره دغه حكم ماتول جائز وو؟ نو علامه عينى رحمه الله دا جواب وركړو چه كه دواړو حضراتو د وحى په رڼا كښې فيصله كړې وه. نو بيا د سليمان عليه السلام حكم به د داؤد عليه السلام د حكم دپاره ناسخ وى اوكه دغه فيصله د اجتهاد په بنياد باندې وه اود ابن جوزى رحمه الله رائې هم دغه ده نو بيا د سليمان عليه السلام اجتهاد اقوى وو خكه چه هغوى په ډيره مزيداره حيله سره حقيقت حال معلوم كړو. كله چه هغوى اوفرمائيل چه ماشوم دوه ټكړې كولوسره يوه ټكړه مشرې ته او بله كشرې ته وركړې شى نو مشره چپ وه او دكشرې په زړه كښې د شفقت جذبې جوش وهلو او چغې صورې كولې چه دا مه دوه ټكړې كوه. زه د مشرې په حق كښې د خپلې دعوى نه لاس اخلم. د مور دا مينه كتلوسره سليمان عليه السلام د هغه ورې يعنى كشرې په حق كښې فيصله اوكړه.[2]

لاتفعل، يرحمك: اولنې روايت ورقاء عن ابى الزناد په طريق سره مسلم او اسماعيلى هم نقل كړې دې. د دې الفاظ دى: «لا، يرحمك الله»[3] علامه قرطبى رحمه الله اوفرمائيل چه په دې كښې لفظ «لا» نه پس څه وقف كول ضرورى دى دې دپاره چه اوريدونكى ته احساس وى چه د دې نه پس والاجمله، جمله مستانفه ده ګنې وراندې جمله به دې سره ملاؤ لوستلو په صورت كښې سامع ته دا وهم كيدې شى چه دا سليمان عليه السلام ته بددعا وركړې شوه.[4]

قال ابوهريرة: والله إن سمعتُ بالسكين إلا يومئذ، وما كنا نقول إلا المُديةُ: دا تعليق نه دې بلكه سند سابق سره موصول دې. حضرت ابوهريره رضى الله عنه وائى چه په كومه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم داحديث بيان كړو په خدائى مونږ د سكين لفظ هم په دغه ورځ واؤريدو مونږ خو به دغه (چاړې ته) هم مديه وئيل. چاړې ته په عربى كښې سكين خكه وائى چه دا د خناور حركت او اضطراب په سكون كښې بدلوى. او مدية ورته خكه وائى چه دا مَدَى الحياة يعنى د ژوند موده ختمه وى.[5] او دا لفظ مذكر اومؤنث دواړه شان استعماليږى.[6]

## ٤٢ - باب: قولِ اللهِ تعالى: ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ أَنِ اشْكُرْ لِلَّهِ﴾ إلى قوله: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ﴾ /لقمان: ١٢-١٨/.

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله د حضرت لقمان حكيم رحمه الله تذكره كول غواړى.[8]

---

[1] المصدر السابق.
[2] فتح البارى: ٥٧٤/٨ وعمدة القارى: ٢٤/١٦.
[3] عمدة القارى: ٢٤/١٦.
[4] عمدة القارى: ١٧/١٦-١٦ دارة المنيرية، صحيح الإمام مسلم كتاب الأقضية باب اختلاف المجتهدين، رقم الحديث: ٤٤٩٥.
[5] عمدة القارى: ٦٥/١٦ وفتح البارى: ٥٧٥/٨.
[6] فتح البارى: ٥٧٦/٨ ولسان العرب: ٣١٢/٦ و: ٥٧/١٣.
[7] لسان العرب: ٣١١/٦.
[8] عمدة القارى: ١٨/١٦ إدارة الطباعة المنيرية.

حضرت لقمان رحمه الله دَ قرآن كريم دَ نازليدونه مخكښې دَ عربو په تاريخ كښې يو ممتاز دانشور او دانا سړى په حيثيت سره مشهور وو. دَهغوى بعض حكيمانه اقوال نن هم په هره ژبه باندې عام دى. دَ جاهليت دَدور عربو شاعرانو دَ حضرت لقمان رحمه الله تذكره په كثرت سره كړې ده. دَ علامه سهيلى رحمه الله او ابن جرير طبرى رحمه الله غوندې مؤرخينو رائې داده چه لقمان حكيم رحمه الله حبشى غلام وو. دَ سودان نوبى قبيلې سره دَهغوى تعلق وو. تور رنګ، ټيټ قد او پيړې شونډو والاوو.[1] او نسب نامه ئې داسې ده: لقمان بن عنقاء بن سندون يا بيا لقمان بن ثار بن سندون.[2] بعض حضرات وائى چه لقمان حكيم دَحضرت ابراهيم عليه السلام وراره وو او دَ هغه نسب نامه داده: لقمان بن باغور بن ناحر بن آزر.[3] وهب بن منبه رحمه الله وائى چه هغه دَ حضرت ايوب عليه السلام خورئى وو.[4] يو قول دادې چه دَهغه دَ ترور خوئى وو.[5]

دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما او حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله نه هم دغه قول نقل دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وائى «كان لقمان عبدا حبشيا نجارا».[6] يعنى حضرت لقمان حبشى غلام وو او تركان وو. سعيد بن المسيب رحمه الله وائى «كان لقمان من سودان مصر ذومشافر».[7] يعنى حضرت لقمان مصرى سوډانى وو او دَ پيړو شونډو والاوو. مستدرك حاكم كښې په صحيح سند سره دَحضرت انس رضي الله عنه دا قول نقل كړې دې: «كان لقمان عند داؤد وهو يسرد الدرع، فجعل لقمان يتعجب ويريد أن يسأله عن فائدته، فتمنعه حكمته أن يسأل».[8]

مطلب دادې چه لقمان حضرت داؤد عليه السلام سره وو. داؤد عليه السلام به دَزغرو كړئى جوړولې نو لقمان به په دې حيرانيدو زړه كښې به ئې غوښتل چه دَ داؤد عليه السلام نه تپوس اوكړى چه دَدې عمل فائده معلومه كړى ليكن دَهغه حكمت او دانائى به هغه دَ سوال كولو نه منع كولو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دَ حضرت انس رضي الله عنه دا روايت په دې باره كښې صريح دې چه لقمان دَ حضرت داؤد عليه السلام دَ زمانې سړې وو.[9] دَعلامه واقدى رحمه الله رائې ده چه لقمان رحمه الله دَحضرت عيسى عليه السلام او رسول الله صلى الله عليه وسلم په مينځمى دور كښې تيرشوې دې. ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله دا قول په سختئى سره رد كړې دې.[10]

**دَمولاناسليمان ندوى رحمه الله اومولانا حفظ الرحمان سيوهاروى رحمه الله رائې:** په پخوانى تاريخ كښې دَ لقمان په نوم باندې دَ يو داسې شخصيت تذكره هم ملاويږى چه عادثانيه يعنى دَ هود عليه السلام دَقوم نه وو او نيك نفس بادشاه وو. دَ وهب بن منبه رحمه الله قول دې: «فلما مات شداد بن عاد صار الملك إلى أخيه لقمان من عاد، وكان أعطى الله لقمان مالم يعط غيره من الناس في زمانه، أعطاه حاسة مائة رجل، وكان طويلا لايقاربه أهل زمانه».[11] يعنى چه كله شداد بن عاد مړ شو نودَ حكومت واګې دَهغه دَ رور لقمان بن عاد په لاس كښې راغلې. الله تعالى هغه ته هغه نعمت وركړې وو چه دَهغه

---

[1] جامع البيان للطبري: ۲۷/۲۱.
[2] البداية والنهاية: ۱۳۳/۲.
[3] فتح القدير: ۲۹۶/٤وفتح الباري: ۵۷۶/۸
[4] فتح القدير: ۲۹۶/٤وفتح الباري: ۵۷۶/۸.
[5] فتح القدير: ۲۹۶/٤وفتح الباري: ۵۷۶/۸.
[6] البداية والنهاية:۱۳۳/۲.
[7] البداية والنهاية: ۱۳۳/۲.
[8] المستدرك للإمام الحاكم: ٤۵۸/۲رقم الحديث: ۳۵۸۲دارالكتب العلمية.
[9] فتح الباري: ۵۷۷/۸-۵۷۶.
[10] فتح الباري: ۵۷۷/۸-۵۷۶.
[11] قصص القرآن:۳٤/۳.

زماني خلقو كښې چاته هم نه وو وركړې. الله تعالى هغوى ته د سلو سړو برابر قوت حس او پوهه وركړې وه. دومره اوږد قد والا وو چه دهغوى په زمانه كښې څوك هم د هغه د قد برابر نه وو.

دا قول نقل كولونه پس مشهور مؤرخ ابن اسحاق رحمه الله د دې نه استدلال كړې دې چه د لقمان حكيم تعلق قبيله عاد سره و او هغه غلام اوحبشي نه بلكه عرب بادشاه وو. علامه سيد سليمان ندوى رحمه الله دعوىٰ ده چه لقمان حكيم او دقبيله عاد لقمان بادشاه هم يو شخصيت دې. اوهغه ډيرلوئى حكيم او هوښيار سړې وو. په عربو كښې چه د لقمان په نوم سره كومه صحيفه منسوب وه هغه هم د دغه لقمان عاد وه. د جاهليت د زمانې شاعر سلمى بن ربيعه اشعار سره دا حقيقت ډير ښه واضح كوى:

| | |
|---|---|
| اهلكن طسماً وبعده | غذي بهم وذا جدون |
| واهل جاش ومأرب | وحي لقمان والتقون |

يعنى حوادث زمانه قبيله طسم اودهغوى نه پس ذاجدون شاه يمن او اهل جاش ومأرب او قبيله د لقمان ختم كړل.

مولانا ندوى رحمه الله وائى چه د دويم شعر نه د لقمان نه صرف عرب كيدل ښكاره كيږى بلكه د يوې قبيلې مالك د يمن اوسيدونكې او په عظمت او شان كښې د سبا مقابل كيدل معلوميږى اودا ټولې خبرې په لقمان عاد باندې صادق راځى.(١)

مولانا حفظ الرحمان سيوهاروى رحمه الله فرمائى چه حضرت لقمان رحمه الله ته الله تعالى يورسدلې ذهن وركړې وو. هغوى د مذكوره رائې په تائيد كښې د سورت لقمان د آيت نه استدلال كولوسره فرمائيلى: سورة لقمان كښې لقمان خپل ځوئى ته نصائح كړى دى د حكمت او دانائى خبرې ورته خودلى دى په كوم كښې چه په دې امورو باندې زور وركړې شوې دې:

① خلقو سره په ښه اخلاقو سره پيش كيدل پكاردى. داسې نه چه په غرور كولوسره د خلقو نه مخ واړولې شى.
② او مه د الله تعالى په زمكه باندې په غرور سره ګرځه، دا ځكه وايم چه الله تعالى مغرور او تكبر والا نه خوښوى.
③ هميشه په تګ كښې متواضعانه اوميانه روى باندې قائم پاتې كيدل پكاردى.
④ او آواز په خبرو اترو كښې نرم ساته، ځكه چه په چغو صورو سره خبرې كول د انسانانو كار نه دې. كه په تيزه او كركژن او بې وجه اوچت آواز خوښ كړې شوې څيز وې نو د خره آواز به د تعريف قابل ګڼړلې شو حالانكه دهغه آواز ډير زيات خراب آواز شميرلې كيږى.

لقمان حكيم كه چرته غلام وې نو خپل ځوئى غلام زاده ته به ئى دا نصائح نه كول ځكه چه غرور كبر، ځان خودل اوشيخى كول تريخوالې او ترېوالې داسې اوصاف دى چه بادشاهانو شهزادګانو او مالدارانو اود اقتدار خاوندانو كښې په كثرت سره ليدلې شى اودا د الله تعالى نه نه ويريدل اود دولت نشه د دغه غلو دولت مندو طريقه كيدې شى اودا هغه ټول اوصاف دى چه عموماً د متكبرينو او جابرانو دپاره مخصوص دى. د غلام او غلام زاده دپاره خونه ددې موقع وى نه فرصت، ځكه چه دهغوى وخت خو د نورو خلقو په نازونو اوچتولو او خدمتونو كولوسره وقف وى.(٢)

دې نه پس مولاناسيوهاروى فرمائى: دا تفصيل كوم چه د قرآن مجيد نه ماخوذ دې اوس مونږ داهم وئيلې شو چه بيشكه لقمان حكيم او لقمان عاد هم يو شخصيت دې. هغه د عاد ثانيه نيك بادشاه اود حضرت هود عليه السلام

---

(١) قصص القرآن: ٣٤/٣ أرض القرآن، للشيخ سليمان الندوى: ١٦٥/١.
(٢) قصص القرآن: ٣٤/٣

منونکي وو او دَحبشي نسل نه نه دي بلکه عربي الاصل وو او دَصاحب سيرت محمدبن اسحاق نقل اودَ جاهليت دَ زماني شاعر سلمی بن ربیعه ګواهي په دې مسئله کښې صحيح او راجح دې. والله اعلم بالصواب.[1]

امام بخاري رحمه الله دَ سورت لقمان په دې آیاتونو باندې باب قائم کړې دې: ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ أَنِ اشْكُرْ لِلَّهِ ۚ وَمَن يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِ ۖ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ۝ وَإِذْ قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ وَهُوَ يَعِظُهُ يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ ۖ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ۝ وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ أَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ إِلَيَّ الْمَصِيرُ ۝ وَإِن جَاهَدَاكَ عَلَىٰ أَن تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ۖ وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا ۖ وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ۚ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝ يَا بُنَيَّ إِنَّهَا إِن تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُن فِي صَخْرَةٍ أَوْ فِي السَّمَاوَاتِ أَوْ فِي الْأَرْضِ يَأْتِ بِهَا اللَّهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ۝ يَا بُنَيَّ أَقِمِ الصَّلَاةَ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنكَرِ وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ ۖ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ۝ وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ۝﴾

او بیشکه مونږ لقمان ته دانش مندي ورکړې وه (اوهغه ته مو ونیلي وو) دَ الله تعالی شکراداکوه اوکوم سړي چه دَالله تعالی شکر اداکوي نوهغه هم دَخپلې فائدې دَپاره شکرادا کوي او څوك چه ناشکري اوکړي نو بیشکه الله تعالی بې نیاز او په خپل ذات دَ تعریف قابل دې اوکوم وخت چه لقمان نصیحت کولو سره خپل ځوئي ته اوونیل (علامه سهیلي رحمه الله دَ ځوئي نوم باران خودلې بعض حضراتو انعم او بعض شکور، بعض بابلي او بعض اشکم نقل کړې دې) ، چه اې زما ځویه! الله تعالی سره شریك مه جوړوه، بیشکه شرك لوئي ظلم دې. اومونږ انسان ته دهغه دَ مور پلار باره کښې دا تاکید کړې دې. چه دَ ده مور دَضعف دَپاسه ضعف برداشت کولوسره هغه په خیټه کښې اوساته اودهغه دَ پیئونه ارول په دوو کالوکښې دی (چه ته) زما شکره اداکړې اودَ خپل مور پلار هم، هم زما طرف ته راواپس کیدل دی. اوکه چرې مور پلار په تاباندې زور واچوي چه ته ما سره څوك (زما په خدائي کښې) شریك اوګرځوه دَ کوم چه تاسره څه دلیل نشته دې نودَهغوی حکم مه منه اوهغوی سره په دنیاکښې په نیك سلوك سره اوسیږه اوکوم سړي چه زما طرف ته متوجه وي دَهغه تابعداري کوه. بیا ستاسو ټولو زما طرف ته راګرځیدل دی. نو زه به تاسو دهغه اعمالو نه خبردار کړم چه تاسو به کول. (لقمان دا هم اوونیل) اې زما ځویه! که چرې یو عمل دَ اوری دَ داني برابر وي او بیا هغه په یوکانړي کښې دننه وي یا په آسمانونوکښې یا په زمکوکښې، نوبیا به هم الله تعالی هغه رابنکاره کړي. بیشکه الله تعالی ډیر بارك بین، ډیر خبردار دې. ځویه! مونځ قائم ساته اوخلقو ته دَ نیکو تلقین کوه او دَ بدئي نه ئې منع کوه او تاته چه کوم تکلیف راورسي په هغې صبر کوه. بیشکه دادَهمت دکارونونه دی اوته دَ خلقو نه خپل مخ مه اړوه او په زمکه باندې په کبر سره مه ګرځه بیشکه په زمکه باندې په کبر سره ګرځیدونکي شیخي کونکي الله تعالی نه خوښوي.

**دَحضرت لقمان دَ نبوت باره کښې دَ جمهورو رائې:** دَ قرآن مجید آیت: ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ﴾ کښې جمهور علماؤ لفظ حکمة لاندې فرمائیلي دي چه دې نه عقل فهم او تفقه في الدين مراد دې او چاهم دَ حکمة نه دَ نبوت معنی مراد نه ده اخستې په دې وجه دَجمهور علماؤ په نیز حضرت لقمان نبی نه وو بلکه دَالله تعالی یونیك صالح او هوښیار بنده وو. علامه قرطبي رحمه الله وائي: «أعطاه الله الحكمة ومنعه النبوة وعلى هذا جمهور أهل التأويل إنه كان وليا ولم يكن نبيا» [2] یعنی الله تعالی هغه ته عقل او حکمت ورکړې وو اوهغه ته ئې نبوت نه وو ورکړې. چنانچه دَ جمهور مفسرینو رائې هم دغه ده چه هغه ولي وو مګر نبی نه وو.

---

[1] المصدر السابق.

[2] الجامع لأحكام القرآن: ۵۹/۱۴.

حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائي: «والمشهور عن الجمهور أنه كان حكيما وليا، ولم يكن نبيا، وقد ذكره الله في القرآن، فأثنى عليه، وحكى من كلامه فيما وعظ به ولده الذي هو أحب الخلق إليه».[1] یعنی د جمهور علماؤ مشهور قول دادې چه لقمان رحمه الله د الله تعالی مقرب بنده او هوښیار سړې وو، نبی نه وو. الله تعالی په قرآن کښې د هغه ذکرکولوسره د هغه تعریف کړې دې اود هغه نی هغه کلام پیش کړې دې په کوم کښې چه هغه خپل خوئی ته وعظ اونصیحت کړې دې. کوم چه د الله تعالی په مخلوق کښې دهغه دپاره د ټولو نه زیات محبوب وو.

وړاندې حافظ ابن کثیر فرمائي: «والذي رواه سعيد بن أبي عروبة عن قتادة في قوله: ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ﴾ يعني: الفقه والإسلام، ولم يكن نبيا، ولم يوح إليه، وهكذا نص على هذا غير واحد من السلف منهم: مجاهد وسعيد المسيب، وابن عباس، والله أعلم».[2] یعنی سعید بن ابی عروبه رحمه الله د قتاده رحمه الله قول نقل کړې دې چه په آیت کښې د حکمت نه اسلام او هوښیارتوب مراد دې اودا چه هغه نبی نه وو، نه په هغه باندې وحی نازل شوې اود اسلاف نه یولوئی جماعت نه په کوم کښې چه مجاهد، سعید المسیب او ابن عباس رضی الله عنهما شامل دی، هم دغه نقل دی چه هغه نبی نه وو. والله اعلم.

البته د عکرمه رحمه الله قول دې چه حضرت لقمان نبی وو. دا قول ابن ابی حاتم رحمه الله او علامه طبری إسرائيل عن جابر عن عکرمة په طریق سره روایت کړې دې.[3] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د دې په سند کښې جابر الجعفي شمیر په ضعیف راویانو کښې کیږي.[4] که د عکرمه طرف ته د دې قول نسبت ته صحیح هم اووئیلې شی نوهیڅ بدیت نشته دې. مونږ به وایو چه دا د عکرمه رحمه الله تفرد دې. بعض حضراتو د دې تفرد تصریح هم کړې ده.

**(وَلَا تُصَعِّرْ)**

**:الْإِعْرَاضُ بِالْوَجْهِ:** آیت دې ﴿وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ﴾ امام بخاری رحمه الله فرمائي چه تصعیر معنی مخ اړولو ده. اهل لغت وائي چه اصل کښې صعر اوښ ته لګیدونکې یوې بیمارئی نوم دې.[5]

**[۳۲٤٥]- حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "لَمَّا نَزَلَتْ {الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ} [الأنعام: ۸۲] قَالَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّنَا لَمْ يَلْبِسْ إِيمَانَهُ بِظُلْمٍ؟ فَنَزَلَتْ {لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ} [لقمان: ۱۳]" [۳۲٤٦/ ص ۵۸۷][6]**

**ترجمه:** حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه وائي چه کله دا آیت نازل شو: ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ﴾ نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحابو د حضور پاک نه تپوس اوکړو چه په مونږ کښې څوك دی چاچه ظلم نه وی کړې؟ نو دا آیت نازل شو: ﴿لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ ۖ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾.

---

[1] البداية والنهاية: ۱۳٤/۲.

[2] البداية والنهاية: ۱۳۹/۲.

[3] فتح الباري: ۵۷۷/۸ وعمدة القاري: ۲۶/۱۶.

[4] اوګورئی فتح الباري: ۵۷۷/۸.

[5] لسان العرب، مادة: ص، ع، ر: ۳٤۵/۷ دار إحياء التراث العربي.

[6] مرتخريجه في كتاب الإيمان، باب ظلم دون ظلم، ۳۲.

## تراجم رجال

ابوالولید: دا مشهور محدث ابوالوَلید هشام بن عبدالملک طیالسی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب إثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم» لاندې تیره شوې ده.[1]

شعبة: دا شعبه بن الحجاج بن الوردا العتکی الواسطی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده» لاندې تیره شوې ده.[2]

اعمش: دا ابومحمد سلیمان بن مهران اسدی کوفی رحمه الله دې. أعمش په لقب سره مشهور دې. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تیره شوې ده.[3]

ابراهیم: دا ابوعمران ابراهیم بن یزید بن قیس بن الاسود نخعی کوفی رحمه الله دې.[4]

علقمة: داعلقمه بن قیس نخعی رحمه الله دې.[5]

عبدالله: دا صحابی رسول حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې.[6]

دَ حدیث شرح: ﴿وَلَمْ يَلْبِسُوٓا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ﴾ کښې لفظ ظلم نکره دې اودَ نفی نه پس واقع دې چونکه نکره تحت النفی دَعموم فائده ورکوی په دې وجه صحابه کرام اوویریدل چه دې نه به دَ ظلم هر یوکس مرادوی. دا خصوصیت خوصرف دَ انبیاء کرام دی چه هغوی دَ ظلم دهر فرد نه محفوظ وی په دې باندې دَ سورت لقمان دا آیت نازل شو: ﴿لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ ۖ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾ نوبیا صحابه کرامو ته تسلی اوشوه چه دَ ظلم نه دَدې فرد اعظم شرک بالله مراد دې.

[۳۲۴۶]- حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ {الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا} [الأنعام: ٨٢] إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ شَقَّ ذَلِكَ عَلَى المُسْلِمِينَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّنَا لاَ يَظْلِمُ نَفْسَهُ؟ قَالَ: «لَيْسَ ذَلِكَ إِنَّمَا هُوَ الشِّرْكُ أَلَمْ تَسْمَعُوا مَا قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ وَهُوَ يَعِظُهُ يَا بُنَيَّ لاَ تُشْرِكْ بِاللَّهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ» ص ۵۸۸ [ر: ۳۲][7]

## تراجم رجال

اسحاق: دا اسحاق بن راهویه رحمه الله دې.[8]

عیسی بن یونس: دَدوی تذکره ماقبل کښې تیره شوې ده. دَدوی تذکره «أبواب الأذان باب من صلی بالناس فذکر حاجة الخ» لاندې اوګورئې. باقی رواة تیرشوی حدیث لاندې تیر شوی دی.

---

[1] کشف الباري: ۳/۳۸، ۴/۱۵۹.
[2] کشف الباري: ۱/۶۷۸.
[3] کشف الباري: ۲/۲۵۱.
[4] کشف الباري: ۲/۲۵۳.
[5] کشف الباري: ۲/۲۵۶.
[6] کشف الباري: ۲/۲۵۷.
[7] مرتخریجه فی کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم: ۳۲.
[8] کشف الباري: ۳/۴۲۸.

**دَحديث شرح:** دلته امام بخاري رحمه الله دَباب اولني حديث په دويم طريق سره ذكر كړې دې. په دې كښې دى چه كله آيت: ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ﴾ نازل شو، نو دا خبره په صحابه باندې ډيره سخته تيره شوه. چنانچه هغوى دَ رسول الله نه تپوس اوكړو: آخر په مونږ كښې څوك دى چه دَ (گناه كولو سره) په خپل ځان باندې ظلم نه وى كړې؟ رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل: دې نه شرك مراد دې. ولې تاسو دَ لقمان هغه نصيحت نه دې اوريدلې كوم چه هغه خپل ځوئي ته كړې وو چه: خويه! الله تعالى سره هيڅوك شريك مه جوړه وه ځكه چه شرك لوئى ظلم دې. احاديث باب سره متعلق تفصيلى بحثونه «كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تيرشوى دى. (١)

**دَاحاديث باب ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ باب په اولنى روايت كښې دى: ﴿لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ﴾ دا دَحضرت لقمان دَ هغه نصائح نه دې كوم چه قرآن دَهغوى نه په توگه دَ حكايت نقل كړې دې. ترجمة الباب سره دَدې مناسبت ښكاره دې. دَ دويم حديث مناسبت هم ښكاره دې. (٢)

## ۴۳ - باب: ﴿وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ﴾ الآية/يس: ۱۳.

**دَترجمة الباب مقصد:** په سورت يس كښې دَ دوو مبلغينو دَتوحيد ذكر راغلې دې. دَدې باب لاندې امام بخاري رحمه الله هم دَهغوى تذكره كول غواړى. آيت دې: ﴿وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ﴾ [يس: ١٣]. په دې كښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې چه ته دَهغوى په مخكښې دَ يو كلي والو مثال بيان كړه كوم وخت چه هغوى له رسول راغلې وو. علامه قرطبى رحمه الله وائى چه دَ ټولو مفسرينو په نيزد قريه نه شهر انطاكيه مراد دې. (٣)

**اهل انطاكيه ته دَ هدايت وركونكو دوو كسانو بيان:** دَ اهل انطاكيه دَ هدايت دَپاره الله تعالى دوه نيكان خلق ليګلې وو. په رواياتو كښې دَهغوى مختلف نومونه نقل كړې شوى دى په دې وجه تعيين مشكل دې. په دې كښې هم دَ مفسرينو اختلاف دې چه هغه دواړه نيغ په نيغه دَ الله تعالى رسولان وو يا بيا دَ هغه زمانې دَ يو رسول نمائنده ګان وو. دَحضرت قتاده رحمه الله رائې داده چه هغه دواړه دَحضرت عيسى عليه السلام نمائنده وو او دَ اكثر مفسرينو خيال هم دې طرف ته دې. (٤) ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله وائى چه دَ امام بخارى رحمه الله دَ صنيع نه معلوميږى چه دواړه دَحضرت عيسى عليه السلام نه مخكښې تيرشوى دى. (٥) علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله فرمائى: په يقينى توګه باندې نه شى وئيلې كيدې چه دا بلاواسطه دَ الله تعالى راليګلې شوې پيغمبران وو يا دَ يوپيغمبر په واسطه ورته حكم شوې وو چه دَ هغه نائب جوړيدو سره فلانكى كلى طرف ته لاړشئى دواړه احتماله دى. متبادر هم دغه دى چه پيغمبران وى. كيدې شى دَ حضرت مسيح عليه السلام نه اول مبعوث شوې وى. (٦)

قرآن مجيد چه دَدې حضراتو كومه قصه بيان كړې ده دَهغې خلاصه داده چه هغوى الله تعالى دَ يو كلى اوسيدونكو ته دَ توحيد پيغام وركولودپاره ليګلې وو. دَكوم نوم چه مفسرينو انطاكيه بيان كړې دې. اهل انطاكيه دَهغوى تكذيب اوكړو نو الله تعالى دَهغوى دَتائيد او تقويت دَپاره دريم سړې اوليګلو. درېواړه يوځائى شو اوبيانى هم هغه پيغام وركړو. چه مونږ دَالله تعالى رسولان يو تاسو ايمان راوړئى اودَ الله تعالى په وحدانيت

---

(١) كشف البارى: ٢/٢۶٨،٢٣٨.
(٢) عمدة القارى: ١۶/٥١٨ إدارة الطباعة المنيرية.
(٣) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى: ١٥/١٤ وفتح القدير: ٤/٤٥٤.
(٤) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى: ١٥/١٤ وفتح القدير: ٤/٤٥٤.
(٥) فتح البارى: ٨/٥٧٨.
(٦) تفسير عثمانى: ٣/٢٠٩ دارالاشاعت.

باندې يقين اوكړنى. هغوى بيا دَدوى تكذيب كولوسره اووئيل چه تاسو خو هم زمونږ په شان انسانان يئى. په تاسو كښې كومه يوه داسې امتيازى خبره ده چه ستاسو دَ نبوت شان رابنكاره كوى. تاسو دَ خپل طرف نه دَ دروغو دعوىٰ كوئى چه مونږ دَ الله تعالىٰ رسولان يو. دې دريوارو اووئيل چه زمونږ رب ته معلومه ده چه مونږ ستاسو طرف ته راليګلې شوې يو. كه تاسو مننى اوكه نه مننى زمونږ ذمه وارى صرف هم دومره وه چه په بنكاره سره او ښه شان سره بيان اوكړو. بيا كلى والو اووئيل: ﴿اِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهُوْا لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ يعنى ستاسو دَ وجې نه مونږ په نحوست كښې راګيرشو. څوك ستاسو موافق او څوك ستاسو مخالف دى په دې وجه مونږ دَ تفرق او انتشار ښكارشو. كه تاسو دَدې تبليغ نه منع كيږئى نه نو مونږ به تاسو په كاڼړو باندې ويشتو سره هلاك كړو. دې دريوارو اووئيل: ﴿طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ﴾ ستاسو نحوست پخپله تاسو پورې لګيدلې دې. دا هم ستاسو دَ عملونو نتيجه ده چه تاسو دَ حد نه وړاندې كيدونكى خلق يئى.

دې نه پس قرآن مجيد دَ يوخلورم سړى ذكر كړې دې چه كله هغه ته معلومه شوه چه دَ دغه كلى والا دَ الله تعالىٰ پيغمبران دروغ ګڼړى نودې پخپله دَكلى چرته په لرې ګوټ كښې وو دَهغه خانى نه په منډه دَ هغوى دَ امداد دپاره راؤرسيدو او وئى وئيل چه داخلق واقعى رښتونى خلق دى دَ الله تعالىٰ رسولان دى. تاسو خلق ولې دَ داسې سړى دعوت نه قبلوئى چه تاسو نه دَمزدورئى ياڅه مالى فائدې مطالبه نه كوى اودا دَدوى دَ بې غرض اومخلص كيدو واضح دليل دې. بيا دا چه دا خلق پخپله هدايت قبلونكى دى دَدوى په قول اوعمل كښې هيڅ تضاد نشته دې. آخر تاسو دَدوى تابعدارى ولې نه كوئى. په آخره كښې دغه سړى دَخپل ايمان ښه په بنكاره باندې اعلان كولوسره اووئيل ﴿اِنِّيْٓ اٰمَنْتُ بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُوْنِ﴾ يعنى بيشكه ما ستاسو په رب باندې ايمان راوړلې دې تاسو زما خبره واؤرئى. دې تقرير كولوسره كلى والو په هغه باندې حمله اوكړه او هغه ئى قتل كړو. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائى هغه ئى په خپو باندې دومره چقړى كړو چه دهغه كولمې بهر راؤوتلې. دغه سړى ته دَ شهادت دا صله ملاؤ شوه چه دَمرګ نه وړاندې هغه ته دَ جنت زيرې وركړې شو. آيت دې: ﴿قِيْلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ﴾ هغه ته اووئيلې شو چه په جنت كښې داخل شه.

كلى والوچه دَ الله تعالىٰ په دعوت كونكى باندې چه كوم ظلم اوكړو هغوى دَ دغه ظلم دَ ردعمل نه بچ نه شو. آيت دې: ﴿وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰى قَوْمِهٖ مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ جُنْدٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَمَا كُنَّا مُنْزِلِيْنَ ۝ اِنْ كَانَتْ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمْ خٰمِدُوْنَ﴾ يعنى دهغه سړى نه پس مونږ په هغه قوم باندې دَ آسمان نه څه لښكر رااونه ليرلو او نه مونږ ته دَ راكوزولو ضرورت وو. مطلب دا چه دَ ظلم او نافرمانئى دَ سزا وركولودپاره دَ فرښتو څه لښكر دَ آسمان نه دَ راكوزولوضرورت نه وو بلكه هغه خو بس يوه چغه وه ، يوې فرښتې صرف په زوره آواز اوويستلو په كوم چه په يودم هغه ټول مړه شو. دَ آواز په سختئى او خطرناك كيدو سره دَهغوى كليجې يعنى اينې اوشليدې.

دې دريوارو حضراتو سره څه اوشو؟ قرآن پاك دَدې نه سكوت اختيار كړې. دَ قرائن نه هم دغه معلوميږى چه قوم هغوى هم قتل كړې وو. بنكاره خبره ده چه كله دَهغوى تائيد كونكى دَ خپل قوم يوكس هغوى اونه بخښلو نود بهر نه راتلونكى كسان به هغوى ولې ژوندى پريخودل. والله اعلم بالصواب.

﴿فَعَزَّزْنَا﴾/يس:۱۴/ قَالَ مُجَاهِدٌ: شَدَّدْنَا. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﴿طَآئِرُكُمْ﴾/يس:۱۹/: مَصَائِبُكُمْ.

آيت دې: ﴿فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ﴾ مجاهد رحمه الله وائى ((عززنا)) معنى ده ((شددنا)). مونږ دَ يودريم سړى په ذريعه هغوى ته تقويت وركړو. دَ مجاهد رحمه الله دا قول فريابى رحمه الله ابن ابى نجيح رحمه الله په طريق سره موصولاً نقل كړې دې.[1]

[1] فتح البارى:۸/۵۷۷.

وقال ابن عباس: ﴿طائركم﴾: مصائبكم: د طائر معنى ده هغه مرغئي دکوم نه چه نيك او بدفال واخستې شي، دخير اوشر حصه. دلته په آيت كښې د نحوست په معنى كښې استعمال شوې دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وائي چه دې نه مصائب مراد دي. اهل انطاكيه اووئيل: ﴿إِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ﴾ يعنى مونږ ستاسو د وجې نه د نحوست ښكار شو او په مصيبت كښې راګير شو. نو هغوى جواب ورکړو ﴿طَائِرُكُمْ مَعَكُمْ﴾ ستاسو نحوست خو پخپله تاسو پورې لګيدلې دې. يعنى خلق چه کومو مصيبتونو او آفتونو کښې راګير شوى دى د هغې وجه مونږ نه بلکه ستاسو خپل اعمال د هغې سبب دى. د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا اثر ابن ابى حاتم رحمه الله د ابى طلحه رحمه الله په طريق سره موصولاً روايت کړې دې.[1]

## ۴۴ - باب: قَوْلِ اللهِ تَعَالَى ﴿ذِكْرُ رَحْمَةِ رَبِّكَ عَبْدَهُ زَكَرِيَّا إِذْ نَادَى رَبَّهُ نِدَاءً خَفِيًّا

قَالَ رَبِّ إِنِّي وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّي وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا﴾ إِلَى قَوْلِهِ: ﴿لَمْ نَجْعَلْ لَهُ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا﴾. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: مِثْلًا يُقَالُ: رَضِيًّا مَرْضِيًّا. ﴿عِتِيًّا﴾ عُصِيًّا، عَتَا يَعْتُو. ﴿قَالَ رَبِّ أَنَّى يَكُونُ لِي غُلَامٌ وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا﴾- إِلَى قَوْلِهِ- ﴿ثَلَاثَ لَيَالٍ سَوِيًّا﴾ وَيُقَالُ: صَحِيحًا. ﴿فَخَرَجَ عَلَى قَوْمِهِ مِنَ الْمِحْرَابِ فَأَوْحَى إِلَيْهِمْ أَنْ سَبِّحُوا بُكْرَةً وَعَشِيًّا﴾ فَأَوْحَى: فَأَشَارَ ﴿يَا يَحْيَى خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ﴾- إِلَى قَوْلِهِ- ﴿وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا﴾ /مريم: ۲-۱۵/. ﴿حَفِيًّا﴾/مريم: ۴۷/: لَطِيفًا. ﴿عَاقِرًا﴾ الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى سَوَاءٌ.

**د ترجمة الباب مقصد:** دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله د حضرت زکريا عليه السلام او د هغه د خوئى يحيى عليه السلام تذکره کړې ده. د خپل عادت مطابق امام بخارى رحمه الله د قرآنى آياتونو حواله ورکړې ده. د باب لاندې ئې يو مرفوع حديث نقل کړې دې.

د حضرت زکريا عليه السلام د پلار په نوم کښې اختلاف دې. يو قول دا دې چه د هغوى د پلار نوم "حفا" وو. دويم دا چه د هغه د پلار نوم "دان" وو او يو قول دا هم دې چه د حضرت زکريا عليه السلام د پلار نوم "ادن" وو. په وثوق سره د يو نوم تعيين نه شى کيدې. البته په دې باندې اتفاق دې چه هغه د حضرت سليمان عليه السلام بن داؤد عليه السلام د اولاد نه دې.[2]

لفظ زکريا کښې څلور لغات دي: ① الف ممدوده سره زکرياء لوستلې کيږى. ② الف ممدوده نه بغير زکريا اولوستلې شى. ③ الف حذف کولو سره او ياء مشدد کولو سره زکرىّ اولوستلې شى. ④ الف حذف کولو سره او ياء مخفف کولو سره زکرى اولوستلې شى.

علامه جوهرى رحمه الله فرمائى چه په اولنو دوو صورتونو کښې لفظ زکريا غير منصرف لوستلې کيږى.[3]

قرآن مجيد چه د حضرت زکريا عليه السلام باره کښې کوم تفصيلات خودلى دى د هغې نه زيات حالات د يو مستند ماخذ نه ثابت نه دى. البته د هغوى د پيشې متعلق د حضرت ابوهريره رضي الله عنه يو روايت صحيح مسلم او سنن ابن ماجه کښې نقل دې: «أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: كان زكريا نجارا»[4] رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى چه زکريا نجار

---

[1] المصدر السابق.

[2] اوګورئى البداية والنهاية: ۳۹۵/۲۵-۳۹۴دارهجر. تاريخ دمشق ابن عساكر: ۴۸/۱۹ذكر من اسمه زكريا، رقم الترجمة: ۲۲۶۱دارالفكر، عمدة القارى: ۲۰/۱۶.

[3] فتح البارى: ۵۷۸/۸دارالكتب العلمية، عمدة القارى: ۲۰/۱۶إدارة الطباعة المنيرية، البداية والنهاية: ۳۹۵/۲دارهجر، معجم الصحاح للجوهرى: ۴۵۴دارالفكر.

[4] تاريخ دمشق: ۴۹/۱۹دارالفكر، سنن ابن ماجه، أبواب التجارات، باب الصاعات، رقم الحديث: ۲۱۵، مسند الإمام احمد: ۳۲۹/۱۳رقم: ۷۹۴۷، مؤسسة الرسالة.

يعني ترکان وو. دَحضرت زكريا عليه السلام بي بي ايشاع او دَحضرت مريم عليها السلام مور حنه دواړه حقيقي خوېندې وې.

امام بخاري رحمه الله په دې آياتونو باندې ترجمه قائم کړې ده: ﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُ زَكَرِيَّا ۝ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ نِدَاءً خَفِيًّا ۝ قَالَ رَبِّ إِنِّي وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّي وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا وَلَمْ أَكُن بِدُعَائِكَ رَبِّ شَقِيًّا ۝ وَإِنِّي خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِن وَرَائِي وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا فَهَبْ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا ۝ يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنْ آلِ يَعْقُوبَ ۖ وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ۝ يَا زَكَرِيَّا إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ اسْمُهُ يَحْيَىٰ لَمْ نَجْعَل لَّهُ مِن قَبْلُ سَمِيًّا ۝﴾ [مريم: ۲ - ۷] يعني دا ستا دَ رب دَ رحمت ذکر دې چه هغه په خپل بنده زکريا باندې اوکړو کوم وخت چه هغه خپل رب ته پټ شان آواز اوکړو عرض ئې اوکړو اې زما ربه! زما هډوکي کمزورې شو او زما په سر کښې دَ بوډا والي دَ وجې نه سپينوالي خور شو او زه تا نه په دعاغوښتو کښې کله ناکام شوې نه يم او بيشکه ما ته دَ خپل خان پس زما دَ رشته دارانو نه انديښنه ده او زما ښځه شنډه ده، نو ته ما له دَ خپل طرف نه يو ولي راکړه چه زما وارث وي او دَ يعقوب دَ الاود هم، او اې ربه! ته هغه خپل خوښ کړې جوړ کړه. اې زکريا! بيشکه مونږ تا ته دَ يو هلك زيرې درکوو دَ هغه نوم يحيى دې او مونږ دَ هغه نه مخکښې دَ هغه په نوم باندې بل څوك نه دې جوړ کړې.

لفظ ذکر دَ مبتداء محذوف «هذاالمتلو» خبر واقع کيدو دَ وجې مرفوع دې او تقدير دې: «هذاالمتلوذکررحمة ربك.....» او «عبده» دَ لفظ رحمت مفعول دې او لفظ «زکريا» دَ «عبده» نه بدل دې يا عطف بيان دې.[۱]

دَ زکريا عليه السلام بي بي شنډه وه او پخپله ئې داحال وو چه دَ بوډاوالي نه اوچ شوې وو. ښکاره خبره ده چه په داسې حالات کښې دَ اولاد څه اميد باقي نه پاتې کيږي. دَحضرت مريم عليها السلام دَ کفالت دوران کښې هغه مشاهده کړې وه چه مريم عليها السلام ته دَالله تعالى دَ طرف نه بې موسمه ميوې ملاويدلې. دې مشاهدې دَهغه په زړه کښې دَ اميد شمع روښانه کړه چه کوم ذات بې موسمه ميوې ورکولو باندې قادر دې هغه يقيناً دَعمر په دې مرحله کښې هم اولاد ورکولو باندې قادر دې.[۲]

نداءخفيا: علامه زمخشري رحمه الله دَدې آيت دَ تفسير په ذيل کښې فرمائي چه مناجات کښې دَالله تعالى په نيز جهر او اخفا دواړه برابر دي. ليکن په اخفاکښې چونکه ريا نه وي په دې وجه دَ جهر په مقابله کښې اولى ده.[۳]

بعض حضراتو دَ اخفا وجه دا خودلې ده چه هغه وخت حضرت زکريا عليه السلام بوډا شوې وو او په دې عمر کښې دَ الله تعالى نه دَخوني درخواست کولو باندې دَ خلقو دَطرف نه دَملامتيا ويره وه. يو قول دادې چه ضعف او کمزورې دَ هغه آواز ټيټ کړې وو او قوى مضمحل کمزورې کړې وو.[۴]

**قال ابن عباس: مثلاً:** آيت دې ﴿هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ۝﴾ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما «سميا» تفسير مثلاً سره کړې دې آيت کښې حضرت زکريا عليه السلام ته خطاب دې چه آيا ته دَ بچي څه اهم نوم پيژنې؟

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دَ ابن عباس رضي الله عنهما دا تعليق ابن ابي حاتم رحمه الله علي بن ابي طلحه عن ابن عباس رضي الله عنهما په طريق سره آيت مبارك ﴿هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ۝﴾ په تفسير کښې بيان کړې دې چه ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل (اي هل تعلم له سميا اوشبها). دا تعليق «سماك بن حرب عن عكرمة عن ابن عباس» په طريق سره هم دَ آيت مبارك ﴿لَمْ نَجْعَل لَّهُ مِن قَبْلُ سَمِيًّا ۝﴾ تفسير سره متعلق نقل کړې دې.[۵]

---

[۱]) عمدة القاري: ۲۰/۱۶.

[۲]) البداية والنهاية: ۲/۳۹۷-۳۹۶ قصة زكريا ويحيى عليهما السلام، دارهجر.

[۳]) الكشاف للزمخشري: ٤/٥ مكتبة العبيكان.

[۴]) إرشادالساري: ۳۸۱/۷.

[۵]) فتح الباري: ۸/۵۷۹،۵۷۸.

دا دَ دویم طریق والا روایت امام حاکم رحمه الله مستدرك کښې نقل کړې دې په دې کښې ابن عباس رضی الله عنهما ﴿لَمْ نَجْعَلْ لَهُ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا﴾ لاندې فرمائي «لم يسم يحيى قبله غيره» يعنې الله تعالى دَ يحيى علیه السلام نه مخکښې هيڅوك دَغه په نوم باندې نه وو پيدا کړې.[1]

علامه قسطلانی رحمه الله اوفرمائيل چه دا دَ يحيى علیه السلام فضيلت دې چه دَغه دَ نوم کيخودو معامله الله تعالى ته حواله نه کړه بلکه دَ حضرت يحيى علیه السلام دَ نوم ذمه پخپله الله تعالى واخسته.[2]

**قوله: يقال: رضيا: مرضيا:** آيت دې ﴿وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا﴾. امام بخارى رحمه الله په صيغه دَ تعريض سره قول نقل کولوسره «رضيا» تفسير کړې دې. امام طبرى رحمه الله دا قول نقل کولوسره اوفرمائيل «مرضيا: ترضى أنت وعبادك».[3] يعنې زکريا علیه السلام دعااوکړه چه کوم خوئې زما پيدا کيږى چه دَغه نه ته اوستا بندګان هم راضى وى.[4]

**قوله: عتيا عصيا، عتا يعتو:** آيت دې ﴿وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا﴾. امام بخارى رحمه الله دلته دَ «عتيا» تفسير «عصيا» سره کړې دې. دَصحيح بخارى نسخوکښې «عصيا» صاد سره ضبط شوې دې. شارحين بخارى فرمائي صحيح په سين سره دې يعنې په اصل کښې عسيا دې. چنانچه طبرى رحمه الله دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما يو مرفوع روايت نقل کړې دې: «أدري كيف كان رسول الله صلى الله عليه وسلم قرأ هذا الحرف: وقد بلغت من الكبر عتيا أو عسيا»[5] يعنې ماته معلومه ده چه رسول الله به عتيا لوستلو يابه ئې عسيا لوستلو.

«عتا يعتو عتوا وعتيا» معنى ده دَحد نه بهر کيدل، کبر کول په آيت کښې آخرى حد ته رسيدل مراد دى. چنانچه علامه آلوسى رحمه الله په خپل تفسير کښې اوفرمائيل چه په جوړونو او هډوکو کښې خشکى پيدا کيدو ته عتى وئيلى شى.[6] علامه راغب اصفهانى رحمه الله فرمائي چه دې نه ضعف او بوډا کيدلو هغه حالت مراد دې چه کله دَاصلاح تول کوششونه بې کاره شى.[7] او «عسى يعسو عسوا وعسيا» معنى هم دې ته نيزدې نيزدې ده. يعنى دَ وښو اوچيدل. دَ ضعف او عمر زياتيدو دَ وجې نه دَ هډو اوچيدل.[8]

**قوله: قال رب أنى يكون غلام إلى قوله ثلاث ليال سويا:** کله چه حضرت زکريا علیه السلام ته دَ خوئې دَ پيدا کيدو زيرې ورکړې شو نوهغه حيران شو چه بې بى شنده ده او پخپله هغه دَ بوډاوالى انتهاء ته رسيدلى دې په داسې حالت کښې دَ خوئې پيداکيدل څنګه کيدې شى. امام بخارى رحمه الله وړاندې آيت نقل کولوسره دَ واقعه هم دغه حصه بيان کړې ده. دَ سورت مريم آيات دى: ﴿قَالَ رَبِّ أَنَّى يَكُونُ لِي غُلَامٌ وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا ۝ قَالَ كَذَٰلِكَ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ وَقَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْئًا ۝ قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِي آيَةً قَالَ آيَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَ لَيَالٍ سَوِيًّا﴾ يعنى حضرت زکريا علیه السلام عرض اوکړو چه زما به خوئې څنګه پيدا کيږى اوحال دا دې چه زما بى

---

[1] المستدرك للإمام الحاكم: ۴۰۳/۲ رقم الحديث: ۳۴۰۷ دارلكتب العلمية.

[2] إرشادالسارى: ۳۸۲/۷.

[3] يقول: واجعل يارب الوليَّ الذى تهبه لى مرضيا ترضاه أنت ويرضاه عبادك دينا، وخُلقا، وخَلقاً. تفسير الطبرى، سورة مريم:۶، ۴۶۱/۱۵ دارهجر.

[4] فتح البارى: ۵۷۹/۸ إرشادالسارى: ۳۸۲/۷ عمدة القارى: ۲۰/۱۶.

[5] تفسير الطبرى: ۴۶۵/۱۵ دارهجر.

[6] روح المعانى: ۶۶/۱۶ إحياء التراث العربى.

[7] روح المعانى: ۶۶/۱۶ المفردات فى غريب القرآن: ۴۱۸/۲ العين وما يتصل بها، مكتبة نزار مصطفى الباز.

[8] إرشادالسارى: ۳۸۲/۷.

بی شنده ده او پخپله زه دَ بړوالی انتهاء ته رسیدلی یم الله تعالی اوفرمائیل چه او هم دغه شان به کیږی. ستا دَ رب فرمان دی چه دا خو زما دپاره معمولی خبره ده اوما ته دَده نه اول پیدا کړې حالانکه ته هیڅ هم نه وې. زکریا علیه السلام عرض اوکړو اې زما ربه! زما دپاره څه نشانی مقرر کړه په کوم سره چه پته اولګی چه حمل په خائی شوې دې. وئی فرمائیل ستا نښه به دا وی چه ته به خلقو سره درې شپې خبرې نه شې کولې.

**قوله: ویقال صحیحا:** دلته امام بخاری رحمه الله دَ سویا معنی صحیحا خودلې ده او دادَ عبدالرحمن بن زید بن اسلم رحمه الله قول دې [1] یعنی ته به صحیح او روغ جوړ کیدو سره هم درې شپې خلقو سره خبرې نه شې کولې. جمهور مفسرینو دې معنې ته ترجیح ورکړې ده. [2] دَ زید بن اسلم رحمه الله په روایت کښې دی: «یحبس لسانه فکان لا یستطیع أن یتکلم وهو یقرأ التوراة ویسبح ولا یستطیع أن یکلم الناس» [3] یعنی دَهغه ژبه بنده کړې شوې وه داسې چه هغه خلقو سره په خبرو کولو باندې قادر نه وو. حالانکه دَتورات تلاوت به ئې کولو او تسبیح به ئې هم کولې.

حضرات مفسرین سویا دَ متتابعا په معنی کښې اخستې دې. لیکن دَ جمهورو په نیز دَدې مطلب دادې چه ته به دَ ګونګاتوب دَ بیمارئی نه محفوظ پاتې کیدو سره دَ خبرو کولو دَ طاقت باوجود خلقو سره درې ورځې خبرې اترې نه شې کولې.

**قوله: فخرج علی قومه من المحراب فأوحی إلیهم أن سبحوا بکرة وعشیا** یعنی زکریا علیه السلام دَ عبادت دځائی نه وتو سره خپل قوم له راغلو او هغوی ته ئې په اشاره سره هدایت ورکړو چه تاسو سحر مابنام (دَ الله تعالی) تسبیح کوئی.

**فأوحی: فأشار:** امام بخاری رحمه الله دَ ایحا معنی په اشاره سره کړې ده. یعنی زکریا علیه السلام مذکوره هدایت په ژبه سره ورکولو په ځائی اشارتًا ورکړې وو. زکریا علیه السلام په ژبه سره په خبرو اترو قادر نه وو. ښکاره خبره چه په خپله خبره باندې بل پوهه کولو دپاره هغه په سترګو وریځو او لاسونو سره مخصوص اشارات به کړې وی. [4] بعض مفسرین فرمائیلی دی چه زکریا علیه السلام دا هدایت په زمکه باندې لیکلې وو. [5]

حضرت زکریا علیه السلام ته دَ ورکړې شوی بشارت مطابق یحیی علیه السلام پیدا شو او لوئی شو نو هغه ته دَ نبوت دَ فرائضو حکم ورکړې شو. مخکښې امام بخاری رحمه الله دَ سورت مریم دَ کومو آیاتونو طرف ته اشاره کړې ده په هغې کښې هم دغه مضمون وارد دې

**قوله: یا یحیی خذ الکتب بقوة إلی قوله ویوم یبعث حیا:** دَ سورت مریم آیاتونه دی. ﴿یٰیَحْیٰی خُذِ الْکِتٰبَ بِقُوَّةٍ ۖ وَاٰتَیْنٰهُ الْحُکْمَ صَبِیًّا ۝ وَّحَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا وَزَکٰوةً ۖ وَکَانَ تَقِیًّا ۝ وَّبَرًّا بِوَالِدَیْهِ وَلَمْ یَکُنْ جَبَّارًا عَصِیًّا ۝ وَسَلٰمٌ عَلَیْهِ یَوْمَ وُلِدَ وَیَوْمَ یَمُوْتُ وَیَوْمَ یُبْعَثُ حَیًّا ۝﴾ یعنی چه کله یحیی علیه السلام لوئی شو نو الله تعالی هغه ته حکم ورکړو چه اې یحیی! کتاب (تورات) په مضبوطیا سره اونیسه په دې باندې پخپله عمل کولو سره نورو ته هم په دې باندې دَعمل کولو دعوت ورکړه او مونږ هغه ته په وړوکوالی کښې هوښیارتوب ورکړې وو او خاص دَخپل طرف نه دَ زړه نرمی او پاکوالی ورکړې وو او هغه ډیر پرهیزګاره وو او دَ خپل مورپلار خدمت کونکې وو سخت ګیر او نافرمان نه وو. او په هغه باندې (دَ الله

---

[1] فتح الباری: ۵۷۹/۸.
[2] إرشادالساری: ۳۸۲/۷.
[3] فتح الباری: ۵۷۹/۸.
[4] إرشادالساری: ۳۸۲/۷.
[5] إرشادالساری: ۳۸۲/۷والبدایة والنهایة: ۴۳۲/۲دارالمعرفة. روح المعانی: ۷۱/۱۶إحیاء التراث العربی.

تعالى دَ طرف نه، سلام دي په هغه ورځ هم په كومه ورځ چه پيدا شو او په هغه ورځ هم په كومه چه په هغه باندې مرګ راځى او په هغه ورځ هم په كومه چه به دوباره اوچتولې شى.
دَحضرت يحيىٰ عليه السلام ولادت په ورخت دَ حضرت زكريا عليه السلام عمر دَ يو قول مطابق يوسل شل كاله دَ دويم قول مطابق اته كم سل كاله او دَدريم قول مطابق دوه كم سل كاله وو. او يو قول دا هم دي چه يو كم سل كاله وو (١)
دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه حضرت يحيىٰ عليه السلام او حضرت عيسىٰ عليه السلام دَ ترور خامن وو.(٢) دَحضرت يحيىٰ عليه السلام ولادت دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام نه شپږ مياشتې وړاندې شوې.(٣) دَ تفسير الطبري دَدې روايت مطابق دَ دواړو دَ حمل اوپيدائش زمانه نيزدې نيزدې معلوميږى. چنانچه هم دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه عيسىٰ بن مريم عليه السلام او يحيىٰ بن زكريا عليه السلام دَدواړو حمل په يوځائى شوې يوځل دَ يحيىٰ رضي الله عنه مور مريم عليهما السلام ته اووئيل «إني أرى مافي بطني يسجد لمافي بطنك» يعنى زه دا وينم چه زما په خيټه كښې بچې ستا په خيټه كښې بچې ته سجده كوى. دا روايت نقل كولو نه پس مالك بن انس رحمه الله فرمائى چه دَ مور په رحم كښې دننه دَ يحيىٰ عليه السلام حضرت عيسىٰ عليه السلام ته سجده كول زما په خيال كښې دَعيسىٰ عليه السلام دَ فضيلت دَ وجې نه وه.(٤)

**قوله: وآتيناه الحكم صبيا دَ نبوت ملاويدو په وخت دَحضرت يحيىٰ عليه السلام عمر:** په آيت كښې دَحكم نه مراد فهم فى الدين دي(٥) او مطلب دا دي چه هم په وړوكوالى كښې الله تعالى علم فهم او هوښيار توب ورکړې وو. په وړوكوالى كښې دَ لوبو توقو طرف ته زيات خيال وى. ليكن يحيىٰ عليه السلام په دغه عمر كښې هم دَ لوبو اوتماشو نه لرې وو. چه همزولو به دَ لوبو دپاره اصرار كولو نويحيىٰ عليه السلام به دا جواب وركولو چه الله تعالى زه دَ لهو لعب دپاره نه يم پيدا كړې.(٦) دا دَ الله تعالى تكوينى نظام دي چه دَ نبوت او رسالت دَ منصب دپاره دَمنتخب شخصياتو طبائع او نفسيات دَ عامو خلقو نه مختلف وى. لكه چه هغوى په تكوينى توګه باندې په دې عمر كښې دَ مشق دَ مراحل نه تيريږى چه رياضت او عبادت او دَ ازمينبت او امتحان په پوړنى باندې ختلو سره دَ نبوت ذمه وارئى سنبالولو دپاره تيار شى. نو يحيىٰ عليه السلام ته هم دَ وړوكوالى نه علم اوفضل وركړې شو، دې دپاره چه هغه دَ نبوت كار سنبال كړى. هم دغه دَ ﴿وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا﴾ مفهوم دي.(٧)
بعض حضرات فرمائى چه حضرت يحيىٰ عليه السلام ته په دوو كاله عمر كښې نبوت ملاؤشو اوبعض دي نه هم كم عمر خودلې دي. مولانا حفظ الرحمن سيوهاروى رحمه الله ډيره معقول خبره كولوسره دَدې ترديد كړې دي. مولانافرمائى چه په دې عمر كښې هغه نبى جوړ كړې وى صحيح خبره نه ده. خكه چه دَ نبوت په شان اهم او دَ لوئى شان والا فريضه په كم عمر كښې وركړې كيدل دنقل نه نه دى ثابت اوعقل دا نه منى.(٨)

---

(١) دَدې اقوالو دپاره اوګورئى: فتح البارى: ٥٩٨.
(٢) تفسير الطبرى: ٣٧٢/٥سورة آل عمران رقم الآية: ٣٩دارهجر.
(٣) تفسير الإمام الرازى: ٢١١/٨سورة آل عمران رقم الآية: ٣٩دارإحياء التراث العربى. تفسير الطبرى: ٣٧٢/٥سورة آل عمران رقم الآية: ٣٩دارهجر.
(٤) المصدر السابق.
(٥) فتح البارى: ٥٨٠/٨روح المعانى: ٧٢/١٦دارإحياء التراث العربى.
(٦) البداية والنهاية: ٤٠١/٢روح المعانى: ٧٢/١٦دارإحياء التراث العربى. كنزالعمال فى سنن الأقوال والأفعال: ٣٠/٢رقم الحديث: ٣٠١١مؤسسة الرسالة.
(٧) حضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله دَمعمر رحمه الله نه هم دغه مطلب نقل كړې دي. اوګورئى البداية والنهاية: ٤٠١/٢داهجر.
(٨) قصص القرآن: ٥٧١/٢.

**دَحصور مطلب:** حضرت زکریا علیه السلام چه کله الله تعالی ته دَ خوئی درخواست اوکړو نوهغه وخت هغه دَ عمر نو صحت په داسې مرحله کښې وو چرته چه دَ اولاد پیدا کیدو ټول امیدونه ختم شوي وی بل طرف ته بی بی نی هم شنډه وه هغه دې غم خوړلو چه په آل یعقوب کښې به دَ نبوت کومه سلسله چه روانه ده هغه به ختمه شی. په دې حالاتو کښې هغه په مضطرب زړه سره دَ خومره سوال زارئی په حالت کښې دَ الله تعالی نه دَخوئی درخواست کړې وی او څنګه دَ زړه په درد سره به آواز وتلې وی دَ الله تعالی رحمت په جوش کښې راغلو اودَهغه دعا نی تکې په تکې پوره کړه. حضرت زکریا علیه السلام په خپله حجره کښې دننه په مانځه دَ قیام په حالت کښې وو چه فرښتې هغه ته دَ خوئی زیرې ورکړو. ﴿أَنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَىٰ مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللَّهِ وَسَيِّدًا وَحَصُورًا وَنَبِيًّا مِّنَ الصَّالِحِينَ﴾ په دې آیت کښې چه دَ یحیٰی علیه السلام کوم اوصاف بیان کړې شوي دی په هغې کښې یو حصور هم دې. دا دَمفعول په وزن دَ مبالغه صیغه ده اودَ مفسرینو په نیزددې معنی ده دَ ښځو نه لرې اوسیدونکې. عفیف او پاکدامن دَ چا په زړه کښې چه دَ ګناه خواهش کله هم نه وی پیدا شوې. دَ حصر معنی په لغت کښې دَ بندیدلو راځی په دې لحاظ سره دحصور دا مطلب هم جوړیږی چه دَ نفس خواهشات بندونکې. مفسرین کرام دَ لفظ حصور دا مختلف معنې بیان کړی دی چه په حقیقت کښې هم دَ یو مفهوم مختلف تعبیرونه دی اودا ټولې معانې په حضرت یحیٰی علیه السلام باندې صادق راځی.

دَ بعض حضراتو په نیزحصور داسې سړی ته وائی چه په فطری توګه باندې دَ مردانه قوت نه محروم کیدو دَ وجې ښځوته نیزدې شوې هم نه وی مګر دلته دا معنی مراد اخستل قطعاً صحیح نه ده او دَ قوت دَ نشت والې دَ وجې نه په زړه کښې نفسانی خواهش نه پیدا کیدل یا ښځوته نه نیزدې کیدل، قابل تعریف یا دَ کمال خبره نه ده. دا دسړی دپاره نقص اوعیب دې. په معاشره کښې داسې سړې معیوب ګڼړلې شی. انبیاء کرام علیهم السلام دَهر معاشرتی عیب اونقص نه معصوم پیدا کیږی.

دَ غور خبره داده چه دَ یحیٰی علیه السلام په تذکره کښې لفظ حصور په مقام مدح او تعریف کښې وارد شوي دې اودا دَ مقام مدح مناسب اول الذکرمعنی کښې خو کیدې شی په دویمه کښې هیڅ کله نه شی کیدې. قاضی عیاض رحمه الله او نورو محدثینو په دې دویمه معنی باندې ردکړې دې او فرمائیلې دی چه دَجمهورو په نیز دا قول باطل دې.[1]

**دَ یحیٰی علیه السلام دَ الله تعالی نه دَ ویرې بیان:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی یحیٰی علیه السلام به دَ الله تعالی دَ ویرې نه اکثر ژړا کوله تردې چه دَ اوښکو قطارونو دَهغه په اننګو باندې نښې جوړې کړې وې.[2]

حضرت زکریا علیه السلام یو ځل دَهغه په لټون کښې اووتلو. یحیٰی قبر کنستلې وو او په هغې کښې ژړل حضرت زکریا علیه السلام چه هغه داسې دَ ژړا په حالت کښې اولیدلو نووئی فرمائیل: زه دَ دریو ورځونه تا لټوم اوته دلته په ژړا فریاد کښې مشغول نې. نو یحیٰی علیه السلام جواب ورکړو «ياأبت ألست أنت أخبرتنى أن بين الجنة والنار مفازة لا يقطع إلا بدموع البكائين»، یعنی هم تاسو ماته خودلې وو چه دَ جنت او اور په مینځ کښې یو خالی میدان دې چه دَ الله تعالی دَ ویرې نه اوښکې بهیولو نه بغیر نه شی قطع کیدې. دې اوریدو سره حضرت زکریا علیه السلام هم په ژړا شو او وئی فرمائیل: «ابك يابنى».[3]

**دَزکریا علیه السلام او یحیٰی علیه السلام دَ شهادت واقعه.** مؤرخین اسلام لیکلی دی چه کوم وخت یحیٰی علیه السلام یهودیانوته دالله تعالی دَ دین دعوت ورکړو نودَهغه دښمنان جوړشو دَهغې په قتل کولوپسې شو دَهغوی دَ شهادت واقعې

---

[1] الشفاء بتعريف حقوق المصطفى: ۶۶/۱ملتزم الطبع والنشر عبدالحميد أحمدالحقيقى.

[2] البداية والنهاية:۲/۴۳۷-۴۳۶.

[3] البداية والنهاية: ۵۷/۲قصة زكريا ويحيٰى عليهما السلام دارالكتب العلمية.

باره کښې ابن اسحاق رحمه الله وائی داسې پیښنه شوه چه دهغه وخت بادشاه دخپلې ښځې په لور باندې عاشق شو او بادشاه هغې سره نکاح کول غوښتل. نو یحیٰی علیه السلام جینئی ته تلقین اوکړو چه ته چونکه د بادشاه د ښځې لورئی یې دې وجه نه د بادشاه دپاره هیڅ صورت حلال کیدې نه شي. جینئی هم د نکاح خواهش منده وه. هغې بادشاه سره سازش اوکړو او یحیٰی علیه السلام ئې شهید کړو.

د حضرت یحیٰی علیه السلام د شهید کولو نه پس یهودیانو د زکریا علیه السلام د قتل کولو اراده اوکړه. یهود هغوی له نیزدې راغله نو هغه د خپل خان بچ کولو دپاره اوتختیدو. په منډو منډو کښې یوه ونه راغله او حضرت زکریا علیه السلام د هغې په چاؤدې کښې داخل شو. په دغه چاؤدې کښې د ننوتلو نه پس هغوی دې شهید کړو یا په خپل مرګ وفات شو؟ په دې کښې دوه اقوال دی او دواړه د وهب بن منبه رحمه الله نه نقل دی. یو دا چه بدبخت یهودیانو په هغه ونه باندې آره اوچلوله او چه آره د زکریا علیه السلام د پوښتو پورې راؤرسیدله نو وحی راغله چه که ته ژړا فریاد اوکړو نو مونږ به زمکه په هغوی باندې راواړوو اوکه د صبر نه دې کار واخستو نو مونږ به دوی باندې په عذاب ورکولو کښې تادې نه کوو. زکریا علیه السلام دویم صورت ته ترجیح ورکړه او د صبر اوشکر نه ئې کار واخستو. دغه بدبختانو د ونې سره د حضرت زکریا علیه السلام بدن هم په آره چلولو سره دوه ټکړې کړو.(١)

دویم قول دا دې چه دا واقعه د حضرت اشعیا علیه السلام سره پیښه شوې او په زکریا علیه السلام باندې طبعی مرګ راغلې. (٢)اولنې قول زیات مشهور دې چه هغه شهید کړې شوې وو. د حضرت زکریا علیه السلام او حضرت یحیٰی د شهادت د مقام باره کښې چه څومره اقوال دی هغه د اضطراب نه خالی نه دی. په دې وجه د دواړو د شهادت مقام تحدید په یقین سره نه شی کیدې.(٣)

حفیا: لطیف: د سورت مریم آیت دې. ﴿قَالَ سَلٰمٌ عَلَيْكَ ۚ سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيْ ۗ اِنَّهٗ كَانَ بِيْ حَفِيًّا﴾ امام بخاری رحمه الله د حفیا معنی لطیف کړې ده یعنی مهربان.

[۳۲۴۷]- حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ: أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُمْ عَنْ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ "ثُمَّ صَعِدَ حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الثَّانِيَةَ فَاسْتَفْتَحَ، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، فَلَمَّا خَلَصْتُ فَإِذَا يَحْيَى وَعِيسَى وَهُمَا ابْنَا خَالَةٍ، قَالَ: هَذَا يَحْيَى وَعِيسَى فَسَلِّمْ عَلَيْهِمَا، فَسَلَّمْتُ فَرَدَّا، ثُمَّ قَالَا: مَرْحَبًا بِالأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ" ص ۶۰۴ ][ر: ۲۰۳۵ ](۴)

## تراجم رجال

**هدبة بن خالد**: دا هدبة بن خالد بن ابی الاسود قیسی رحمه الله دې (۵)

**همام بن یحیٰی**: دا همام بن یحیٰی بن دینار العوذی رحمه الله دې. (۶)

---

(١) البدایة والنهایة: ۴۳۵/۲ دارالمعرفة بیروت.

(٢) المصدر السابق.

(٣) دتفصیل دپاره اوګورئی: البدایة والنهایة: ۴۰۶/۲ دارهجر. وقصص القرآن: ۵۷۶/۲-۵۷۵.

(۴) مرتخریجه فی کتاب بدء الخلق باب ذکر الملائکة صلوات الله علیهم رقم: ۳۲۰۷.

(۵) اوګورئی: کتاب مواقیت الصلاة باب فضل صلاة الفجر. رقم: ۵۷۴.

(۶) اوګورئی: کتاب مواقیت الصلاة باب من نسی صلاة فلیصل إذا ذکر. رقم: ۵۹۷.

**قتاده:** دا قتاده بن دعامة سدوسى رحمه الله دي. ددوى تذكره «كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه» لاندې تيره شوې ده.([1])

**مالک بن صعصعة:** دا مالك بن صعصعه بن وهب انصارى رضى الله عنه دي.([2])

**دحديث ترجمه اوشرح:** په روايت كښې مالك بن صعصعه انصارى رضى الله عنه وائى چه رسول الله ﷺ خلقو ته د معراج د شپې واقعه بيان كړه (پوره حديث باب ذكر الملائكة كښې راغې. دلته امام بخارى رحمه الله د حديث يو جز نقل كړې دې). بيا جبرائيل عليه السلام پورته اوختلو تردې چه دويم آسمان ته اوختلو نو جبرائيل عليه السلام پرې دروازه كولاؤ كړه تپوس اوكړې شو څوك دې؟ (دا دربان وو) هغه اوونيل جبرائيل. تپوس اوكړې شو تاسره څوك دې؟ جبرائيل عليه السلام اوونيل محمد ﷺ تپوس اوكړې شو آيا دې راغوښتې شوې دې؟ نو جبرائيل اوونيل او. رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كله زه هلته اورسيدم نو يحيىٰ عليه السلام او عيسىٰ عليه السلام يو خائې ناست وو او هغه دواړه د ترور خامن دى. د حضرت مريم بنت عمران عليها السلام د مور نوم "حنه" او د حضرت يحيىٰ عليه السلام د مور نوم ايشاع وو.([3])

د حضرت يحيىٰ عليه السلام او حضرت مريم مور دواړه سكه خوئندې وې. چونكه په عرف كښې د ترور د اولاد، اولاد ته هم د ترور خوئى وئيلې شى په دې وجه رسول الله ﷺ د مجاز متعارف په توګه دواړو ته د ترور خامن اوونيل.([4]) جبرائيل اووئيل دا دواړه يحيىٰ او عيسىٰ دى. دوى ته سلام اوكړه چنانچه ما هغوى ته سلام اوكړو نو دواړو د سلام جواب راكړو بيا دواړو اوونيل «مرحبا بالأخ الصالح والنبى الصالح». علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه كيدې شى د دغه نسبى نيزديكت د وجې نه حضرت عيسىٰ عليه السلام او حضرت يحيىٰ عليه السلام په يو خائې وى.([5])

امام بخارى ته د حضرت يحيىٰ عليه السلام په تذكره كښې د حديث اسراء نه علاوه په خپل شرط باندې هيڅ يو روايت ملاؤ نه شو. په دې وجه د باب لاندې د حديث اسراء هغه حصه نقل كړه په كومه كښې چه د حضرت يحيىٰ عليه السلام ذكر راغلې دې.([6])

امام ترمذى رحمه الله د حارث اشعرى رضى الله عنه يو روايت نقل كړې دې. په روايت كښې حضرت اشعرى رضى الله عنه وائى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله تعالى حضرت يحيىٰ عليه السلام ته په پنځو خبرو باندې پخپله عمل كولو سره بنى اسرائيل ته هم د هغې تلقين كولو حكم وركړو. نيزدې وه چه حضرت يحيىٰ عليه السلام ته په دغه حكم باندې عمل كولو كښې تاخير كيدلو چه عيسىٰ عليه السلام هغه ته اوفرمائيل الله تعالى تاته په پنځو خبرو باندې پخپله د عمل كولو او بنى اسرائيلو ته د هغې د تلقين حكم كړې وو او دا فريضه خو به يا ته سر ته اورسوې يا بيا ما پريږده چه زه ئې پوره كړم. يحيىٰ عليه السلام اوفرمائيل زه ويريږم چه ته زمانه وړاندې شوې نو ماته به سخته سزا راكړې شى يا به په زمكه كښې ورخښ كړې شم. دې نه پس حضرت يحيىٰ عليه السلام بنو اسرائيل په بيت المقدس كښې راجمع كړل تردې چه جمات ډك شو نو هغه په منبر كيناستو يحيىٰ عليه السلام د الله تعالى حمد او ثنا بيانولو نه پس اوفرمائيل چه الله تعالى ماته د پنځو خبرو حكم راكړې دې چه زه په خپله هم په دې باندې عمل اوكړم او تاسو خلقو ته هم په دې باندې د عمل كولو تلقين اوكړم.

---

[1] كشف البارى: ۳/۲.

[2] اوګورئى بدء الخلق باب ذكر الملائكة صلوات الله عليهم: رقم: ۳۲۰۷.

[3] فتح البارى: ۵۷۹/۸، إرشاد السارى: ۳۸۳/۷.

[4] فتح البارى: ۵۷۹/۸، إرشاد السارى: ۳۸۳/۷.

[5] شرح الكرمانى: ۷۵/۱۴، عمدة القارى: ۲۲/۱۶.

[6] فتح البارى: ۴۶۷/۶، عمدة القارى: ۳۱/۱۶ دار الكتب العلمية.

① اول حكم دا چه دَ الله تعالى عبادت كوئى اوهغه سره بل څوك شريك مه ګرځوئى. دَمشرك مثال دَهغه غلام په شان دې كوم چه يو مالك په خپل خالص سرو سپينو زرو سره واخلى اودَهغه غلام طريقه دا وى چه هغه خپله ګټه دَ مالك په ځائى بل چاته وركوى. آيا په تاسو كښې څوك هم داغوارې چه دَهغه غلام دې دا سې نافرمانه وى؟ الله تعالى تاسو پيدا كړئى اوهم هغه تاسو ته رزق دركړو. لهذا تاسو هم دَ هغه عبادت كوئى اوهغه سره څوك شريك مه ګرځوئى.

② الله تعالى تاسو ته دَ مونځ كولو حكم دركړې دې كوم وخت چه تاسو مونځ كوئى نو اخواديخوا خيال مه ساتئى. ځكه چه تركومې تاسو په مانځه كښې بل طرف ته متوجه نه شئى نو الله تعالى به ستاسو طرف ته دَ التفات نظر ساتى.

③ الله تعالى تاسوته دَ روژې ساتلو حكم دركړې دې. دَ روژه دار مثال دَهغه سړى په شان دې چاسره چه دَ مشك نه ډكه تهيلۍ وى اوهغه دَملګرو په ډله كښې وى اودَمشكو خوشبوئى ټوله ډله راكاړى. دَ الله تعالى په نيز دَ روژه دار دَ خلې بوئى دَ مشك نه زيات خوښ دې.

④ الله تعالى دَ صدقه وركولوحكم هم وركړې دې. دَ صدقه وركونكى مثال دَهغه سړى په شان دې څوك چه خپل دښمن راګير كړې اولاسونه ترلې ئى دَ قتل كولوځائى ته بوځى په دې حال كښې هغه اووائى «هل لكم أن افتدي نفسى منكم»كه زه دَ ځان په ځائى فديه پيش كړم نوته به په هغې باندې راضى شئ؟ اوآخر هغه دَ خپل ځان دَ خلاصولو بدله پوره مال دَ فديه په توګه پيش كړى.

⑤ زه تاسو ټولو ته دَالله تعالى دَ ذكر په كثرت سره دَ كولو تلقين كوم. په كثرت سره دَ ذكر كونكى مثال دَ هغه سړى په شان دې چه دښمن په ډيره تيزئى سره هغه پسې لګيدلى وى اوهغه دَخپل ځان بچ كولودپاره په يوه مضبوطه قلعه كښې پناه واخلى. نودَ شيطان دَ حملونه دَبچ كيدو دپاره دَ الله تعالى ذكر دَ ټولو نه مضبوط دَ پناه ځائى دې.

حارث اشعرى ﷺ وائى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل زه هم تاسو ته دغه شان دَ پنځو خبرو حكم دركوم دكوم چه الله تعالى ماته حكم راكړې دې: ① لزوم جماعت ② سمع ③ طاعت ④ هجرت او ⑤ جهاد في سبيل الله. حقيقت دادې چه كوم سړې يو ليشت په اندازه د جماعت نه بهر شو لكه چه هغه دَ خپل سټ نه دَاسلام رسئى كوزولوسره اوغورزوله. تردې چه هغه واپس شى او بيا جماعت كښې شامل شى. او چا چه دَ جاهليت دَ زمانې نعره اوچته كړه هغه به دَ دوزخ خشاك جوربرى. په دې موقع باندې چا اوونيل يا رسول الله! سره دَدې چه هغه مونځ ګذار او روژه دار وى؟ حضورپاك اوفرمائيل او، سره دَدې چه مونځ ګذار او روژه دار وى اودا ګنړى چه زه مسلمان يم.[1]

**دَ حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث اوترجمة الباب كښې مناسبت واضح دې. ځكه چه دَحضرت زكريا عليه السلام په قصه كښې دَحضرت يحيى عليه السلام هم تذكره ده.[2]

## ۴۵ ـ باب: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى: ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا﴾ /مريم: ۱۶/:

﴿إِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ إِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ﴾ /آل عمران: ۴۵/. ﴿إِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰٓى اٰدَمَ وَنُوحًا وَاٰلَ إِبْرٰهِيمَ وَاٰلَ عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِينَ ـ إلى قوله ـ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ﴾ /آل عمران: ۳۳ ـ ۳۷/.

---

[1] سنن الترمذى كتاب الأمثال باب ماجاء فى مثل الصلاة والصيام والصدقة، رقم الحديث: ۲۸۶۳.

[2] عمدة القارى: ۲۲/۱۶.

**د ترجمة الباب مقصد:** دا باب امام بخارى رحمه الله د حضرت مريم عليها السلام د حالاتو او اخبار بيانولو د پاره قائم كړى دى.[1]

مريم د سريانى ژبې لفظ دى او د دې معنى ده خادم.[2] چونكه دا د ام عيسىٰ عليهما السلام نوم دى نو ځكه دا د علميت او تانيث د وجې نه غيرمنصرف دى[3] د سورت آل عمران آيت دى: ﴿إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَانَ رَبِّ إِنِّي نَذَرْتُ لَكَ مَا فِي بَطْنِي مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّي﴾ ارقم الآية: ۳۵ يعنى اى زما ربه: زما په خيټه كښې چه كوم بچى دى ما ستا د پاره نذر منلى دى چه دى آزاد پريږدم. د آزاد پريخودو مطلب دا وو چه هغه به صرف د بيت المقدس خدمت كوى. دى نه علاوه به په هغه باندې بل ځه كار نه شى كولى. د حضرت مريم پلار ته هغه وخت علم نه وو چه پيدا كيدونكى بچى هلك نه بلكه جينئى ده. ليكن بهرحال جذبه ئى هم دغه وه چه لونى شى نو د بيت المقدس خادم به وى. چه جينئى پيدا شوه نو هم د دغه جذبې لاندې ئى د هغې نوم مريم يعنى خادم كيخودو. والله اعلم بالصواب.

**د حضرت مريم عليها السلام مور پلار: عمران او حنة:** د محمد اسحاق رحمه الله او ابن عساكر رحمه الله د حضرت مريم عليها السلام د پلار عمران په سلسله د نسب كښې اختلاف دى. مگر دومره خبره فيصله شوى ده چه حضرت مريم عليها السلام د حضرت داؤد عليه السلام د اولاد نه ده. بل د حضرت مريم عليها السلام پلار عمران او مور حنة دواړه په تقوى او عبادت كښې بنواسرائيل كښې مشهور وو. د هغه وخت نبى حضرت زكريا عليه السلام وو چه د حضرت مريم د خور ايشاع خاوند وو خو يو قول دا هم دى چه ايشاع د حضرت مريم ترور وه.[4]

د هغوى اولاد نه وو او لكه ځنگه چه بې اولاد جوړه د اولاد خواهش بې تابه كړى وى دا دواړه هم د اولاد خواهش مند وو او د الله تعالى نه به ئى دعا كوله. آخر الله تعالى د هغوى دعا قبوله كړه او د حنة حمل شو. حنة نذر او منلو كه چرې هلك شو نو هغه به د بيت المقدس خادم وى.[5]

كله چه د وضع حمل وخت شو او په خانى د هلك جينئى پيدا شوه نو حنة افسوس اوكړو. قرآن كريم دا واقعه معجزانه اسلوب كښې داسې بيان كړې ده: ﴿إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَانَ رَبِّ إِنِّي نَذَرْتُ لَكَ مَا فِي بَطْنِي مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّي إِنَّكَ أَنتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝ فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنثَىٰ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنثَىٰ وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ۝ فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ وَأَنبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا﴾ يعنى كوم وخت چه د عمران بى بى وئيلى وو اى ربه ما نذر منلى دى چه زما په خيټه كښې كوم بچى دى زه به د هر يو كار نه آزاد و م او ستا د پاره به ئى وقف كوم. زما دا نذر قبول كړه. بيشكه ته اوريدونكې او د هرڅيز علم لرونكى ئى بيا چه كله د هغې جينئى پيدا شوه نو هغې (په ارمان سره) اووئيل اى ربه زما خو لور اوشوه. حالانكه الله تعالى ته ښه علم وو چه د هغې ځه پيدا شوى دى او هلك د جينئى برابر نه دى (بيا حنة) اووئيل اى ربه ما د دې نوم مريم كيخودو او دا او د دې اولاد نه د شيطان مردود نه د حفاظت د پاره ستا په پناه كښې وركوم. چنانچه د هغې رب (مريم) په ښه شان سره قبوله كړه او د هغې پالنه په ښه طريقه باندې اوكړه او زكريا د هغې نگران جوړ شو.

﴿وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنثَىٰ﴾ جمله معترضه ده او دا د مريم عليها السلام د مور قول نه دى. علامه بيضاوى رحمه الله د دې دا تفسير كړى دى. «وليس الذكر الذي طلبت كالأنثى التي وُهبت» يعنى كوم هلك چه تا غوښتې دى هغه د دغه جينئى په

---

[1] فتح البارى: ۵۸۰/۸.

[2] المصدر السابق.

[3] المصدر السابق.

[4] البداية والنهاية: ۴۱۸/۲-۴۱۷ دارهجر.

[5] البداية والنهاية: ۴۱۸/۲-۴۱۷ دارهجر.

شان نه شی کیدې چه تاته هبه کړې شوې ده. مطلب دا چه هم دا جینئی افضل ده او په دې کښې هغه کمالات او فضائل دی چه ستا غوښتلې شوې هلك کښې نشته دې.[۱]

**حضرت مريم دَ بيت المقدس دَخدمت دَپاره نذر کول اودَ کفالت بيان:** دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روايت دې چه دَ ولادت نه پس حنة مريم عليها السلام په کپړه کښې اونغښتله او بيت المقدس ته ئې بوتله او په بيت المقدس کښې چه به کومو خلقو په کثرت سره عبادت کولو اوهلته به اوسيدل دَهغوی په خدمت کښې پيش کړه. دَ مريم پلار دَهغوی امام پاتې وو په دې وجه ټولو جګړې کولې هريوغوښتل چه دَخپل امام دَ لور کفالت په خپله ذمه واخلی. حضرت زکريا عليه السلام دَهغه وخت نبی وو هغه دَ رشتې په بنياد باندې خپل ځان دَ مريم دکفالت زيات حقدار ګڼړلو اودَدې خبرې اظهارئې دَ ټولو په وړاندې اوکړو نوهغوی دَ خسنړې اچولو تجويز پيش کړو. چه خسنړې اوويستلې شو نو هغه دَ حضرت زکريا عليه السلام په نوم راؤوتله. هغوی په دويم ځل او په دريم ځل دَ خسنړې ويستو مطالبه اوکړه اوهرځل خسنړې هم دَ زکريا عليه السلام په نوم راؤوتلو.[۲]

دغه شان حضرت زکريا عليه السلام حضرت مريم عليها السلام په خپل کفالت او پالنه کښې واخستله. حضرت زکريا عليه السلام دَحضرت مريم دَپاره هيکل سره نيزدې يوه کمره دَهغې دَپاره خاص کړه دې دَپاره چه هغه ټوله ورځ په دې کښې عبادت کوی. چه شپه به شوه نو هغه به ئې خپل کورته بوتله.[۳]

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَآلَ عِمْرَانَ الْمُؤْمِنُونَ مِنْ آلِ إِبْرَاهِيمَ وَآلِ عِمْرَانَ وَآلِ يَاسِينَ وَآلِ مُحَمَّدٍ ﷺ. يَقُولُ: ﴿إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ﴾ /آل عمران: ۵۸/: وَهُمُ الْمُؤْمِنُونَ. وَيُقَالُ: آلُ يَعْقُوبَ أَهْلُ يَعْقُوبَ، فَإِذَا صَغَّرُوا آلَ ثُمَّ رَدُّوهُ إِلَى الْأَصْلِ قَالُوا: أُهَيْلٌ.

امام بخاری رحمه الله دَ باب لاندې دريم آيت دَ آل عمران نقل کړې دې: ﴿إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَى آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ﴾ دَدې لاندې امام بخاری رحمه الله دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما قول نقل کړې دې چه په آيت کښې دَ «آل عمران» نه آل ابراهيم، آل عمران، آل ياسين او آل محمد ﷺ مؤمنين مراد دی. بيا دَدې په تائيد کښې امام بخاری رحمه الله هم دَ ابن عباس رضی الله عنهما يو قول نقل کړې دې چه ﴿إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ﴾ کښې هم آل ابراهيم هغه دی کوم چه دَهغوی متبع او مؤمن وو.

**دَتعليق تخريج:** دا تعليق ابن ابی حاتم رحمه الله دَ علی بن ابی طلحه عنه په طريق سره موصولاً نقل کړې دې.[۴]

**دَتعليق مقصد:** دَدې تعليق ذکرکولونه دَامام بخاری رحمه الله مقصد دا خودل دی چه په آيت کښې ذکر اصطفاء نه مراد دَ آل ابراهيم اوآل عمران نه ټول کسان مراد نه دی بلکه خاص کسان مراد دی چاچه ايمان قبول کړو.[۵]

**قوله: ويقال: آل يعقوب أهل يعقوب......إلخ:** دَ لفظ آل په اصل کښې اختلاف دې. جمهور او امام سيبويه رحمه الله فرمائی چه آل په اصل کښې أهل وو ځکه چه دَدې تصغير أهيل راځی. «والتصغير يرد الأشياء إلى أصلها» دکوم نه پس چه هاء خلاف قياس همزه سره بدله کړه او بيا دَقاعدې مطابق دويمه همزه په الف سره بدله کړه نو آل شو. بعض حضرات فرمائی چه دَ آل اصل آل يؤل نه أول دې. دکوم معنی چه دَ واپس کيدو ده او هر انسان خپل آل

---

[۱] حاشية الشهاب على التفسير البيضاوي، سورة آل عمران: ۳۶، ۳۹/۳ دارلكتب العلمية.

[۲] البداية والنهاية: ۴۱/۲ ۴.

[۳] روح المعاني سورة آل عمران: ۳۷، ۱۴۴/۳ دارإحياء التراث العربي، البداية والنهاية: ۴۲/۲ ۴ دارهجر.

[۴] فتح الباري: ۴۶۹/۶ عمدة القاري: ۳۲/۱۶.

[۵] فتح الباري: ۴۶۹/۶.

(بال بچ) طرف ته راګرځي. واؤ متحرك كړو ذكوم نه پس چه د قاعدې مطابق واؤ ماقبل مفتوح كيدو د وجې نه الف سره بدل كړو نو آل جوړ شو. د دې حضراتو مطابق د لفظ آل تصغير أويل راځي.[1]

[۳۲۴۸]- حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَا مِنْ بَنِي آدَمَ مَوْلُودٌ إِلَّا يَمَسُّهُ الشَّيْطَانُ حِينَ يُولَدُ، فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ، غَيْرَ مَرْيَمَ وَابْنِهَا» ثُمَّ يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ: {وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ} [آل عمران: ۳۶] "ص ۶۱۲" [ر: ۳۱۱۲].[2]

**ترجمه:** د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي چه هيڅ بو ماشوم داسې نه پيدا كيږي كوم ته چه د پيدا كيدو په وخت شيطان لاس اونه لګوي. هغه د شيطان په لاس لګولو سره ژړا كوي. سوا د مريم او ابن مريم نه، يعنې مريم او د هغې ځوئي عيسى عليهما السلام د شيطان د لمس نه محفوظ ساتلى. د دې حديث په بيانولو سره ابوهريره رضی الله عنه د آل عمران دا آيت وئيلې وو. ﴿وَإِنِّيٓ أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَٰنِ الرَّجِيمِ﴾

## تراجم رجال

**ابواليمان:** دا ابواليمان حكم بن نافع بهراني حمصي رحمه الله دې.[3]

**شعيب:** دا ابوبشر شعيب بن مولى حمزه قرشي اموى رحمه الله دې. د دوى تذكره «بدء الوحي» لاندې تيره شوې ده.[4]

**الزهري:** دا مشهور محدث محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دې.[5]

**سعيد بن المسيب:** د دوى تذكره «كتاب الإيمان باب من قال: إن الإيمان هو العمل» لاندې تيره شوې ده.[6]

**د حديث شرح:** د حضرت مريم عليها السلام د پيدائش نه پس حنة وئيلى وو: ﴿وَإِنِّيٓ أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَٰنِ الرَّجِيمِ﴾ يعنې زه مريم او د هغې اولاد د شيطان مردود د شر نه ستا په پناه كښې وركوم. امام قرطبى رحمه الله فرمائي چه د مور د دې دعا په بركت سره الله تعالى مريم عليها السلام د شيطان د شر نه محفوظ اوساتله.[7] چنانچه په روايت كښې راځي چه كوم وخت بچې پيدا كيږي نو هغه خكه چغې وهي چه شيطان هغه باندې په خپله ګوته باندې ځكوندار وركوي.[8] سوا د حضرت مريم او د هغې د ځوئي حضرت عيسى عليهما السلام چه الله تعالى دواړه د شيطان د شر نه محفوظ اوساتل.[9]

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت واضح دې.

---

[1] فتح الباري: ۴۶۹/۶ عمدة القاري: ۳۲/۱۶.
[2] مر تخريجه في بدء الخلق باب صفة إبليس وجنوده، رقم: ۳۲۸۶.
[3] كشف الباري: ۴۷۹/۱.
[4] كشف الباري: ۴۸۰/۱.
[5] كشف الباري: ۳۲۶/۱.
[6] كشف الباري: ۱۵۹/۲.
[7] تفسير القرطبي تفسير سورة آل عمران رقم الآية: ۳۵، ۱۰۳/۵ مؤسسة الرسالة، إرشاد الساري: ۳۸۴/۷.
[8] مسند الإمام أحمد: ۱۳۶/۱۳ رقم الحديث: ۷۷۰۸ مؤسسة الرسالة.
[9] البداية والنهاية: ۴۱۹/۲۰ دار هجر.

## ۴٦ - باب ﴿وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰكِ وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفٰكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ﴾

يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ۞ ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ؕ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ۪ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ۞﴾/آل عمران: ۴۲ – ۴۴/.

يُقَالُ: يَكْفُلُ يَضُمُّ، كَفَلَهَا ضَمَّهَا، مُخَفَّفَةٌ، لَيْسَ مِنْ كَفَالَةِ الدُّيُوْنِ وَشِبْهِهَا.

**ماقبل سره ربط:** دا باب امام بخاري رحمه الله د سابقه باب د فصل په توګه باندې قائم کړې دې. او په دې کښې هم د حضرت مريم عليها السلام حالات بيانول غواړي. د باب لاندې امام بخاري رحمه الله د سورت آل عمران آيت نقل کړې دې: ﴿وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰكِ وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفٰكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ ۞ يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ۞ ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ؕ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ۪ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ ۞﴾ [۴۲ – ۴۴] يعنې هغه وخت يادکړنې چه فرښتو اووئيل اې مريم حقيقت دادې چه الله تعالى ته منتخب کړې ئې او تا ته ئې پاکي درکړې ده او د دنيا په ټولو ښځو کښې ئې هم تا ته په خوښيدو سره فضيلت درکړې دې. اې مريم ته د خپل رب عبادت کوه او سجده کوه او د رکوع کونکو سره رکوع هم کوه: د سجدې ذکر د رکوع نه اول راغلې دې يا خو په دې وجه چه د هغه وخت شريعت کښې هم دغه ترتيب وو او يا بيا ﴿اسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ﴾ کښې واؤ د مطلق جمع د پاره دې.

دې نه پس آيت کښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې چه د حنة نذر منل، د مريم عليهما السلام ولادت او بيا د حضرت زکريا عليه السلام په ترتيب کښې راتلل او مريم عليهما السلام سره د ملائکو د خبرو اترو خبرو کوم چه تا ته درکړې شو ټول د غيب خبرونه دې او د حضور پاک د نبوت د حقيانيت دليل دې. په دې کښې يهودو ته هم تنبيه وه چه د هغوى د آبا او اجداد سره متعلق کوم معلومات محمد (ﷺ) ته ورکړې شو د هغې ذريعه وحى ده. لهذا تاسو د هغه په نبوت باندې ايمان راوړو سره په صراط مستقيم باندې راشئ. چنانچه اوفرمائيلې شو: دا ټولې د غيبو خبرې دې چه مونږ ئې د وحى په ذريعه تا ته درکوو او تاسو هغه وخت هغوى سره نه وې کوم وخت چه هغوى خپل قلمونه اچول (د دې فيصله کولو د پاره) چه څوك به د مريم کفالت کوى او هغه وخت هم ته هغوى سره نه وې کوم وخت چه هغوى په خپل مينځ کښې اختلاف کولو.

**يكفل: يضم، كفلها، ليس من كفالة الدّيون وشبهها:** امام بخاري رحمه الله د آل عمران په آيت کښې «يكفل» او «كفلها» معنى بيان کړې ده چه د دواړو معنى د ملاوولو راځى. بيائې دا اوخودل چه «وكفلها زكريا» کښې «كفلها» تشديد سره نه دې تخفيف سره دې او په آخره کښې اوفرمائيل چه د کفالت نه مراد هغه ضمان نه دې چه د قرض يا د دې په شان نورو معاملاتو کښې کيږى بلکه دې نه مراد معنى مستعار دې يعنى د چا د پرورش او تربيت ذمه وارى اخستل.[1]

[۳۲۴۹] - حَدَّثَنِيْ أَحْمَدُ ابْنُ أَبِيْ رَجَاءٍ، حَدَّثَنَا النَّضْرُ، عَنْ هِشَامٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِيْ أَبِيْ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ جَعْفَرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ

[1] إرشاد الساري: ۳۸۵/۷.

صلى الله عليه وسلم يقول: «خير نسائها مريم ابنة عمران، وخير نسائها خديجة» ص ۶۱۵][۳۶۰۴][1]

## تراجم رجال

**احمدبن ابي رجاء:** دا ابوالولید عبدالله بن ایوب حنفی هروی رحمه الله دي.[2]

**نضر:** دا نضر بن شمیل مازنی مصری رحمه الله دي.[3]

**ابي:** دي نه عروه بن زبیر بن العوام مراد دي. دده تذکره «کتاب الایمان باب أحب الدین إلی الله أدومه» لاندې تیره شوې ده.[4]

**عبدالله بن جعفر:** دا عبدالله بن جعفر بن ابی طالب رحمه الله دي.[5]

**علي رضي الله عنه:** دده تذکره «کتاب العلم، باب اثم من کذب علی النبی صلی الله علیه وسلم» لاندې تیره شوې ده.[6]

دحضرت علی رضي الله عنه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه داسې فرمائیلو سره اوریدلی دی چه مریم بنت عمران دخپلې زمانې بهترین ښځه وه اوخدیجه دخپلې زمانې بهترین ښځه وه.

**د"خیر نسائها مریم بنت عمران" مطلب:** ددې جملې یو صورت دادې چه په «نساءها» کښې د ضمیر مرجع «الدنیا» وی لکه څنګه چه دعلامه زرکشی رحمه الله رائې ده.[7] او د «خير» نه وړاندې «من» مقدر او منلې شی دا د قاضی عیاض رحمه الله رائې ده.[8] اوتقدیر عبارت وی: «من خیرنساء الدنیا مریم بنت عمران» یعنې مریم بنت عمران د دنیا د افضل ښځونه ده. علامه کرمانی رحمه الله فرمانی ضمیر د بنو اسرائیل طرف ته راجع دې[9] په دې صورت کښې به مطلب داشې چه مریم د بنو اسرائیل د ښځونه د ټولو افضل ده. اودا هم وئیلې کیدې شی چه په عبارت کښې مضاف محذوف وی او تقدیر وی: «خیرنساءزمانها مریم بنت عمران» په دې صورت کښې ضمیر هاء د مریم علیها السلام طرف ته راجع وی یعنې مریم د خپلې زمانې د افضل ښځونه ده.

---

[1] أخرجه أيضاً في المناقب، باب تزويج النبي صلى الله عليه وسلم خديجة وفضلها رضى الله عنها. رقم الحديث: ۳۸۱۵ ومسلم في فضائل الصحابة، باب فضائل خديجة رقم: ۲۴۳۰ والترمذي في المناقب، باب مناقب خديجة رضى الله عنها، رقم: ۳۸۸۷.

[2] كتاب الحيض، باب إذا حاضت في شهر ثلاث حيض، رقم: ۳۲۵، ص: ۵۴۳.

[3] كتاب الوضوء باب حمل العَنَزَة مع الماء في الاستحباب رقم: ۱۵۲.

[4] كشف الباري: ۴۳۶/۲.

[5] اوګورئی کتاب العتق باب: في العتق وفضله، رقم: ۳۵۱۷.

[6] كشف الباري: ۱۴۹/۴.

[7] إرشادالساري: ۳۸۶/۷.

[8] عمدة القاري: ۳۴/۱۶ وإرشادالساري: ۳۸۶/۷.

[9] شرح الكرماني: ۷۷/۱۴.

امام نسائی رحمه الله دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روایت نقل کړې دې. په دې کښې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دَ حضرت مریم علیها السلام باره کښې «افضل نساء أهل الجنة» الفاظ وارد دی.(١) او په یو روایت کښې «خیر نساء العالمین» الفاظ هم نقل دی.(٢)

داهم داسې دی لکه چه دَ قرآن کریم آیت: ﴿ وَاصْطَفٰكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ۝ ﴾ . علامه قسطلانی فرمائی چه ظاهری مطلب هم دغه دې چه مریم علیها السلام مطلقًا دَ ټولو ښځونه افضل ده. په دې کښې دَ عالم زمانها قید لګولو سره ترک ظاهر لازم راځی.(٣)

چونکه قرطبی رحمه الله او ابن حزم دَ ښځو دَ نبوت قائل دی.(٤) په دې وجه هغوی دَ مذکوره آیت نه دَ حضرت مریم په نبوت باندې استدلال کړې دې او فرمائیلی دی چه هغه نبیه وه.(٥)

قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دَ اکثر (جمهورو) علماؤ مذهب دادې چه حضرت مریم اوحضرت آسیه هم دَ نورو صاحب فضل ښځو په شان دَ صدیقات اولیاء الله نه وې.(٦) امام نووی رحمه الله په الأذکار کښې دَ امام الحرمین په حواله سره لیکلی دی چه هغوی دَ مریم علیها السلام په نبیه نه کیدو باندې اجماع نقل کړې ده.(٧) بیا امام نووی رحمه الله شرح المهذب کښې هم دا قول دَ فقهاؤ دَ یو ګوټی جماعت طرف ته منسوب کړې دې.(٨) همدغه رائې دَ حضرت حسن بصری رحمه الله هم ده. هغه فرمائی: «لیس فی النساء نبیة ولا فی الجن»(٩) یعنی په ښځو او جنات دواړو کښې هم هیڅ یو نبیه نه ده پاتې.

خلاصه دا چه جمهور دَ ښځو دَ نبوت قائل نه دی او دَ حضرت مریم علیها السلام باره کښې وارد شوې آیت ﴿ وَاصْطَفٰكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ۝ ﴾ کښې دې حضراتو تاویل کړې دې چه دې نه مراد عالمی زمانها ده یعنی حضرت مریم علیها السلام دَ خپلې زمانې دَ دنیا او آخرت دواړو په اعتبار سره افضل ترین ښځه وه.(١٠)

**وخير نسائها خديجة:** مطلب دا چه ام المؤمنین حضرت خدیجه رضی الله عنها دَ دې امت دَ ټولو نه افضل ښځه ده. قاضی

---

(١) سنن النسائی الکبری، کتاب المناقب، مناقب مریم بنت عمران:۳۸۸/۷،رقم الحدیث:۸۲۹۷مؤسسة الرسالة. المعجم الکبیر، ذکر بنات الرسول صلی الله علیه وسلم، ذکر سن فاطمة رضی الله عنها ووفاتها إلخ: ۲۲/۴۰۷،رقم الحدیث: ۱۰۱۹مکتبة ابن تیمیة.

(٢) المعجم الکبیر للطبرانی ذکربنات النبی صلی الله علیه وسلم، ذکر سن فاطمة رضی الله عنها ووفاتهاإلخ: ۲۲/۴۰۲،رقم الحدیث: ۱۰۰۴ابن تیمیة، صحیح ابن حبان ذکر فاطمة الزهراء بنة المصطفی: ۱۵/۴۰۲،رقم الحدیث: ۶۹۵۱مؤسسة قرطبة.

(٣) إرشادالساری: ۳۸۶/۷.

(٤) أحکام القرآن للقرطبی، سورة آل عمران: ۴۲، ۱۲۷/۵-۱۲۶مؤسسة الرسالة.

(٥) فتح الباری: ۵۸۳/۸أحکام القرآن للقرطبی: ۱۲۷/۵-۱۲۶سورة آل عمران رقم الآیة:۴۲مؤسسة الرسالة.

(٦) إکمال المعلم بفوائدمسلم: ۴۰/۷،رقم الحدیث: ۲۴۳۱دار الوفاء للطباعة، فتح الباری: ۵۸۲،۳۸۶/۸.

(٧) الأذکار، للإمام النووی رحمة الله علیه، باب الصلاة علی الأنبیاء وآلهم تبعاً لهم صلی الله علیه وسلم، الفصل الثانی، ص: ۱۰۰،دارالفکر، فتح الباری: ۵۸۲،۳۸۶/۸.

(٨) فتح الباری: ۵۸۶/۸.

(٩) فتح الباری: ۵۸۲/۸.

(١٠) فتح الباری: ۵۸۳/۸

ابوبکر بن عربی رحمه الله فرمائی چه دَدې حدیث په رنړا کښې د امت محمدیه په ښځو باندې د خدیجة الکبری رضی الله عنها فضیلت مطلقه ثابتیږی.(۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه یو څو ابواب مخکښې «باب قول الله تعالی ﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ﴾» کښې د حضرت ابوموسیٰ رضی الله عنه روایت: «کمل من الرجال کثیر ولم یکمل من النساء إلا آسیة امرأة فرعون ومریم بنت عمران» دَدې خبرې تقاضا کوی چه حضرت مریم او حضرت آسیه رضی الله عنها د بقیه ټولو ښځو نه افضل ده او حضرت خدیجه رضی الله عنها دَدې امت افضل ترین ښځه ده. لکه چه په اول حدیث کښې د امت محمدیه د ښځو نه تعرض نه دې کړې دکوم حاصل چه دا راوځی چه پخوانو امتونو کښې حضرت مریم او حضرت آسیه رضی الله عنها افضل ترین ښځې نه دی او په دې دواړو کښې هم مریم علیها السلام زیاته افضل ده. خو امت محمدیه کښې افضل ترین ښځه حضرت خدیجه رضی الله عنها ده.(۲)

## ۴۷- باب: قَوْلُهُ تَعَالَى ﴿إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ﴾

إِلَى قَوْلِهِ ﴿فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ﴾/آل عمران: ۴۵-۴۷/: يُبَشِّرُكِ وَيَبْشُرُكِ وَاحِدٌ ﴿وَجِيهًا﴾ شَرِيفًا. وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ: ﴿الْمَسِيحُ﴾ الصِّدِّيقُ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: الْكَهْلُ الْحَلِيمُ، وَالْأَكْمَهُ مَنْ يُبْصِرُ بِالنَّهَارِ وَلَا يُبْصِرُ بِاللَّيْلِ. وَقَالَ غَيْرُهُ: مَنْ يُولَدُ أَعْمَى.

**د ترجمة الباب مقصد:** امام بخاری رحمه الله دَدې باب لاندې د خوشی بشارت بیانول غواړی چه حضرت مریم ته الله تعالی د طرف نه د فرښتو په ذریعه د خوشی زیرې ورکړې شو. امام بخاری رحمه الله د سورت آل عمران آیت نقل کړې دې ﴿إِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يَا مَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ۝ وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَمِنَ الصَّالِحِينَ ۝ قَالَتْ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي وَلَدٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ ۖ قَالَ كَذَٰلِكِ اللَّهُ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ﴾ [۴۵ - ۴۷] یعنی کوم وخت چه فرښتو مریم ته ونیلی وو چه اې مریم الله تعالی تاته د خپلې کلمې زیرې درکوی دکوم نوم چه به مسیح عیسیٰ بن مریم وی. عیسیٰ علیه السلام ته کلمة الله ځکه اوونیلې شو چه هغه د پلار نه بغیر د الله تعالی د کلمه کن سره پیدا شوې وو چه په دنیا او آخرت کښې به معزز وی او دمقرب بندیګانو نه به وی هغه به په زانګو کښې هم خلقو سره خبرې کوی دې د پاره چه خلقو ته د مریم د عفت او پاکدامنئ ګواهی ورکړې شی او په زیات عمر کښې هم، او د رښتونی خلقو نه به وی. مریم اوونیل اې زما پروردګار! زما به بچې څنګه کیږی حالانکه ماله یو بشر (د صحبت په توګه) لاس نه دې لګولې (نه په جائز طریقه او نه په ناجائز طریقه سره او عادتاً بچې بغیر د پلار نه نه پیدا کیږی نو معلومه نه ده چه هم داسې به صرف د الله تعالی په قدرت سره بچې کیږی یا ماته به د نکاح حکم راکولې شی) او وفرمائیلې شو هم داسې (بغیر د سړی) نه به کیږی. ځکه چه الله تعالی څه غواړی پیدا کوی (یعنی د یو څیز د پیدا کیدو د پاره صرف د الله تعالی غوښتل کافی دی د یوې واسطې یا د څه سبب خاص کیدو ضرورت نشته او د هغه د غوښتلو طریقه داده چه، کله یو څیز پوره کول غواړی نو هغې ته وائی چه اوشه بس هغه څیز کیږی.

**قوله: یبشرك. ویبشرك واحد:** آیت کښې دی ﴿إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ﴾ د قراءت مشهوره مطابق دا شین

---

(۱) فتح الباری: ۵۸۳/۸.
(۲) المصدر السابق.

تشدید سره د باب تفعیل نه دې. امام بخاري رحمه الله فرمائي چه «يُبَشِّرُكَ» د شین تخفیف سره هم لوستلې کیدې شي. د تخفیف قرآت یحیی بن وثاب، ضمره او کسائي رحمة الله علیهم نه نقل دې.[1]

**د مسیح معنی:** «وقال ابراهيم: المسيح الصديق.....» د ابراهیم نه ابراهیم نخعي رحمه الله مراد دې. دې وائي چه مسیح د صدیق په معنی کښې دې. امام طبري رحمه الله فرمائي د ابراهیم نخعي رحمه الله مطلب دادې چه الله تعالی د حضرت عیسی علیه السلام نه ذنوب مسح او پاک کړي وو.[2]

ښکاره خبره ده چه کله هغه د ګناهونو نه پاک کړې شوې نو هغه ته به د صدیقیت درجه حاصلیږي په دې بنیاد باندې ابراهیم نخعي رحمه الله د مسیح معنی صدیق اخستې ده. د ابراهیم نخعي رحمه الله تعلیق سفیان ثوري رحمه الله په خپل تفسیر کښې موصولاً روایت کړې دې.[3]

محققینو حضرت عیسی علیه السلام ته د مسیح وئیلو ډیر وجوهات بیان کړي دي. لفظ مسیح د فعیل په وزن باندې مفعول یعني د ممسوح په معنی کښې دې. یعني د ګناهونو نه پاک کړې شوې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه مسیح په معنی د ماسح دې او د اسم فاعل په معنی کښې دې او دا لقب ځکه ورکړې شوې دې چه هغه به د یو بیمار په بدن باندې لاس راښکلو نو هغه به صحیح شو، که به یو مړي باندې به ئې لاس راښکلو نو هغه به ژوندې کیدلو.

یو قول دادې چه د مسح الأرض نه مشتق دې. یعني په ملکونو او ښاریو کښې ګرځیدل. نو عیسی علیه السلام ته مسیح ځکه اووئیلې شو چه هغه چرته په یو ځائي کښې مستقل قیام نه دې اختیار کړې بلکه د الله تعالی د ورکړې شوې مشن د پوره کولو دپاره یو شان په تبلیغ دین کښې مصروف پاتې وو. کله به په ښاریو کښې وو او کله به ځنګلونو او صحراګانو کښې. د بعض حضراتو رائې ده چه په عربي لغت کښې مسیح "جميل الوجه" ته وئیلی شي چونکه د عیسی مخ د حسن او جمال یو نمونه وه په دې وجه هغه ته مسیح اووئیلې شو.

یو رائې داده چه د عیسی علیه السلام د سر په ویښتو باندې قدرتي تیل لګولې شوي وو په دې وجه هغه ته مسیح اووئیلې شو.[4] علامه عیني رحمه الله فرمائي چه لفظ مسیح د دجال دپاره هم استعمالیږي خو چه کله د دې لفظ نسبت د دجال طرف ته وي نو د هغې معنی به پورته ذکر کړې شوو معانی نه مختلف وي ځکه چه د حضرت عیسی علیه السلام نسبت مسیح مطلب جوړیږي چه هغه د ګناهونو نه پاک کړې شوې دې. خو د دجال طرف ته د نسبت د دې لفظ معنی به د ممسوخ شوي وي ځکه چه د دجال سترګې او اوریځې به مسخ وي. په دې وجه دا هم وئیلې شوي دي چه د دې لفظ نسبت د دجال طرف ته مسیح د میم په کسره او سین په تشدید سره لوستلې شي دې دپاره چه د دجال او حضرت عیسی علیه السلام د نسبت دواړو کښې فرق اوشي.[5] علامه عیني رحمه الله فرمائي چه د مسیح د تسمیه وجه کښې چه کوم اقوال نقل دي د هغې شمیر درویشتو پورې رسیږي او دا ټول اقوال علامه عیني رحمه الله په خپل کتاب زین المجالس کښې نقل کړي دي.[6]

**قوله: وقال مجاهد: الكهل الحليم** آیت دې ﴿ وَكَهْلًا وَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴾ مجاهد رحمه الله فرمائي د «كهل» معنی ده حلیم یعني بوج اوچتونکې او د وقار او سکینې والا. ابوجعفر النحاس رحمه الله وائي چه د «كهل» دا معنی عربي لغت کښې چرته ملاؤ نه شوه. د عربو په نیز «كهل» هغه سړي ته وائي د چاعمر چه تقریباً څلویښت کاله وي یا د دې نه

---

[1] عمدة القاري: ۳۵/۱٦ وفتح الباري: ۵۸٤/۸.
[2] فتح الباري: ۵۸٤/۸.
[3] عمدة القاري: ۳۷/۱٦ وفتح الباري: ۵۸٤/۸ وإرشادالساري: ۳۸۷/۷.
[4] د مذکوره قول د پاره او ګورئ: عمدة القاري: ۳۵/۱٦ وفتح الباري: ۵۸٤/۸ وإرشادالساري: ۷/۳۸۷.
[5] عمدة القاري: ۲/۱٦ إدارة الطباعة المنيرية.
[6] عمدة القاري: ۳۵/۱٦.

زیات شوې وی. دَ بعض حضراتو په نیز دریُ دیرش کالو نه چه عمر زیات شی هغه ته «کهل» وائی او یو قول دادې چه درې دیرش کاله پوره شی نو هغه ته «کهل» ونیلې شی (١). خو حافظ ابن حجر رحمه‌الله او علامه قسطلانی رحمه‌الله فرمائی «کهل» دَ پاره حلم او وقار غوندې معانی دَ لازمی صفت درجه لری. په دې وجه مجاهد رحمه‌الله دَ صفت لازمه لحاظ کولو سره دَ «کهل» معنی «حلیم» کړې ده. والله اعلم (٢).

**قوله: والأکمه من یبصر بالنهار ولا یبصر باللیل** دَ سورت آل عمران آیت دې. ﴿أَنِّي قَدْ جِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ ۖ أَنِّي أَخْلُقُ لَكُم مِّنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ فَأَنفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ وَأُحْيِي الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ﴾ (٤٩) دَ آیت په سیاق کښې دی چه الله تعالی عیسی علیه‌السلام ته کتاب وحکمت او تورات اوانجیل تعلیم ورکولو سره بنی اسرائیلو له رسول جوړولو سره لیږلې نو هغه به هغوی ته وائی.

**ترجمه**: زه تاسو له ستاسو دَ رب دَ طرف نه یوه نشانی راوړلو سره راغلې یم چه زه ستاسو په وړاندې دَ خټې نه دَ مرغنې په شان یو شکل جوړوم بیا په هغې کښې پوکې وهم نو هغه دَ الله تعالی په حکم سره مرغنې جوړیږی. دا دَ عیسی علیه‌السلام معجزه وه چه هغه به دَ خاورې خټې نه دَ مرغنې یوصورت جوړولو. بیا به ئې په هغې کښې پوکې وهلو او هغه به دَ الله تعالی په حکم سره ژوندئ مرغنې کیدو سره الوتله او زه دَ مورنه پیداشوي روند او دَ جذام مرض والاصحت مند کوم او مړی راژوندی کوم اوتاسو خلق چه څه په خپلو کورونو کښې خورئ یا ذخیره کوئ زه هغه ټول خودلې شم.

دَ حضرت عیسی علیه‌السلام په زمانه کښې دَ طب اوحکمت چرچا وه اودَ دې فن لوئی ماهران موجود وو. مګر هغه ټول دَ برګی مرض او جذام دَ امراض دَ علاج نه عاجز وو. حضرت عیسی علیه‌السلام ته دا معجزه ورکړې شوه چه هغه به یو ابرص یا اکمه (دَ مور نه روند پیداشوي) باندې لاس راښکلو نو هغه به صحت مند شو. امام بخاری رحمه‌الله دَ «اکمه» معنی کړې ده: «من یبصر بالنهار ولا یبصر باللیل» یعنې اکمه هغه ته وائی چه دَ ورځې ورته ښکاری مګر دَ شپې ورته هیڅ نه ښکاری. امام بخاری رحمه‌الله دا قول دَ مجاهد رحمه‌الله نه نقل کړې دې او شراح حدیث دې قول ته شاذ ونیلې دې او فرمائیلې دی چه داسې سړی ته اکمه نه وائی أعشی ورته ونیلی شي. (٣)

**وقال غیره: من یولد أعمی**: یعنې دَ مجاهد رحمه‌الله نه علاوه دَ نورو حضراتو په نیز أکمه دَ مور نه روند پیدا شوی ته وائی اوهم دغه دَ جمهورو قول دې (٤) ابن عباس رضی‌الله‌عنهما عکرمه رحمه‌الله اوحسن بصری رحمه‌الله نه هم دغه نقل دی (٥) شراح حدیث وائی چه آیت کښې دا صفت دَ عیسی علیه‌السلام دَ معجزې په توګه بیان کړې شوې دې. دَ مور نه روند پیداشوی ټیک کول واقعتاً غیرمعمولی خبره ده دکوم دَ علاج چه څوک ماهر طبیب دعوی نه شی کولې نو په دې سیاق کښې أکمه دَ مور نه روند پیداشوی په معنی کښې اخستل «أشبه بتفسیر الآیة» دې (٦).

[۳۲۵۰]- حَدَّثَنَا آدَمُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيَّ، يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فَضْلُ

(١) دتفصیل دپاره اوګورئ: فتح الباری: ۵۸۷/۸ وعمدة القاری: ۳۶/۱۶ وإرشاد الساری: ۳۸۷/۷.
(٢) فتح الباری: ۵۸٤/۸ وإرشاد الساری: ۳۸۷/۷.
(٣) فتح الباری: ۵۸٤/۸ وإرشاد الساری: ۳۸۷/۷.
(٤) فتح الباری: ۵۸٤/۸ وإرشاد الساری: ۳۸۷/۷.
(٥) فتح الباری: ۵۸۵/۸ وإرشاد الساری: ۳۸۷/۷.
(٦) فتح الباری: ۵۸۵/۸.

عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ، كَمَلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيرٌ، وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ: إِلَّا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ، وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ" ص ۴۲۳][ر: ۳۲۳۰][1]

**ترجمه**: دَحضرت موسیٰ اشعری رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی، دَعائشه رضی الله عنها فضیلت په نورو ښځو باندې داسې دې لکه چه دَ ثرید فضیلت په نورو ټولو خوراکونو دې. په سړو کښې خو ډیر سړی کامل تیرشوی دی مګر په ښځوکښې سوا دَ مریم بنت عمران او آسیه (دَ فرعون بی بی) نه څوك كامل ښځه نه ده تیره شوې.

په دې حدیث باندې شاته تفصیلی خبرې شوی دی. وړاندې دَ فضائل لاندې هم څه تفصیل راځی.

### تراجم رجال

**ادم**: دا آدم بن ابی ایاس رحمه الله دې. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده» لاندې تیره شوې ده.[2]

**شعبة**: دا شعبه بن الحجاج بن الورد العسکی الواسطی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده» لاندې تیره شوې ده.[3]

**عمرو بن مرة**: دا عمرو بن مرة بن عبدالله همدانی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «کتاب الأذان، باب تسویة الصفوف عند الإقامة وبعدها» لاندې تیره شوې ده.

**مرة الهمداني**: دا مرة بن شراحیل الهمدانی رحمه الله دې. دَدوی تذکره هم په دې کتاب الأنبیاء کښې «باب قول الله تعالى: ﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ﴾ إلى قوله ﴿وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ﴾ رقم الحدیث: ۳۴۱۱» لاندې تیره شوې ده.

**ابوموسیٰ الاشعري**: دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب أي الإسلام أفضل» لاندې تیره شوې ده.[4]

[۳۲۵۱]- وَقَالَ ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «نِسَاءُ قُرَيْشٍ خَيْرُ نِسَاءٍ رَكِبْنَ الإِبِلَ، أَحْنَاهُ عَلَى [ص: ۱۶۵] طِفْلٍ، وَأَرْعَاهُ عَلَى زَوْجٍ فِي ذَاتِ يَدِهِ» يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ عَلَى إِثْرِ ذَلِكَ: وَلَمْ تَرْكَبْ مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ بَعِيرًا قَطُّ تَابَعَهُ ابْنُ أَخِي الزُّهْرِيِّ، وَإِسْحَاقُ الكَلْبِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ ص ۴۲۴][۴۷۹۴، ۵۰۵۰][5]

---

[1] مرتخريجه في نفس الكتاب تحت باب قول الله تعالى: ﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ﴾، رقم الحديث: ۳۴۱۱.

[2] كشف الباري: ۶۷۱/۲.

[3] كشف الباري: ۶۷۸/۱.

[4] كشف الباري: ۶۹۰/۱.

[5] آخرجه أيضًا في النكاح باب إلى من ينكح وأيُّ النساء خير، رقم: ۵۰۸۲ وفي النفقات باب حفظ المرأة زوجها في ذات يده والنفقة رقم: ۵۳۶۵ ومسلم في فضائل الصحابة من فضائل نساء قريش رقم: ۲۵۲۷ جامع الأصول في أحاديث الرسول: ۲۱۰/۹ رقم الحديث: ۶۷۹۰.

## تراجم رجال

**ابن وهب:** دا ابومحمد عبدالله بن وهب قرشي مصري رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر» لاندې تيره شوې ده.[1]

**يونس:** دا يونس بن يزيد ايلي رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب ماذکر فی ذهاب موسی علیه السلام فی البحر إلی الخضر» لاندې تيره شوې ده.[2]

**ابن شهاب:** دَدوی تذکره «بدء الوحي» لاندې تيره شوې ده.[3]

**سعيد بن المسيب:** دَدوی تذکره «کتاب الإيمان باب من قال: إن الإيمان هو العمل» لاندې تيره شوې ده.[4]

**ابوهريرة:** دَدوی تذکره «کتاب الإيمان باب أمور الإيمان» لاندې تيره شوې ده.[5]

**قوله: نساء قريش خير نساء ركبن الإبل، وأحناه على ولد:** يعني دَ قريشو ښځې هغه ښځې کښې دَ ټولو نه افضل دي چه په اوښ باندې سورې شوی دی او په هغوی کښې په اولاد باندې زياتې مهربان دی اودَ خاوند ډير خيال ساتونکی دی.

**أحناه:** «أحنی» حنا عليه يحنو (باب نصر نه، دَ کوم ماده چه ح، ن، و دې) او حنی يحنی (باب ضرب نه، دَ کوم ماده چه ح، ن، ی ده) دَ (ثلاثي مجرد) نه داسم تفضيل صيغه ده او مجرد او مزيد فيه («أحنی يحنی») دواړو معنی شفقت کول مهرباني کول.[6] لغت کښې حانية هغه ښځې ته وائي چه دَ پلار دَ مرګ نه پس دَ بچي پالنه او پرورش اوکړی او په بچي باندې دَ شفقت دَ وجې نه دَ خاوند دَمرګ نه پس دويم واده اونه کړی. چنانچه عرب وائي «حنت المرأة على ولدها» دا هله ونيلی شي چه کله ښځه دَخاوند دَ وفات نه پس دويم واده اونه کړي. علامه ابن التين رحمه الله فرمائي چه که چرې هغه دويم واده اوکړی نو هغې ته به حانية نه شي ونيلې. ابن التين رحمه الله وائي چه کيدې شي دَ حنان نه مشتق وی. دکوم معنی چه ده شفقت او مهرباني. بعض دَحديث کتابونو کښې دا لفظ أحناهٗ دَنون په تشديد او تنوين سره ذکر دې.[7]

په حديث کښې دَ نساء لفظ راغلې دې اودَې په متابعت سره أحناه دَ افراد په ځائې دَ قياس تقاضا داوه چه دَ جمع صيغه راوړلې شوې وه يعني أحناهن. شراح حديث فرمائي چه عرب په داسې مقام باندې په کلام کښې دَ افراد رعايت کوی اودَ جمع صيغه نه راوړی. مثلاً عرب وائي «أحسن الناس وجها وحسنه خلقا» موافق قياس خو «أحسنهم خلقا» دې. مګر په دې مثال کښې هم دافراد صيغه راوړلې شوې ده. ابن الاثير رحمه الله فرمائي چه دلته مؤرخين دَ مفرد ضمير دَمعنی اعتبار کولو سره راوړلې دې. ځکه چه دَحديث مطلب «أحنی من وجد أو خلق» چه په دې ښځو کښې کومې پيدا کړې شوی يا په موجوده ښځو کښې دَ ټولو نه زياتې مهربان دَ قريشو ښځې دی او «من»

---

[1] كشف الباري: ۲۷۷/۳.
[2] كشف الباري: ۲۴۲/۳.
[3] كشف الباري: ۳۲۶/۱.
[4] كشف الباري: ۱۵۹/۲.
[5] كشف الباري: ۶۵۹/۱.
[6] عمدة القاري: ۳۷/۱۶ التوضيح لابن الملقن: ۵۴۸/۱۹ فتح الباري: ۵۸۵/۸.
[7] التوضيح لابن الملقن: ۵۴۸/۱۹.

طرف ته د مفرد ضمير راجع كيدې شي.([1])
په حديث كښې چه رسول الله ﷺ كوم فرمائيلي دى «خير نساء ركبن الابل» نوشراح حديث وائي چه دا تعبير د عربو ښځونه كنايه ده اومطلب دادې چه د قريشو ښځې د عربو په ښځوكښې د ټولو نه افضل دى.([2])

**قوله: وأرعاه على زوج في ذات يده:** يعنى د قريشو ښځې د خاوند د مال د نورو عربو ښځو په مقابله كښې د ټولو نه زياتې خيال ساتونكې دى. "أرعاه" هم د "أحناه" په شان «رعى يرعى رعاية» د باب فتح نه د تفضيل صيغه ده.

**قوله: يقول أبوهريرة على إثر ذلك: ولم تركب مريم بنت عمران بعيرا قط:** يعنى حضرت ابوهريره رضي الله عنه به د حديث بيانولونه پس وئيل چه مريم بنت عمران كله هم په اوښ باندې سورلى نه ده كړې. مطلب دا چه په حديث كښې رسول اكرم ﷺ صرف د اوښ سورلى كونكې ښځو فضيلت بيان كړې دې خو مريم بنت عمران عليها السلام ته په اوښ باندې سورلى نه كولوباوجود په دغه ټولو ښځو باندې مطلقاً فضيلت حاصل دې.([3])
دا روايت مسند احمد اومسند ابى يعلى كښې هم نقل دې. په دې كښې دى: «وقد علم رسول الله صلى الله عليه وسلم أن مريم لم تركب بعيرا قط».([4])
يعنى رسول الله ﷺ د دې خبرې پيژندلو نه باوجود چه مريم عليها السلام كله هم په اوښ سورلى نه ده كړې، هغې ته د قريشو د ښځونه افضل اووئيل.([5]) شراح حديث وائي چه په دې جمله سره ابوهريره رضي الله عنه دا خودل غوښتل چه د عدم ركوب نه باوجود مريم عليها السلام ته فضيلت مطلقه حاصل دې اوهغه د ټولو ښځونه افضل ده.([6])

**قوله: تابعه ابن أخي الزهري([7]) وإسحاق الكلبي([8]) عن الزهري:** د ابن اخى الزهرى نه مراد محمدبن عبدالله بن مسلم رحمه الله دې. امام بخارى رحمه الله وائي چه د باب د حديث متابعت محمدبن عبدالله او اسحاق بن يحيى كلبي دواړو كړې دې. د محمدبن عبدالله روايت ابواحمدبن عدى الكامل كښې د دراوردى رحمه الله په طريق سره اود اسحاق كلبى متابعت ذهلى الزهريات كښې موصولاً روايت كړې دې.([9])

## ۴۸- باب: قَوْلُهُ: ﴿يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لَا تَغۡلُواْ فِي دِينِكُمۡ وَلَا تَقُولُواْ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّۚ إِنَّمَا ٱلۡمَسِيحُ عِيسَى ٱبۡنُ مَرۡيَمَ رَسُولُ ٱللَّهِ وَكَلِمَتُهُۥٓ أَلۡقَىٰهَآ إِلَىٰ مَرۡيَمَ وَرُوحٞ مِّنۡهُۖ فَـَٔامِنُواْ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦۖ وَلَا تَقُولُواْ ثَلَٰثَةٌۚ ٱنتَهُواْ خَيۡرٗا لَّكُمۡۚ إِنَّمَا ٱللَّهُ إِلَٰهٞ وَٰحِدٞۖ سُبۡحَٰنَهُۥٓ أَن يَكُونَ لَهُۥ وَلَدٞۘ لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ وَكِيلٗا﴾ /

---

[1] عمدة القاري: ۲۶/۱۶ إدارة الطباعة المنيرية.
[2] عمدة القاري: ۳۶/۱۶.
[3] عمدة القاري: ۳۷/۱۶ التوضيح لابن الملقن: ۵۴۸/۱۹ فتح الباري: ۵۸۵/۸.
[4] مسندالإمام أحمد: ۵۳۷/۱۶ رقم الحديث: ۱۰۹۲۱ مؤسسة الرسالة. مسندأبي يعلى البوصلي: ۲۵/۱۲ رقم الحديث: ۸۳۳ (۶۶۷۳) دارالمأمون للتراث.
[5] فتح الباري: ۵۸۵/۸ عمدة القاري: ۳۷/۱۶ التوضيح لابن الملقن: ۵۴۸/۱۹.
[6] عمدة القاري: ۲۶/۱۶ إرشادالساري: ۳۸۸/۷.
[7] ابن أخي الزهري: دادّ امام زهرى وراره محمدبن عبدالله بن مسلم رحمه الله دې. د دوى تذكره (كتاب الإيمان باب إذا لم يكن الإسلام على الحقيقة) لاندې تيره شوې ده.(كشف الباري: ۱۸۴/۲-۱۸۳).
[8] إسحاق بن يحيى الكلبي: دا اسحاق بن يحيى بن علقمه الكلبي العوصي (بفتح المهملة الاولى) الحمصي رحمه الله دې د دوى تذكره (كتاب الأذان باب أهل العلم والفضل أحق بالإمامة) لاندې اوګورئ.
[9] فتح الباري: ۵۹۶/۸ وإرشادالساري: ۳۸۹/۷.

النساء: ۱۷۱/.

قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ: (كَلِمَتُهُ) كُنْ فَكَانَ. وَقَالَ غَيْرُهُ: (وَرُوحٌ مِنْهُ) أَحْيَاهُ فَجَعَلَهُ رُوحًا. (وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ).

**دترجمة الباب مقصد:** امام بخاري رحمه الله ددې باب لاندې دا خودل غواړي چه اهل کتاب د حضرت عیسی علیه السلام د ذات باره کښې د غلو او افراط او تفریط نه کار اخستلوسره د ګمراهئ په لار روان دی. یهودیانو د حضرت عیسی علیه السلام نسب ته نښه جوړولوسره تفریط اوکړو او نصارٰی ورته د الوهیت درجه ورکولوسره افراط اوکړو.[1]

قاضي عیاض رحمه الله وائی چه دا د اصیلی په روایت کښې د دې باب لاندې «یاأهل الکتاب» نه وړاندې اولنې لفظ «قل» اضافه هم ده د نورو حضراتو په روایت کښې دا اضافه نشته دې.[2]

علامه عیني فرمائی چه صحیح هم داه دی چه دلته د آیت نه اول «قل» درج نه دې ځکه چه د باب لاندې امام بخاري رحمه الله د سورت نساء آیت نقل کړې دې او په هغې کښې لفظ «قل» موجود نه دې البته د سورت مائده آیت (قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ) کښې لفظ «قل» راغلې دې. چونکه امام بخاري رحمه الله د سورت نساء آیت نقل کړې دې نوترجیح به هم دغه روایت ته حاصل وی. په کوم کښې چه لفظ «قل» درج نه دې.[3]

د باب آیت دې: (يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ ۚ إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ اللَّهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَىٰ مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ ۖ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۖ وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ ۚ انْتَهُوا خَيْرًا لَكُمْ ۚ إِنَّمَا اللَّهُ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ سُبْحَانَهُ أَنْ يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ ۘ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا) یعنې اې اهل کتاب! په خپل دین کښې د حد نه مه وړاندې کیږئ او د الله تعالی باره کښې د حق خبرې نه سوا بل هیڅ خبره مه کوئ. مسیح ابن مریم خو صرف د الله تعالی رسول وو او د الله تعالی یو کلمه وه چه هغه مریم ته اورسوله (چه لفظ د "کن" سره عیسی علیه السلام بغیر د پلار نه پیدا کړو او د هغه روح نی د مریم علیها السلام خیټې ته اورسولو لهذا په الله تعالی او د هغه په رسولانو باندې ایمان راوړئ او دا مه وایئ چه (خدایان) درې دی د دې خبرې نه منع شئ، هم دا ستاسو د پاره د خیر سبب دې. الله تعالی خو هم یو معبود دې، هغه د دې نه پاک دې چه د هغه دې ځوی وی. آسمانونو او زمکو کښې چه څه هم دی د هغه دی او د هغې د خیال ساتلو د پاره الله کافی دې.

په دې آیت کښې عیسایانو ته تلقین کړې شوې دې چه هغوی د عیسی علیه السلام باره کښې ابن الله کیدو کومه عقیده لري د هغې نه منع شی. او په ډیرو کولاؤ الفاظو کښې اوخودل چه هغه بغیر د پلار نه د مریم د خیټې نه پیدا شوې او د هغه تخلیق د الله تعالی د لفظ "کن" فرمائیلو سره شوې دغه شان عیسایانو ته د هغوی په ګمراه کیدونکی عقیده باندې تنبیه کولوسره د عیسی علیه السلام باره کښې یو معتدل تصور ورکړو چه هغه د الله تعالی بنده او د هغه رسول دې.

د نصارٰی درې ډلې وې. یوې ته به نې ملکانیه وئیله. د دې خلقو عقیده د حضرت عیسی علیه السلام باره کښې د "اله" کیدو وه. دویمه ډله یعقوبیه په نوم سره پیژندلې شوه. د هغوی عقیده دا وه چه حضرت عیسی علیه السلام د الله تعالی ځوئی دې او دریمه ډله مرقوسیه په نوم سره مشهوره وه. د دې ډلې د خلقو عقیده وه چه حضرت عیسی علیه السلام دریو خدایانو کښې دریم خدائی دې.[4]

[۳۲۵۲] - حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَيْرُ بْنُ

---

[1] الخیر الجاری: ۷۸/٤ إداره تالیفات أشرفیه.

[2] فتح الباری: ۵۸۶/۸ وعمدة القاری: ۳۷/۱۶ وإرشادالساری: ۳۸۹/۷.

[3] عمدةالقاری: ۳۷/۱۶.

[4] عمدة القاری: ۲۷/۱۶ إرشادالساری: ۴۰۹/۷-۴۰۸.

هَانِيءٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي جُنَادَةُ بْنُ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ عُبَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، وَأَنَّ عِيسَى عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُولُهُ، وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ، وَالجَنَّةُ حَقٌّ، وَالنَّارُ حَقٌّ، أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الجَنَّةَ عَلَى مَا كَانَ مِنَ العَمَلِ» قَالَ الوَلِيدُ، حَدَّثَنِي ابْنُ جَابِرٍ، عَنْ عُمَيْرٍ، عَنْ جُنَادَةَ وَزَادَ مِنْ أَبْوَابِ الجَنَّةِ الثَّمَانِيَةِ أَيَّهَا شَاءَ [ص ۴۳۰][1]

**ترجمه:** حضرت عباده بن صامت ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي چه کوم سړی د دې خبرې ګواهي ورکړه چه د الله تعالی نه سوا بل څوك معبود نشته دې او د هغه څوك شريك نشته دې او دا چه محمد د هغه بنده اورسول دې او دا چه عيسیٰ د الله تعالی بنده اورسول دې او د هغه کلمه ده کومه چه الله تعالی د بی بی مریم (خیتي) کښې واچوله (یعنی کن ونیلوسره عیسیٰ علیه السلام تخلیق شو) او دا چه هغه د الله تعالی د طرف نه یو روح دې او دا چه جنت او دوزخ حق دی نو الله تعالی به هغه په جنت کښې داخل کړی که هغه هرڅنګه عمل هم کوی.

## تراجم رجال

**صدقة بن الفضل:** دا مشهور محدث صدقة بن الفضل ابوالفضل مروزی رحمه الله دې. د دوی تذکره «کتاب العلم باب العلم والعظة بالليل» لاندې تیره شوې ده.[2]

**الوليد:** دا وليد بن مسلم اموی ابوالعباس دمشقی رحمه الله دې. د شام لوئی عالم وو. د دوی حالات «کتاب مواقيت الصلاة باب الإبراد بالظهر في شدة الحر» لاندې تیرشوی دی.

**الاوزاعي:** دا عمرو بن ابی عمرو محمد اوزاعی رحمه الله دې. د دوی حالات «کتاب العلم باب الخروج في طلب العلم» لاندې تیرشوی دی.[3]

**جنادة بن ابي امية:** دا جناده بن ابی امیه الازدی ابوعبدالله الشامی رحمه الله دې. د دوی تذکره «کتاب التهجد باب فضل من تعارّ من الليل فصلى» لاندې تیره شوې ده.

**عبادة رضي الله عنه:** دا صحابی رسول حضرت عبادة بن صامت بن قیس رضی الله عنه دې.[4]

**د نصاری په عقیده د تثلیث باندې تعریض:** دا حدیث محدثین کرام حدیث العقائد کښې شمیری. په دې وجه چه په دې کښې د عیسیٰ علیه السلام باره کښې د نصاری په غلطه عقیده باندې رد کړې شوې دې. تثلیث د هغوی یوه ګمراه کونکې عقیده وه یعنی چه درې خدایان دی. الله، خوئی او روح القدس.

په دې حدیث کښې رسول اکرم ﷺ د نصاری په عقیده د تثلیث باندې تعریض کړې دې او په هغوی باندې دا واضحه کړه چه دا سې ګمراه کونکې عقیده لرل شرك محض دې.[5] بعض حضرات فرمائیلی دی چه لفظ «ورسوله» سره په یهودیانو باندې تعریض دې. یهودیانو د عیسیٰ علیه السلام په نسب باندې تهمت لګولې او د هغه د رسالت نه ئې انکار اوکړو نو د هغوی په عقیده باندې رد اوکړو چه د عیسیٰ علیه السلام رسالت برحق دې.[1]

---

[1] وأخرجه مسلم في الإيمان باب الدليل على أن من مات على التوحيد دخل الجنة، رقم الحديث: ۱۴۰ والترمذي في الإيمان باب ماجاء فيمن يموت وهو يشهد أن لاإله إلا الله، رقم الحديث: ۲۶۳۸.

[2] كشف الباري: ۳۸۸/۴.

[3] إرشادالساري: ۴۰۹/۷-۴۰۸.

[4] كشف الباري: ۴۸/۲.

[5] فتح الباري: ۵۸۷/۸ وإرشادالساري: ۳۸۷/۷.

**قوله: قال الوليد: حدثني ابن جابر:** دَ وليد بن مسلم دا تعليق دَحديث باب سند سره موصول دې [1]
دې تعليق کښې دَ ابن جابر نه عبدالرحمن بن يزيد بن جابر ازدى او عمير نه عمير بن هانى مراد دى [2]
امام بخاري رحمه الله په دې تعليق سره دا خودل غواړى چه دَ حديث باب په دويم طريق کښې «من أبواب الجنة الثمانية أيها شاء» اضافه هم نقل ده. امام مسلم رحمه الله په خپل صحيح کښې او امام نسائى رحمه الله په خپل سنن کښې دا حديث دې زياتى سره تخريج کړې دې. په دې کښې دى: «من قال: أشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له وأن محمداً عبده ورسوله وأن عيسى عبدالله وابن أمته وكلمته ألقاها إلى مريم وروح منه، وأن الجنة حق، وأن النار حق أدخله الله من أي أبواب الجنة الثمانية شاء» [4] يعنى چاچه دا ټولې ګواهيانې ورکړې الله تعالى به هغه دَ جنت دَ اتو دروازونه په کومه دروازه چه غواړى داخلوى.

## ۴۹ - باب: ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا﴾ /مريم: ۱۶/.

نبذناه: ألقيناه: اعتزلت. ﴿شَرْقِيًّا﴾ /مريم: ۱۶/: مما يلي الشرق. ﴿فَأَجَاءَهَا﴾ /مريم: ۲۳/: أفعلت من جئت ويقال: ألجأها اضطرها. ﴿تُسَاقِطْ﴾ /مريم: ۲۵/: تسقط. ﴿قَصِيًّا﴾ /مريم: ۲۲/: قاصيا. ﴿فَرِيًّا﴾ /مريم: ۲۷/: عظيما.

**دَ ترجمة الباب مقصد:** دوه ابوابه وړاندې بعينه هم دغه ترجمه امام بخاري رحمه الله قائم کړې ده. هلته دَ مريم عليها السلام احوال بيانول وو او دلته دَ حضرت عيسىٰ حالات بيانول مقصود دى. [5]

امام بخاري رحمه الله دَ سورت مريم آيت نقل کړې دې: ﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا﴾ او په دې کتاب کښې دَمريم تذکره هم اوکړه دَهغه وخت ذکر کوم وخت چه هغه دَ خپل کور والونه جدا کيدو سره هغه خائى ته لاړه چه مشرق طرف ته واقع وو.

صاحب معالم التنزيل ليکلى دى چه دا دَ سختې يخنئى ورځ وه مريم عليها السلام هلته په نمر کښې دَغسل دَپاره کيناسته نو هغې دَخپل خان او دَ خلقو په مينځ کښې يو پرده واچوله. چنانچه مونږ هغې له خپل روح (فرشته) اوليګله چه دَهغې په مخکښې دَ يو مکمل انسان په شکل کښې ښکاره شوه. مريم عليها السلام دَ خپل عصمت او پاکدامنئى دَ وجې نه داسې ناخاپى په خان له خائى کښې راتلونکى سړې ليدلو سره اووېريدله او هغه ته ئې اوونيل. زه تا نه دَ الله تعالى چه رحمن دې پناه غوارم. که تا کښې دَ الله تعالى نه ويره وى نو دې خائى نه لاړشه. فرښتې اوونيل زه ستا دَ رب راليګلې شوې فرښته يم دې دَپاره چه تا ته يو پاکيزه هلك درکړم. مريم اوونيل زما به هلك څنګه کيږى چه ماله يو بشر لاس نه دې راوړې اونه زه بدکاره يم. فرښتې اوونيل چه هم داسې به کيږى ستا رب فرمائيلى دى چه دا زما دَپاره معمولى خبره ده. مونږ دا هلك دَخلقو دَپاره نښانى او دَ خپل طرف نه رحمت جوړول غواړو اودا يوه داسې خبره ده چه فيصله شوې ده. چنانچه دَ مريم عليها السلام دَپاره دَ دغه هلك حمل اودريدو او چه کله دَ وضع حمل وخت نيزدې راغلو نود دغه حمل اخستو سره لرې لاړه. بيا دَ بچى پيدا کيدو درد هغه دَ يوې کهجورې ونې له اورسوله. هغې ونيل چه افسوس زه دَدې نه وړاندې مړه شوې وې او دَ خلقو نه تراوسه پورې هيره شوې وې. بيا فرښتې دَ ښکته يو خائى نه هغې له آواز ورکړو. مريم عليها السلام چرته په يو

---

[1] ) إرشادالساري: ۳۹۰/۷.
[2] ) إرشادالساري: ۳۹۱/۷.
[3] ) عمدةالقاري: ۳۹/۱۶دارالكتب العلمية.
[4] ) صحيح مسلم كتاب الإيمان باب الدليل على أن من مات على التوحيددخل الجنة، رقم الحديث: ۱۴۰السنن الكبرى للإمام النسائي ذكر اختلاف ألفاظ الناقلين لخبر عبادة في ذلك۴۱۴/۹ رقم الحديث: ۱۰۹۰۳مؤسسة الرسالة، عمل اليوم والليلة، ما يقول عندالموت، ۶۰۳/۱رقم الحديث: ۱۱۳۰مؤسسة الرسالة.
[5] ) فتح الباري:۵۹۲/۸وإرشاد الساري: ۳۹۲/۷وتحفة الباري: ۱۱۹/۴.

غونډنې باندې وه. جبرائيل عليه السلام دَ دغه ځاني نه ښکته اودريدو اووني ونيل غم مه کوه ستا رب ستا نه ښکته يوه چينه پيدا کړې ده اودَ کهجورې ښاخ خپل ځان طرف ته اوخوزه وه دهغې نه به پخې تازه کهجورې په تا باندې راپريوځي.

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل جبرائيل عليه السلام هلته خپله خپه اووهله دَ کوم په وجه چه دَ خوږو اوبو چينه جاري شوه. په دې مقام باندې يوه اوچه دکهجورې ونه وه په هغې کښې پانړې او ميوه راغله او هم هغه وخت پخې شوې (معالم التنزيل. نو جبرائيل عليه السلام اوفرمائيل اوس خوزه څکه او سترګې يخې ساته که خلقو کښې دې څوك اوليدل نو ورته وايه چه ما دَ خدائې رحمن دپاره دَ روژې ساتلو نذر منلې دې لهذا زه به نن يو انسان سره خبرې نه کوم. پخوانو شريعتونو کښې دَ خبرو اترو نه کولو روژه مشروع وه کومه چه په شريعت محمدي کښې منسوخ شوه. بيا مريم دغه بچې اوچت کړو اوخپل قوم له راغله. هغوی اووئيل اې مريم دا تا لوئي دَ غضب کار کړې دې. اې دَ هارون خور! نه خو ستا پلار څه خراب سړې وو اونه ستا مور څه بدکاره ښځه وه. چنانچه مريم دَهغه بچي طرف ته اشاره اوکړه. خلقو ونيل ښه نو مونږ اوس ده سره څنګه خبرې اوکړو چه دا وخت لا په زانګو کښې پروت يو بچې دې. په دې باندې بچي خبرې شروع کړې زه دَ الله تعالى بنده يم ماته هغه کتاب راکړې دې اوهغه زه نبي جوړکړې يم.[1]

**قوله: فنبذناه: ألقيناه:** امام بخاري رحمه الله دَ «فنبذناه» تفسير «ألقيناه» سره کړې دې. دا لفظ په قرآن مجيد کښې سورت صافات کښې دَحضرت يونس عليه السلام په واقعه کښې راغلې دې. آيت دې: ﴿فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ سَقِيْمٌ﴾ [۱۴۵] دَدې لفظ معنى دَ غورزولو او اچولو راځي. دا تفسير امام طبري رحمه الله علي بن ابي طلحه عن ابن عباس په طريق سره دَ پورته ذکرشوی آيت په تفسير کښې نقل کړې دې.[2] علامه عيني رحمه الله فرمائي چه په دې مقام باندې دَ دې تفسير ذکرکولو څه مناسبت نه معلوميږي ځکه چه دَ حضرت مريم عليها السلام په قصه کښې لفظ «انتبذت» ذکر دې او لفظ «انتبذت ونبذناه» دواړو معنى جدا جدا دی.[3] دَ «انتبذت» معنى طرف ته اشاره کولوسره امام بخاري رحمه الله فرمائي: «اعتزلت شرقيا مما يلي الشرق» چه حضرت مريم عليها السلام بيت المقدس يا دَخپل کور مشرق طرف ته دَعبادت په غرض سره خلوت کښې کيناستل اختيار کړه.[4] مشرقي طرف دَعربو په نيزد مغربي طرف نه بهتر او افضل ګنړلې شي. په دې وجه حضرت مريم عليها السلام دَعادت دپاره مشرقي طرف اختيار کړو.[5]

**قوله: تساقط: تسقط:** دَدې لفظ نه دَ سورت مريم آيت ﴿وَهُزِّيْٓ اِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا﴾ [۲۵] طرف ته اشاره ده. امام بخاري رحمه الله دَتساقط تفسير تسقط سره کړې دې. دکوم معنى چه دَ ورغورزولو راځي.[6] دَ آيت ترجمه ده: دَدې کهجورې تنه اونيسه او خپل طرف ته ئې اوخوزه وه، په دې سره به په تا باندې تازه کهجورې راپريوځي. دغه تفسير دَ امام ابوعبيده رحمه الله نه نقل دې.[7]

---

[1] تفسير البغوي المعروف بمعالم التنزيل سورة مريم: ۲۲۲ – ۲۲۸دارطيبة.
[2] فتح الباري: ۴۷۹/۶عمدة القاري: ۳۹/۱۶دارالكتب العلمية.
[3] عمدة القاري: ۳۹/۱۶.
[4] مجاز القرآن: ۳/۲مكتبة الخانجي بالقاهرة، فتح الباري: ۴۷۹/۶عمدة القاري: ۳۹/۱۶.
[5] فتح الباري: ۴۷۹/۷.
[6] فتح الباري: ۴۷۹/۶عمدةالقاري: ۴۰/۱۶.
[7] مجازالقرآن لأبي عبيدة: ۵/۲مكتبة الخانجي بالقاهرة، فتح الباري: ۴۷۹/۶.

**قوله: قصيا: قاصيا:** دَ سورت مريم آيت: ﴿فَحَمَلَتْهُ فَانْتَبَذَتْ بِهِ مَكَانًا قَصِيًّا﴾ [۲۲] طرف ته اشاره ده په کوم کښې چه مذکوره لفظ قصيا تفسير امام بخارى رحمه الله قاصيا سره کړې دې. دَامام مجاهد رحمه الله نه هم دغه تفسير نقل دې. امام ابوعبيده رحمه الله دَدې تفسير بعيدا سره کړې دې. معنى دَ دواړو هم يوه ده يعنى حضرت مريم عليها السلام خپل حمل سره لرې يوخائى ته لاړه. (۱) دَ ابن عباس رضى الله عنهما نه نقل دى چه بغير دَ خاوند نه حمل کيدلو سبب دَ قوم دَ طرف نه دَ شرم ورکولو ويره وه په دې وجه حضرت مريم عليها السلام دَ بيت اللحم آخرى غاړې ته لاړه. (۲)

**قوله: فريا عظيما:** دَ سورت مريم آيت: ﴿لَقَدْ جِئْتِ شَيْئًا فَرِيًّا﴾ [۲۷] طرف ته اشاره ده. امام بخارى رحمه الله دَ فريا تفسير عظيما سره کړې دې چه اې مريم تا ډير دَغضب کار کړې دې. امام ابوعبيده رحمه الله وائى چه هريو عجيبه کار ته فرى وئيلى شى. (۳)

**قوله: فأجاءها: أفعلتُ من جئتُ:** امام بخارى رحمه الله خودل غواړى چه ﴿فَأَجَاءَهَا الْمَخَاضُ﴾ کښې فأجاءها دَ مزيد صيغه ده. دمجرد نه دَ خپل آمد خبر ورکولو دپاره به جئت وئيلى شى او که چرې دا معتدى استعمال کړې شى نو داسې به وئيلى شى: «أجاتُ زيدا» نو په آيت کښې ضمير دَحضرت مريم عليها السلام طرف ته راګرځى او دَ «أجاء» فاعل «المخاض» دې يعنى دَ بچى پيدا کيدو درد هغه راوستله. (۴)

**قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: ﴿نَسْيًا﴾ /مريم: ۲۳/: لَمْ أَكُنْ شَيْئًا. وَقَالَ غَيْرُهُ: النِّسْيُ الْحَقِيرُ.**

دې نه دَ سورت مريم آيت ﴿وَكُنْتُ نَسْيًا مَنْسِيًّا﴾ [۲۳] طرف ته اشاره ده. ابن عباس رضى الله عنهما دَ «نسيا» تفسير «لم أكن شيئا» سره کړې دې. امام طبرى رحمه الله دَ ابن جريج عن عطاء په طريق سره دَ ابن عباس رضى الله عنهما نه ﴿نَسْيًا مَنْسِيًّا﴾ تفسير داسې نقل کړې دې: «لم أخلق ولم أك شيئا» چه افسوس زه هډو دَ سره پيدا شوې نه وې کاش چه زه هډو دَ سره وې نه. (۵)

دَ حضرت ابن عباس رضى الله عنهما نه علاوه نورو حضراتو دَ «النسى» تفسير «الحقير» سره کړې دې چه کاش زه چرته څه حقير غونډې شئ وې. يو تفسير «هوما سقط فى منازل المرتحلين من رذالة أمتعتهم» هم نقل دې. يعنى «النسى» هغه پاتې شوى څيزونو ته وائى چه مسافر په يوخائى کښې ډيره اچولو نه پس هغه پريږدى. (۶) امام طبرى رحمه الله دَحضرت قتاده رحمه الله نه «نَسْيًا مَنْسِيًّا» تفسير «شيئا لا يذكر» سره کړې دې چه کاش زه چرته يو ناقابل ذکر شئ وې. (۷)

**وَقَالَ أَبُو وَائِلٍ: عَلِمَتْ مَرْيَمُ أَنَّ التَّقِيَّ ذُو نُهْيَةٍ حِينَ قَالَتْ: ﴿إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا﴾ /مريم: ۱۸/.**

آيت دې: ﴿قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا﴾ مريم عليها السلام جبرائيل امين دَ سړى په شکل کښې ليدو سره اوفرمائيل که په تا کښې دَ الله تعالى نه ويره وى نو دې خائى نه اخوا شه. ابووائل شقيق بن سلمه رحمه الله وائى چه ﴿إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا﴾ چه مريم عليها السلام وئيلى وو نو دې ګنړلو سره ئې وئيلى وو چه هم متقى عقل مند وى «نهية»

---

(۱) فتح البارى: ۴۷۹/۶عمدة القارى: ۴۰/۱۶.

(۲) عمدة القارى: ۳۹/۱۶.

(۳) فتح البارى: ۴۷۹/۶عمدة القارى: ۴۰/۱۶.

(۴) إرشاد السارى: ۳۹۲/۷.

(۵) تفسير الطبرى: ۴۹۹/۱۵دارهجر، فتح البارى: ۴۷۹/۶.

(۶) فتح البارى: ۴۷۹/۶.

(۷) تفسير الطبرى: ۴۹۹/۱۵دارهجر، فتح البارى: ۴۷۹/۶.

د نون ضمه سره او ياء مفتوحه سره عقل ته وائي. ځكه چه هم عقل انسان د قبائح د ارتكاب نه منع كوى.(١) علامه عيني رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما قول نقل كړې دې چه د مريم عليها السلام په زمانه كښې تقى د يو فاجر سړي نوم وو په جبرائيل باندې هغې هم د دغه فاجر گمان كړې وو.(٢) ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله د تقيا سره متعلق د اتفسير بعيد گرځولې دې.(٣)

قَالَ وَكِيعٌ: عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ: ﴿سَرِيًّا﴾/مريم: ٢٤/: نَهَرٌ صَغِيرٌ بِالسُّرْيَانِيَّةِ.

آيت دې. ﴿قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا﴾ مقصد د حضرت مريم عليها السلام د قضيه سره متعلق د راغلى آيت د لفظ «سريا» توضيح كول دي. امام بخاري رحمه الله د براء بن عازب رضي الله عنه معلق روايت نقل كړې دې چه «سري» سرياني ژبه كښې وړوكى نهر ته وائي.

**تشريح:** دا تعليق ابن ابى حاتم رحمه الله د سفيان ثوري عن ابى اسحاق په طريق سره او طبري رحمه الله شعيب عن ابى اسحاق په طريق سره موقوفاً روايت كړې دې.(٤)

البته ابن مردويه رحمه الله آدم عن اسرائيل په طريق سره دا روايت مرفوعًا نقل كړې دې. د دې الفاظ دا دى: «السري: الجدول وهو النهر الصغير» په دې طريق كښې دا تصريح نشته دې چه «سري» سرياني لفظ دې. (٥) ابو عبيد رحمه الله وائي چه «سري» په عربي ژبه كښې هم نهر ته وائي. په دې باندې هغه د لبيد بن ربيعه د دې شعر نه هم استدلال كړې دې:

فرمى بها عُرض السّري فغادرا مسجورة متجاورًا قُلّامُها (٦)

**د تعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** په دې تعليق كښې چه د آيت مبارك د كوم لفظ وضاحت كړې شوې هغه د حضرت مريم عليها السلام د قضيې سره متعلق دې او په دې ضمن كښې د حضرت عيسىٰ عليه السلام پيدائش نه هم تعرض دې او دې خبرې تذكره په ترجمة الباب كښې هم موجود ده.

[۳۲۵۳]- حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمْ يَتَكَلَّمْ فِي الْمَهْدِ إِلَّا ثَلَاثَةٌ: عِيسَى، وَكَانَ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ جُرَيْجٌ، كَانَ يُصَلِّي، جَاءَتْهُ أُمُّهُ فَدَعَتْهُ، فَقَالَ: أُجِيبُهَا أَوْ أُصَلِّي، فَقَالَتْ: اللَّهُمَّ لَا تُمِتْهُ حَتَّى تُرِيَهُ وُجُوهَ الْمُومِسَاتِ، وَكَانَ جُرَيْجٌ فِي صَوْمَعَتِهِ، فَتَعَرَّضَتْ لَهُ امْرَأَةٌ وَكَلَّمَتْهُ فَأَبَى، فَأَتَتْ رَاعِيًا فَأَمْكَنَتْهُ مِنْ نَفْسِهَا، فَوَلَدَتْ غُلَامًا، فَقَالَتْ: مِنْ جُرَيْجٍ فَأَتَوْهُ فَكَسَرُوا صَوْمَعَتَهُ وَأَنْزَلُوهُ وَسَبُّوهُ، فَتَوَضَّأَ وَصَلَّى ثُمَّ أَتَى الْغُلَامَ، فَقَالَ: مَنْ أَبُوكَ يَا غُلَامُ؟ قَالَ [ص: ٢٦٦]: الرَّاعِي، قَالُوا: نَبْنِي صَوْمَعَتَكَ مِنْ ذَهَبٍ؟ قَالَ: لَا، إِلَّا مِنْ طِينٍ. وَكَانَتِ امْرَأَةٌ تُرْضِعُ ابْنًا لَهَا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، فَمَرَّ بِهَا رَجُلٌ رَاكِبٌ ذُو شَارَةٍ، فَقَالَتْ: اللَّهُمَّ اجْعَلِ ابْنِي مِثْلَهُ، فَتَرَكَ ثَدْيَهَا وَأَقْبَلَ عَلَى الرَّاكِبِ، فَقَالَ: اللَّهُمَّ لَا تَجْعَلْنِي مِثْلَهُ، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى ثَدْيِهَا يَمَصُّهُ. - قَالَ: أَبُو هُرَيْرَةَ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

---

١) فتح الباري: ٨/٥٩٣ و ارشاد الساري: ٧/٣٩٢.
٢) عمدة القاري: ١٦/٤١.
٣) فتح الباري: ٨/٥٩٣.
٤) فتح الباري: ٨/٥٩٣ وعمدة القاري: ١٦/٤١.
٥) فتح الباري: ٨/٥٩٣.
٦) اوگورئ: مجاز القرآن لابى عبيدة: ٢/٥ مكتبة الخانجي بالقاهرة فتح الباري: ٨/٥٩٣.

وَسَلَّمَ يَمُصُّ إِصْبَعَهُ- ثُمَّ مُرَّ بِأَمَةٍ، فَقَالَتْ: اللَّهُمَّ لَا تَجْعَلِ ابْنِي مِثْلَ هَذِهِ، فَتَرَكَ ثَدْيَهَا، فَقَالَ: اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِثْلَهَا، فَقَالَتْ: لِمَ ذَاكَ؟ فَقَالَ: الرَّاكِبُ جَبَّارٌ مِنَ الْجَبَابِرَةِ، وَهَذِهِ الْأَمَةُ يَقُولُونَ: سَرَقْتِ، زَنَيْتِ، وَلَمْ تَفْعَلْ" ص ۴۳۸][ر: ۱۱۴۸][1]

## تراجم رجال

**مسلم بن ابراهيم:** دا مسلم بن ابراهيم الفراهيدى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الإيمان باب أحب الدين إلى الله أدومه» لاندې تيره شوې ده.[2]

**جريربن حازم:** دا جريربن حازم بن زيد ازدى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الصلاة باب الخوخة والممر فى المسجد» لاندې تيره شوې ده.

**محمدبن سيرين:** دا شيخ الاسلام ابوبكر محمدبن سيرين انصارى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الإيمان باب اتباع الجنائز من الإيمان» لاندې تيره شوې ده.[3]

**ترجمه او تشريح:** دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه په زانګوکښې صرف دريو بچو خبرې کړى دى، يو عيسىٰ عليه السلام بل په بنى اسرائيلو کښې يو سړې وو کوم ته چه جريج وئيلې شو. جريج مونځ کولو «دې وخت کښې» دَ هغه مور راغله نوهغې جريج ته آواز اوکړو نو «جريج په زړه کښې» اووئيل مور ته جواب ورکړم که مونځ جارى اوساتم «الغرض جريج جواب ورنه کړو او خپل مونځ کښې مشغول پاتې شو» نو دَهغه مور اووئيل يا الله دې ترهغه وخته پورې مه مرکوې ترڅو چه ده ته دَ بدکارو ښځو مخ اونه ښايئې.

يوځل جريج په خپله عبادت خانه کښې وو چه دَ چيلو څرولو والا يوه ښځه هغه له راغله هغه ته نې دَ بدکارئ کولو اووئيل جريج انکار اوکړو نوهغه يو ګډبه له راغله اوهغه نې په بدکارئ باندې تيار کړو دَ کومې نه چه دَهغې يو ځوئ پيدا شو. کله چه دَهغې نه تپوس اوکړې شو چه دا هلك دَ چا دَ نطفې نه دې؟ نوهغه جينئ اووئيل دا دَ جريج ځوئ دې. په دې باندې خلق مشتعل شو چه څوك مونږ عابد ګنړلو هغه بدكار اووتلو. نول جريج له راغلو اودهغه عبادت خانه ئې ماته کړه اوهغه ئې ښکنځه راکوز کړو او ډيرې بدې ردې ورته اووئيل. جريج اودس اوکړو مونځ ئې اوکړو اوماشوم له راغلو هغه نه ئې تپوس اوکړو «يا غلام من أبوك» اې بچيه ستا پلار څوك دې؟ ماشوم جواب ورکړو ګډبه. دَ ابوسلمه رضي الله عنه په روايت کښې دا اضافه هم نقل ده چه جريج مونځ کولوسره مور اودَهغې بچې راوستل. ماشوم پينئ څکونکې وو سينې پورې خله لګولې وه پينئ څکل. کله چه جريج هغه ته آواز اوکړو نوهغه خپله خله بهر کړه جواب ئې ورکړو.[4]

دَ وهب بن جرير رحمه الله روايت دې چه دَ ماشوم جواب اوريدو سره خلق په جريج باندې راغونډ شو اودَعقيدت نه ئې هغه ښکلولو. «لوليوا إلى جريج فجعلوا يقبلونه».[5] چنانچه ټولو جريج ته اووئيل مونږ به ستا عبادت خانه دَ سرو زرو جوړه کړو. جريج وئيل نه دَ خاورو نه ئې جوړه کړئ.

وړاندې روايت کښې دَ دريم ماشوم بيان دې چه دَ بنو اسرائيل يوې ښځې خپل بچې ته پينئ ورکول. دَهغې خواکې يو ښائسته ځوان سور تيرشو. دلته په روايت کښې «راكب ذوشارة» الفاظ راغلى دى. «ذوشارة» داسې

---

[1] قد سبق تخريجه فى كتاب العمل فى الصلاة باب إذا دعت الأم ولدها فى الصلاة رقم: ۱۲۰۶.

[2] كشف البارى: ۴۵۵/۲.

[3] كشف البارى: ۵۲۴/۲.

[4] فتح البارى: ۵۹۶/۸ وإرشادالسارى: ۳۹۴/۷.

[5] إرشادالسارى: ۳۹۴/۷.

ښائسته ښکلې لباس والا سړی ته وائی دَ کوم په لیدو سره چه خلق دَ حیرانتیا اشاره کوی چه دومره ښکلې اومزیدار دې.(۱) مسند احمد کښې «خلاس عن أبی هریرة» په طریق سره دا روایت نقل دې. په دې کښې دَ «فارس متکبر» الفاظ راغلی دی.(۲)

نو دې ښځې اوونیل چه یا الله زما خوئې هم داسې جوړ کړې. یعنی دَ ده په شان ښائسته او خوش لباس. نو دَ هغې بچی دَ مور سینه پریخوده اودَ سور طرف ته متوجه شو وئې وئیل: «اللّٰهم لا تجعلنی مثله» اې الله ما دَ ده په شان مه جوړې. بیائې دَ خپلې مور په سینه باندې خله کیخوده. حضرت ابوهریره رضی الله عنه وائی «کأنی أنظر إلی النبی صلی الله علیه وسلم یمص إصبعه» لکه چه زه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ګورم چه هغوی خپله ګوته مبارکه رووله. یعنی حضور پاک عملاً اوخودل چه هغه ماشوم داسې سینه رووله.

بیا هغه ځائې کښې یوه وینځه تیریدله. دَ وهب بن جریر رحمه الله والا روایت چه په مسند احمد کښې نقل دې په هغې کښې دَ تضرب لفظ هم راغلې دې. یعنی دغه وینځه خلقو وهله.(۳) نو ښځې وئیل «اللّٰهم لا تجعل ابنی مثلها» اې الله زما خوئې داشان مه جوړې. په دې باندې بچی دَ مور سینه پریخوده او جواب ئې ورکړو «اللّٰهم اجعلنی مثلها» اې الله ما دَ وینځې په شان جوړ کړه. ښځې اوونیل «لم ذلك» تا داسې ولې اوونیل؟ یعنی دَ خوش لباس خوان په شان دَ جوړیدو په ځائې دَ دې غریبې وینځې په شان ولې جوړیدل غواړې؟ په دې باندې ماشوم جواب ورکړو: «الراکب جبار من الجبابرة وهذه الأمة یقولون لها سرقت وزنیت ولم تفعل» هغه سور خودَ ظالمانو نه یو ظالم وو او دَ دې وینځې باره کښې خلق وائی چه تا غلا کړې ده تا زنا کړې ده حالانکه دې داسې هیڅ نه دی کړی.

دَ مسند احمد دَ روایت الفاظ دی: «یقولون زنیت ولم تزن، سرقت ولم تسرق، هی تقول: حسبی الله» یعنی خلقو به دغه وینځې ته وئیل تا غلا کړې ده حالانکه هغې غلا نه وه کړې اودا چه تا بدکاری کړې ده حالانکه هغه بدکاره نه وه او په دې حال کښې به هغې په ژبه باندې وئیل «حسبی الله».(۴)

خودَ اعرج دَ روایت الفاظ دی «یقولون لها: تزنی وتقول: حسبی الله، فیقولون لها: تسرق وتقول: حسبی الله» یعنی خلقو به هغې ته وئیل بدکاری هم کوې او «حسبی الله» هم وایئې غلا هم کوې او دَ پاسه «حسبی الله» هم وایئې؟(۵)

**قوله: لم یتکلم فی المهد إلا ثلاثة:** دَ باب په دې روایت کښې په حصر سره دَ دې دریو ماشومانو ذکر شوی دې چاچه په زانګو کښې خبرې کړی دی. په نورو روایاتو کښې دې نه علاوه نورو ماشومانو ذکر هم راغلې دې. چنانچه دَ ابن عباس رضی الله عنهما دَ روایت الفاظ دی: «لم یتکلم فی المهد إلا أربعة» په دې کښې دَ حصر سره دَ څلورو ماشومانو ذکر دې. په کوم کښې چه دَ یوسف علیه السلام په حق کښې دَ ګواهئی ورکونکی ماشوم بیان هم دې اودغه شان دَ هغه ماشوم ذکر هم کړې شوې دې دَ کوم مور چه فرعون په اور کښې دَ اچولو اراده اوکړه نو هغه ماشوم مور ته اوونیل «اصبری یا أمه فإنا علی الحق» یعنی اې مورې صبر اوکړه ځکه چه زه په حق باندې یم.(۶)

---

(۱) فتح الباری: ۵۹۶/۸ وإرشاد الساری: ۳۹٤/۷.

(۲) مسند الإمام أحمد: ۶۸/۱۵ رقم الحدیث: ۹۱۳۵ مؤسسة الرسالة. فتح الباری: ۵۹۸/۸ دار الکتب العلمیة.

(۳) مسند الإمام أحمد: ٤۳۷/۱۳ رقم الحدیث: ۸۰۷۱ مؤسسة الرسالة.

(۴) مسند الإمام أحمد: ٤۳۷/۱۳ رقم الحدیث: ۸۰۷۱ مؤسسة الرسالة.

(۵) مسند أبی یعلی الموصلی: ۱۷۹/۱۱ رقم الحدیث: ٤٤۹ (۶۲۸۹) دار المأمون للتراث.

(۶) فتح الباری: ٤۸۰/۶ دار المعرفة وحدیث ابن عباس أخرجه الإمام الطبری فی تفسیره جامع البیان فی تأویل القرآن فی تفسیر سورة یوسف، ونصه: عن ابن عباس قال: تکلم أربعة فی المهد وهم صغار: ابن ماشطة بنت فرعون وشاهد یوسف وصاحب جریج وعیسى ابن مریم علیهما السلام: ۵٤/۱۶ رقم الحدیث: ۱۸۰۹۹ مکتبة ابن تیمیة.

هم دغه شان مضمون دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه په روایت کښې دې کوم چه امام حاکم رحمه الله وغیره تخریج کړې دې.[۱]نو دا تول پنځه ماشومان شو. دَدریو ذکر روایت باب کښې دې اودَ دوو تذکره دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روایت کښې وشوه.

۶ هم دغه شان یوه واقعه په صحیح مسلم کښې دَحضرت صهیب رضي الله عنه په روایت کښې ده: «حتی جاءت امرأة ومعها صبی لها فتقاعست أن تقع فیها فقال لها الغلام: یا أمه اصبري فإنك علی الحق»[۲] یعنی یوه ښځه راوستلې شوه اوهغې ته اووئیلې شو چه کفر اختیار کړه گنې تا به دَ اور په دې کنده کښې واچوو. هغې سره یپښی روونکې بچي وو هغه ښخه حیرانه شوه نو بچي مور ته اووئیل اې زما مورې دَ صبر نه کار واخله ځکه چه ته په حق باندې ئې.

۷ دغه شان امام ثعلبي رحمه الله دَ ضحاك رحمه الله په حواله سره فرمائیلي چه یحیی علیه السلام هم په زانګو کښې خبرې کړې وې[۳] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه که دا واقعې ثابت وی نو دَداسې ماشومانو شمیر اووه جوړیږی.

دَامام واقدي رحمه الله په سیرت کښې دی چه نبی کریم ﷺ دَ پینو څکلو په موده کښې خبرې کړې وې. چنانچه امام بیهقي رحمه الله دَ ابن عباس رضي الله عنهما روایت نقل کړې دې: «کانت حلیمة بنت أبی ذؤیب التی أرضعت النبی صلی الله علیه وسلم تحدث أنها لما فطمت رسول الله تکلم قالت: سمعته یقول کلاما عجیبا، سمعته یقول: الله أکبر کبیرا والحمد لله کثیرا وسبحان الله بکرة وأصیلا» دَ ابن عباس رضي الله عنهما روایت دې چه حلیمه سعدیه به دا وئیل چه کله ما رسول الله ﷺ دَ پینونه وارولو نو حضورپاك خبرې اوکړې. فرمائی چه ما حضورپاك په ډیر عجیبه کلام وئیلو سره اوریدلې وو. حضورپاك وئیل «الله أکبر کبیرا، والحمد لله کثیرا......»[۴]

هم امام بیهقي رحمه الله دَ معیقیب الیماني رضي الله عنه روایت نقل کړې دې. دې کښې دی: «حججتُ حجة الوداع، فدخلتُ دارا بمکة، فرأیت فیها رسول الله صلی الله علیه وسلم، ورأیتُ منه عجبا، جاءه رجل من أهل الیمامة بغلام یوم وُلِدَ فقال له رسول الله صلی الله علیه وسلم: یا غلام من أنا؟ قال: أنتَ رسول الله. قال: صدقت بارك الله فیك، ثم إن الغلام لم یتکلم حتی شبّ فکنا نسمّیه: مبارك الیمامة».[۵]

حضرت معیقیب رضي الله عنه وائي چه دَحجة الوداع په موقع زه یو کورته دننه شوم، په کوم کښې چه رسول الله ﷺ تشریف فرما وو. ما دَ حضورپاك یوه عجیبه معجزه اولیدله چه دَ یمامه یو سړې دَحضورپاك په خدمت کښې داسې بچي راوستلو چه هم په هغه ورځ پیدا شوې وو. رسول الله ﷺ دَ هغه بچي نه تپوس اوکړو، زه څوك یم؟ نو بچي جواب ورکړو تاسو دَالله تعالی رسول ئې. رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل تا رښتیا اووئیل الله تعالی دې تا برکتی کړی. معیقیب رضي الله عنه وائي چه بیا دغه ماشوم دَ ځوانیدو پورې هیڅ خبره نه ده کړې. (دَحضورپاك دَدعا دَوجې نه) په مونږ هغه ته مبارك الیمامة وئیلو سره آواز کولو.

**په حدیث باب باندې دَ یواشکال جواب:** په حدیث باب کښې دَحصر سره دَدریو بچو ذکر راغلې دې چه هغوی په زانګو کښې خبرې کړی دی. اشکال دادې چه په احادیثو کښې خودَدې نه علاوه ماشومانو تذکره هم راغلې ده؟

دَدې اشکال جواب بعض حضراتو دا ورکړې دې چه دا حصر په زانګو کښې خبرې کونکو ماشومانو سره دی. نورو کومو ماشومانو چه دَ پینو په موده کښې خبرې کړی دی هغوی په زانګو کښې نه وو. لیکن دا جواب محل نظر دې ځکه چه ابن قتیبه رحمه الله تصریح کړې ده چه دَکوم ماشوم مور په خندق کښې اچولې شوې وه هغه ماشوم دَ

[۱] المستدرك للحاکم، کتاب التاریخ: ۲/۵۹۵ دار المعرفة.
[۲] صحیح الإمام مسلم کتاب الزهد والرقائق، باب قصة أصحاب الأخدود، رقم الحدیث: ۷۵۱۱.
[۳] فتح الباري: ۸/۴۸۰ دار المعرفة.
[۴] دلائل النبوة للبیهقي: ۶/۱۴۰-۱۳۹ دار الکتب العلمیة، دار الریان للتراث.
[۵] دلائل النبوة للبیهقي: ۶/۱۴۰-۱۳۹ دار الکتب العلمیة، دار الریان للتراث.

اووه میاشتو وو. اودَ ابوهریره رضی الله عنه په یو روایت کښې صراحتاً ذکر دې چه هغه مهد یعنی زانګوکښې وو. بعض حضراتو دا جواب ورکړې دې چه هغه وخت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته دَ وحی په ذریعه خبرداری شوې دې. دغه وخت لاَ نورو ماشومانو حضور پاک ته علم نه وو شوې.[1]

شیخ الاسلام زکریا بن محمد انصاری رحمه الله دې آخری جواب ته ترجیح ورکړې ده.[2]

دَ جریج راهب سره متعلق دا روایت حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه محمد بن سیرین، امام اعرج، ابورافع اوحضرت ابوسلمه رحمهم الله روایت کړې دې. دَ امام اعرج رحمه الله روایت دَ کتاب الصلاة په اواخرکښې تیرشوې دې. دَ ابورافع رحمه الله په طریق سره دا روایت امام مسلم رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله روایت کړې دې اودَ ابوسلمه رحمه الله په طریق سره دَدې روایت تخریج امام احمدبن حنبل رحمه الله کړې دې. بل دا روایت حضرت ابوهریره رضی الله عنه سره حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه هم دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کړې دې.[3]

دَ عمران بن حصین رضی الله عنه په روایت کښې دی چه دَ جریج مور به هره ورځ دَهغه عبادت خانې ته راتلله، په هغه ورځ هغه دوه درې خل راغله اوهرخل به ئې جریج ته درې خل آواز کولو اوتلله به. دَ اعرج رحمه الله په روایت کښې دی چه جریج دَ مور دَ آواز په جواب کښې اوونیل «أمي وصلاتي لربي، أوثر صلاتي على أمي» یعنې دا خو هم زما مور ده اومونځ خو زما دَ رب دَپاره دې په دې وجه به زه مونځ له په مور باندې ترجیح ورکوم. دَ جریج دا خبرې شراح حدیث په کلام نفسی باندې محمول کړې دی. لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَ ظاهر حدیث نه معلومیږی چه داخبرې به په ژبه سره شوې وې ځکه چه په هغه وخت دَمونځ په حالت کښې خبرې کول مشروع وې لکه چه دَ اسلام په شروع کښې مشروع وې.[4]

دَ یزید بن حوشب عن ابیه په طریق سره مرفوع روایت کښې دی چه «لوکان جریج فقیهاً لعلم أن إجابة أمه أولى من صلاة» یعنې که چرې جریج فقیه وې نوهغه ته به ددې خبرې علم وو چه دَمور دَ آواز جواب ورکول دَهغه دَ مانځه نه افضل دی.[5]

**قوله: فتعرضت له امرأة فكلمته فأبى، فأتت راعيا فأمكنته من نفسها:** دې ښځې سره متعلق روایات مختلف دی. په روایت باب کښې دَ امرأة لفظ دې. مسند احمد کښې دَ وهب بن جریر بن حازم عن ابیه په طریق سره نقل شوی روایت کښې بغی (زانیه، فاحشه، بدکاره ښځې) لفظ راغلې دې. لیکن دَدغه ښځې دَنوم تصریح موجود نه ده البته دَعمران بن حصین رضی الله عنه روایت کښې بنت ملك القرية الفاظ نقل دی. اودَ اعرج په روایت کښې

---

[1] فتح الباري: ۴۸۰/۸.

[2] تحفة الباري: ۵۳۲/۶مكتبة الراشد.

[3] فتح الباري: ۴۸۰/۸رواية الأعرج عن أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه الإمام البخاري في كتاب الصلاة في باب إذا دعت الأم ولدها في الصلاة، رقم الحديث: ۱۲۰۶وأخرج رواية محمدبن سيرين في كتاب المظالم، في باب إذا هدم حائطا فليبن مثله، رقم الحديث: ۲۴۸۲وكذا في الباب الذي نحن بصدده، ورواية أبي رافع عن أبي هريرة رضي الله عنه فقد أخرجه الإمام مسلم في أبواب البروالصلة، في باب تقديم برالوالدين على التطوع بالصلاة وغيرها، رقم الحديث: ۶۵۰۸والإمام أحمد في مسنده: ۵۴۲/۱۳رقم الحديث: ۸۰۹۹مؤسسة الرسالة، وأما رواية أبي سلمة فأخرجه الإمام الهيثمي في كتابه، غاية المقصد في زوائد المسند:۹۲/۳ رقم الحديث: ۲۸۱۶دارالكتب العلمية، ورواية عمران بن حصين رضي الله عنه خرّجه الإمام الطبراني في معجمه الأوسط: ۲۷۹/۷رقم الحديث: ۷۴۹۸وكذا في المعجم الكبير: ۲۲۴/۱۸رقم الحديث: ۵۵۸مكتبة ابن تيمية، قاهرة.

[4] فتح الباري: ۴۸۱/۸.

[5] المصدرالسابق.

دی چه هغه ښځه دَ خارو وُرونکې وه. دغه شان مضمون مسند احمد کښې دَ ابورافع روایت کښې دې او هم دغه مضمون دَامام مسلم رحمه الله په صحیح کښې دَ ابوسلمه رحمه الله دَ روایت دې.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانی چه دَدې ټولو مختلف الفاظو په مینځ کښې دَ تطبیق صورت دادې چه هغه ښځه دَ خارو وُرونکې خونه وه بلکه دَکلې دَ ملك لور وه مګر چونکه هغې دا دعوی کړې وه چه هغه به خامخ جریج ګمراه کوی دَدې دپاره دَ دې عمل دَ بدلې دپاره ئې دا حیله اختیار کړه چه خپل خان له ئې دَ خارو وُرونکې په شان شکل و شباهت ورکړو دې دپاره چه جریج ګمراه کړې شی. لکه چه دَدې ښځې ګمان دا وو چه دَ یو رئیس دَ لور په شکل کښې مخې ته راتلونکې په نسبت زیاته بهتر طریقه داده چه دَ یو ناپیژند ګلو صورت او عامې ښځې په شکل کښې مخې ته راشی.[1]

**قوله: مومسات:** مومسات جمع دَ مومسة بفتح الميم وسكون الواو وكسر الميم وبعدها مهملة وتجمع على مواميس. مومسة: زانیه بدکار فاحشه ښځې ته وائی.[2]

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت په دې معنی دې چه ترجمة الباب دَ حضرت مریم علیها السلام قضیه سره متعلق دې. په کوم کښې چه دَحضرت عیسٰی علیه السلام دَ میلاد تذکره هم ده اودا چه هغه دَ مور په غیږ کښې کیدو سره هم دَ نوی راپیدا شوی ماشوموالی په حالت کښې کلام فرمائیلې په کوم کښې چه دَمسلك اعتدال طرف ته اشاره اودَ افراط اوتفریط تردید هم دې او هم دغه خبره په حدیث باب کښې تیره شوې ده چه حضرت عیسٰی علیه السلام پیدا کیدو سره خبرې کړې دی.[3]

[۳۲۵۴]- حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا هِشَامٌ، عَنْ مَعْمَرٍ، وَحَدَّثَنِي مَحْمُودٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ: "لَقِيتُ مُوسَى، قَالَ: فَنَعَتَهُ، فَإِذَا رَجُلٌ - حَسِبْتُهُ قَالَ - مُضْطَرِبٌ رَجِلُ الرَّأْسِ، كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ، قَالَ: وَلَقِيتُ عِيسَى فَنَعَتَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: رَبْعَةٌ أَحْمَرُ، كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيمَاسٍ - يَعْنِي الْحَمَّامَ - وَرَأَيْتُ إِبْرَاهِيمَ وَأَنَا أَشْبَهُ وَلَدِهِ بِهِ، قَالَ: وَأُتِيتُ بِإِنَاءَيْنِ، أَحَدُهُمَا لَبَنٌ وَالآخَرُ فِيهِ خَمْرٌ، فَقِيلَ لِي: خُذْ أَيَّهُمَا شِئْتَ، فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ، فَقِيلَ لِي: هُدِيتَ الْفِطْرَةَ، أَوْ أَصَبْتَ الْفِطْرَةَ، أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ" ص ۶۴۶-۶۴۷ [ر: ۳۲۱۴][4]

**ترجمه:** حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمانی: په کومه شپه چه زه معراج ته بوتلې شوم. موسٰی علیه السلام سره زما ملاقات اوشو لکه چه دَ شنوءة قبیله یو نرې اوږد سړې وی.

## تراجم رجال

**ابراهیم بن موسٰی:** دامشهور محدث ابواسحاق ابراهیم بن موسٰی التمیمی رحمه الله دې. دَدوی حالات «كتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجيله» لاندې تیرشوی دی.[5]

---

[1] فتح الباری ص۸/۴۸۱.
[2] فتح الباری: ۸/۴۸۱ تحفة الباری: ۶/۵۳۲.
[3] عمدة القاری: ۱۶/۳۰.
[4] مر تخريجه في نفس الكتاب في باب قول الله تعالى: ﴿وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ﴾ رقم الحديث ۳۳۹۴.
[5] کشف الباری کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها ص: ۱۹۹.

هشام: دا مشهور محدث هشام بن یوسف رحمه الله دی. د دوی تذکره هم سابقه کتاب او باب لاندې تیره شوې ده.[1]

معمر: دا ابوعروة معمر بن راشد بصری رحمه الله دی. د دوی تذکره «کتاب العلم باب کتابة العلم» لاندې تیره شوې ده.[2]

محمود: دا مشهور حافظ حدیث ابواحمد محمود بن غیلان عدوی المروزی رحمه الله دی. د دوی تذکره «کتاب مواقیت الصلاة باب النوم قبل العشاء لمن غلب» لاندې اوګورئ.

عبدالرزاق: دا مشهور امام ومحدث عبدالرزاق بن همام بن نافع الیمانی رحمه الله دی. د دوی تذکره «کتاب الایمان باب حسن إسلام المرء الخ» لاندې تیره شوې ده.[3]

الزهري: دا مشهور محدث ابوبکر محمد بن مسلم بن عبیدالله رحمه الله دی. د دوی تذکره د بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیره شوې ده.[4]

روایت باب نیز دې د «باب قول الله تعالی: ﴿وَهَلْ أَتٰكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى﴾» لاندې تیرشوې دی. هلته امام بخاری رحمه الله دا روایت د ابراهیم بن موسی رحمه الله په طریق سره روایت کړې دی. اودلته د ابراهیم بن موسی رحمه الله د طریق نه علاوه په دویم طریق سره هم دا حدیث روایت کړې دی اوهغه دویم طریق محمد بن غیلان عن عبدالرزاق عن معمر عن الزهری دی.[5]

تشریح:

قوله: حسبته قال مضطرب: عبدالرزاق همام رحمه الله وانی زما خیال دی چه معمر رحمه الله «فإذا رجل» سره «مضطرب» ونیلي وو. «مضطرب» د اهل لغت په نیز اوږد سړی ته وائی او نری مانده ته هم وائی. د هشام رحمه الله په یو روایت کښې لفظ «ضرب» راغلې دی اودې معنی هشام رحمه الله نحیف کړې ده. دغه شان په «ضرب» او «مضطرب» کښې هیڅ تعارض نشته دې دواړه د یو شان معنې الفاظ دی.

قاضی عیاض رحمه الله د هشام روایت ته ترجیح ورکړې ده او فرمائی چه روایت باب کښې راوی ته په لفظ «مضطرب» کښې شك شوې دی. په دې وجه اصح لفظ «ضَرْبٌ» دی. په یو بل روایت کښې لفظ «جسیم» راغلې دی او بنکاره خبره ده چه «جسیم» د خفیف اللحم کیدو منافی دی لیکن که چرې «جسیم» د «طویل القامة» په معنی کښې واخستې شی نو بیا هیڅ تعارض باقی نه پاتې کیږی.[6]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د اوږد قد والامعنی متعین ده ځکه چه د دې تائید د روستونی روایت سره هم کیږی. دکوم الفاظ چه دا دی: «کأنه من رجال الزط وهم طوال غیر غلاظ» یعنی موسی علیه السلام د زط قبیلې د خلقو په شان اوږدقد والا وو د درونډ بدن والانه وو.[7]

---

[1]) کشف الباري: کتاب الحیض ص: ۲۰۲.

[2]) کشف الباري: ۳۲۱/٤.

[3]) کشف الباري: ٤۲۱/۲.

[4]) کشف الباري: ۳۲٦/۱.

[5]) عمدة القاري: ۳۲/۱٦.

[6]) إکمال المعلم بفوائد مسلم کتاب الإیمان باب الإسراء برسول الله صلی الله علیه وسلم: ۵۱۳/۱ رقم الحدیث: ۲٦۷ دارالوفاء للطباعة والنشر.

[7]) فتح الباري: ٤۸٤/٦ إرشادالساري: ۳۹٦/۷.

**قوله: ولقيت عيسى فنعته النبي صلى الله عليه وسلم**...... رسول الله ﷺ فرمائيلي چه عيسى عليه السلام سره هم زما ملاقات اوشو. حضورپاك دهغوى صورت مبارك بيانولوسره اوفرمائيل: «ربعة أحمر كأنما خرج من ديماس» درميانه قد نى وو سور رنګ نى وو (اوداسې تروتازه وو) لكه چه هم اوس دحمام نه راوتلې وى. ما ابراهيم عليه السلام اوليدلو زه دهغوى په اولاد كښې دټولو نه زيات دهغوى په شان يم.

رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه ما له دوه لوښى راوړلې شو په يو كښې پيئى او بل كښې شراب وو. ماته اووئيلې شو «ويونكې جبرائيل وو» تاته په دواړو كښې دكوم يو لوښى اخستو اختيار دې. ما د پيئو لوښې واخستو او پيئى مې اوڅكل. ماته اوخودلې شو چه تاته د فطرت د طرف نه هدايت ملاؤ شو يا تاسو فطرت اختيار كړو. كه چرې تاسو شراب اخستې وې نو ستاسو امت به ګمراه كيدو. دلته راوى حديث ته شك دې چه يا خو حضورپاك «هديت الفطرة» اوفرمائيل يا «أصبت الفطرة» فرمائيلي وو.

**[۳۲۵۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، أَخْبَرَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «رَأَيْتُ عِيسَى وَمُوسَى وَإِبْرَاهِيمَ، فَأَمَّا عِيسَى فَأَحْمَرُ جَعْدٌ عَرِيضُ الصَّدْرِ، وَأَمَّا مُوسَى، فَآدَمُ جَسِيمٌ سَبْطٌ كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ الزُّطِّ» ص ۶۴۹]**[1]

## تراجم رجال

**محمدبن كثير:** دا محمدبن كثير العبدى البصرى رحمه الله دې. «كتاب العلم باب الغضب فى الموعظة» لاندې ددوى تذكره تيره شوې ده.[2]

**اسرائيل:** دا اسرائيل بن يونس بن اسحاق همدانى رحمه الله دې. «كتاب العلم باب من ترك بعض الاختيار مخافة أن يقصر فهم بعض الناس عنه» لاندې د دوى تذكره تيره شوې ده.[3]

**عثمان بن المغيرة:** دا ابوالمغيرة عثمان بن المغيرة الثقفى الكوفي الاعشى رحمه الله دې. ده ته عثمان بن ابى زرعه هم وائى. ابوزرعة ددوى د پلار مغيرة كنيت دې اودې د صغار تابعينونه دى.[4]

هغوى د زيد بن وهب، ابوصادق ازدى، اياس بن ابى رمله، سالم بن ابى الجعد، مجاهد بن جبر، مهاجر الشامى، على بن ربيعه او ابويعلى كندى رحمهم الله نه دحديث روايت كړې دې اوددوى نه شعبه، اسرائيل، سفيان ثورى، شريك، مسعر، قيس بن الربيع، ابوعوانه رحمهم الله او نورو رواة حديث روايت كړى دى.[5]

امام احمدبن حنبل فرمائى: «كوفى، ثقة، ليس أحد أروى عنه من شريك» يعنى عثمان بن مغيرة يو ثقه راوى دې اود هغوى نه د ټولونه زيات روايت كونكې شريك بن عبدالله رحمه الله دې.[6] ابن معين، ابوحاتم، امام نسائى او عبدالغنى بن

---

[1] أخرجه فى كتاب التعبير وباب رؤيا الليل رقم: ۶۹۹۹وباب الطواف بالكعبة فى المنام رقم: ۷۰۲۶وفى كتاب اللباس باب الجعد رقم: ۵۹۰۲وفى كتاب الفتن باب ذكر الدجال رقم: ۷۱۲۹ومسلم فى الإيمان باب ذكر المسيح من مريم والمسيح الدجال رقم: ۱۲۹.

[2] كشف البارى: ۵۳۶/۳.

[3] كشف البارى: ۵۳۶/٤.

[4] تهذيب التهذيب: ۸۰/۳مؤسسة الرسالة عمدة القارى: ۳۲/۱۶تهذيب الكمال: ۴۹۷/۱۹.

[5] تهذيب الكمال: ۴۹۸/۱۹تهذيب التهذيب: ۸۰/۳

[6] تهذيب الكمال: ۴۹۸/۱۹تهذيب التهذيب: ۸۰/۳

سعید رحمهم الله دَ هغوی توثیق کړې دې.[1] ابن حبان رحمه الله دَ هغوی ذکر کتاب الثقات کښې کړې دې.[2] امام عجلی رحمه الله هم دَهغوی توثیق کړې دې.[3] امام مسلم رحمه الله نه علاوه باقی ائمه حدیث دَهغوی دَ روایاتو تخریج کړې دې.[4]

**مجاهد:** دا مجاهد بن جبر مکی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب الفهم فی العلم» لاندې تیره شوې ده.[5]

**عن مجاهد عن ابن عباس:** عثمان بن مغیره رحمه الله چاچه دَ صحیح بخاری دا روایت مجاهد عن ابن عمر په طریق سره روایت کړې دې. دَهغوی په صحیح بخاری کښې صرف هم دغه روایت دې. دَدې روایت دَ سند سره متعلق حافظ رحمه الله فرمائی چه په دې کښې دَ امام بخاری رحمه الله نه غلطی شوې ځکه چه په ځائې دَ مجاهد عن ابن عمر صحیح دادې چه دا روایت محمدبن کثیر، دغه شان اسحاق بن منصور، ابن ابی زائده او یحیٰی بن آدم رحمهم الله وغیره دَ إسرائیل عن عثمان عن مجاهد عن ابن عباس په طریق سره روایت کړې دې. یعنی دَدې حدیث روایت کونکې ابن عباس رضی الله عنهما دې نه چه ابن عمر رضی الله عنهما. دا قول دَ امام نسائی رحمه الله نه نقل دې.

محدث ابوزرعه رحمه الله فرمائی: «هكذا وقع فى جميع الروايات المسموعة عن الفربري عن مجاهد عن ابن عمر، ولا أدري أهكذا حدث به البخاري أوغلط فيه الفربري، لأن المحفوظ رواية ابن كثير عن مجاهد عن ابن عباس» یعنی معلومه نه ده چه دا غلطی دَ امام بخاری رحمه الله نه شوې ده یا دَ هغه راوی فربری نه، ځکه چه صحیح او محفوظ دادې چه دا روایت محمدبن کثیر دَ مجاهد عن ابن عباس په طریق سره روایت کړې دې. هم دغه خبره ابن منده رحمه الله هم ذکر کړې ده. الحاصل صحیح سند عن ابن عمر په ځائې مجاهد عن ابن عباس دې.[6]

محمد بن اسماعیل تیمی رحمه الله فرمائی زما زړه دا وائی چه دا وهم دَ امام بخاری رحمه الله نه نه دې صادر شوې بلکه دَ یو ناقل وغیره نه شوې دې ځکه چه اسماعیلی دا روایت نصر بن علی عن ابی احمد په طریق سره روایت کړې دې او سند نی په حضرت ابن عباس رضی الله عنهما باندې ختم کړې دې اوداسې هیڅ خبره نی نه ده ذکر کړې چه امام بخاری رحمه الله دا روایت دَ ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل کړې دې. که چرې دا وهم دَ امام بخاری رحمه الله نه واقع شوې وې نو اسماعیلی به ضرور دَ خپل عادت مطابق په هغې باندې متنبه کولو.[7] لیکن په دې باندې رد کولوسره علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دَاسماعیلی په تنبیه نه کولوسره دا نه لازم کیږی چه دا وهم دَ امام بخاری رحمه الله نه نه دې صادر شوې ځکه چه امام بخاری رحمه الله معصوم نه دې دَهغه نه خطا اوتسامح ممکن دې.[8]

دَ صحیح بخاری په ټولو نسخو کښې دا روایت عن مجاهد عن ابن عمر په الفاظو سره محفوظ شوې دې حالانکه صحیح دادې دا دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دې. حافظ ابوذر رحمه الله هم په دې تسامح باندې تنبیه کړې ده او فرمائی چه دا روایت دَ فربری نه مسموع صحیح بخاری په ټولو نسخو کښې عن مجاهد عن ابن عمر په سند سره نقل دې. بیا وائی چه ماته معلومه نه ده چه امام بخاری رحمه الله دا حدیث هم په دې سند سره املا کړې دې یا دا دَ فربری تسامح دې ځکه چه دَدې روایت څومره هم طرق دی په ټولو کښې دا عن مجاهد عن ابن عباس په طریق سره نقل

---

[1] تهذيب الكمال: ۴۹۸/۱۹ تهذيب التهذيب: ۸۰/۳ مؤسسة الرسالة.

[2] ۱۹۳/۷ دارالفكر.

[3] معرفة الثقات للعجلي: ۱۳۱/۲ مكتبة الدار، المدينة المنورة.

[4] تهذيب الكمال: ۴۹۹/۱۹ مؤسسة الرسالة.

[5] كشف الباري: ۳۰۷/۳.

[6] عمدة القاري: ۱۶/۳۳-۳۲ فتح الباري: ۴۸۵/۸-۴۸۴.

[7] فتح الباري: ۴۸۵/۸.

[8] عمدة القاري: ۳۳/۱۶.

دي چنانچه ابونعيم په المستخرج كښې دا روايت عن الطبراني عن أحمد بن مسلم الخزاعى عن محمد بن كثير په طريق سره د روايت كولو نه پس فرمائى «قال البخاري عن محمد بن كثير عن ابن عمر والصواب عن ابن عباس، ووقع في البخاري في سائر النسخ: مجاهد عن ابن عمر، وهو غلط».

محمد بن اسماعيل تيمى رحمه الله په دې باندې يو دليل هم پيش كړې دې چه دا روايت د ابن عباس رضي الله عنهما دې نه چه د ابن عمر رضي الله عنهما او هغه دا دې چه ابن عمر رضي الله عنهما حلفًا د حضرت عيسىٰ عليه السلام د احمر اللون كيدو نه انكار كړې وو خو د مجاهد رحمه الله په روايت كښې «فأما عيسى فأحمر جعد» الفاظ وارد دى. دې نه ثابته شوه چه مجاهد رحمه الله دا حديث ابن عباس رضي الله عنهما نه اخستې دې نه چه د ابن عمر رضي الله عنه. والله اعلم.(١)

**قوله: رأيت عيسى وموسى وإبراهيم**...... د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ما موسىٰ عليه السلام او ابراهيم عليه السلام اوليدل عيسىٰ عليه السلام سور رنګ ګورګوچې ويښته او د پلنې سينې والا وو او موسىٰ عليه السلام غنم رنګې نيغو ويښتو والا لکه چه د زط خلق وى.

**قوله: كأنه من رجال الزّط** زط د زاء په ضمه او طاء په تشديد سره په دې كښې دوه قوله دى. يو دا چه زط د سوډان د يوې قبيلې نوم دې. دويم قول دا دې چه دا د هنود يو قوم دې د دې قوم سړى اوږده او مانده وى

**يو اشكال او د هغې جواب:** په روايت باب كښې د عيسىٰ عليه السلام يو صفت دا خودلې شوې چه هغه جسيم وو. د دې باب په وړاندينى روايت كښې «ضرب من الرجال» الفاظ راغلى دى. ضرب تيز او مانده سړى ته وائى. په دواړو روايتونو كښې تعارض دې.

ابن التين رحمه الله فرمائى چه كيدې شى د راوى حديث نه الفاظ ګډوډ شوى دى. كوم لفظ چه د كوم روايت وو هغه ئى په دويم روايت كښې بيان كړو. چنانچه لفظ جسيم په حقيقت كښې د دجال په صفت كښې بيان شوې دې نه چه د عيسىٰ عليه السلام په صفت كښې. شراح حديث د دې جواب دا وركړې دې چه د جسامت اطلاق السمن يعنى چاقوالى سره په اوږد قامت باندې هم كيږى او دلته مراد هم اوږد قامت دې. اوس مطلب دا شو چه عيسىٰ عليه السلام مانده او خفيف اللحم كيدو سره د اوږد قامت والاهم وو.(٢)

[٣٢٥٧/٣٢٥٦] - حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ، حَدَّثَنَا أَبُو ضَمْرَةَ، حَدَّثَنَا مُوسَى، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَوْمًا بَيْنَ ظَهْرَيِ النَّاسِ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ، أَلاَ إِنَّ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ أَعْوَرُ العَيْنِ اليُمْنَى، كَأَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ، ص ٦٥٣-٦٥٤](٣)

- وَأَرَانِي اللَّيْلَةَ عِنْدَ الكَعْبَةِ فِي المَنَامِ، فَإِذَا رَجُلٌ آدَمُ، كَأَحْسَنِ مَا يُرَى مِنْ أُدْمِ الرِّجَالِ تَضْرِبُ لِمَّتُهُ بَيْنَ مَنْكِبَيْهِ، رَجِلُ الشَّعَرِ، يَقْطُرُ رَأْسُهُ مَاءً، وَاضِعًا يَدَيْهِ عَلَى مَنْكِبَيْ رَجُلَيْنِ وَهُوَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ، فَقُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ فَقَالُوا: هَذَا المَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ، ثُمَّ رَأَيْتُ رَجُلًا وَرَاءَهُ جَعْدًا قَطِطًا أَعْوَرَ العَيْنِ اليُمْنَى، كَأَشْبَهِ مَنْ رَأَيْتُ بِابْنِ قَطَنٍ، وَاضِعًا يَدَيْهِ عَلَى مَنْكِبَيْ رَجُلٍ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ، فَقُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: المَسِيحُ الدَّجَّالُ" تَابَعَهُ عُبَيْدُ اللَّهِ [ص: ٨٧]، عَنْ نَافِعٍ

---

(١) فتح البارى: ٤٨٤-٤٣٨٥/٨.

(٢) فتح البارى: ٥٩٩/٨ وإرشاد السارى: ٣٩٧/٧.

(٣) مر تخريجه فى كتاب الجهاد والسير باب كيف يعرض الإسلام على الصبى رقم: ٣٠٥٧.

## تراجم رجال

**ابراهیم بن المنذر**: دا ابراهیم بن منذر الحزامی المدنی رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب من سئل علماً وهو مشتغل فی حدیثه الخ» لاندې تیره شوې ده.[1]

**ابوضمیرة**. دا انس بن عیاض لیثی رحمه الله دی. دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.[2]

**موسیٰ**: دا موسیٰ بن عقبه الاسدی المدنی رحمه الله دی. دَدوی تذکره هم مخکښې تیره شوې ده.[3]

**نافع**: دا ابوعبدالله نافع المدنی مولی عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دی. دَ دوی تذکره «کتاب العلم باب من أجاب السائل بأكثر مما سأله» لاندې تیره شوې ده.[4]

**عبدالله** : دا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دی. دَدوی تذکره «کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم بنی الاسلام علی خمس» لاندې تیره شوې ده.[5]

**قوله: ذکر النبی صلی الله علیه وسلم یوماً بین ظهری الناس**...... دَحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما روایت دی چه رسول الله ﷺ دَ خلقو په مینځ کښې ناست وو دَ دجال ذکر کولو سره نی اوفرمائیل الله تعالی کانړې نه دې او دمسیح دجال ښې سترګه کانړې ده لکه چه دَهغه سترګه به دَ سپړسیدلی انګور په شان وی.

**قوله: بین ظهري**: دَ ظاء فتحه او هاء سکون سره دَتثنیه صیغه ده. یعنی دَ خلقو په مینځ کښې داسې ناست وو چه حضورپاک ټولو ته ښکاریدو.

**قوله: وأراني اللیلة عند الکعبة في المنام**: اوزه دَ شپې په خوب کښې خپل ځان کعبې سره وینم په دې کښې چه ګورم یو ښائسته غنم رنګې سړې دَ غنم رنګې خلقو نه چه زیات تأثیر نی لرلو (هم دومره تأثیر ئې وو) دَ چاوېښته چه دَ اوږو پورې نیغ وو اودَ هغه دَ سر نه اوبه څڅیدې. هغه خپل دواړه لاسونه دَ نورو دوو سړو په اوږو باندې ایخودې وو او په دغه کیفیت کښې هغه طواف کولو. ما تپوس اوکړو دا څوک دې؟ راته اوخودلې شو دا مسیح بن مریم دې.

بیا ما دَهغه شاته یو بل سړې اولیدلو دَ سختو ګرګوجو ویښتو والا، چه په ښې طرف سترګه باندې کانړې وو. په کومو خلقو کښې چه ما اوکتلو په هغوی کښې هغه دَ عبدالعزی بن قطن سره زیات مشابهت لرلو. هغه خپل دواړه لاسونو دَ یوسړی په اوږو باندې کیخودی دَ کعبې طواف کولو. ماتپوس اوکړو دا څوک دې؟ راته اوخودلې شو دا مسیح دجال دې.

**قوله: رجل الشعر**: رجل دَ راء کسره سره. مطلب دادې چه هغه ویښته په تیل باندې مږلی او ږمونځ کړې ښائسته کړې وو. دَ امام مالک رحمه الله په روایت کښې دی «له لمة كأحسن ما أنت راءٍ من اللمم قد رجّلها فهي تقطر ماء»[6] یعنی دَ هغه ویښته دَ اوږو پورې وو کوم چه هغه په ږمونځ باندې اړولې وو او دَهغې نه اوبه څڅیدې.

---

[1] کشف الباری: ۳/ ۵۸.

[2] اوګورئی کتاب الوضوء باب التبرّز فی البیوت: ۱۴۸.

[3] اوګورئی کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء: ۱۳۹.

[4] کشف الباری: ۴/ ۶۵۱

[5] کشف الباری: ۱/ ۶۳۷

[6] المؤطا للإمام مالک الجامع ماجاء فی صفة عیسیٰ ابن مریم علیه السلام والدجال رقم الحدیث:۵۰۴۲، ۵/ ۱۳۴۸مؤسسة زاید بن سلطان.

قوله: یقطر رأسه ماء: دوه مطالب کیدې شی. چه یا خو دا په حقیقت باندې محمول وی چه هغه په اوبو سره د سر وینځلو سره په گمنز باندې اړولې وو او هم دغه اوبه ترې څڅیدلې. دې نه مخکښې روایت کښې دهٔ لفظ راغلې دې لکه چه هغه د حمام نه لمبیدلی راوتلې وی. او یا بیا د مخ ښائست او حسن او تازه والی نه کنایه ده چه د هغه د مخ رنګ دومره تازه او صفا وو لکه چه هغه په سپینو اوبو سره لوند شوې وی او هغه د اوبو څاڅکی ترې څڅیدلې. د دې دویم احتمال تائید د مسند احمد او سنن ابی داؤد روایت نه هم کیږی. دا د عبدالرحمن بن آدم عن ابی هریره په طریق سره نقل دې. د دې الفاظ دادی: «يقطر رأسه ماءوان لم يصبه بلل»[1]

[٣٢٥٧]- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَكِّيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ إِبْرَاهِيمَ بْنَ سَعْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: لاَ وَاللَّهِ مَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعِيسَى أَحْمَرُ، وَلَكِنْ قَالَ: "بَيْنَمَا أَنَا نَائِمٌ أَطُوفُ بِالْكَعْبَةِ، فَإِذَا رَجُلٌ آدَمُ، سَبْطُ الشَّعَرِ، يُهَادَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ، يَنْطِفُ رَأْسُهُ مَاءً، أَوْ يُهَرَاقُ رَأْسُهُ مَاءً، فَقُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: ابْنُ مَرْيَمَ، فَذَهَبْتُ أَلْتَفِتُ، فَإِذَا رَجُلٌ أَحْمَرُ جَسِيمٌ، جَعْدُ الرَّأْسِ، أَعْوَرُ عَيْنِهِ الْيُمْنَى، كَأَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ، قُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: هَذَا الدَّجَّالُ، وَأَقْرَبُ النَّاسِ بِهِ شَبَهًا ابْنُ قَطَنٍ" قَالَ الزُّهْرِيُّ: رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ، هَلَكَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ ص ٤٥٦ [٥٥٦٢، ٦٥٩٨، ٦٧٠٩ وانظر ٣١٥٩][2]

## تراجم رجال

**احمدبن محمدالمكي:** دا احمدبن محمدبن الوليد ابومحمد الازرقی المکی رحمه الله دې.[3]

**ابراهيم بن سعد:** دا ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف زمون مدنی رحمه الله دې. د دوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.[4]

**الزهري:** دامحمدبن مسلم بن شهاب زهری رحمه الله دې.[5]

**سالم:** دا سالم بن عبدالله بن عمر بن الخطاب رحمه الله دې. د دوی تذکره «کتاب الایمان باب الحیاء من الایمان» لاندې تیره شوې ده.[6]

**عن ابيه:** دې نه عبدالله بن عمر رضی الله عنهما مراد دې. د دوی تفصیلی تذکره «کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: بنی الاسلام علی خمس» لاندې تیره شوې ده.[7]

**قوله: قال: لاوالله ماقال النبي صلى الله عليه وسلم لعيسى أحمر:** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما وائی په الله قسم! رسول الله صلی الله علیه وسلم د عیسی باره کښې دا نه دی وئیلی چه هغه د سور رنګ والا وو

---

[1] سنن أبی داؤد کتاب الملاحم، باب خروج الدجال، رقم الحدیث: ٤٣٢٤ مسندالإمام أحمد: ٣٩٨/١٠ رقم الحدیث: ٩٦٣٢ الرسالة، جامع الأصول فی أحادیث الرسول: ٣٢١/١٠ رقم الحدیث: ٣١٧٨.

[2] أخرجه مسلم فی الفضائل رقم: ٢٣٦٥، باب فضل عیسیٰ، وأبوداؤد، رقم: ٤٦٧٥، فی السنة، باب التخییر بین الأنبیاء علیهم السلام.

[3] اوګورئی: کتاب الوضوء باب الاستنجاء بالحجارة: ١٥٥.

[4] کشف الباری: ١٢٠/٢، ٣٣٣/٣.

[5] کشف الباری: ٣٢٦/١.

[6] کشف الباری: ١٢٨/٢.

[7] کشف الباری: ٦٣٧/١.

**په احاديث كښې تعارض اودَ هغې حل:** دې نه اول دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما روايت كښې دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام باره كښې «أحمر» لفظ راغلې دې. سوال دادې چه په دې روايت كښې ولې ابن عمر رضي الله عنهما په قسم سره اوفرمائيل چه حضورپاك حضرت عيسىٰ عليه السلام ته «أحمر» اونه وئيل؟

حقيقت دادې چه دَ «أحمر» لفظ ثابت دې او حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَدواړو روايات په دې باندې متفق دی مګر دلته ابن عمر رضي الله عنهما دَ داسې څيزنه انكاركړې دې كوم چه دوو صحابه حضراتو محفوظ كړې دې.(1)

**دَ ابن عمر دَ انكار توجيه:** دَ حمرت وصف دجال او عيسىٰ عليه السلام دَدواړو په تذكره كښې راغلې دې او كيدې شي حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دَ عيسىٰ عليه السلام په وصف كښې لفظ «آدم» اوريدلې وی او په دې بنياد باندې هغوی دا ګڼړلې وی چه په حديث كښې «حمرت» وصف خودَ دجال سره خاص دې او كله چه حضورپاك حضرت عيسىٰ عليه السلام ته «آدم» يعنی غنم رنګې اوفرمائيل نوهغه «أحمر» څنګه كيدې شی. په دې وجه هغوی دَ غالب ګمان په وجه باندې په قسم سره اووئيل چه عيسىٰ عليه السلام ته «أحمر» نه دې فرمائيلې اوكه چرې يو راوی «أحمر» روايت كړې وی نوهغه هم هغوی دَ غالب ګمان دَ وجې نه دَ راوی وهم ګرځولې وی.(2)

**"سبط الشعر" سره متعلق يواشكال اودَ هغې جواب:** په دې روايت كښې حضرت عيسىٰ عليه السلام ته «سبط الشعر» يعنی دَ نيغو ويښتو والافرمائيلې. دې نه مخكښې روايت كښې فرمائيلی «أنه جعد» خو «جعد» ضد دې دَ «سبط» په ظاهر په دواړو كښې تعارض دې.

شراح حديث دَ دواړو په مينځ كښې تطبيق وركولو سره فرمائيلی چه «سبط الشعر» نه خو هم ويښته مراد دی چه هغه نيغ وو او دَ «جعد» نه ويښته نه بلكه بدن مراد دې او مطلب دادې چه دَهغه بدن كمزورې وو.(3)

**دَحديث نه مستنبط فائده:** په روايت كښې ابن عمر رضي الله عنهما دَ ظن غالب په بنياد باندې قسم خوړلې شراح حديث ددې نه دا فائده مستنبط كړې ده چه په يو معامله كښې په غالب ګمان باندې قسم خوړل جائز دی.(4)

**قوله: بينما أنا نائم.....** په دې روايت كښې دَ رؤيت منامی تصريح ده. شاته رؤيت دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې «ليلة أسري بي» الفاظ راغلی دی چه هغې كښې تصريح ده چه هغه رؤيت په معراج كښې شوې وو او دَ بيدارنې په عالم كښې شوې وو دواړه روايتونه جدا جدا دی. دلته په خوب كښې دَ ليدلو تصريح ده اوهلته «يقظه» يعنی دَ بيدارنې په عالم كښې رؤيت تصريح ده په مذكوره روايت كښې چه دَ كوم رؤيت تذكره كړې شوې ده دغه رؤيت حديث دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه ذكركړې شوې رؤيت نه كوم چه په ليلة الاسراء يعنی په شپه دمعراج كښې شوې جدا دې او كوم رؤيت چه په ليلة الاسراء كښې شوې هغې سره متعلق صحيح قول هم دغه دې چه هغه رؤيت دبيدارنې په عالم كښې شوې وو او په هغه شپه نبی كريم صلى الله عليه وسلم دَحضرات انبياء كرام عليهم السلام زيارت دَهغوی په حقيقی اجسامو سره كړې وو. نه دا چه دَ ملاقات تعلق دَ حضرات انبياء كرام دَ ارواح سره وو.(5)

---

(1) فتح الباري: ۶۰۱/۸ وإرشادالساري: ۳۹۸/۷.

(2) فتح الباري: ۶۰۲/۸ وعمدة القاري: ۴۸/۱۶ وإرشادالساري: ۳۹۹/۷-۳۹۸.

(3) فتح الباري: ۶۰۱/۸ وإرشادالساري: ۳۹۹/۷.

(4) عمدة القاري: ۳۴/۱۶ إدارة الطباعة المنيرية.

(5) عمدة القاري: ۳۵/۱۶.

**په ليلة الاسراء كښې دَ انبياء كرام ارواح سره ملاقات شوې وو كه اجساد سره؟** په شپه دَ معراج كښې انبياء كرام عليهم السلام سره دَ رسول الله ﷺ ملاقات دَهغوى اجساد او اشخاص سره شوې وو كه ارواح سره؟ علامه عينى رحمه الله په صراحت سره فرمائيلى چه دا ملاقات اجساد او اشخاص سره شوې وو.[1] حافظ ابن حجر رحمه الله دَ تحقيق نه پس دې رائې ته ترجيح وركړې ده چه دا ملاقات اجساد مع ارواح سره شوې وو او په دې باندې هغه دَ مختلف رواياتو نه استدلال كړې دې.[2]

امام بيهقى رحمه الله «حياة الأنبياء بعد وفاتهم» باندې يو جامع كتاب تاليف كړې دې. په هغې كښې هغوى يحيىٰ بن ابى بكير په طريق سره دَحضرت انس رضي الله عنه روايت نقل كړې دې: «الأنبياء أحياء فى قبورهم يصلون» يعنى انبياء كرام په خپلو قبرونو كښې ژوندى دى او مونځ هم اداكوى.[3] په دې روايت باندې امام بيهقى رحمه الله صحيح مسلم كښې دَحضرت انس رضي الله عنه يو بل مرفوع روايت دَ شاهد په توګه پيش كړې دې. په هغې كښې رسول الله ﷺ فرمائيلى: «أتيت على موسى ليلة أسري بي عند الكثيب الأحمر وهو قائم يصلي فى قبره» يعنى زه دَ اسراء په شپه (بيت المقدس كښې) دَ سرې غونډۍ سره تېر شوم نو موسىٰ عليه السلام په خپل قبر كښې دَ قيام په حالت مونځ كولو.[4]

كه چرې دا اوونيلې شى چه دا روايات خو صرف حضرت موسىٰ عليه السلام سره خاص دى چه هم هغه حضورپاك په قبر كښې په مانځه كولو سره ليدلې دې نودَ نورو انبياء كرامو تصريح په دې كښې نشته دې، نو په دې باندې هم امام بيهقى دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه مرفوع روايت په توګه دَ شاهد نقل كړې دې چه رسول الله ﷺ فرمانى: «وقد رأيتنى فى جماعة من الأنبياء فإذا موسى قائم يصلي، فإذا رجل ضرب كأنه من رجال شنوءة، وإذا عيسى ابن مريم قائم يصلي، أقرب الناس به شبها عروة بن مسعود، وإذا إبراهيم قائم يصلي أشبه الناس به صاحبكم، يعنى: نفسه فحانت الصلاة فأممتهم»[5]

يعنى ما دَ انبياء كرامو يو جماعت سره خپل خان اوليدلو نو ما موسىٰ عليه السلام اوليدو چه په ولاړه ئى مونځ كولو تكړه تيز سړې لكه دَ شنوءة قبيلې يوسړې وى او عيسىٰ بن مريم مې اوليدلو چه په ولاړه ئى مونځ كولو دَهغه سره دَ ټولو نه زيات مشابهت دَ عروه بن مسعود دې او ابراهيم عليه السلام مې اوليدلو چه هغه هم په ولاړه مونځ كولو ستاسو صاحب (يعنى پخپله رسول الله ﷺ) هغوى سره دَ ټولو نه ډېر زيات مشابهت دې. چنانچه دَ مانځه وخت شو نو ما دَهغوى امامت اوكړو.

دا روايت امام مسلم دَ عبدالله بن الفضل عن ابى سلمه په طريق سره روايت كړې دې.[6]

يو بل روايت چه دَ سعيد بن المسيب عن ابى هريره په طريق سره نقل دې په هغې كښې «أنه لقيهم فى المقدس» الفاظ راغلى دى، يعنى انبياء كرام سره دَحضورپاك مقالات بيت المقدس كښې اوشو خودَ ابوذر او مالك بن صعصعه په روايت كښې «أنه لقيهم فى جماعة من الأنبياء فى السموات وكلمهم وكلموه» الفاظ راغلى دى.[7]

**يواشكال اودَهغې جواب:** دلته اشكال پيداكيږى چه كله نبى كريم ﷺ انبياء كرام عليهم السلام دَهغوى په قبرونو كښې اوليدل نوبيا هغوى سره په آسمان كښې ملاقات څنګه اوشو؟ شراح حديث دَدې جواب وركړې دې

---

[1]) المصدر السابق.

[2]) فتح البارى: ۶/۴۸۶.

[3]) حياة الأنبياء بعد وفاتهم ص: ۷۲-۷۱ مكتبة العلوم والحكم المدينة المنورة.

[4]) حياة الأنبياء بعد وفاتهم ص: ۸۱-۸۹ مكتبة العلوم والحكم. صحيح الإمام مسلم كتاب الفضائل وباب: من فضائل موسى، رقم الحديث: ۶۱۵۷، ۶۱۵۸.

[5]) حياة الأنبياء بعد وفاتهم ص: ۸۳ مكتبة العلوم والحكم.

[6]) صحيح الإمام مسلم كتاب الإيمان باب ذكر المسيح ابن مريم والمسيح الدجال، رقم الحديث: ۴۳۰.

[7]) حياة الأنبياء بعد وفاتهم ص: ۸۴ مكتبة العلوم والحكم، المدينة المنورة.

چه انبياء كرام اول په قبرونو كښې وو چرته چه حضورپاك هغوى په ژوندى حالت كښې اوليدل اوچه كله معراج اوشو نونبى كريم په توګه د حضورپاك د ملاقات د پاره آسمانونو ته بوتلې شو. بيا د ټولو انبياء كرامو په بيت المقدس كښې اجتماع اوشوه او په مانځه كښې د هغوى امامت حضورپاك اوكړو.[1]

شراح فرمائى چه د انبياء كرام په مختلف اوقاتو كښې او په مختلف مقاماتو كښې مونځ كول خو نقلاً ثابت دى عقل هم دا منى. علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا هم مستبعد نه دى چه تركومې پورې دنيا قائم وى انبياء كرام عليهم الصلوات والتسليمات مونځ حج او د خپل مقدرت او استطاعت په اندازه به هرقسم نيك اعمال اداكوى.[2]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د نقول حديث نه حيات انبياء كرام ثابت دى او قرآنى نص سره چونكه د شهداء امت حيات ثابت دې نو دې نه هم حيات انبياء ثابت شو ځكه چه انبياء د شهداء نه افضل دى بيا په دې باندې هغه د احاديثو نه شواهد پيش كړى دى. په سنن ابوداؤد كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه مرفوع روايت كښې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم فرمائى: «صلوا على، فإن صلاتكم تبلغنى حيث كنتم» يعنى په ما باندې درود وايئى ځكه چه تاسو چرته هم نى ستاسو هغه درود ماته رارسيږى.[3]

هم دغه شان سنن ابى داؤد او سنن نسائى كښې د اوس بن اوس يو مرفوع حديث د جمعه د فضيلت په بيان كښې نقل دې په هغې كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى «فأكثروا على من الصلاة فيه، فإن صلاتكم معروضة على» يعنى د جمعې په ورځ په ما باندې په كثرت سره درود وايئى ځكه چه ستاسو درود ماته پيش كولې شى.[4]

صحابه كرامو عرض اوكړو «وكيف تعرض صلاتنا عليك وقد أرمت؟» زمونږ درود به په تاسو باندې څنګه پيش كړې شى حالانكه تاسو خو (قبر كښې) به خراب شوې يئى؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: «إن الله حرم على الأرض أن تأكل أجساد الأنبياء» الله تعالى په زمكه باندې دا خبره حرام كړې ده چه هغه دې د انبياء كرامو بدنونه اوخورى.

**يو اشكال او د هغې جواب:** سنن ابوداؤد كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه يو مرفوع روايت كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائى: «ما من أحد يسلم على إلا رد الله على روحى حتى أرد عليه السلام» يعنى چه څوك سړې هم په ما باندې سلام كوى نو الله تعالى ماته خپل روح راواپس كوى ترهغې پورې چه زه د هغه د سلام جواب وركړم.[5]

د دې حديث ټول راويان ثقه دى. اشكال دا دې چه يو طرف ته مونږ وايو چه انبياء په خپلو قبرونو كښې ژوندى دى حالانكه په دې روايت كښې بدن ته د روح واپس راتلو ذكر دې او دا مستلزم دى د بدن نه روح منفصل كيدو ته او ظاهر دى چه انفال روح سره په بدن باندې مرګ شروع كيږى. شراح حديث د دې اشكال مختلف جوابونه وركړى دى: ① «رد الله على روحى» مطلب دا دې چه روح د تدفين نه پس د حضورپاك په پاك بدن مبارك كښې راواپس شو. دا مطلب نه دې چه د روح واپس كيدل او بيا د وتلو عمل په تسلسل سره كيږى.[6]

② دويم جواب دا دې چه د روح نه مراد مؤكل فرشته ده.[7]

---

[1] فتح البارى: ٤٨٨/٦-٤٨٧.

[2] فتح البارى: ٤٨٨/٦عمدة القارى: ٤٩/١٦.

[3] سنن أبى داؤد كتاب المناسك، باب فى تحريم المدينة رقم الحديث: ٢٠٤٢.

[4] سنن أبى داؤد كتاب الصلاة باب فضل يوم الجمعة وليلة الجمعة رقم الحديث:١٠٤٧سنن نسائى كتاب الجمعة باب إكثار الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم يوم الجمعة رقم الحديث:١٣٧٥.

[5] سنن أبى داؤد كتاب المناسك باب فى تحريم المدينة رقم الحديث: ٢٠٤١.

[6] فتح البارى: ٦٠٤/٨

[7] فتح البارى: ٦٠٤/٨

④ یو جواب دا ورکړې شوې چه دلته تعلق مراد دې.[1]

⑤ بعض حضراتو دا جواب ورکړې چه رسول الله ﷺ د ملاء اعلی په امورکښې مستغرق وی. د استغراق په دغه عالم کښې چه کله څوك سلام پیش کوی نو دهغې د جواب ورکولو دپاره د فهم او ادراك صلاحیت د حضورپاك طرف ته راواپس کیږی نو دې قول مطابق په حدیث کښې د روح نه فهم مراد دې.[2]

[۳۲۵۹][۳۲۵۸/۳۲۵۸]-حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: «أَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِابْنِ مَرْيَمَ، وَالأَنْبِيَاءُ أَوْلاَدُ عَلاَّتٍ، لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ نَبِيٌّ» ص ۶۶۳[3]

**ترجمه**: د حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمانیلی چه زه په خلقو کښې د ابن مریم یعنی عیسٰی علیه السلام د ټولو نه زیات نیزدې یم. ټول انبیاء علاتی رونړه دی. زما او د عیسٰی علیه السلام په مینځ کښې یو نبی نشته دې.

## تراجم رجال

**ابوالیمان**: دا ابوالیمان حکم بن نافع بهرانی حمصی رحمه الله دې.[4]

**شعیب**: دا ابوبشر شعیب بن مولی حمزه قرشی رحمه الله دې. د دوی تذکره «بدءالوحی» لاندې تیره شوې ده.[5]

**الزهري**: دا مشهور محدث محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دې.[6]

**ابوسلمة**: دا ابوسلمه عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دې. د دوی تذکره «کتاب الایمان باب صوم رمضان احتساباً من الایمان» لاندې تیره شوې ده.[7]

**قوله: أنا أولى الناس بعيسى ابن مريم**: یعنی زه په خلقو کښې د ټولو نه زیات عیسٰی بن مریم علیه السلام ته نیزدې یم. وړاندې روایت د عبدالرحمن بن ابی عمره عن ابی هریره په طریق سره نقل دې: «أنا أولى الناس بعيسى ابن مريم في الدنيا والآخرة». یعنی د دې دنیا او آخرت اضافه هم ده. رسول الله ﷺ پخپله حضرت عیسٰی علیه السلام سره نیزدې کیدل ولې اوفرمائیل؟ علامه بیضاوی رحمه الله د دې سبب دا بیان کړې دې: «الموجب لكونه أولى الناس به أنه كان أقرب المرسلين إليه وأن دينه متصل بدينه ليس بينهما نبي، وأن عيسى عليه السلام كان مبشرا به ممهداً لقواعد دينه، داعي الخلق إلى تصديقه». یعنی د رسول الله ﷺ د حضرت عیسٰی علیه السلام سره د ټولو نه زیات نیزدې کیدو سبب دا دې چه په انبیاء کرامو کښې د حضرت عیسٰی علیه السلام زمانه د ټولو نه زیاته د حضورپاك زمانې ته وه. دویمه دا چه دین محمدی او دین عیسوی خپل مینځ کښې متصل وو او د دواړو په مینځ کښې څوك نه دی مبعوث شوی. دریم دا چه حضرت عیسٰی علیه السلام د

---

[1] فتح الباري: ۶۰۴/۸.

[2] فتح الباري: ۶۰۴/۸.

[3] أخرجه مسلم في الفضائل باب فضائل عيسى عليه السلام رقم: ۲۳۶۸ وأبوداؤد في السنة باب تخيير بين الأنبياء عليهم السلام، رقم الحديث: ۴۶۷۵ جامع الأصول في أحاديث الرسول: ۵۲۳/۸ رقم الحديث: ۶۳۲۱.

[4] كشف الباري: ۴۷۱/۱.

[5] كشف الباري: ۴۸۰/۱.

[6] كشف الباري: ۳۲۶/۱.

[7] كشف الباري: ۳۲۳/۲.

رسول پاك ﷺ دبعثت بشارت ورکړې وو او دهغوی د قواعد او اصول دين دپاره نی لاره آسانه کړې وه. څلورم دا چه عيسٰی علیه السلام به خپل امت ته د رسول الله ﷺ دتصديق دعوت ورکولو.[1]

**حديث باب اوايت کښې د علامه کرماني رحمه الله تطبيق:** دحديث باب په دې جمله کښې نبي پاك ﷺ اوفرمائيل چه هغه عيسٰی علیه السلام ته د ټولونه نيزدې دې او هم دغه مضمون په دې آيت کښې هم راغلې دې. مګر په دې کښې حضورپاك د ټولو نه زيات ابراهيم علیه السلام ته نيزدې فرمائيلې شوې دې. آيت دا دې: ﴿إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَٰذَا النَّبِيُّ﴾ په ظاهر آيت او حديث کښې تعارض دې.

علامه کرماني رحمه الله په دواړو کښې جمع اوتطبيق ورکولوسره فرمائيلي چه حديث باب کښې عيسٰی علیه السلام سره د حضورپاك نيزدې کيدل د متبوع کيدو په حيثيت سره مذکور شوی دی او آيت کښې ابراهيم علیه السلام سره د حضورپاك نيزدې کيدلو ذکر د تابع په حيثيت سره شوې دې. لهذا په دواړو کښې تعارض نشته دې.[2]

**دعلامه کرماني رحمه الله په تطبيق باندې د حافظ ابن حجر رحمه الله رد:** حافظ ابن حجر رحمه الله دعلامه کرماني رحمه الله په رائې باندې رد کولوسره فرمائيلي چه په حديث او آيت کښې هيڅ منافات نشته دې چه په دواړو کښې جمع اوتطبيق ورکړې شي. رسول الله «اولى الناس بابراهيم» هم دې او «اولى الناس بعيسٰى» هم دې. «اولى الناس بابراهيم» د دين ابرهيمي اقتداء او پيروني په لحاظ سره دې او «اولى الناس بعيسٰى» د قرب عهد په مناسبت سره دې.[3]

**قوله: والأنبياء أولاد علات:** علات دعين فتحه سره د عَلّةٌ جمع ده. عَلّةٌ ميرنې بُنى ته وائي. عَلَّ علاً وعَلَلاً په معنى کښې دې «الشرب بعد الشرب» په دويم خل يا يوشان اوبه څکل. دويمې ښځې ته عَلّة هم په دې وجه باندې وائي خکه چه خاوند د يوې ښځې نه پس دويمې ښځې نه مستفيد کيږي. او «أولاد علات» د يرو مينندو نه د يوپلار اولاد ته وائي. د دې ضد «بنوالأخياف» دې. يعنى چه مورئې يو اوپلاران ئې جدا جدا وي.

په دې روايت کښې د اولاد علات نه دې خبرې طرف ته اشاره ده چه انبياء کرام په اصول دين کښې متحد وو. اودا د اتحاد فى الاب په شان دى. اوچونکه په فروعى مسائل کښې اختلاف وو نودا الختلاف فى الامر په شان دى.[4]

**قوله: ليس بيني وبينه نبي:** يعنى زما او د عيسٰی علیه السلام په مينځ کښې څوك نبى نشته دې. د عبدالرحمن بن آدم رحمه الله روايت دې «وأنا أولى الناس بعيسٰى، لأنه لم يكن بيني وبينه نبي» يعنى چه زه په خلقو کښې د ټولو نه زيات عيسٰی علیه السلام ته نيزدې يم خکه چه زما او دهغه په مينځ کښې څوك نبى نشته دې.

حضرات محدثين د دې روايت نه استدلال کولوسره فرمائي چه د رسول الله ﷺ اوعيسٰی علیه السلام په مينځ کښې څوك نبي نه دې مبعوث شوې.[5]

ليکن دا استدلال بعض حضراتو ضعيف ګرځولې دې. دهغوی رائې داده چه د رسول الله ﷺ اوعيسٰی علیه السلام په مينځ کښې درې انبياء مبعوث شوی دی. ددوی نه جرجيس او خالد بن سنان دواړو باره کښې دې حضراتو فرمائيلي چه دا انبياء وو. اود سورت ياسين آيت ﴿وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ ۝ إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُم مُّرْسَلُونَ ۝﴾ کښې هم د دې حضراتو ذکر دې.[1]

---

[1] إرشاد الساري: ۴۰۱/۷-۴۰۰.

[2] شرح الكرماني: ۸۵/۱۴ عمدة القاري: ۳۶/۱۶.

[3] فتح الباري: ۴۸۹/۸.

[4] فتح الباري: ۴۸۹/۶ عمدة القاري: ۵۰/۱۶.

[5] عمدة القاري: ۵۰/۱۶ وفتح الباري: ۶۰۵/۸.

ذدې يو جواب محدثينو حضراتو دا ورکړي دې چه جرجيس اوخالد بن سنان نبوت په يو صحيح روايت سره ثابت نه دې خو حديثِ باب بلا تردد صحيح دې او په دې سره دَ جرجيس او خالد دَ نبوت تضعيف کيږي. [۲] دويم جواب دَ نبوت په تسليم کولو دادې چه دَحديث مطلب دادې دَ رسول الله ﷺ او عيسىٰ عليه السلام په مينځ کښې څوك نبي مستقل شريعت سره نه دې مبعوث شوې اوجرجيس اوخالد بن سنان خودَ شريعت عيسىٰ عليه السلام متبع وو. [۳]

**ترجمة الباب سره دَحديث مناسبت:** حديث باب کښې دی: «أنا أولى الناس بابن مريم» په دې کښې «ابن مريم» موافق باب دې. [۴]

**[۳۲۵۹]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «أَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ، وَالأَنْبِيَاءُ إِخْوَةٌ لِعَلَّاتٍ، أُمَّهَاتُهُمْ شَتَّى وَدِينُهُمْ وَاحِدٌ» وَقَالَ: إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ص ۴۶۷]** [۵]

## تراجم رجال

**محمدبن سنان:** دا ابوبكر محمدبن سنان باهلي بصرى رحمه الله دې.

**فُليح بن سليمان:** دا ابويحيىٰ فُليح بن سليمان خزاعى اسلمى رحمه الله دې.

**هلال بن علي:** دا هلال بن علي بن اسامه قرشى عامرى مدنى رحمه الله دې. دَ دريواړو حضراتو تذکره «كتاب العلم باب من سئل علما وهو مشتغل في حديثه» لاندې تيره شوې ده. [۶]

**عبدالرحمن بن ابي عَمْرة:** دَدوى تذكره مخكښې تيره شوې ده. [۷]

**قوله: أمهاتهم شتى ودينهم واحد:** دا روايت دې نه وړاندې روايت دويم طريق دې اودَدې دويم طريق په آخره کښې «أمهاتهم شتى ودنهم واحد» اضافه ده. اول طريق کښې «أولاد علات» الفاظ وو اودلته «إخوة لعلات» الفاظ راغلى دى، دوه دَ يوشان معنې الفاظ دى.

په رومبى روايت کښې تير شو چه اولاد علات نه په اصول دين کښې دَ اتحاد طرف ته اشاره ده اودا داسې دى لكه اتحاد في الاب او «أمهاتهم شتى» سره فروعى مسائل کښې اختلاف مراد دې نودا لكه چه اختلاف في الام دې [۸] يو قول دادې چه «أمهاتهم شتى» نه مراد اختلاف زمان دې او مطلب دادې چه سره دَدې چه دَ انبياء بعثت په مختلف زمانو کښې شوې او په هغې کښې دَ زمانې لرېوالې موندلې شى مگر دَ ټولو دَ بعثت مقصد هم يو دې. [۱]

---

[۱] المصدر السابق.

[۲] المصدر السابق.

[۳] فتح البارى: ۶۰۵/۸ وعمدة القارى: ۳۶/۱۶.

[۴] عمدة القارى: ۳۶/۱۶.

[۵] مرتخريجه تحت الحديث السابق.

[۶] كشف البارى: ۴۵،۵۱/۳-۴۴.

[۷] كتاب المساقاة باب حلب الإبل على الماء رقم: ۲۳۷۸.

[۸] فتح البارى: ۶۰۵/۸ عمدة القارى: ۳۶/۱۶.

**قوله: وقال ابن طهمان عن موسٰى بن عقبة عن صفوان بن سليم عن عطاء**

**دمذكوره تعليق مقصد:** امام بخارى رحمه الله دلته دابوهريره رضي الله عنه حديث بغيرد متن نه تعليقا ذكركړي دي ليكن ددي تعليق نه پس په دويم سند سره دا روايت موصولاً ذكركړي دي. علامه قسطلانى رحمه الله اوفرمائيل چه امام بخارى رحمه الله په دي سره د ابوهريره رضي الله عنه د روايت تعدد طرق طرف ته اشاره كول غواړى ([1])

**دتعليق تخريج:** دا تعليق امام نسائى رحمه الله ((أحمد بن حفص عن أبيه عن ابراهيم بن طهمان عن موسٰى بن عقبة عن صفوان بن سليم عن عطاء بن يسار عن أبى هريرة)) په سند سره موصولاً نقل كړې دي. ([2])

**دتعليق ترجمة الباب سره مناسبت:** دمذكوره تعليق ترجمة الباب سره مناسبت واضح دي چه په دي كښي دعيسٰى ابن مريم تذكره ده او ترجمة الباب كښې دحضرت مريم تذكره ده كوم چه دحضرت عيسٰى عليه السلام پيدائش ته متضمن ده.

**[٣٢٦٠]- وحَدَّثَنَا عَبْدُاللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُالرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "رَأَى عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَجُلًا يَسْرِقُ، فَقَالَ لَهُ: أَسَرَقْتَ؟ قَالَ: كَلَّا وَاللهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ، فَقَالَ عِيسَى: آمَنْتُ بِاللهِ، وَكَذَّبْتُ عَيْنِي" ص ٦٦٩]** ([3])

**ترجمه:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي عيسٰى عليه السلام يو سړي په غلا كولو سره اوليدلو. عيسٰى عليه السلام دهغه نه تپوس اوكړو آيا تا غلا كړي ده؟ هغه ونيل هيڅ كله نه په هغه خدائى قسم دچا نه سوا چه بل معبود نشته دي. په دي باندي عيسٰى عليه السلام اوفرمائيل ((امنتُ بالله وكذّبتُ عينى)) زما په الله تعالى باندي ايمان دي او ما خپلي سترګي دروغژني كړي.

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد الجعفى البخارى المسندى رحمه الله دي. ددوى تذكره ((كتاب الايمان باب أمور الايمان)) لاندي تيره شوي ده. ([4])

**عبدالرزاق:** دا ابوبكر عبدالرزاق بن همام الصنعانى رحمه الله دي. ددوى تذكره ((كتاب الايمان باب حسن إسلام المرء)) لاندي تيره شوي ده. ([5])

**معمر:** دا ابوعروه معمر بن راشد بصرى رحمه الله دي. ددوى تذكره ((كتاب العلم باب كتابة العلم)) لاندي تيره شوي ده. ([6])

---

[1] إرشادالسارى: ٧/٤٠٢-٤٠١.

[2] إرشادالسارى: ٧/٤٠٢.

[3] سنن النسائى كتاب آداب القضاة، باب: كيف يستحلف الحاكم، رقم الحديث ٥٤٣٩ تغليق التعليق: ٤/٣٩ المكتبة الإسلامى.

[4] أخرجه مسلم فى الفضائل باب فضائل عيسٰى عليه السلام رقم: ٦١٣٧ والنسائى فى القضاة، باب كيف يستحلف الحاكم رقم الحديث: ٥٤٢٩ جامع الأصول فى أحاديث الرسول: ١١/٧٠٣، رقم الحديث: ٩٣٥٧.

[5] كشف البارى: ١/٦٥٧

[6] كشف البارى: ٢/٤٢١.

[7] كشف البارى: ٤/٣٢١.

**همام:** دا همام بن منبه بن كامل يماني بصري رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب العلم باب السمر في العلم» لاندې تيره شوې ده.[1]

**قوله: كلا والذي لا إله إلا الله:** دکشمیهنی په روایت کښې «إلا هو» خودَ امام نسائی په روایت کښې «فقال: لا والذي لا إله إلا هو» الفاظ نقل دی.[2]

**قوله: كذبت عيني:** كذبت دَ باب تفعیل نه دَ متکلم صیغه ده او عینی تثنیه کیدو په وجه باندې "ی" تشدید سره لوستلې کیږی. بعض حضراتو لفظ عینی مفرد په وجه باندې تخفیف سره هم لوستلې دی. دَمستملی په روایت کښې فعل «كذب» مجرد نه او لفظ عینی مفرد سره محل رفع کښې نقل دې.[3] دَ صحیح مسلم په روایت کښې لفظ عینی په ځائی نفسی راغلې دې اودَ سنن نسائی په روایت کښې بصري نقل دې.[4]

شراح حدیث لیکلی دی چه «کذبت عینی» نه حقیقی تکذیب مراد نه دې بلکه عیسیٰ علیه السلام داجمله دَ قسم خورونکی تصدیق کښې دَ مبالغه په توګه ارشاد فرمائیلې وه خپل تکذیب ئې مقصود نه وو. دَ بعض حضراتو وینا ده چه ظاهری تکذیب او تصدیق مراد دې په دې معنی اګرچه في نفس الامر اوحقیقت کښې حضرت عیسیٰ علیه السلام رښتونې اوقسم خورونکې دروغژن وو مګر دَ دغه سړی دَ قسم کولو نه پس دَ ظاهری احکامو په اعتبار سره حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ خپلو سترګو تکذیب اودَحالف تصدیق اوکړو. ګنې دا خیره ډیره صفا ده چه انسان دَخپلو سترګو لیدلې شوې څیز دَ چا په وینا باندې نه شی دروغ کولې. البته دا احتمال کیدې شی چه حضرت عیسیٰ علیه السلام دغه سړی دَ یو څیز طرف ته لاس اوراندې کولو سره په لیدو په هغه دَ غل ګمان کړې وی. لیکن چه کله هغه قسم اوکړو نودَ خپل ګمان نه ئې رجوع اوکړه اودَ تکذیب نه هم دغه رجوع کول مراد دی.[5]

علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چه په ظاهره دَحضرت عیسیٰ علیه السلام قول «سرقت» دَدې خبرې پوخ خبر دې چه دغه سړی غلا کړې ده. ځکه چه یقیناً هغوی دې دَ یو محفوظ ځائی نه په پټه طریقه سره مال ویستلو سره لیدلې وی. لیکن دَ سړی «کلا» وئیل دَ غلا کولو نفی کوی او بیا دغه سړی قسم اوخورلو سره دغه فعل دَ غلا نه کیدل ئې نوره خبره پخه کړه. په کوم چه عیسیٰ علیه السلام «آمنت بالله وکذبت عینی» وئیلو سره دَ الله تعالیٰ دَ نوم قسم خورلو تصدیق اوکړو اوکوم څیز چه هغه ته غلا معلومه شوه دَهغې تکذیب ئې اوکړو. ځکه چه ممکن ده دغه سړی یوداسې څیز اوچت کړې وی په کوم چه دَهغه حق وی یا دَ مالك دَ طرف نه هغه سړی ته اجازت وی یا بیا دغه سړی دَ څیز کتلو په غرض سره اوچت کړې وی دَ دغه څیز غصب یا پټول ئې مقصود نه وی. دا تاویل دَقاضی عیاض رحمه الله دَ کلام نه ماخوذ دې.[6]

دغه شان دا هم ممکن دی چه دَحضرت عیسیٰ علیه السلام دَ غلا یقین نه وی په دې وجه هغوی دَ استفهام په توګه دَ هغه سړی نه دَ غلا متعلق سوال اوکړو اوحرف استفهام ئې ذکر نه کړو. لکه چه عربی لغت کښې دَدې ګنجائش شته

---

[1] كشف الباري: ٣١٧/٤.
[2] فتح الباري: ٦٠٥/٨ سنن النسائي كتاب آداب القضاء، باب كيف يستحلف الحاكم رقم الحديث: ٥٤٢٩.
[3] فتح الباري: ٦٠٦/٨.
[4] صحيح الإمام مسلم كتاب الفضائل باب من فضائل عيسىٰ عليه السلام، رقم الحديث: ٦١٣٧ سنن النسائي كتاب آداب القضاء باب كيف يستحلف الحاكم رقم الحديث: ٥٤٢٩.
[5] فتح الباري: ٦٠٦/٨ إرشاد الساري: ٤٠٢/٧ عمدة القاري: ٣٧/١٦.
[6] فتح الباري: ٦٠٦/٨ عمدة القاري: ٣٧/١٦.

چه حرف استفهام حذف كولې شي. [۱] ليكن دا دواړه احتمالات د حضور پاك دا واقعه جزم سره بيانولو د وجې نه بعيد دي. [۲]

حافظ ابن قيم رحمه الله فرمائي چه صحيح خبره داده چه د حضرت عيسىٰ عليه السلام په زړه كښې د الله تعالىٰ عظمت د دې خبرې نه ډير زيات دي چه يو سړې دې د الله تعالىٰ د نوم قسم اوخوري. په دې وجه د دغه سړي د قسم خوړلو نه پس معامله دوه رخې اختيار كړې وه چه يا خود الله تعالىٰ د نوم قسم خورونكى باندې الزام اولګولې شي يا به خپلې سترګې متهم كولې شي. لهذا حضرت عيسىٰ د الله تعالىٰ د عظمت د وجې نه خپلې سترګې دروغژن كيدو ته ترجيح وركړه. بالكل هم داسې لكه څنګه چه حضرت آدم عليه السلام د ابليس په دې سبب باندې تصديق كړې وو چه هغه د الله تعالىٰ په نوم باندې قسم خوړلو سره وئيلې وو «إنّي لكما لمن الناصحين». [۳] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د ابن قيم رحمه الله دغه پورته ذكر شوې توجيه هم د قاضي عياض رحمه الله د توجيه نه څه كم نه دي او كومه تشبيه چه ابن قيم رحمه الله ذكر كړې ده هغه هم مطابقت نه لري. [۴]

**د حديث نه مستنبط فوائد:** په دې حديث كښې د دې خبرې دليل موجود دې چه د شك د وجې نه حد ساقط كيږي. دغه شان د دې خبرې هم دليل دې چه قاضي د خپل علم او معلومات مطابق دې فيصله نه كوي. هم دغه د حنابله او موالك په نيز راجح دی البته شوافع په نيز قاضي د خپل علم مطابق فيصله كولې شي سوا د حدود چه په هغې كښې د خپلو معلوماتو په بنياد باندې فيصله كول صحيح نه دي.

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حديث كښې د عيسىٰ بن مريم عليه السلام تذكره ده لهذا ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې. [۵]

**[۳۲۶۱]- حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ، يَقُولُ: أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، سَمِعَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ عَلَى الْمِنْبَرِ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لاَ تُطْرُونِي، كَمَا أَطْرَتِ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ، فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدُهُ، فَقُولُوا عَبْدُ اللَّهِ، وَرَسُولُهُ»** ص ۴۷۲ [ر: ۲۳۳۰] [۶]

**ترجمه:** د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې هغه حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په منبر باندې داسې وينا كولو سره واوريدو: چه ما رسول الله صلى الله عليه وسلم داسې فرمائيلو سره اوريدلې دې چه زما په تعريف كښې مبالغه مه كوئ لكه څنګه چه نصارى (د عيسىٰ) ابن مريم په تعريف كښې مبالغه كوله. زه خو د الله تعالىٰ بنده يم او ماته عبد الله ورسوله، د الله بنده او د هغه رسول وايئ.

## تراجم رجال

**الحميدي:** دا ابوبكر عبد الله بن زبير حميدي رحمه الله دې. د دوی تذكره «كتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا»

---

[۱] فتح الباري: ۶۰۶/۸ إرشاد الساري: ۴۰۲/۷ عمدة القاري: ۳۷/۱۶.

[۲] فتح الباري: ۶۰۶/۸

[۳] إغاثة اللهفان من مصايد الشيطان: ۱۳۵/۱ مكتبة دار التراث، فتح الباري: ۶۰۶/۸

[۴] فتح الباري: ۶۰۶/۸

[۵] عمدة القاري: ۵۱/۱۶.

[۶] أخرجه الإمام البخاري في الحدود أيضاً باب رجم الحبلى في الزنا إذا أحصنت. رقم الحديث: ۶۸۳۰ جامع الأصول في أحاديث الرسول: ۵۱/۱۱ رقم الحديث: ۸۵۱۷

لاندې تیره شوې ده (۱)

**سفیان:** دا سفیان بن عیینه کوفي رحمه الله دې. ددوی تذکره هم د مذکوره کتاب اویاب لاندې تیره شوې ده (۲)

**الزهري:** دا مشهور محدث محمدبن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن شهاب زهري رحمه الله دې (۳)

**عبیدالله بن عبدالله:** دا عبیدالله بن عبدالله بن عقب بن مسعود رحمه الله دې. ددوی تذکره «کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر» (۴)

**ابن عباس:** دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حالات «بدء الوحي» څلورم حدیث لاندې او «کتاب الإیمان باب کفران العشیر وکفر دون کفر» لاندې تیر شوی دی. (۵)

د اطراء معنی ده بې ځایه ستاینه په تعریف کښې مبالغه کول اود حد نه وړاندې کیدل. نصاری عیسی علیه السلام د عقیدت په معامله کښې افراط نه کار واخستو اوهغه ته ئې د الوهیت درجه ورکولو سره ګمراه شو. هم په دې پس منظر کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم امت ته د حضورپاك ذات سره د عقیدت او د حضورپاك مدح اوتعریف کښې د اعتدال تعلیم ورکړې اوهغوی ئې د غلو او افراط نه د بچ کولو د پاره په صفا الفاظو کښې تصریح فرمائیلې چه حضورپاك د ټولو انسانانو په شان د عبدیت درجه لري.

دلته یو سوال پیدا کیږي چه نصارې خنګه عیسی علیه السلام ته د عبودیت درجه ورکړه نو ولې د حضورپاك باره کښې هم د صحابه کرامو په دور کښې د داسې عقیدې دعوی کړې شوې وه؟

شراح حدیث فرمائی چه د حضورپاك د الوهیت دعوی چا نه وه کړې البته څه خلقو د حضورپاك د عبادت کولو اراده اوکړه اوعرض ئې اوکړو «أفلا نسجد لك» ولې مونږ تاسو ته سجده اونه کړو؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل «لوکنت آمراً أحداً أن یسجد لبشر لأمرت المرأة أن تسجد لزوجها» یعنی که چرې ما د یو انسان په مخکښې د سجدې کولو حکم ورکولې نو د ټولو نه اول به مې ښځو ته حکم ورکولو چه هغوی دې خپلو خاوندانو ته سجده اوکړي. دغه شان رسول الله هغوی د خپل عبادت نه منع کړل اود دې خطرناکې فتنې دروازه ئې د همیشه د پاره بنده کړه. (۶)

دا حدیث امام بخاري رحمه الله په تفصیل سره کتاب المحاربین کښې نقل کړې دې په دې وجه به د دې تفاصیل په خپل مقام باندې راځي.

**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** حدیث باب کښې ابن مریم لفظ راغلې دې نو ترجمة الباب سره د دې مناسبت واضح دی.

[۳۲۶۲] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنَا صَالِحُ بْنُ حَيٍّ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ خُرَاسَانَ، قَالَ لِلشَّعْبِيِّ: فَقَالَ الشَّعْبِيُّ: أَخْبَرَنِي أَبُو بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ [ص: ۱۶۸] رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِذَا أَدَّبَ الرَّجُلُ أَمَتَهُ فَأَحْسَنَ تَأْدِيبَهَا، وَعَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيمَهَا، ثُمَّ أَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا كَانَ لَهُ أَجْرَانِ، وَإِذَا آمَنَ بِعِيسَى، ثُمَّ آمَنَ بِي فَلَهُ أَجْرَانِ، وَالعَبْدُ إِذَا اتَّقَى رَبَّهُ وَأَطَاعَ مَوَالِيَهُ، فَلَهُ أَجْرَانِ» ص ۶۷۴

---

۱) کشف الباري: ۹۹/۳.

۲) کشف الباري: ۱۰۲/۳.

۳) کشف الباري: ۳۲۶/۱.

۴) کشف الباري: ۳۲۷/۳.

۵) کشف الباري: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

۶) إرشاد الساري: ۴۰۳/۷.

][ر: ۹۷][1]

**ترجمه**: صالح بن حي وائي چه يو خراساني سړي امام شعبي رحمه الله ته اووئيل (دلته سوال محذوف دې) نو امام شعبي رحمه الله جواب ورکړو چه ابوهريره رضي الله عنه د ابوموسیٰ اشعري روايت ماته بيان کړې چه رسول الله فرمائيلي چه کله يو سړې خپلې وينځې ته ادب ښائي او په ښه شان ورته ادب اوښائي اوهغې ته تعليم ورکړي او ښه تعليم ورکولوسره هغه آزاده کړي او بيا دې ورسره نکاح اوکړي نو دهغه دوه اجرونه دي. يو د آزادولو او بل د نکاح کولو. او کله چه هغه په عيسیٰ عليه السلام باندې ايمان لرلو اوبيائي په ما باندې ايمان راوړو نو دهغه دوه اجرونه شو. يو په عيسیٰ عليه السلام باندې د ايمان راوړو او دويم په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې د ايمان راوړو. اوبنده چه کله د خپل رب نه ويريږي اود خپل مألك تابعداري کوي نوهغه ته به هم دوه اجرونه ملاويږي.

## تراجم رجال

**محمدبن مقاتل**: دا ابوالحسن محمدبن مقاتل مرزوي رحمه الله دي. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب مـا يـذكر في المناولة» کښې تيره شوې ده.[2]

**عبدالله**: دا مشهور محدث عبدالله بن مبارك رحمه الله دي.[3]

**صالح بن حي**: دا صالح بن حي بن صالح بن مسلم همداني رحمه الله دي. د دوی تـذکره «كتاب العلم باب تعليم الرجل.....» لاندې تيره شوې ده.[4]

**الشعبي**: داعامر بن شرحبيل رحمه الله دي. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب كتابة العلم» لاندې تيره شوې ده.[5]

**ابوبردة**: دا ابوبرده بُريد بن عبدالله بن ابی برد بن ابی موسیٰ اشعری رحمه الله دي. «كتاب العلم باب فضل من علم وعلّم» لاندې دَدوی تذکره تيره شوې ده.[6]

**ابوموسیٰ الاشعري**: دَدوی تذکره «كتاب الإيمان باب: أي الإسلام أفضل» لاندې تيره شوې ده.[7]

**قوله:أن رجلامن أهل خراسان قال للشعبي**: خراساني سړي امام شعبي رحمه الله ته څه وئيلي وو؟ دَدې تصريح دلته په روايت کښې نشته دې. دَ صحيح ابن حبان رحمه الله په روايت کښې تصريح شته دې. «إنانقول عندنا: إن الرجل إذا أعتق أمولده ثم تزوجها فهو كالراكب هديه؟»[8] يعنې مونږ به په خپل خيال کښې دا وئيل چه خپل أم ولد آزادول او هغه سره نکاح کونکې سړې داسې دې لکه چه په خپله دَهديه په اوښه باندې سوريدونکې وي.

مطلب دا وو چه زمونږ په معاشره کښې داسې کونکې دَ نظرونونه پريوتلو چه هغه ام ولد آزاد کړواو هم پخپله ورسره نکاح کوي نوعامر شعبي رحمه الله د ابوموسیٰ اشعري رضي الله عنه دا حديث اورولوسره جواب ورکړو چه دا فکر غلط

---

[1]) مرتخريجه في كتاب العلم باب تعليم الرجل أمته وأهله: رقم الحديث: ۹۷.

[2]) كشف الباري: ۱۸۶/۳.

[3]) كشف الباري: ٤٦٢/۱.

[4]) كشف الباري: ۵۱۵/۳.

[5]) كشف الباري: ۲۲۹/٤.

[6]) كشف الباري: ۳۶۱/۳.

[7]) كشف الباري: ۶۹۰/۱

[8]) صحيح ابن حبان بترتيب ابن بلبان، كتاب النكاح، ذكر تضعيف الأجرلمن تزوج بجاريته بعد حسن تأديبها ولمن أسلم من أهل الكتاب: ۳۶۰/۹رقم الحديث: ٤٠٥٣مؤسسة الرسالة.

دې او حقیقت دا دې چه داسې کونکې په حدیث کښې د ډبل ثواب مستحق خودلې شوې دې. په دې حدیث باندې مکمل تفصیلي بحث «کتاب العلم باب تعلیم الرجل أمته وأهله» لاندې تیر شوې دی.[1]

[۳۲۶۳]-حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ النُّعْمَانِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تُحْشَرُونَ حُفَاةً، عُرَاةً، غُرْلًا، ثُمَّ قَرَأَ: {كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ} [الأنبياء:۱۰۴] فَأَوَّلُ مَنْ يُكْسَى إِبْرَاهِيمُ، ثُمَّ يُؤْخَذُ بِرِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِي ذَاتَ الْيَمِينِ وَذَاتَ الشِّمَالِ، فَأَقُولُ: أَصْحَابِي، فَيُقَالُ: إِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ، فَأَقُولُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ: {وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ، فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ، وَأَنْتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ، إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ، وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ} [المائدة:۱۱۸]، قَالَ: مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ الْفِرَبْرِيُّ، ذُكِرَ عَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ قَبِيصَةَ، قَالَ: "هُمُ الْمُرْتَدُّونَ الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَى عَهْدِ أَبِي بَكْرٍ فَقَاتَلَهُمْ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ص ۴۷۶-۴۷۷][ر:۳۱۷۱].[2]

**ترجمه**: حضورپاك فرمانى «د قيامت په ورځ» به تاسو برېندې خپې، برېند بدنونه، ناسنته حشر کولې شئ. بیا حضورپاك د «سورت انبياء» دا آيت اولوستلو: لکه چه په اول خل مونږ تاسو پيدا کړې وئ هم هغه شان به مونږ تاسو دوباره راپيدا کوو. دا زمونږ وعده ده چه مونږ به ئې «ضرور پوره» کوو. بيائې اوفرمائيل: د ټولو نه اول به حضرت ابراهيم عليه السلام ته کپړې اچولې شي بيا به داسې کيږي چه زما په ملګرو کښې به څه د ښي طرف «جنت» ته بوتلې شي او بعض به ګس طرف «دوزخ» ته بوتلې شي. زه به وايم چه دا خو زما اصحاب دی «دوی ولې ګس طرف ته بوځئي؟» فرښتې به وائي «تاسوته نه ده معلومه» کله نه چه تا دوی پريخودل د هغه وخت نه دوی شان د اسلام نه اوختلې دی «يعنې د مرګه پورې». زه به په دې موقع باندې هم هغه خبره کوم کومه چه نيك بنده حضرت عيسى بن مريم عليهما السلام کړې: پروردګارا زه چه ترکومې په دوی کښې ووم د دوی حال مې ليدلو نوچه کله نه تا زه وفات کړم د هغه وخت نه خو هم ته د دوی ساتونکې وې ته ټول څيزونه ګورې.

## تراجم رجال

**محمدبن يوسف**: دامشهور محدث محمد بن يوسف فريابي رحمه الله دي. د دوی تذکره مخکښې تيره شوې ده.[3]

**سفيان**: دا سفيان الثوری رحمه الله دي. ماقبل کښې د دوی تذکره تيره شوې ده.[4]

**مغيرة بن نعمان**: د دوی تذکره هم په دې کتاب کښې «باب قول الله تعالى: ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾» لاندې تيره شوې ده.[5]

**سعيدبن جبير**: د دوی تذکره ماقبل کښې تفصيلاً او اجمالاً تيره شوې ده.[6]

---

[1] كشف الباري: ۳/۵۹۶ – ۶۱۱.

[2] مرتخريجه في نفس الكتاب في باب قول الله تعالى: ﴿وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا﴾ رقم الحديث: ۳۳۴۹.

[3] كشف الباري: ۲۵۲/۳.

[4] كشف الباري: ۲۷۸/۲.

[5] ص: ۲۰۹.

[6] كشف الباري: ۴۳۵/۱، ۴۱۸/۳.

ابن عباس: دا صحابی رسول عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دی.[1]

**شرح حدیث:** په دې روایت کښې ذکرشوې لفظ اصحابی دَ ارتداد نه وړاندې اول حالت باندې محمول دې خکه چه په دې کښې څه شک نشته دې چه دَ چانه دا مقدس شرف سلب کړې شو بیا هغه دَ صحابی یادولو حق دار نه دې.[2]

دَ پورتنی روایت شرحه هم دې کتاب کښې «باب قول الله تعالی: ﴿وَاتَّخَذَ اللهُ إِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا﴾» لاندې تیره شوې ده

**قوله: قال محمد بن یوسف: ذکر عن أبي عبدالله.....الخ:** دَ محمدبن یوسف نه محمدبن یوسف فربری رحمه الله او دَ ابوعبدالله نه امام بخاری رحمه الله مراد دی. ابوعبدالله امام بخاری رحمه الله دَ خپل شیخ قبیصه بن عقبه رحمه الله نه نقل کوی چه په روایت کښې دَ مرتدین نه مراد هغه خلق دی چه دَ حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په دوړ خلافت کښې دَ شریعت دَ احکاماتونه انکار کولوسره مرتد شوی وو (العیاذ بالله). دکوم نه پس چه صدیق اکبر رضی الله عنه هغوی سره جنګ کړې وو.[3]

**دَ تعلیق تخریج:** دا تعلیق اسماعیلی دَ ابراهیم بن موسٰی جرجانی عن اسحاق عن قبیصة عن سفیان ثوری عن مغیرة عن سعید بن جبیر عن ابن عباس په طریق سره موصولاً نقل کړې دې.[4]

**دَاحادیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَ آخری دواړو احادیثو مناسبت ترجمة الباب سره بالکل واضح دې خکه چه دواړو احادیثوکښې دَحضرت عیسٰی بن مریم علیهما السلام ذکر دې.[5]

## ۵۰- باب: نُزُوْلِ عِيْسَى بْنِ مَرْيَمَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ.

[۳۲۶۴]- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ، أَخْبَرَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ، سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَيُوشِكَنَّ أَنْ يَنْزِلَ فِيكُمُ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا، فَيَكْسِرَ الصَّلِيبَ، وَيَقْتُلَ الْخِنْزِيرَ، وَيَضَعَ الْجِزْيَةَ، وَيَفِيضَ الْمَالُ حَتَّى لَا يَقْبَلَهُ أَحَدٌ، حَتَّى تَكُونَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا»، ثُمَّ يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ: "وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ: {وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ، وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا} [النساء: ۱۵۹]" ص ۶۷۹][ر: ۲۱۰۹][6]

**ترجمه:** دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي قسم دې په هغه پروردګار دَ چاپه قدرت کښې چه زما خان دې هغه زمانه نیزدې ده چه دَ مریم خوئی (عیسٰی علیه السلام) به په تاسو خلقوکښې عادل حاکم جوړیدو سره راکوزیږی. صلیبونه بهٔ ماتوی غورزوی به (تثلیث به باطل کوی) خنزیر به وژنی، جزیه به موقوف

---

[1] کشف الباری: ۴۳۵/۱، ۲۰۵/۲.

[2] فتح الباری: ۴۹۰/۶ دارالمعرفة إرشادالساری: ۴۰۵/۷ دارالکتب العلمیة.

[3] المصدرالسابق.

[4] فتح الباری: ۴۹۰/۶ دارالمعرفة إرشادالساری: ۵۳/۱۶ دارالکتب العلمیة.

[5] عمدة القاری: ۱۶/۵۳-۵۲.

[6] مرتخریجه فی کتاب البیوع باب قتل الخنزیر، رقم الحدیث: ۲۲۲۲.

کوي ((یا اسلام قبول کړنې یا قتل کیدو د پاره تیار شه))، هغه وخت به پیسې دومره زیاتې وي چه څوك به نې قبلونکې نه وي، یوه سجده به د دنیا اومافیها نه بهتر وي.

حضرت ابوهریره رضی الله عنه د دې حدیث روایت کولونه پس وئیل چه که تاسو غواړئ د ((سورت نساء)) دا آیت اولولئ ((کوم چه د دې حدیث تائید کوي))، اهل کتاب کښې به څوك باقي پاتې نه شي مگر دا چه هغه به په عیسی علیه السلام باندې د هغه د مرگ نه مخکښې ایمان راوړي.

## تراجم رجال

**إسحاق**: دا مشهور محدث اسحاق بن راهویه رحمه الله دې.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله په جزم سره د دې خودلونه پس چه د اسحاق نه ابن راهویه مراد دې فرمائی چه ما د دې خبرې احتمال کیدونه باوجود چه د اسحاق نه اسحاق بن منصور یا اسحاق ابوعلی جیانی هم مراد کیدې شی په جزم سره د ابن راهویه مراد کیدو قول څکه اختیارکړو څکه چه د ابن راهویه عادت دې چه هغه حدیث روایت کولوسره صرف ((أخبرنا)) الفاظ استعمالوي. د ((حدثنا)) الفاظ نه استعمالوی او بیا ابونعیم رحمه الله هم په مستخرج کښې دا روایت د اسحاق بن راهویه په مسانید کښې تخریج کړې دې.[2]

**یعقوب بن ابراهیم**: دا یعقوب بن ابراهیم بن سعد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې.[3]

**ابراهیم**: دا ابراهیم بن سعد بن ابراهیم بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې.[4]

**صالح**: دا صالح بن کیسان رحمه الله دې.[5]

**ابن شهاب**: دا مشهور محدث محمد بن مسلم المعروف بابن شهاب زهری رحمه الله دې.[6]

**سعیدالمسیب**: د دوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.[7]

**ابوهریرة**: دا صحابی رسول حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې.[8]

**قوله: لیوشکن أن ینزل فیکم ابن مریم حکما**: لیوشکن د شین په کسره سره په معنی د یر زر. د حدیث د دې ټکړې مطلب دادې چه حضرت عیسی علیه السلام حاکم ((د خلقو په مینځ کښې فیصله کونکې)) کیدو په حیثیت سره راکوزیږی او د خلقو په مینځ کښې به په شریعت محمدیه علی صاحبها ألف ألف تحیة وسلام مطابق فیصلې کوی څکه چه د باقی شریعتنو په شان به شریعت محمدیه نه منسوخ کیږی.[9]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه حضرت عیسی علیه السلام ته د هغه وخت د حکام نه یو حاکم وی.[10] د صحیح مسلم په

---

[1] كشف البارى: ۴۲۸/۳.

[2] فتح البارى: ۴۹۱/۶.

[3] كشف البارى: ۳۳۱/۳.

[4] كشف البارى: ۱۲۰/۲، ۳۳۳/۳.

[5] كشف البارى: ۱۲۱/۲.

[6] كشف البارى: ۳۲۶/۱.

[7] كشف البارى: ۱۵۹/۲.

[8] كشف البار: ۶۸۹/۱

[9] فتح البارى: ۴۹۱/۶ عمدة القارى: ۵۴/۱۶ إرشادالسارى: ۴۰۶/۷.

[10] فتح البارى: ۴۹۱/۶.

روايت كښې «حكما» سره «مقسطا» معنى انصاف كونكې دې.(١) امام طبراني رحمه الله د عبدالله بن مغفل رضي الله عنه د حديث تخريج كړې دې چه عيسىٰ عليه السلام به د نزول نه پس د امت محمديه تصديق او د هغوى پيروى كوى.(٢)

**قوله: فيكسر الصليب ويقتل الخنزير:** د حاكم په حيثيت سره د نازليدونه پس به حضرت عيسىٰ عليه السلام دا كارونه كوى: ① كه چرې كسر صليب په حقيقت باندې محمول كړې نو معنى به شى د نصارى د شان او شوكت ختمولو په غرض به صليب ماتوى او غورزوى به او كه چرې د صليب ذكر تمثيلاً دې نو مراد به شى چه نصارى د كومو څيزونو تعظيم كوى هغه به مات كړى او به غورزوى. ② خنزير به قتل كوى. د حديث د دې ټكړې نه حضرات فقهاء كرام د خنزير ساتل او هغه خوړلو حرمت او د هغې په نجس العين كيدو باندې استدلال كړې دې. وجه د استدلال داده چه شريعت مطهره د قابل انتفاع څيزونو ضائع كولو او هلاك كولو حكم نه كوى. خو په حديث الباب كښې د خنزير د قتل كولو ذكر دې د دې نه معلومه شوه چه خنزير قابل انتفاع نه دې.(٣)

③ جزيه به ختمه كړى. د حديث د دې جز نه مراد دادې چه د نزول عيسىٰ عليه السلام نه پس به صرف هم يو دين وى. حضرت عيسىٰ عليه السلام به د اهل كتابو د طرف نه صرف اسلام راوړل قبلوى. بل د جزيه ختمولو يوه وجه به دا هم وى چه د نزول عيسىٰ عليه السلام نه پس به چونكه هر طرف ته د اسلام چرچه وى ظلم به ختم كړې شى او انصاف به عام وى په خلقو كښې به مينه او محبت وى. د كوم په سبب چه به زمكه هم خپل بركتونه راښكاره كړى او د غه شان به په خلقو كښې د مالونو كثرت وى او دومره كثرت به وى چه څوك صدقه قبلونكې به نه وى. او س ښكاره خبره ده چه داسې حالت وى نو د جزيه افاديت به باقى پاتې نه شى په دې وجه به د جزيه حكم ساقط كړې شى.(٤)

قاضى عياض رحمه الله د دې يوه معنى دا بيان كړې ده چه هغه وخت د مال زياتوالې او كثرت او د جزيه وضع يعنى د حضرت عيسىٰ عليه السلام په هر يو كافر باندې د جزيه مقرر كولو د وجې نه به وى ځكه چه هيڅوك به د جنګ كولو همت نه شى كولې. لهذا هغه وخت خو به يا اهل كتاب ايمان راوړى يا به بيا جزيه وركولو سره ژوند تيره وى.(٥) مګر دا معنى صحيح نه ده صحيح معنى هم هغه ده كومه چه پورته ذكر شوه.

**يو اشكال او د هغې جواب:** دلته دا اشكال پيدا نه شى چه حضرت عيسىٰ عليه السلام د شريعت محمديه په حكم يعنى جزيه منسوخ كوى په دې وجه چه د دې نسخ خبر خو نبى كريم صلى الله عليه وسلم پخپله خپلو احاديثو كښې بيان كړې دې. لهذا د دې نسبت به هم نبى عليه الصلاة والسلام طرف ته شى او د حضرت عيسىٰ عليه السلام د نزول نه پس جزيه نه قبلول به هم د شريعت محمديه يو حكم وى. البته خبره صرف دومره ده چه د اسقاط جزيه حكم نزول مسيح عليه السلام سره مقيد دې.(٦)

بعض رواياتو كښې «يضع الجزية» په ځائې «يضع الحرب» الفاظ راغلى دى. په دې صورت كښې به مفهوم داشى چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به جنګ ختم كړى ځكه چه هغه وخت به صرف هم يو دين دين اسلام په ټوله دنيا باندې رائج وى. ټول خلق به په عقائدو كښې متفق وى د كوم په وجه چه به د جنګ نوبت نه راځى.(٧)

---

(١) صحيح مسلم كتاب الإيمان باب نزول عيسىٰ ابن مريم..... إلخ رقم الحديث: ٣٩٠-٣٨٩.
(٢) المعجم الأوسط: ٢٧/٥رقم الحديث: ٤٥٨٠دارالحرمين، فتح البارى: ٤٩١/٦.
(٣) فتح البارى: ٤٩١/٦إرشادالسارى: ٤٠٦/٧.
(٤) فتح البارى: ٤٩١/٦عمدة القارى: ٥٤/١٦إرشادالسارى: ٤٠٦/٧.
(٥) إكمال المعلم بفوائد مسلم كتاب الإيمان باب نزول عيسىٰ ابن مريم حاكما.....إلخ ٣٦٧/٢دارالمعرفة.
(٦) فتح البارى: ٤٩١/٦عمدة القارى: ٥٤/١٦إرشادالسارى: ٤٠٦/٧.
(٧) فتح البارى: ٤٩١/٦عمدة القارى: ٥٤/١٦.

**قوله: حتی تکون السجدة الواحدة خیر من الدنیا وما فیها:** اول «حتی، دَ بعض المال» سره متعلق دې او دویم «حتی» دَ پورته ذکرشوو ټولو امورودَ پاره غایت دې. او دَدې معنی داده چه دَ دغه پورته کارونو دَ پوره کولو نه پس به چونکه په زمکه کښې امن او امان فضا خورېږي. دَ مال او منال به دومره زیاتوالي وی چه څوك به دَ صدقه اوزکوة مستحق نه ملاوېږي. په داسې حال کښې دَ الله تعالی قرب حاصلول سوا دَ عبادت به بل هیڅ ذریعه نه وی. په دې وجه دَ خلقو دَپاره دَ الله تعالی په دربار کښې یوه سجده دَ دنیا اومافیها نه بهتر وی.[1]

**اشکال او جواب:** اشکال دادې چه دَ الله تعالی په دربار کښې سجده کول خو په هره زمانه کښې دَ دنیا اومافیها نه بهتر ده ځکه چه دَدې تعلق خالص دَ آخرت سره دې بیا دا ولې اوفرمائیلې شو چه هغه وخت به «دَ عیسیٰ علیہ السلام دَ نازلیدلو نه پس» دَ خلقو دَپاره یوه سجده دَ دنیا اومافیها نه بهتروی؟

دَدې جواب دَ تیر شوی تفصیل نه واضح شوې دې چه هغه وخت به دَ خلقو دَپاره «سوا دَ عبادت نه» دَ مال او منال صدقه کول او الله تعالی ته دَ نیزدیکت بل څه لار نه وی په دې وجه دَ خلقو دَپاره دَ الله تعالی په دربار کښې یوه یوه سجده دَ دنیا اومافیها نه بهتر اوافضل وی.[2]

**قوله: ثم یقول أبوهریرة: واقرءوا إن شئتم.....إلخ:** دا تیرشوی سند سره موصول دې اودَدې آیت پیش کولو سره دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه دوه مقصدونه دی: ① دَحضرت عیسیٰ علیہ السلام په آخری زمانه کښې په نازلیدلو باندې استدلال. ② دَ مذکوره حدیث تصدیق.[3]

علامه ابن جوزی رحمہ اللہ فرمائی چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ حدیث نه پس آیت ځکه پیش کړې چه په حدیث او آیت دواړو کښې مناسبت دې اودَدې مناسبت تعلق دَحدیث دَټکړې «حتی تکون السجدة الواحدة خیر من الدنیا وما فیها» سره دې. مقصد دَدې خبرې طرف ته اشاره کول دی چه هغه وخت به په خلقو کښې ټوله نیکی وی ایمان به مضبوط وی او خلق به دَ نیکو اعمالو طرف ته راغب وی. په دې وجه به خلق یو رکعت مونځ له په دنیا اومافیها باندې ترجیح ورکوی دَهغوی په نیز دَ سجده نه رکعت مراد دې.[4]

**دَ ائمه اختلاف په تفسیردَ مذکوره ایت کښې:** دَائمه تفسیر په دې امر باندې اختلاف دې چه په آیت کښې ذکر شوي لفظ «به» او «موته» دَ ضمائر مرجع څه څیز دې. ابن جریر رحمہ اللہ دَ سعید بن جبیر عن ابن عباس رضی اللہ عنہما په طریق صحیح سند سره دَ دواړو ضمیرونو مرجع حضرت عیسیٰ علیہ السلام گرځولې دې. چنانچه نقل دی: «......سعید بن جبیر عن ابن عباس ﴿وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ﴾ قال: قبل موت عیسی ابن مریم» دَدې تفسیر مطابق به دَ آیت مقصد دا بیانول وی چه دَ عیسیٰ علیہ السلام دَ نازلیدلو په وخت چه څومره اهل کتاب وی ټول به په عیسیٰ علیہ السلام باندې دَهغه دَ وفات نه مخکښې ایمان راوړی. هم دا تفسیر دَ ابورجاء رحمہ اللہ په طریق سره دَحضرت حسن رحمہ اللہ نه نقل دې هغوی فرمائی: «......عن أبي رجاء عن الحسن في قوله: ﴿وَإِنْ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ﴾ قال: قبل موت عیسی، والله إنه الآن لحي، ولكنه إذا نزل آمنوا به أجمعون» یعنی په الله قسم حضرت عیسیٰ علیہ السلام دې وخت کښې ژوندې دې اوکله چه دَهغه نزول دَ دنیا طرف ته کیږی نو ټول په ټول «اهل کتاب» به په هغوی باندې ایمان راوړی. دادَ اهل علم

---

[1] فتح الباری: ۴۹۱/۶ عمدة القاری: ۵۴/۱۶ إرشادالساری: ۴۰۶/۷ إكمال المعلم بفوائد مسلم: ۴۷۱/۱ دارالوفاء.

[2] فتح الباری: ۴۹۱/۶ عمدة القاری: ۵۴/۱۶ إرشادالساری: ۴۰۶/۷.

[3] إرشادالساری: ۴۰۶/۷ منحة الباری: ۵۴۱/۶ مکتبة الرشد.

[4] کشف المشکل: ۳۲۶/۳ رقم الحدیث: ۱۷۳۳ – ۲۱۷۶ دار الوطن.

تفسير دې اوهم دا ابن جرير رحمه الله راجح گرخولې دې.(١)

دويم تفسير دا دې چه دَ «موته» ضمير اهل كتاب طرف ته راجع دې. چنانچه ابن جرير رحمه الله دَ عكرمه عن ابن عباس په طريق سره روايت كړې دې: «لايموت يهودي حتى يؤمن بعيسى ابن مريم» يعنى يو يهودى له تر هغه وخته پورې مرګ نه شي راتلې تركومې چه په حضرت عيسىٰ عليه السلام باندې ايمان رانوړى بعض رواياتو كښې دى چه دَ ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوكړې شو كه يو يهودى څه ناڅاپى آفت راګير كړو اوهغه فورى توګه باندې مړ شونو؟ ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل «يلجلج بها لسانه» بيابه هم هغه له مرګ نه راځى تركومې چه دَهغه ژبه په عيسىٰ عليه السلام باندې دَ ايمان راوړو كلمه نه وائى.

كوم حضرات چه دَ «موته» ضمير مرجع اهل كتاب ګرځوى هغوى دې توجيه ته دَ حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه دَ قراءت په بنياد باندې ترجيح وركړې ده ځكه چه دَهغوى قراءت ضمير جمع يعنى «موتهم» سره دې او ښكاره خبره ده چه په داسې صورت كښې به مرجع اهل كتاب وى.(٢)

دريم تفسير دَدې آيت دا دې چه دَ «به» ضمير نبى كريم صلى الله عليه وسلم طرف ته راجع دې اودَ «موته» ضمير كتابى طرف ته راجع دې. په دې صورت كښې به معنى داشى چه هيڅ يو كتابى كه هغه نصرانى وى اوكه يهودى هغه وخته پورې ورته مرګ نه شي راتلې تركومې چه هغه په نبى كريم صلى الله عليه وسلم باندې ايمان رانوړى. دا تفسير دَحضرت عكرمه رحمه الله نه نقل دې. هغه فرمائى: «لايموت النصرانى واليهودي حتى يؤمن محمد صلى الله عليه وسلم، يعنى فى قوله: ﴿وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾»

دَ مذكوره آيت په تفسير كښې مختلف اقوال نقل كولو نه پس امام طبرى رحمه الله په دې كښې فيصله كولو سره فرمائيلى دى: «وأولى هذه الأقوال بالصواب قول من قال: تأويل ذلك: وإن من أهل الكتاب إلا ليؤمن بعيسى قبل موت عيسى» يعنى په دې اقوالو كښې زيات بهتر اولنې تفسير دې.(٣)

امام نووى رحمه الله فرمائى چه دَدې توجيه مطابق به دَ آيت مفهوم داسې شى چه دَ هيڅ يو كتابى روح به دَهغه وخته پورې نه شى وستې تركومې چه هغه په حضرت عيسىٰ عليه السلام باندې ايمان رانوړى اودَدې خبرې اقرار نه كوى چه هغه دَ الله تعالى بنده اودَ الله تعالى بندى دَحضرت مريم عليها السلام ځونى دې. دا جدا خبره ده چه هغه وخت ايمان راوړل به دَ هغوى دپاره فائده نه وركوى ځكه چه دَ الله تعالى ارشاد دې: ﴿وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّىٰ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ﴾ [النساء:١٨] اودَداسې خلقو توبه نه ده چه ګناه كوى ترهغې پورې چه كله په هغوى كښې دَ يو كس مخې ته مرګ راشى اودربى نو وائى چه زه اوس توبه كوم. علامه نووى رحمه الله فرمائى چه دا توجيه اظهر ده. دَاظهريت وجه داده چه دَ اول توجيه مطابق به آيت دَ هغه اهل كتابو سره مختص شى چه دَ نزول مسيح عليه السلام په زمانه كښې وى. خو ظاهر دَ آيت ﴿وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ دَعموم متقاضى دې. په دې معنى دَ مرګ نه مخكښې ايمان راوړل هر كتابى ته په هره زمانه كښې شامل دې كه هغه دَ نزول عيسىٰ عليه السلام نه مخكښې زمانه وى اوكه دَهغه نه پس.(٤)

---

(١) تفسير الطبرى: ٧/٦٦٤ – ٦٧٢سورة النساء رقم الآية: ١٥٩. دارهجر. فتح البارى: ٦/٤٩٢عمدة القارى: ٥٤-٥٥/١٦دارالكتب العلمية.

(٢) تفسير الطبرى: ٧/٦٦٤ – ٦٧٢سورة النساء رقم الآية: ١٥٩. دارهجر. فتح البارى: ٦/٤٩٢عمدة القارى: ٥٤-٥٥/١٦دارالكتب العلمية.

(٣) تفسير الطبرى: ٧/٦٦٤ – ٦٧٢سورة النساء رقم الآية: ١٥٩. دارهجر.

(٤) شرح النووى لصحيح الإمام مسلم كتاب الإيمان باب نزول عيسىٰ ابن مريم حاكما....إلخ ٢/٣٦٩-٣٦٨دارالمعرفة.

**سوال او جواب:** دَ انبياء كرامو عليهم السلام نه په خاص توګه دَحضرت عيسىٰ عليه السلام په نزول كښې څه حكمت دې؟ جواب دادې چه نزول مسيح عليه السلام نه مقصد دَ يهوديانو هغه باطل ګمان باندې رد كول دى چه هغوى العياذ بالله حضرت عيسىٰ عليه السلام قتل كړې دې. نو په نزول عيسىٰ عليه السلام سره به دې ګمان ترديد اوشى اودا به هم ښكاره شى چه يهوديانو دَعيسىٰ عليه السلام قتل نه دې كړې بلكه عيسىٰ عليه السلام به هغوى قتل كوى.

بعض حضراتو جواب وركړې دې چه انسان چونكه دَخاورې نه جوړ دې او اصول دادى چه دَ خاورې نه جوړ شوې به هم په خاورو كښې خښيږى په دې وجه په وخت دَ اجل موعود به دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول كيږى دې دپاره چه دَتجديد اسلام نه پس هم په زمكه كښې مدفون شى. هم دغه شان بعض حضراتو دا وجه هم بيان كړې ده چه حضرت عيسىٰ عليه السلام دَ نبى كريم اودَهغوى دَامت صفات كتلو سره دَ الله تعالى نه دعا كړې وه چه هغه دې هم الله تعالى په امت محمديه كښې شامل كړى الله تعالى ئى دعا قبوله كړه اوهغوى ئى تراوسه پورې ژوندى اوساتل تردې چه كله په آخرى زمانه كښې دَ فتنو عروج وى په دنيا كښې دجال هرطرف ته فتنې خورې كړې وى. نو هغه وخت به دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول كيږى او هغه به دغه فتنې ختموى. دجال به قتل كوى اودَ اسلام تجديد به كوى (۱)

علامه عينى رحمه الله يو جواب داهم ذكر كړې دې چونكه دَ عيسىٰ عليه السلام زمانه اودَ نبى كريم صلى الله عليه وسلم زمانه په نسبت دَ نورو انبياء كرامو نيزدې ده په دې وجه (دَ اسلام دَتجديد دپاره) به دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول كيږى (۲)

**دَحضرت عيسىٰ عليه السلام دَنزول نه پس دَ اقامت موده:** امام مسلم رحمه الله دَحضرت ابن عمرو رضى الله عنه نه دَحضرت عيسىٰ عليه السلام دَ نزول نه پس موده دَاقامت اووه كاله روايت كړې ده. (۳) نعيم بن حماد رحمه الله كتاب الفتن كښې دَابن عباس رضى الله عنهما نه دَ اقامت موده ۱۹ كاله نقل كړې ده. (۴) سنن ابى داؤد او مسند احمد كښې په صحيح سند سره دَحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه څلويښت كاله نقل ده. (۵) مسند احمد كښې دَ حضرت عائشه رضى الله عنها نه روايت دې چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به په زمكه باندې څلويښت كاله اوسيږى. (۶)

دې نه علاوه په دې امر كښې هم اختلاف دې چه هغوى په څومره عمر كښې آسمان طرف ته اوچت كړې شوې وو؟ بعض حضراتو دَ ۳۳ كالو قول كړې دې. او بعض نه دَ ۱۲۰ كالو په عمر كښې دَ آسمان طرف ته اوچتيدل نقل دى.

[۳۲۶۵] - حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ نَافِعٍ، مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ الأَنْصَارِيِّ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «كَيْفَ أَنْتُمْ إِذَا نَزَلَ ابْنُ مَرْيَمَ فِيكُمْ، وَإِمَامُكُمْ مِنْكُمْ»، تَابَعَهُ عُقَيْلٌ، وَالأَوْزَاعِيُّ ص ۴۸۸] (۷)

**ترجمه:** دَحضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى هغه وخت به ستاسو څه حال وى كله چه دَ مريم ځونى (عيسىٰ عليه السلام) تاسو كښې راكوزيږى او (په مانځه كښې) ستاسو امام ستاسو دَ قوم نه وى. دَدې حديث په روايت كولو كښې عقيل رحمه الله اوزاعى رحمه الله دَ يونس رحمه الله متابعت كړې دې.

---

(۱) فتح البارى: ۴۹۳/۶ دار المعرفة منحة البارى للشيخ زكريا الأنصارى: ۵۴۱/۶ مكتبة الرشد.

(۲) عمدة القارى: ۵۵/۱۶ دار الكتب العلمية.

(۳) صحيح الإمام مسلم كتب الفتن باب خروج الدجال ومكثه....إلخ رقم الحديث: ۷۳۸۱.

(۴) كتاب الفتن لنعيم بن حماد: ۵۷۹/۲ رقم الحديث: ۱۶۲۰ مكتبة التوحيد.

(۵) سنن أبى داؤد كتاب الملاحم باب خروج الدجال رقم الحديث: ۴۳۲۴ مسند الإمام أحمد: ۱۵۳/۱۵ رقم الحديث: ۹۲۷۰ مؤسسة الرسالة.

(۶) مسند الإمام أحمد: ۴۱/۱۵ رقم الحديث: ۲۴۴۶۷ مؤسسة الرسالة.

(۷) مرتخريجه فى كتاب البيوع باب قتل الخنزير رقم الحديث: ۲۲۲۲.

## تراجم رجال

**ابن بكير:** دا مشهور محدث يحيىٰ بن عبدالله بن بكير رحمه الله دي.

**ليث:** دامشهور محدث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمي رحمه الله دي. [1]

**يونس:** دي نه يونس بن يزيد ايلي رحمه الله مراد دي. [2]

**ابن شهاب:** دا مشهور محدث محمد بن مسلم المعروف بابن شهاب زهري رحمه الله دي. [3]

**نافع مولىٰ ابي قتادة الانصاري:** دا ابومحمدنافع بن عياش اقرع رحمه الله دي. داد حضرت ابوقتاده رحمه الله آزادكړي شوي غلام وو. ابن حبان رحمه الله هغه دَ قبيله غفار دَ يوښځي مولىٰ (آزادكړي غلام) گرځولي دي. [4]

دَدوی په صحيح بخاری كښې دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه صرف هم دغه يو حديث دي. [5] دَدوی تذكره ((كتاب جزاء الصيد، باب لايعين المحرم الحلال في قتل الصيد)) لاندې تيره شوې ده.

**ابوهريرة:** دا صحابی رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دي. [6]

**تابعه عقيل والأوزاعي:** يعني دَ ابن شهاب رحمه الله نه دَدې حديث په روايت كولوكښې يونس رحمه الله سره عقيل رحمه الله او اوزاعي رحمه الله هم شريك دي. دَعقيل رحمه الله متابعت ابن منده رحمه الله كتاب الإيمان كښې دَ ليث عن عقيل عن ابن شهاب په طريق سره موصولاً روايت كړې دې. دَامام اوزاعي رحمه الله متابعت دَ ابن منده رحمه الله نه علاوه ابن حبان رحمه الله او امام بيهقي رحمه الله هم موصولاً نقل كړې دې. [7]

**قوله: أنتم إذا نزل ابن مريم فيكم وإمامكم منكم:** اما مسلم رحمه الله دَ ابن اخي الزهري عن عمه په طريق سره دا روايت په دې الفاظوسره نقل كړې دې: ((كيف أنتم إذا نزل ابن مريم فيكم وأمّكم)) [8] هم دغه شان امام مسلم رحمه الله دَ وليد بن مسلم عن ابن ابی ذئب عن ابن شهاب په طريق سره هم دا روايت نقل كړې دې. دَدې الفاظ دادي: ((كيف أنتم إذا نزل فيكم ابن مريم فأمكم منكم)). [9]

دَ صحيح مسلم په پورته ذكر شوو دواړو روايتونوكښې ((أمّكم)) يا ((أمكم منكم)) سره دې دا اشكال نه وی چه عيسىٰ عليه السلام به امام وی. ځكه چه دَحديث باب نه واضح دي چه دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نه علاوه به بل څوك امام وی. بل دَ صحيح مسلم دَ دويم روايت راوی دَ ابن ابی ذئب رحمه الله نه هم ((أمكم منكم)) چه كوم تفسير نقل دي دَهغې نه واضح كيږي چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به امام نه وی. تفصيل دادې چه كله وليد بن مسلم رحمه الله دَ ابن ابی ذئب رحمه الله نه دا حديث واوريدو نود ابن ابی ذئب نه نې تپوس اوكړو امام اوزاعي رحمه الله خودا حديث مونږ ته دَ ابن شهاب زهري نه ((إمامكم منكم)) الفاظوسره بيان كړې دې؟ ابن ابی ذئب رحمه الله اوفرمائيل چه پوهيږئ هم چه دَدې مطلب

---

[1] كشف الباري: ۱/۳۲٤-۳۲۳.

[2] كشف الباري:۳/۲۸۲، ۱/٤۶۳.

[3] كشف الباري: ۱/۳۲۶.

[4] فتح الباري:۲/٤۹۳عمدة القاري: ۱۶/۵۵.

[5] فتح الباري:۲/٤۹۳عمدة القاري: ۱۶/۵۵.

[6] كشف الباري: ۱/۶۵۹.

[7] فتح الباري: ۶/٤۹۳عمدة القاري:۱۶/۵۷دارالكتب العلمية.

[8] صحيح مسلم كتاب الإيمان باب نزول عيسىٰ ابن مريم حاكما...إلخ رقم الحديث: ۳۹۳.

[9] صحيح مسلم كتاب الإيمان باب نزول عيسىٰ ابن مريم حاكما...إلخ رقم الحديث: ۳۹۲.

څه دي؟ وليد او وئيل چه هم تاسو ته راته اوښايئ. ابن ابى ذئب رحمه الله اوفرمائيل دَدې معنى ده: «أمكم بكتاب ربكم تبارك وتعالى وسنة نبيكم» حضرت عيسىٰ عليه السلام به كتاب الله او سنت رسول الله په ذريعه ستاسو رهنمائى كوى.

قاضى عياض رحمه الله فرمائى: «هذا كلام حسن، لأن عيسى ليس يأتي لأهل الأرض رسولا ولا نبيا مبعوثا، ولا بشريعة جديدة، لأن محمدا صلى الله عليه وسلم خاتم النبيين وشريعته ناسخة لجميع الشرائع، راسخة إلى يوم القيامة، وإنما يحكم عيسى بها». [1]

چه دا احاديث دَمسلم شريف پورته ذكر شوي توجيه بهترين توجيه ده څكه چه عيسىٰ عليه السلام خو به نه په زمكه باندې رسول جوړيدو سره راځى نه نبى مبعوث او نه يونوى شريعت سره ، څكه چه نبى كريم ﷺ آخرى نبى دې. دَهغوى شريعت دَټولو شريعتونو دَپاره ناسخ دې اوپخپله به دا شريعت دَ قيامت پورې باقى وى. البته دا ضرور دى چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به هم په دې شريعت محمديه علي صاحبها الف الف صلاة وتحية باندې فيصلې كوى.

دَ «وإمامكم منكم» تفسير هم دَصحيح مسلم په وړاندې روايت كښې موجود دې كوم چه دَحضرت جابر رضي الله عنه نه نقل دې په دې حديث كښې دَحضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې: «فينزل عيسى، فيقول أميرهم: تعال فصل لنا، فيقول: لا، إن بعضكم على بعض أمراء، تكرمة من الله لهذه الأمة». [2] كوم وخت چه دَحضرت عيسىٰ عليه السلام نزول كيږى نو دَهغه وخت امير به حضرت عيسىٰ عليه السلام ته دَمونځ وركولو درخواست كوى. حضرت عيسىٰ عليه السلام به انكار كوى او دَدې امت فضيلت خودلو سره به فرمائى په تاسو كښې بعض په بعض باندې اميران دى.

نور دَدې لاندې احاديث نه هم دې خبرې ته تقويت ملاويږى چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به امام نه وى. چنانچه په مسند احمد كښې دَحضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې: «...... فإذا هم بعيسى ابن مريم صلى الله عليه وسلم فتقام الصلاة فيقال له: تقدم يا روح الله! فيقول: ليتقدم إمامكم فليصل بكم......» يعنى دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام دَنزول نه پس به هغه ته درخواست كولې شى چه مونځ وركړئ. هغوى به اوفرمائى چه خپل امام مخكښې كړئ هم هغه به تاسو ته مونځ دركوى. [3]

هم دغه شان امام ابن ماجه رحمه الله دَ ابو امامه باهلي رضي الله عنه نه روايت كړې دې: «......وجلهم ببيت المقدس، وإمامهم رجل صالح، فبينما إمامهم قد تقدم يصلي بهم الصبح إذ نزل عيسى ابن مريم الصبح، فرجع الإمام ينكص، يمشي القهقرى ليتقدم عيسى يصلي بالناس، فيضع عيسى يده بين كتفيه، ثم يقول له: تقدم فصل، فإنها لك أقيمت......» دا چه ټول مسلمانان به په بيت المقدس كښې راجمع وى او په هغوى كښې يو نيك صالح سړې ،امام مهدى عليه السلام دَهغوى دَ امامت كولو دَپاره وړاندې ولاړ وى چه عين هم هغه وخت به دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام نزول اوشى امام به دَ خپل ځائى نه راشاته شى مگر عيسىٰ عليه السلام به نى دَ اوږو په مينځ كښې لاس كيږدى هغه ته به دَ وړاندې كيدو او امامت كولو حكم وركوى او پخپله به دَهغه په اقتداء كښې مونځ كوى. [4]

ابو الحسن آبدى رحمه الله مناقب شافعى كښې فرمائى چه په اخبار متواتره سره دا خبره ثابته ده چه امام مهدى عليه السلام به دَدې امت يو كس وى او حضرت عيسىٰ عليه السلام به دَهغه په اقتداء كښې مونځ كوى [5] دَدې خبرې دَ ذكر كولو

---

[1] إكمال المعلم بفوائد مسلم كتاب الإيمان باب نزول عيسىٰ ابن مريم حاكما..... إلخ: ۱/۴۷۳ دار الوفاء للطباعة والنشر.

[2] إكمال المعلم بفوائد مسلم كتاب الإيمان باب نزول عيسىٰ ابن مريم حاكما..... إلخ: ۱/۴۷۴ دار الوفاء للطباعة والنشر.

[3] مسند الإمام أحمد: ۲۳/۲۱۰ – ۲۱۲ مؤسسة الرسالة.

[4] سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب فتنة الدجال وخروج عيسىٰ..... إلخ رقم الحديث: ۴۰۷۷.

[5] فتح الباري: ۶/۴۹۳-۴۹۴ دار المعرفة.

مقصد د سنن ابن ماجه د هغه روايت ترديد كول دى «لامهدي إلا عيسى» چه هم عيسىٰ عليه السلام مهدى دي. يعنى مهدى خوك جدا سړي نه دي بلكه هم حضرت عيسىٰ عليه السلام پخپله مهدى دي.(١)

د سنن ابن ماجه دا روايت علامه ذهبى رحمه الله ضعيف ګرځولي دي. د سنن ابن ماجه شارح صفاء الضوى احمد العدوى رحمه الله فرمائي كه چرې دا حديث صحيح هم اومنلې شي نو بيا هم دا الفاظ د حديث صحيح معارض نه شي جوړيدې چه د امام مهدى عليه السلام يو خان له شخصيت كيدل ثابتوى.(٢)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه كه چرې عيسىٰ عليه السلام امام تصور كړې شي نو «إمامكم منكم» يا «أمكم» معنى به شي چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به د هغه وخت د مسلمانانو په جماعت كښې شامليدو سره د امت محمديه فرد شميرلې كيږي. چنانچه علامه طيبى رحمه الله فرمائي «المعنى: يؤمكم عيسى حال كونه فى دينكم» يعنى حضرت عيسىٰ عليه السلام د امت محمديه تابع كيدو سره به ستاسو امام وى مګر صحيح هم دادى چه حضرت عيسىٰ عليه السلام به ماموم وى.(٣)

علامه ابن الجوزى رحمه الله فرمائي كه چرې عيسىٰ عليه السلام د امامت دپاره وړاندې شوې وې نو يقينا د اشكال كونكى په زړه كښې به دا اشكال پيدا كيدو چه هغه د نائب كيدو په حيثيت سره وړاندې شوې دې يا په نوى شريعت سره؟ په دې وجه حضرت عيسىٰ عليه السلام هډو وړاندې نه شو دې دپاره چه د حضور پاك په ارشاد «لانبى بعدى» باندې يو معمولى شان داغ هم اونه لګى.(٤)

بل د حضرت عيسىٰ عليه السلام باوجود د آخرى زمانې او قرب قيامت كښې نازليدل د امت محمديه د يو نيك صالح سړي اقتداء كول په دې خبره باندې واضحه دلالت كوى چه زمكه هيڅ كله هم د الله تعالى د احكام نافذ كونكو نه خالى نه پاتې ده اونه به پاتې شي. سره د دې چه هغه په مقدار كښې كم وى.(٥)

**د احاديث ترجمة الباب سره مناسبت:** د احاديث باب ترجمة الباب سره مناسبت بالكل واضح دې او هغه داسې چه احاديث او ترجمه دواړو كښې نزول عيسىٰ عليه السلام بيان كړې شوې دى.(٦)

## ٥١- باب: مَا ذُكِرَ عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ.

**د ترجمة الباب مقصد:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله د بنو اسرائيلو عجيبه واقعات بيانول غواړي.(٧)

شيخ الحديث حضرت مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائي د مؤرخينو دستور دې چه د يو سړي د تاريخ ليكلو نه وړاندې د هغه خانې ماحول ليكي. نو چونكه اصل مقصود د حضرت محمد ﷺ حالات بيانول دى په دې وجه امام بخارى رحمه الله د حضور پاك حالات ليكلو نه اول د حضور پاك د ولادت نه وړاندې ماحول بيانول غواړي. هغه وخت خو يا جاهليت وو او يا يهوديت او نصرانيت. حضرت شيخ صاحب فرمائي چه د جاهليت د دور خلق هډو قابل ذكر نه دى. په دې وجه امام بخارى رحمه الله هغه پريخودو سره د يهودو او نصارىٰ څه واقعات ذكر كوى.(٨)

(١) فتح البارى: ٦/٤٩٤ دار المعرفة. سنن ابن ماجه كتاب الفتن باب الصبر على البلاء رقم الحديث: ٤٠٣٩.

(٢) إهداء الديباجة كتاب الفتن باب شدة الزمان: ٥/٣٩٩-٣٩٨ دار اليقين.

(٣) فتح البارى: ٦/٤٩٤ دار المعرفة.

(٤) كشف المشكل من حديث الصحيحين: ٣/٨٨ رقم الحديث: ١٣٧٣، ١٦٦٥ دار الوطن.

(٥) فتح البارى: ٦/٤٩٤ دار الكتب العلمية.

(٦) عمدة القارى: ١٦/٥٥-٥٤ دار الكتب العلمية.

(٧) فتح البارى: ٨/٦١٤.

(٨) تقرير بخارى: ٥/٤١٦.

[۳۲۶۶]- حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ المَلِكِ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، قَالَ: قَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو، لِحُذَيْفَةَ: أَلاَ تُحَدِّثُنَا مَا سَمِعْتَ [ص:۱۶۹] مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُهُ يَقُولُ: «إِنَّ مَعَ الدَّجَّالِ إِذَا خَرَجَ مَاءً وَنَارًا، فَأَمَّا الَّذِي يَرَى النَّاسُ أَنَّهَا النَّارُ فَمَاءٌ بَارِدٌ، وَأَمَّا الَّذِي يَرَى النَّاسُ أَنَّهُ مَاءٌ بَارِدٌ فَنَارٌ تُحْرِقُ، فَمَنْ أَدْرَكَ مِنْكُمْ فَلْيَقَعْ فِي الَّذِي يَرَى أَنَّهَا نَارٌ، فَإِنَّهُ عَذْبٌ بَارِدٌ» ص ۴۹۴][۷۱۱۱، ۶، وانظر ۳۲۹۲][1]

**ترجمه**: عقبه بن عمرو انصاری حذيفه بن يمان ﷺ ته اوونيل آيا ته به مونږ ته دَ رسول الله نه اوريدلې شوې څه حديث بيان نه کړې؟ حذيفه بن يمان ﷺ اوونيل ما رسول الله ﷺ داسې فرمانيلو سره اوريدلې کله چه دجال راوځي نو هغه سره به اوبه او اور دواړه وی. خو چه کوم څيز خلق داګنړی چه اور دې هغه به په حقيقت کښې يخې اوبه وی او کوم څيز چه يخې اوبه ګنړی هغه به په حقيقت کښې سوزونکې اور وی. په تاسو کښې چه څوک هم په دغه زمانه کښې موجود وی نو چه څوک کوم څيز اور اوګنړی هم په هغې کښې دې پريوځی ځکه چه هغه به په حقيت کښې يخې خوږې اوبه وی.

## تراجم رجال

**موسٰى بن اسماعيل**: دا ابوسلمه موسٰى بن اسماعيل تبوذکی ﷫ دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس» لاندې تيره شوې ده.[2]

**ابوعوانة**: دا ابوعوانه الوضاح بن عبدالله يشکری ﷫ دې.[3]

**عبدالله بن نمير**: دا عبدالله بن نمير القبطی ﷫ دې.[4]

**ربعي بن حراش**: دَ دوی تذکره «كتاب العلم باب إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم» لاندې تيره شوې ده.[5]

**عقبه بن عمرو** ﷺ: دَدوی تذکره «كتاب الإيمان باب ما جاء أن الأعمال بالنية» لاندې تيره شوې ده.[6]

**حذيفة**: دا حذيفه بن يمان ﷺ دې. «كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا أو أنبأنا» لاندې دَدوی حالات تيرشوی دی.[7]

**تشريح**: دا روايت كتاب الفتن کښې باب ذكر الدجال لاندې راځی. حذيفه ﷺ وائی چه ما رسول الله ﷺ داسې فرمانيلو سره واوريدو چه تاسو نه وړاندې امتونو کښې يو سړې وو هغه له دَمرګ فرښته راغله چه دَهغه روح

---

[1] وأخرجه الإمام البخاري الرواية الأولى أيضاً في كتاب الفتن باب ذكرالدجال رقم: ۷۱۳۰والرواية الثانية قد مرت تخريجها في كتاب البيوع باب من أنظر موسرا. والرواية الثالثة أخرجها في نفس الكتاب . بعد باب حديث الغار. تحت باب بلاترجمة، رقم الحديث: ۳۴۷۹وفي كتاب الرقاق، باب الخوف من الله عزوجل، رقم الحديث: ۶۴۸۰والإمام مسلم أخرج هذه الرواية (الثالثة) في كتاب المساقاة، باب فضل إنظار المعسر إلخ، رقم الحديث: ۳۹۹۳، ۳۹۹۵، جامع الأصول في أحاديث الرسول: ۴۳۷/۱ رقم الحديث: ۲۴۸.

[2] كشف الباري: ۴۱۲/۳.

[3] كشف الباري: ۴۲۴/۱.

[4] اوګورئ: كتاب الأذان باب أهل العلم والفضل أحق بالإمامة: ۶۷۸

[5] كشف الباري: ۱۷۷/۴.

[6] كشف الباري: ۸۴۸/۲.

[7] كشف الباري: ۹۲/۳.

قبض کړی. ده غه نه تپوس اوکړی شو. دا تپوس کونکی فرښتې وې. ده کتاب البیوع په روایت کښې ددې تصریح ده. تاڅه نیک کار کړې دې؟ هغه ونیل زه هیڅ نه پیژنم. البته (په دنیا کښې) مې خلقو سره لین دین کولو او ده غوی نه به مې تقاضا کوله. چنانچه مالدار ته به مې مهلت ورکولو او غریب ته به مې معافی (یعنی قرض معاف کولو) نو الله تعالی هغه په جنت کښې داخل کړو. دا روایت کتاب البیوع کښې «باب من أنظر موسرا» لاندې اوګورئ.

حضرت ابوذر رضی الله عنه وائی چه ما رسول الله ﷺ داسې فرمائیلو سره واوریدو ده یو سړی ده مرګ وخت نیزدې راغلو کله چه هغه ده خپل ژوند نه ناامید شو نو ده کور خلقو ته ئې دا وصیت اوکړو چه زه مړ شم نو ډیر لرګی راجمع کړئی او په هغې اور اولګوئی. کله چه اور زما غوښه اوخوری او هډوکو ته اورسی هډوکې مې ایره شی نو هغه هډوکی واخلئی میده کړئی. بیا ده غه ورځ انتظار کوئی چه کله تیزه هوا والوزی نو په هغه ورځ ایره په دریاب کښې اوشیندئی. اهل خانه هم دغه شان اوکړه (نو الله تعالی ده غه خواره شوی اندامونه) راجمع کړل تپوس ئې ترې اوکړو تا داسې ولې اوکړه؟ هغه ونیل «من خشیتك» ستا ده ویرې. نو الله تعالی ده غه مغفرت اوکړو.

**قوله: قال عقبة بن عمرو: أنا سمعته یقول ذاك وكان نباشا:** کله چه حذیفه بن یمان رضی الله عنه آخری واقعه واوروله نو عقبه بن عمرو رضی الله عنه اوفرمائیل دا واقعه ما هم ده رسول الله ﷺ نه اوریدلې ده. دا سړې کفن چور وو ده ظاهر حدیث نه هم دا معلومیږی چه «وكان نباشا» اضافه ده عقبه بن عمرو رضی الله عنه ده طرف نه ده لیکن ابن حبان رحمه الله دا روایت ربعی عن حذیفه په طریق سره نقل کړې دې په دې کښې دی: «توفی رجل وكان نباشا، فقال لولده: أحرقونی»[1] نو دا روایت په دې باندې دلیل دې چه «وكان نباشا» الفاظ حذیفه رضی الله عنه اوعقبه رضی الله عنه دواړو په حدیث کښې نقل دی.[2]

بیا دا چه «وأنا سمعته یقول كذا» کوم چه عقبة بن عمرو رضی الله عنه وئیلی دی نو دې سره ده حذیفه بن یمان رضی الله عنه بیان کړې شوې دریواړه واقعات مراد دی یا ده آخری واقعه طرف ته اشاره ده؟ ده کلام ده ظاهر نه معلومیږی چه دآخری حدیث طرف ته اشاره ده مګر امام بخاری رحمه الله په کتاب الفتن کښې شعبه بن عبد الملك بن عمیر بن ربعی په طریق سره حدیث مداینه (ده هغه سړی قصه چه ده خلقو سره په لین دین کښې آسانتې اونرمئی معامله کوله) نقل کړې دد او په دې کښې «قال أبو مسعود وأنا سمعته» الفاظو تصریح ده. دغه شان ده کتاب آخری باب «باب بلا ترجمة، رقم الحدیث: ۳۴۷۹» کښې هم امام بخاری رحمه الله ده حضرت عقبه بن عمرو عن حذیفه رضی الله عنه روایت نقل کړې دې اوهلته «قال عقبة: وأنا سمعته یقول» صراحت دې دې نه معلومیږی چه ابومسعود عقبه بن عمرو رضی الله عنه ده حذیفه بن یمان رضی الله عنه دریواړه احادیث ده رسول الله ﷺ نه روایت کړی دی.[3]

**ترجمة الباب سره داحادیثو مناسبت:** امام بخاری رحمه الله ده حذیفه بن یمان رضی الله عنه درې احادیث هم په یو سند سره بیان کړی دی. اول روایت دباب سره متعلق نه دې اودویم اودریم روایت باب سره متعلق دې او مقصد هم دغه دوه واقعات بیانول دی.[4]

**[۳۲۶۷]- حَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ، أَخْبَرَنِي مَعْمَرٌ، وَيُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ عَائِشَةَ، وَابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، قَالاَ: لَمَّا نَزَلَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، طَفِقَ يَطْرَحُ خَمِيصَةً عَلَى وَجْهِهِ، فَإِذَا اغْتَمَّ كَشَفَهَا عَنْ وَجْهِهِ،**

---

[1] صحیح ابن حبان باب الخوف والتقوی ذکر البیان بأن هذا الرجل ینبش القبور فی الدنیا: ۴۲۱/۲ رقم الحدیث: ۶۵۱ مؤسسة الرسالة: ۱۴۰۸هجری.

[2] فتح الباری: ۶۱۵/۸ وعمدة القاری: ۵۹/۱۶ وإرشاد الساری: ۴۰۹/۷.

[3] فتح الباری: ۶۱۵/۸ وعمدة القاری: ۵۹/۱۶.

[4] فتح الباری: ۶۱۴/۸ وعمدة القاری: ۵۸/۱۶.

فَقَالَ: وَهُوَ كَذَلِكَ: «لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْيَهُودِ، وَالنَّصَارَى اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ» يُحَذِّرُ مَا صَنَعُوا ص ٤٩٧] [ر: ٤٢٥][1]

## تراجم رجال

بشر بن محمد: دا بشر بن محمد سختيانى مروزى رحمه الله دي.[2]

عبدالله: دا عبدالله بن مبارك رحمه الله دي.[3]

معمر: دا معمر بن راشد رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب العلم باب كتابة العلم» لاندې تيره شوې ده.[4]

عبيدالله بن عبدالله: دا عبيدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب العلم باب متى يصح سماع الصغير» لاندې تيره شوې ده.[5]

**قوله: أن عائشة وابن عباس قالا: لما نزل برسول الله صلى الله عليه وسلم....إلخ** عبيدالله بن عبدالله رحمه الله دَحضرت عائشه او ابن عباس رضي الله عنهما دواړو نه روايت نقل كړې دې چه دَ رسول الله ﷺ دَ وفات وخت رانيزدې شو نو حضورپاك څادر په مخ مبارك باندې اچول شروع كړه. كله چه دَ څادر «دَ وجې نه» ګرمى اوشوه نوحضورپاك به دا دَ مخ مبارك نه اخوا كولو او هم په دې كيفيت كښې به نبى فرمانيل په يهودو او نصارى دې دَ الله تعالى لعنت وى هغوى دَ خپلو انبياء كرامو قبرونه دَ سجدې ځايونه جوړ كړل.

**قوله: ويحذر ما صنعوا:** دَ راوى حديث مقصد دَدې جملې نه دادې چه دَ مرګ سره نيزدې وخت كښې دَ يهودو او نصارى دَدې عمل ذكر فرمانلو وجه دا وه چه حضورپاك خپل امت دَ داسې كفريه او شركيه اعمالو نه ويرول او دَځان ساتلو تلقين ئې ورته كولو.[6] دا روايت كتاب الصلاة كښې اوګورئې.

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** امام بخارى رحمه الله دا حديث نقل كولو سره دَ يهودو او نصارى مذمت كول غواړى چه هغوى دَخپلو انبياء كرامو قبرونه دَ عبادت ځايونه جوړ كړى. لهذا ترجمة الباب سره «لعنة الله على اليهود والنصارى» سره مطابقت لرى.[7]

[٣٢٦٨]- حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ فُرَاتٍ الْقَزَّازِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حَازِمٍ، قَالَ: قَاعَدْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ خَمْسَ سِنِينَ، فَسَمِعْتُهُ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «كَانَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ تَسُوسُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ، كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهُ نَبِيٌّ، وَإِنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِي، وَسَيَكُونُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُونَ» قَالُوا: فَمَا تَأْمُرُنَا؟ قَالَ: «فُوا بِبَيْعَةِ الْأَوَّلِ فَالْأَوَّلِ، أَعْطُوهُمْ حَقَّهُمْ، فَإِنَّ اللّٰهَ سَائِلُهُمْ عَمَّا اسْتَرْعَاهُمْ» ص ٤٩٩]()

---

[1] مرتخريجه فى كتاب الصلاة باب الصلاة فى البيع، رقم: ٤٣٥.

[2] كشف البارى: ٤٦٥/١.

[3] كشف البارى: ٤٦٢/١.

[4] كشف البارى: ٣٢١/٤.

[5] كشف البارى: ٤٦٦/١، ٣٧٩/٣.

[6] إرشادالسارى: ٤٠٩/٧.

[7] إرشادالسارى: ٤٠٩/٧ فتح البارى: ٦١٥/٦ وعمدة القارى: ٥٩/١٦.

## تراجم رجال

**محمدبن بشار:** دا محمدبن بشار بن عثمان عبدی بصری رحمه الله دی. دَبندار په لقب سره مشهور دی. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله علیه وسلم یتخولهم بالموعظة والعلم کیلا ینفروا» لاندې تیره شوې ده.[2]

**ابن جعفر:** دا ابوعبدالله محمدبن جعفرهذلي رحمه الله دی. دَغندر په لقب سره مشهوردی. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تیره شوې ده.[3]

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج بن الوردالعسکی الواسطی رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده» لاندې تیره شوې ده.[4]

فرات: دا ابومحمد فرات بن ابی عبدالرحمن قزازتیمی رحمه الله دی. دوی دَ حسن بصری، سعید بن جبیر، سلمان اشجعی، عامر بن وائله، عبدالرحمن بن اسودنخعی غوندې اعلام الحدیث نه دَحدیث روایت کړی دی. اودَدوی نه اسرائیل بن یونس، حجاج بن ارطاة، پخپله دَهغوی خوئی حسن بن فرات القزاز او نمسی زیاد بن حسن بن فرات القزاز، سفیان ثوری، سفیان بن عیینه او شعبه بن حجاج غوندې نومړو محدثینوحضراتو احادیث اخستی دی.[5]

ټولو ائمه وتعدیل دَدوی توثیق کړی دی.[6]

**ابوحازم:** دا ابوحازم سلمان اشجعی کوفی رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب: هل یجعل للنساء یوم علی حدة فی العلم» لاندې تیره شوې ده.[7]

**قوله: قاعدتُ أباهريرة خمس سنين:** راوی حدیث ابوحازم اشجعی رحمه الله وائی چه ما پنځه کاله ابوهریره رضی الله عنه سره کیناستوکښې دَهغوی صحبت اختیارکړی. ابوحازم رحمه الله دَ روایت بیانولو نه اول دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه سره دَ خپل اوږد صحبت اودَهغوی دَ مجلس دَملازمت تذکره کړې ده. ښکاره خبره ده چه دَ حدیث بیانولو نه اول دَدې جملې دَ تصریح هم یوغرض کیدې شی چه هغه دَ ابوهریره رضی الله عنه سره نیزدې ناست دی اودَهغه دَ حدیث په مجالس کښې پنځو کالو پورې مواظبت سره شریك شوې. دلته لفظ قاعدت دَمفاعله نه استعمال کړې دې دې سره دَ تحدث تعلق اظهار مقصود دی.[8]

**قوله: فسمعته یحدّث عن النبی صلی الله علیه وسلم.....:** ابوحازم رحمه الله وائی چه ما ابوهریره رضی الله عنه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا حدیث بیانولوسره اوریدلې دی چه په بنو اسرائیل باندې به انبیاء حکومت کولو. کله چه به یو نبی

---

[1]) أخرجه مسلم فی الإمارة، باب وجوب الوفاء ببیعة الخلفاء الأول فالأول، رقم:۱۸۴۲.

[2]) کشف الباری: ۲۲۱/۳.

[3]) کشف الباری: ۲۵۰/۲.

[4]) کشف الباری: ۶۷۸/۱

[5]) دَ شیوخ اوتلامذه دَ تفصیل دپاره اوګورئ: تهذیب الکمال: ۱۵۰/۲۳رقم: ۴۷۱۱مؤسسة الرسالة.

[6]) اوګورئ: ثقات ابن حبان: ۳۲۱/۷دارالفکر، تاریخ البخاری الکبیر، الترجمة: ۵۷۸والجرح والتعدیل: الترجمة: ۴۵۱الأنساب للسمعانی: ۲۷۱/۱۰دارالجنان، وتهذیب التهذیب: ۲۳۳/۸دارالفکر ومیزان الاعتدال: ۳۴۳/۳الترجمة: ۶۶۹۳دارالمعرفة للطباعة والنشر، وخلاصة الخزرجی الترجمة: ۵۶۹۳.

[7]) کشف الباری: ۱۰۱/۳.

[8]) عمدة القاری: ۵۹/۱۶

وفات شو نو بل به دَهغه په ځاني باندې جوړيدو مګر زما نه پس به بل نبي نه راځي بلکه خلفاء به وي او هغوي به په کثرت سره راځي.
صحابه کرامو تپوس اوکړو چه تاسو مونږ ته څه حکم راکوئي؟ يعني دَ نبوت سلسله خو په تاسو باندې ختمه شوه کله چه تاسو پاتې نه شئي نو دَ سلطنت امور اودَ مسلمانانو دَتنظيم دَپاره تاسو مونږ ته کومه لاره ښايئي؟ رسول الله ﷺ جواب ورکړو دَ خليفه اول بيعت پوره اوکړئي بيا دَهغه نه پس چه څوك خليفه شو دَهغه حق هغه ته اداکړئي، يعني دَهغه اطاعت اوکړئي او زکوة او خراج ورکړئي. بيشکه الله تعالی به دَهغوي نه دَ رعيت متعلق سوال کوي.

**قوله: تسوسهم الأنبياء:** ساس يسوس سياسة په معنی کښې دې. حکومت کول دَ سلطنت امورو تدبير او تنظيم کول، د عوامو د معاملاتو اصلاح او تنظيم کول.
بني اسرائيلو کښې په کثرت سره انبياء کرام مبعوث شوي. دَدې وجه دا ده چه کله به دَ يو نبي دَ وفات نه پس دَهغوي اصلاحي مهمات اثرات دَ يوې مودې نه پس ختم شو او په بني اسرائيل کښې به اخلاقي او معاشرتي بيمارئي خورې شوې اودَ هغوي پيشوايانو به دَخپلې مرضۍ مطابق دَتورات په احکامو کښې تحريف کولو سره نوې مضامين شامل کول نو دويم نبي به دَ هغه قائمقام جوړولو سره دَهغوي طرف ته ليګلې شو دې دَپاره چه هغه دَ هغوي دَ اصلاح سره دَتورات مضامين په خپل اصل حالت کښې مرتب کړي. دغه شان چه په هغوي کښې به کله هم فساد او وراني پيدا کيدو دَاصلاح دَپاره به دَهغوي طرف ته نبي مبعوث کيدو.(1)

**قوله: فما تأمرنا:** فاء دَ جزاء دَپاره ده او پوره جمله دَ شرط محذوف جواب دې. تقديري عبارت دا دې. «إذا کثر بعدك الخلفاء فوقع التشاجر والتنازع بينهم فما ذا تأمرنا نفعل»(2) بعض صحابه کرامو عرض اوکړو چه کله تاسو نه پس په کثرت سره خلفاء راځي نو دَهغوي په مينځ کښې به اختلاف او جګړه پيدا کيږي، لهذا په داسې صورت کښې به تاسو مونږ ته څه حکم کوئي په کوم چه مونږ عمل اوکړو؟

**قوله: فوا ببيعة الأول فالأول:** فُوا دَفاء ضمه سره صيغه دَوفاء نه امر دې. علامه طيبي رحمه الله فرمائيلي چه «فالأول» کښې فاء چه دَتعقيب دَپاره ده په تجدد او استمرار باندې دلالت کوي او مطلب دا دې چه دا دَ بيعت پوره کولو حکم دَ يوې زمانې سره خاص نه دې بلکه کله هم چه څوك سرې دَ ټولنکي خليفه دَټولو نه اول قائمقام او جانشين جوړ شي نو دَهغه بيعت پوره کول په رعيت باندې واجب دي.(3)
حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عيني رحمه الله دَ مذکوره جملې دا مطلب بيان کړې دې چه کله دَ يو خليفه بيعت عوامو اوکړو او دوباره بل چا بيعت على الخلافت واخستو نو دَ خليفه اول بيعت به معتبر وي او دَهغې پوره کول به واجب وي او دَ دويم خليفه بيعت به باطل وي.(4)
علامه قرطبي رحمه الله اوفرمائيل چه حديث باب کښې دَ خليفه اول دَ بيعت حکم خو بيان شوې دې مګر دَ دويم خليفه دَ بيعت څه حکم دې؟ ددې نه حديث باب ساکت دې. خو دَصحيح مسلم په حديث دَ عرفجه کښې ددويم خليفه دَحکم تصريح ده. «فاضربوا عنق الآخر»(5) يعني دَدويم خليفه سر دَ تن نه جدا کړئي. په يو بل روايت کښې

(1) المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم كتاب الإمارة والبيعة باب الأمر بالوفاء ببيعة الأول: ۴۷/۴ مؤسسة الرسالة.
(2) إرشاد الساري: ۴۱۰/۷.
(3) إرشاد الساري: ۴۱۰/۷.
(4) فتح الباري: ۱۶/۶ وعمدة القاري: ۱۶/۶۰.
(5) صحيح مسلم كتاب الإمارة والبيعة باب وجوب الوفاء ببيعة الخليفة، رقم الحديث: ۴۷۷۶ المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم كتاب الإمارة والبيعة باب الأمر بالوفاء ببيعة الأول رقم الحديث: ۱۴۲۲، ۴۹/۴ مؤسسة الرسالة.

د دويم مدعی د خلافت د قتل کولو علت هم بيان کړې شوې دې. په هغې کښې دی: «من اراد ان يشق عصاكم او يفرق جماعتكم فاقتلوه»[1] مطلب دادې چه د خلافت دويم مدعی ستاسو په جماعت کښې بې اتفاقی او ګړېړ پيدا کول غواړی په دې وجه هغه قتل کړئی. لکه چه د دې حکم مصلحت دادې چه د اولې ورځ نه د دعوو انتشار او فساد خاتمه اوشی او د امت مسلمه نظام جمعيت او توحد کښې قيام راشی. د نظام جمعيت او د امن د بقاء په خاطر او د زرګونو مسلمانانو د وينو توئيدو په مقابله کښې ډيره بهتر خبره هم دغه ده چه هم د دغه يو انسان خاتمه اوکړې شی.

**د اعطوهم حقهم مطلب:** علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه دا جمله «فوابيعة الأول» نه بدل دې او مطلب دادې چه اطاعت د خليفه حق دې د دې اداکول په تاسو باندې فرض دی او هم دغه د عهد پوره کول دی. د دين د سرلوړنی او شر فساد ختمولو د پاره دې نه علاوه به څه لار نشته دې چه د خليفه اطاعت اوکړې شی. سره د دې چه هغه د عوامو د حقوق په اداکولو کښې کوتاهی کوی. هغه له آخر د الله تعالی په عدالت کښې حاضريدل دی او د رعايا د حقوق حساب ورکول دی. چرته چه به رعايا د خپل محروم حقوق پوره پوره بدله اخلی.[2]

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث باب کښې د بنواسرائيل ذکر دې ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې.

[٣٢٦٩]- حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «لَتَتْبَعُنَّ سَنَنَ مَنْ قَبْلَكُمْ شِبْرًا بِشِبْرٍ، وَذِرَاعًا بِذِرَاعٍ، حَتَّى لَوْ سَلَكُوا جُحْرَ ضَبٍّ لَسَلَكْتُمُوهُ»، قُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ: اليَهُودَ، وَالنَّصَارَى قَالَ: «فَمَنْ» ص ٧٠٢ [٦٨٨٩][3]

## تراجم رجال

**سعيد بن ابي مريم:** دا سعيد بن محمد بن حکم بن ابی مريم مصری رحمه الله دې. د دوی تذکره «كتاب العلم باب من سمع شيئا فراجع حتی يعرفه» لاندې تيره شوې ده.[4]

**ابوغسان:** دا محمد بن مطرف بن داؤد تيمی مدنی رحمه الله دې.[5]

**زيد بن اسلم:** دا د حضرت عمر رضی الله عنه مولی زيد بن اسلم قرشی مدنی رحمه الله دې.[6]

**عطاء بن يسار:** دا عطاء بن يسار هلالی مدنی رحمه الله دې. د دوارو حضراتو تذکره «كتاب الايمان باب كفران العشير وكفر دون كفر» لاندې تيره شوې ده.[7]

**ابي سعيد رضی الله عنه:** د دوی تذکره «كتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن» لاندې تيره شوې ده.[1]

---

[1] صحيح مسلم كتاب الإمارة والبيعة، باب حكم من فرّق أمر المسلمين إلخ، رقم الحديث: ٤٧٩٨.

[2] إرشادالساري: ٤٠١/٧.

[3] أخرجه البخاري فى كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة، باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: (لتتبعنّ سنن من كان قبلكم) ومسلم فى العلم باب اتباع سنن اليهود والنصارى، رقم: ٢٦٦٩.

[4] كشف البارى: ١٠٦/٤.

[5] اوګورئی: كتاب الأذان باب فضل من غداإلى المسجد ومن راح، رقم: ٦٦٢

[6] كشف البارى: ٢٠٤/٢-٢٠٣.

[7] كشف البارى: ٢٠٤/٢.

قوله: لتتبعن سنن من كان قبلكم: دَ حضرت ابوسعيد خدرى رضی اللہ عنہ روايت دې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى تاسو دَ ليشت په بدله ليشت او دَ لاس په بدله لاس دَ خپل خان نه دَ وړاندېنو په طريقو باندې تګ کونى تردې چه که هغوى چرې دَ سمسارې په سوړه کښې هم داخل شى نو تاسو به هم په هغې کښې داخليږئ.

اشاره دَ پټو سترګو دَ تقليد و طرف ته ده چه مسلمان سواد کفر دَ ټولو ناروا کارونو، ګناهونو او اختلافى امورو کښې به دَ يهودو او نصارى په پټول سترګو تقليد کوى. ابوسعيد خدرى رضی اللہ عنہ وائى چه مونږ عرض اوکړو «اليهود والنصارى» آيا دَ تيرو شوو خلقونه يهود او نصارى مراد دى؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل «فمن» بيا څوک؟......

ضب، سمساره ته وائى. دا دَ اوچې ځناور دې او په زمکه کښې سوړه ويستو سره اوسيږى. دَ دې شمير په چالاکو ځناورو کښې کيږى او په دې وجه دې ته «قاضي البهائم» هم وئيلې شى. ابن خالويه ليکى چه دَ سمسارې ژوند اووه سوه کاله يا دَ دې نه هم زيات وى او دا اوبه بالکل نه څکى. يو قول دا هم دې چه سمساره په څلويښتو ورځو کښې يو څاڅکى متيازې کوى او دَ دې غاښونه نه پريوځى. ابن ابى الدين خپل کتاب العقوبات کښې دَ حضرت انس رضی اللہ عنہ په حواله سره نقل کوى چه غاروې هم په خپله سوړه کښې دَ تنه دَ بنيادم دَ ظلم دَ وجې نه په سلګو مره کيږى.[1] بعض شراح فرمائى چه په دې حديث کښې په خاص توګه دَ دې ځناور ذکر دَ هغه دَ هوښيارتوب او چالاکئ دَ وجې نه شوې دې.[2]

حافظ ابن حجر رحمہ اللہ او علامه عينى رحمہ اللہ فرمائى چه په ظاهره دَ ضب دَ تخصيص وجه دا معلوميږى چه دَ غاروې سوړه ډيره تنګه او دَ خه کار نه وى او دَ حديث مطلب دا دې چه مسلمانان دَ يهود او نصارى دَ طور طريقو او دَ هغوى دَ تهذيب او ثقافت به داسې په پټو سترګو تقليد کوى که چرې هغه دَ غاروې په تنګه او ناکاره سوړه کښې هم ورننه شى نو مسلمانان به په هغې کښې هم دَ هغوى تابعدارى کوى.[3]

دا روايت «کتاب الاعتصام والسنة» لاندې راځى.

**دَ حديث باب ترجمة الباب سره مناسبت:** حديث باب کښې دى «سنن من کان قبلکم» علامه عينى رحمہ اللہ فرمائى «من کان قبلکم» کښې بنو اسرائيل هم شامل دى نو په ظاهره هم دغه جمله دَ ترجمة الباب مطابق معلوميږى.[4]

**[٣٢٧٠] - حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "ذَكَرُوا النَّارَ وَالنَّاقُوسَ، فَذَكَرُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى فَأُمِرَ بِلَالٌ: أَنْ يَشْفَعَ [ص: ١٧٠] الْأَذَانَ وَأَنْ يُوتِرَ الْإِقَامَةَ" ص ٧٠٥ [ر: ٥٧٨][5]**

## تراجم رجال

**عمران بن ميسرة:** دا ابو الحسن بن ميسرة منقرى رحمہ اللہ دې. دَ دوى تذکره «کتاب العلم باب رفع العلم وظهور الجهل» لاندې تيره شوې ده.[6]

---

[1] کشف البارى: ٨٢/٢.
[2] إرشاد السارى: ٤١١/٧.
[3] فتح البارى: ٤٩٨/٦.
[4] فتح البارى: ١۶/٧ وعمدة القارى: ۶١/١۶
[5] عمدة القارى: ۶٠/١۶
[6] سبق تخريجه فى کتاب الأذان باب بدء الأذان رقم: ۶٠٣

**عبدالوارث:** دا عبدالوارث بن سعید تیمی تنوری رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب قول النبی صلی الله علیه وسلم :اللهم علمه الکتاب» لاندې تېره شوې ده.[۲]

**خالد:** دا خالد بن مهران الحذاء رحمه الله دي. دَ دوی تذکره هم په مذکوره کتاب اوباب کښې تېره شوې ده.[۳]

**ابي قلابة:** دا عبدالله بن زید جرمی رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب حلاوة الإیمان» لاندې تېره شوې ده.[۴]

**قوله: ذکر النار والناقوس......** په دې حدیث کښې دَ اسلام دَ شروع دَ وخت ذکر دې کوم وخت چه اذان نه وو شروع شوې. سوال دا پیدا شو چه دَمونځ دَ خبر ورکولو دَپاره دَاعلان کومه طریقه کېدل پکار دي. مختلف تجویزونه ورکړې شو. حضرت انس رضي الله عنه فرمائي چه صحابه کرامو دَ اور او ناقوس یعنی جرس ذکر اوکړو. یعنی اور لګولو سره جرس ګړنګولو سره خلق مانځه ته راوبللې او په دې سلسله کښې هغوی دَ یهودو او نصاری ذکر اوکړو چه هغوی به دغه شان کول. بیا آخر کار دَ معامله اختتام په دې باندې اوشو چه بلال رضي الله عنه ته حکم ورکړې شو چه هغه دې دَ اذان کلمات دوه دوه ځل اووائي اودَ اقامت کلمات یو یو ځل. دلته امام بخاري واقعه ډېره مختصر نقل کړې ده. تردې چه دَ عبدالله بن زید رضي الله عنه دَ خوب ذکرئې هم اونه کړو. تفصیلي واقعه دکتاب الصلاة په روایت کښې اوګورئ.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حدیث کښې دی «فذکروا الیهود والنصاري» دا جمله ترجمة الباب سره مطابقت لري چونکه دَ یهود اونصاری تعلق دَ بنواسرائیل سره دې په دې وجه امام بخاري رحمه الله دا روایت دَباب لاندې نقل کړې دې.[۵]

[۳۲۷۱]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "كَانَتْ تَكْرَهُ أَنْ يَجْعَلَ يَدَهُ فِي خَاصِرَتِهِ وَتَقُولُ: إِنَّ اليَهُودَ تَفْعَلُهُ" تَابَعَهُ شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ ص ۷۰۷ ].[۶]

## تراجم رجال

**محمد بن یوسف:** دا ابومحمد یوسف بیکندی رحمه الله دي. دَ دوی تذکره «کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر» لاندې تېره شوې ده.[۷]

**سفیان:** دا ابوعمران سفیان بن عیینه کوفی رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا» لاندې تېره شوې ده.[۸]

**الاعمش:** دا ابومحمد سلیمان بن مهران اسدی کوفی رحمه الله دي. أعمش په لقب سره مشهور دي. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب من ترک بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس عنه» لاندې تېره شوې ده.[۱]

---

[۱] کشف الباري: ۳/۳۸۰.
[۲] کشف الباري: ۳/۳۰۹.
[۳] کشف الباري: ۳/۳۱۲.
[۴] کشف الباري: ۲/۲۶.
[۵] إرشادالساري: ۷/۴۱۱.
[۶] تفرد به الإمام البخاري رحمة الله علیه ،جامع الأصول فی أحادیث الرسول: ۵/۳۲۲رقم الحدیث: ۳۴۱۵.
[۷] کشف الباري: ۳/۳۸۷.
[۸] کشف الباري: ۳/۱۰۲.

ابوالضحى: دامسلم بن صُبيح العطار رحمه الله دي. دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده.[۱]

مسروق: دا مسروق بن اجدع بن مالك همداني رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب الايمان،باب ظلم دون ظلم» لاندې تيره شوې ده.[۲]

قوله: كانت تكره أن يجعل يده في خاصرته...... دَمسروق رحمه الله روايت دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها به داخبره خرابه ګڼړله چه مونځ ګذار دې په خپل تشى باندې لاس كيږدي. فرمائيل به ئې چه يهودو به داسې كول.

لفظ يجعل ضمير ناعل دَ مصلي طرف ته راجع دي. دلته مطلقاً ذكرشوې دي. په يو بل روايت كښې دَ حالت صلاة قيد هم راغلې دې. چنانچه ابونعيم رحمه الله احمدبن فرات عن محمدبن يوسف (دادَ امام بخاري رحمه الله شيخ دې) په طريق سره روايت نقل كړې دې: «أنها كرهت الاختصار في الصلاة وقالت: إنما يفعل ذلك اليهود» يعنى حضرت عائشه رضي الله عنها دَ مونځ په حالت كښې په تشى باندې لاس كيخودل ناخوښه كول او وئيل به ئې چه يهود داسې كوي.

اختصار في الصلاة په مسئله باندې تفصيلي بحث «كتاب العمل فى الصلاة، باب الخصر فى الصلاة» كښې دَ ابوهريره رضي الله عنه دَحديث لاندې اوګورئى.[۳]

تابعه شعبة عن الأعمش: يعنى دَ سفيان بن عيينه رحمه الله دَحديث باب متابعت شعبه رحمه الله دَ اعمش رحمه الله نه روايت كړې دې.[۴] ابن ابى شيبه رحمه الله دا متابع روايت په خپل سند سره موصولاً روايت كړې دې.[۵]

[۳۲۷۲]- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّمَا أَجَلُكُمْ فِي أَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الأُمَمِ، مَا بَيْنَ صَلَاةِ العَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ، وَإِنَّمَا مَثَلُكُمْ وَمَثَلُ اليَهُودِ، وَالنَّصَارَى، كَرَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالًا، فَقَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، فَعَمِلَتِ اليَهُودُ إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، ثُمَّ قَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ العَصْرِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، فَعَمِلَتِ النَّصَارَى مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ العَصْرِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، ثُمَّ قَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ صَلَاةِ العَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ عَلَى قِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ، أَلَا، فَأَنْتُمُ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ مِنْ صَلَاةِ العَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ، عَلَى قِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ، أَلَا لَكُمُ الأَجْرُ مَرَّتَيْنِ، فَغَضِبَتِ اليَهُودُ، وَالنَّصَارَى، فَقَالُوا: نَحْنُ أَكْثَرُ عَمَلًا وَأَقَلُّ عَطَاءً، قَالَ اللَّهُ: هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا؟ قَالُوا: لَا، قَالَ: فَإِنَّهُ فَضْلِي أُعْطِيهِ مَنْ شِئْتُ" ص ۷۰۸-۷۰۹][ر: ۵۳۲].[۶]

---

[۱] كشف البارى: ۵۵۳/۴.

[۲] اوګورئى: كتاب الصلاة باب الصلاة فى الجبة الشامية رقم: ۳۶۳.

[۳] كشف البارى: ۲۸۱/۲.

[۴] عمدة القارى: ۴۴/۱۶.

[۵] المصنف لابن أبى شيبة كتاب الصلاة باب الرجل يضع يده على خاصرته فى الصلاة رقم: ۴۶۲۵ شركة دارالقبلة، مؤسسة علوم القرآن.

[۶] مرتحريجه فى كتاب مواقيت الصلاة باب من أدرك ركعة من العصر قبل الغروب. رقم : ۵۵۷.

## تراجم رجال

**قتيبة بن سعيد:** دا ابورجاء قتيبة بن سعيد ثقفي رحمه الله دى. «كتاب الإيمان باب إفشاء السلام» لاندې دَدوى تذكره تيره شوې ده.[1]

**ليث:** دا ابوالحارث ليث بن سعد فهمي رحمه الله دى. دَ بدء الوحى لاندې دَدوى تذكره تيره شوې ده.[2]

**نافع:** دا مولى ابن عمر رضي الله عنهما دى. دَدوى تذكره «كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا في المسجد» لاندې تيره شوې ده.[3]

**قوله: إنما أجلكم في أجل من خلا من الأمم ما بين صلاة العصر......** دَعبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى ستاسو زمانه دَ تيرو شوو امتونو زمانې سره داسې ده لکه دَ مازيگر مونځ نه دَ نمر ډوبيدو پورې. دكتاب الصلاة په روايت كښې مغرب الشمس په ځائې غروب الشمس دې. ستاسو مثال دَخپل نبى سره اود يهود اونصارى مثال دَهغوى دَ خپلو انبياؤ سره دَ هغه سړى په شان دې چاچه مزدور په كار باندې اولگولو. هغه سړى اووئيل چه نيمه ورځ يعنى دَ غرمې پورې په يو يو قيراط باندې څوك كار كوى؟ نو يهودو دغرمې پورې په يويو قيراط باندې كار اوكړو. بيا هغه سړى اووئيل چه زما دَپاره په يويو قيراط باندې دَ غرمې نه تر مازيگر مونځ پورې څوك كار كوى؟ نو نصارى دَ غرمې نه ترمازيگره پورې په يويو قيراط باندې كار اوكړو. بيا هغه سړى اووئيل چه دَ مازيگر دَ مونځ نه تر نمر ډوبيدو پورې به په دوه قيراط باندې څوك كار اوكړى. نودې اوريدو سره مسلمانانو دَ مازيگر دَمونځ نه تر نمر ډوبيدو پورې په دوه قيراط باندې كار اوكړو.

بيا رسول الله ﷺ خپل امت مخاطب كولو سره اوفرمائيل چه واورئ هغه هم تاسو يئ چا چه دَ مازيگر دَ مونځ نه ترنمر ډوبيدو پورې په دوه دوه قيراط باندې كار اوكړو تاسو ته ډبل اجرت ملاؤ شو. مطلب دا چه محنت كم اوكړو او مزدورى زياته ملاؤ شوه. بعض نسخوكښې دلته دَ قيراطين قيراطين الفاظ ذكر نه دى. يهوديانو له په دې باندې غصه ورغله ونى وئيل مونږ كار زيات اوكړو او مزدورى كمه ملاؤ شوه. الله تعالى جواب وركړو آيا ما ستاسو په حق كښې څه كمې كړې دې؟ هغوى اووئيل نه. الله تعالى اوفرمائيل داخو زما فضل دې چاله چه غواړم وركوم.

دَدې روايت تشريح «كتاب مواقيت الصلاة» كښې «باب من أدرك ركعة من العصر قبل الغروب» لاندې اوگورئ.

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** دَمذكوره حديث ترجمة الباب سره مناسبت داسې دې چه په حديث كښې دَ يهودو تذكره موجود ده او هغه دَبنى اسرائيلو نه دى او ترجمة الباب هم بنواسرائيل سره تعلق لرى. دغه شان په حديث اوترجمة الباب كښې مناسبت ښكاره دى.[4]

[٣٢٧٣] - حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، يَقُولُ: قَاتَلَ اللّٰهُ فُلَانًا، أَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُودَ، حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُومُ فَجَمَلُوهَا، فَبَاعُوهَا» تَابَعَهُ جَابِرٌ، وَأَبُو هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ص ٧١٠] ار: ٢١١٠، ٢١١١، ٢١٢١][5]

---

[1] كشف البارى: ١٨٩/٢.

[2] كشف البارى: ٣٢٤/١.

[3] كشف البارى: ٦٥١/٤.

[4] عمدة القارى: ٤٤/١٦.

[5] مرتخريجه فى كتاب البيوع باب لا يذاب شحم الميتة ولا يباع ودكه، رقم: ٢٢٢٣.

**ترجمه**: دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه ما دَحضرت عمر رضي الله عنه نه داسې وینا کولو سره واوریده چه فلانکي دې الله تعالی غرق کړي آیا هغه ته معلومه نه ده چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي الله تعالی په یهودو باندې لعنت څکه اوکړو چه کله په هغوی باندې وازګه حرام اوګرځولې شوه نوهغوی دا ویلې کړه او بیائي خرڅه کړه.

## تراجم رجال

**علي بن عبدالله**: داعلي بن عبدالله بن المديني رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب الفهم في العلم» لاندې تیره شوې ده.[1]

**سفیان**: دا سفیان بن عیینه رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا» لاندې تیره شوې ده.[2]

**عمرو**: داعمرو بن دینار مکی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب كتابة العلم» لاندې تیره شوې ده.[3]

**طاؤس**: دا طاؤس بن کیسان حمیدی رحمه الله دې. دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده.[4]

**قوله: قاتل الله فلانا**: دَ فلان سره اشاره حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه طرف ته ده. راوی دَ ادب اواحترام په وجه دَهغوی نوم وانخستو. سمرة بن جندب رضي الله عنه دا ویلی وو چه هغه ته دَ جزیه رقم ملاؤ شو کوم سره چه هغه شراب واخستل خرڅ نې کړل او رقم ئې په بیت المال کښې جمع کړو. هغه په خپل اجتهاد سره داسې کول جائز ګڼړلې وو اوحدیث دَ ممانعت هغوی نه وو اوریدلې. په دې وجه چه حضرت عمر رضي الله عنه ته دَ دې واقعې علم اوشو نوهغوی صرف په مذمت باندې اکتفاء اوکړه سزا ئې ورنه کړه.[5]

دا روایت «كتاب البيوع باب لا يذاب شحم الميتة» لاندې تیرشوې دې

**تابعه جابر وأبوهريرة**: یعنی دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما متابعت دَ حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه اوحضرت ابوهریره رضي الله عنه دواړو حضراتو نه ثابت دې. دَحضرت جابر بن عبدالله انصاری رضي الله عنه متابعت امام بخاری رحمه الله «كتاب البيوع باب بيع الميتة والأصنام» کښې موصولاً نقل کړې دې. اودَ حضرت ابوهریره متابعت امام بخاری رحمه الله «كتاب البيوع باب لا يذاب شحم الميتة ولا يباع ودكه» کښې موصولاً روایت کړې دې.

[۳۲۷۴]- حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ، أَخْبَرَنَا الأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «بَلِّغُوا عَنِّي وَلَوْ آيَةً، وَحَدِّثُوا عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلاَ حَرَجَ، وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا، فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ» ص ۷۱۲[6]

**ترجمه**: دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائي: مانه روایت کوئی اګرچه یو آیت ولې نه وی. اودَ بنی اسرائیل نه هم روایت کوئی دَهغوی نه روایت کولو کښې هیڅ حرج نشته دې اوکوم سړې چه په ما باندې قصداً دروغ اوتړی نو هغه له پکاردی چه خپل ځائې دې په دوزخ کښې جوړ کړي.

---

[1] کشف الباری: ۲۹۷/۳.
[2] کشف الباری: ۱۰۲/۳.
[3] کشف الباری: ۳۰۹/٤.
[4] کتاب الوضوء باب لم يرالوضوء، إلا من مخرجين.
[5] إرشادالساري: ٤١٣/٧.
[6] أخرجه الترمذي في العلم باب ماجاء في الحديث عن بني إسرائيل رقم: ۲۶۷۱ جامع الأصول: ۱۲۹/۸ رقم الحديث: ۵۸۵۰.

حدثواعني ولوآية: يعنى چه يو آيت ولې نه وي دا زما د طرف نه اورسوئي. قاضي بيضاوي رحمه الله فرمائي چه رسول الله ﷺ د حديث په څائي د آيت تحديث او ابلاغ ترغيب ورکړو. د قرآن پاك د حفاظت وعده پخپله الله تعالى کړې ده دَدې نه باوجود دَدې تبليغ واجب دې. نو په دې سره د احاديثو تبليغ په طريقه اولى ثابت شو.

علامه معافي نهرواني رحمه الله فرمائي چه په حديث کښې «آية» راوړلو حکمت دادې چه کله هم څوك حديث اورې نو هغه به د قرآني آيت په تبليغ کښې وراندېوالي او اهتمام کوي، سره دَدې چه آياتونه د تعداد په لحاظ سره کم وي. دَدې د اهتمام فائده به دا وي چه د رسول الله ﷺ نه نقل شوي آياتونه او احاديث ټوله سرمايه به امت ته اورسيږي. (١)

وحدثواعن بني إسرائيل ولاحرج: يعنى د يهودو او نصارى روايات نقل کولو کښې هيڅ حرج نشته دې. شراح فرمائي چه رسول الله ﷺ په شروع کښې د صحابه کرامو د يهودو په کتابونو لوستلو باندې رټنه کړې وه او دهغوى کتابونه وتيل ئې منع کړې وو چه هغه د محرف کيدو د وجې نه د فتنې سبب جوړيدې شي. روستو چه احکام اسلام او قواعد دين نه استحکام ملاؤ شو او صحابه کرامو ته د يهودو د تحريفاتو او دخان نه جوړشوو مضامينو علم اوشو نو حضورپاك د يهودو نه روايت شوي اقوالو او حکاياتو د تحديث اجازت ورکړو. (٢)

بعض حضرات فرمائي چه حرج د ضيق او تنګئي په معنى کښې دې او د حرج مطلب دادې چه د يهودو عجيبه او حيرانونکي روايات اوريدو سره په زړه باندې بوج نه دى محسوس کول پکار ځکه چه دَدې قسم روايات يهودو سره ډيرزيات دى. (٣)

بعض شراح فرمائي «حدثوا» د امر صيغه ده او مفيد وجوب دې. مخاطب به دا لفظ په وجوب باندې محمول کولې شو نو حضورپاك دَدې خودلو دَپاره چه دا امر د وجوب دَپاره نه دې بلکه د اباحت دَپاره دې. په آخره کښې د «ولا حرج» تصريح اوفرمائيله چه د يهودو نه د روايت نه کولو کښې هيڅ حرج نشته دې.

خلاصه دا چه دَدې حضراتو په نيز «ولاحرج» مطلب دادې چه د يهودو نه په ترك حديث کښې هيڅ حرج نشته دې او مقصد مخاطب په دې باندې پوهه کول دى چه «حدثوا» کښې امر د اباحت دَپاره دې. يو قول دادې چه په حديث کښې صرف دهغه رواياتو د تحديث اجازت ورکړې شوې دې کوم چه په قرآن مجيد او احاديث صحيحه کښې راغلي دى. يو قول دادې چه په روايت کښې اسرائيلي اخبار نقل کولو مطلقا اجازت ورکړې شوې دې. که هغه سندا متصل وي او که منقطع، ځکه چه د اسرائيلي رواياتو په اسناد کښې اتصال متعذر دې. ددې په خلاف احکام اسلام سره متعلق رواياتو په تحديث کښې د سند اتصال د اصل درجه لرى او رسول الله ﷺ سره د قرب عهد د وجې نه دا متعذر هم نه دې.

**دامام مالك رحمه الله رائې:** امام مالك رحمه الله «حدثوا عن بني إسرائيل» مطلب دا بيان کړې دې «المراد جواز التحديث عنهم بما كان من أمر حسن. أما ما علم كذبه فلا» يعنى د حديث مطلب دادې چه د اهل کتاب کومې ښه خبرې دى هغه نقل کول جائز دى. خو چه د کوم روايت بې بنياده او غلط کيدل معلوم وي نو هغه نقل کول جائز نه دى. (٤)

**دامام شافعي رحمه الله رائې:** امام شافعي رحمه الله فرمائي: «من المعلوم أن النبي صلى الله عليه وسلم لا يجيز التحديث بالكذب، فالمعنى حدثوا عن بني إسرائيل بما لا تعلمون كذبه، وأما ما تجوزونه فلا حرج عليكم في التحدث به عنهم، وهو نظير قوله: إذا حدثكم أهل الكتاب فلا تصدقوهم ولا تكذبوهم». (١)

---

(١) فتح الباري: ٦١٧/٧.

(٢) فتح الباري: ٦١٧/٧ عمدة القاري: ٦٣/١٦ إرشاد الساري: ٤١٤/٧.

(٣) فتح الباري: ٦١٧/٧ عمدة القاري: ٦٣/١٦ إرشاد الساري: ٤١٤/٧.

(٤) فتح الباري: ٢١٧/٨.

يعني دا خبره واضحه ده چه رسول الله ﷺ هيڅ كله دَ دروغونقل كولو اجازت نه وركوى. نو دَحديث معنى داده چه دَ اهل كتاب دَكوم روايت دَتكذيب څه ذريعه تاسو سره نه وى نوتاسو هغه روايت كولې شئى، اودَهغوى چه كوم روايات تاسو صحيح گنړئى دَهغې په نقل كولوكښې هم څه حرج نشته دې. دَدې روايت مضمون دَ رسول الله دَدې روايت په شان دَمعنى دې په كوم كښې چه حضورپاك فرمائيلى: كله چه تاسوته اهل كتاب يو روايت بيان كړى نوتاسو مه دَهغې تصديق كوئى او مه ئې تكذيب.

**دَ اسرائيلى رواياتو درې قسمونه:** خلاصه دا شوه چه دَ اسرائيلى رواياتو درې قسمونه دى: ① اول قسم دَهغه رواياتو دې چه په صحيح معنوكښې دَ قرآن اوسنت موافق وى. دَ داسې رواياتو خورونه جائز ده ځكه چه دَ دې صداقت دَ شك نه بالا دې.(١)

② دويم قسم دَ هغه رواياتو دې دكوم مثال چه په قرآن او سنت كښې نه وى مگر دغه روايات دَدې دواړو سره معارض هم نه وى. دغه شان روايات دَ عام اخبار او رواياتو په شان دَ صدق اوكذب دواړو احتمال لرى. دا دَعبرت اوترغيب په غرض په دې شوط نقل كول جائز دى چه دا خو نه دَ قضيه مسلمه په توگه پيش كړې شى اونه دَدې نه په څه شرعى حكم باندې استدلال اوكړې شى.(٢)

③ دريم قسم دَهغه رواياتودې چه كتاب اوسنت سره متصادم وى. داسې روايات صرف دَ دروغو په ضمن كښې راخى اودا صرف دَ ابطال او تكذيب په غرض سره پيش كول پكاردى چه دَخلقو په وړاندې دَهغوى كذب محض كيدل ښكاره شى.(٣)

[٣٢٧٥]- حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: إِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّ الْيَهُودَ، وَالنَّصَارَى لَا يَصْبُغُونَ، فَخَالِفُوهُمْ» ص ٧١٥ [٥٥٥٩](٥)

**ترجمه:** دَحضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى يهود اونصارى خضاب يعنى وسمه نه لگوى دَهغوى مخالفت اوكړئى.

## تراجم رجال

**عبدالعزيز بن عبدالله:** دا ابوالقاسم عبدالعزيز بن عبدالله بن يحيى اويسى رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب العلم باب الحرص على العلم» لاندې تيره شوې ده.(٦)

**ابراهيم بن سعد:** دا ابو اسحاق ابراهيم بن سعد زهرى رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب العلم باب ما ذكر فى ذهاب موسى عليه السلام فى البحر الى الخضر» لاندې تيره شوې ده.(٧)

---

(١) فتح البارى: ٦١٨/٨.
(٢) منارالقارى شرح مختصر صحيح البخارى: ٢١٣/٤.
(٣) المصدرالسابق.
(٤) المصدرالسابق.
(٥) أخرجه البخارى أيضاً فى اللباس باب الخضاب رقم الحديث: ٥٨٩٩ ومسلم فى اللباس باب مخالفة اليهود فى الصبغ، رقم: ٢١٠٣ وأبوداؤد فى الترجل باب فى الخضاب رقم: ٤٢٠٣ والترمذى فى اللباس باب ماجاء فى الخضاب رقم: ١٨٥٢.
(٦) كشف البارى: ٤٨/٤.
(٧) كشف البارى: ٢٨٧/٣.

**صالح**: دا ابومحمد صالح بن كيسان مدني رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب من كره أن يعود فى الكفر كما يكره أن يلقى فى النار من الايمان» (۱)

**ابن شهاب**: دَدوى تذكره «كتاب العلم باب بدء الوحى» دريم حديث لاندې تيره شوې ده. (۲)

**ابوسلمة بن عبدالرحمن**: دَدوى تذكره «كتاب الايمان باب صوم رمضان احتسابًا من الايمان» لاندې تيره شوې ده. (۳)

**تشريح**: دلته دا خبره په ذهن كښې ساتل پكاردي چه په روايت كښې دَ ږيرې اوسر ويښتو كښې دَ وسمې لګول مراد دى. په شروع كښې به رسول الله ﷺ دَ يهودو ښكلى عادتونه اختيارولو تلقين كولو. بيا دَحضورپاك مزاج شريف بدل شو او په ډيرو كارونو كښې ئې دَهغوى دَ مخالفت حكم وركړو. چونكه يهودو به دَ ږيرې او سر په ويښتو كښې وسمه نه لګوله اومنشاء دَ هغوى مخالفت وو نوحضورپاك دَدې دَ استعمال ترغيب وركړو چه دَ سر او ږيرې په ويښتو كښې وسمه لګوئى. شراح حديث دَدې روايت لاندې فرمائى چه دَ رسول الله ﷺ دَمنشاء دَ پوره كولو دپاره په دې حكم باندې دَعمل كولو ښه اهتمام كول پكاردى. خو چه په كومو علاقو كښې نكريزې او وسمه رائج نه وى اودَدې استعمال دَ انفراديت نشان پيدا كوى، دَ شهرت او رياكارئى سبب جوړيږى نو په داسې صورت كښې ترك خضاب اولى دې. (۴)

دويمه خبره داده چه دلته دَ خضاب نه هم دَ سر او ږيرې ويښته مراد دى. په كپړو او خپو لاسونو باندې خضاب لګول مراد نه دى. په يهودو كښې په خپو لاسونو باندې خضاب لګول معمول وو. په دې وجه په خپو لاسونو باندې خضاب لګولو نه ځان ساتل پكاردى. دَ شوافع نه دَ سړو دپاره دَدې په استعمالولو دَ تحريم قول نقل دې. البته دَ دوائى او علاج په غرض سره لګولو كښې حرج نشته دې. (۵)

دې روايت سره متعلق نور ابحاث «كتاب اللباس، كتاب الخضاب» كښې راځى. (۶)

**دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت**: په حديث كښې دَ يهودو ذكر دې اويهود دَ بنى اسرائيل نه دى، دغه شان دَ حديث مناسبت ترجمه سره ښكاره دې.

[۳۲۷۶]-حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنِي حَجَّاجٌ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْحَسَنِ، حَدَّثَنَا جُنْدَبُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، فِي هَذَا الْمَسْجِدِ، وَمَا نَسِينَا مُنْذُ حَدَّثَنَا، وَمَا نَخْشَى أَنْ يَكُونَ جُنْدُبٌ كَذَبَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله [ص: ۱۷۱] عليه وسلم: "كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ رَجُلٌ بِهِ جُرْحٌ، فَجَزِعَ، فَأَخَذَ سِكِّينًا فَحَزَّ بِهَا يَدَهُ، فَمَا رَقَأَ الدَّمُ حَتَّى مَاتَ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: بَادَرَنِي عَبْدِي بِنَفْسِهِ، حَرَّمْتُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ" ص ۷۱۷ [ر: ۱۲۹۸] (۷)

**ترجمه**: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كان فيمن كان قبلكم.......: رسول الله ﷺ فرمائى تاسو نه وړاندې امتونو كښې يو سړې وو. دَهغه نوم شراح حديث وائى چه معلوم نه شو. هغه زخمى شو كوم سره چه هغه ته تكليف اوشو اودَ تكليف نه برداشت كيدو دَ وجې نه، هغه چاړه راواخسته اوخپل لاس ئې پرې كړو. دَكوم په وجه چه دَهغه نه يو

---

(۱) كشف البارى: ۱۲۱/۲.

(۲) كشف البارى: ۳۲۶/۱.

(۳) كشف البارى: ۲۲۳/۲.

(۴) فتح البارى: ۳۵۵/۱۰دارالمعرفة.

(۵) المصدرالسابق.

(۶) كشف البارى كتاب اللباس باب الخضاب، ص: ۲۵۷ – ۲۵۹.

(۷) مرتخريجه فى كتاب الجنائز باب ماجاء فى قاتل النفس رقم: ۱۳۶۴.

شان وينه بهيدله ترديږ چه هغه مړ شو. الله تعالى فرمائي چه ده خپل ځان قتل کړو او ماله په راتلو کښې ئې تادى اوکړه نو ما په ده باندې هم جنت حرام کړو.

## تراجم رجال

**محمد:** داکثر شراح په نيز دې نه محمد بن معمر بن ربعي قيسى رحمه الله مراد دې. دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده.[1]

**حجاج:** داحجاج بن منهال انماطي رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب الإيمان باب ما جاء أن الأعمال بالنية» لاندې تيره شوې ده.[2]

**جرير:** دا جرير بن حازم بن زيد الأزدي البصري رحمه الله دې.[3]

**الحسن:** داحسن بن ابى الحسن بصرى رحمه الله دې. دَدوى تذكره «كتاب الإيمان باب المعاصي من أمر الجاهلية ولا يكفر صاحبها بارتكابها إلا بالشرك» لاندې تيره شوې ده.[4]

**جندب بن عبدالله:** دا جندب بن عبد الله البجلي رحمه الله دې. دَدوى تذكره اول تيره شوې ده.[5]

**حدثنا جندب بن عبدالله في هذا المسجد.....إلخ:** حسن بصرى رحمه الله فرمائي داحديث مونږ ته جندب بن عبدالله رضي الله عنه هم په دې جمات کښې بيان کړې. دې نه دَ بصره جمات مراد دې.[6] او كوم وخت چه هغوى حديث بيان کړې وو نو دهغه وخت نه مونږ دا هير کړې نه دې.

شراح حديث وائي چه په دې جمله سره حسن بصرى رحمه الله تحقق حديث طرف ته اشاره کړې ده چه دا حديث تيك هم په دغه الفاظو سره محفوظ کړې دې لکه چه جندب بن عبدالله رضي الله عنه بيان کړې وو. دويمه دا چه دې سره دَ جندب بن عبدالله رضي الله عنه سره دَ زمانې دَ نيزديكت هم اشاره کول مقصود دى دريم دا چه جندب بن عبدالله رضي الله عنه داحديث حسن بصرى رحمه الله ته دَ يو نه زيات وارې اوروليږ.[7]

**قوله: وما نخشى أن يكون جندب كذب على رسول الله صلى الله عليه وسلم:** اونه مونږ ته دَدې خبرې ويره شته چه جندب رضي الله عنه به په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې دروغ ونيلې وى. په دې كښې داخودل مقصود دى چه صحابه كرام رضي الله عنهم ټول عدول دى اودا ناممکن دى چه يو صحابى دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم طرف ته دَ دروغو خبره منسوب کړى.[8]

**تشريح:** دَ صحيح مسلم روايت دې: «أن رجلا خرجت به قرحة» الفاظ دى يعنى دَدغه سړى په بدن باندې دانه راختلې وه. په دواړو روايتونو كښې به دَ جمع كولو صورت داسې شى په شروع كښې هغه زخم (جرح) وو چه روستو ئى دَ دانې (قرحة) شكل اختيار کړو.[9]

---

[1] اوګورئى: كتاب الجمعة باب من قال فى الخطبة بعد الثناء: أما بعد، رقم:٩٢٣.
[2] كشف البارى: ٢/ ٧٤٤.
[3] كتاب الصلاة باب الخوخة والممر فى المسجد رقم: ٤٦٧.
[4] كشف البارى: ٢٢٠/٢.
[5] اوګورئى: كتاب العيدين باب كلام الإمام والناس فى خطب العيد، رقم: ٩٨٥.
[6] فتح البارى: ٦١٨/٨.
[7] فتح البارى: ٦١٨/٨عمدة القارى: ٦٥/١٦إرشادالسارى: ٤١٥/٧.
[8] فتح البارى: ٦١٨/٨عمدة القارى: ٦٥/١٦إرشادالسارى: ٤١٥/٧.
[9] فتح البارى: ٦١٩/٨.

((فخر بها يده)) لفظ سكين مذكر او مؤنث دواړه شان استعماليږي.[1]

((قوله: بادرني عبدي بنفسه)) دا جمله دَمرګ دَ تادئي كولو نه كنايه ده.[2]

((قوله: حرمت عليه الجنة)) دَدې سړي عمل دَ جنت دَحرمت دَپاره پيش خيمه جوړيدل په دې باندې دلالت كوي چه دې سړي دا عمل دَ علاج په غرض سره نه وو كړې لكه چه بعض وخت دَ فائدې په اميد باندې زخم يا دانه وغيره پرې كولې شي بلكه ده دا عمل قصداً هم دَمرګ دَپاره كړې وو.[3]

په دې روايت باندې دوه اشكال وارد كيږي: ① رومبې اشكال دادې چه دَ حديث الفاظ ((بادرني عبدي بنفسه)) نه دا مفهوم كيږي چه په دې وعيد كښې به هغه سړي هم داخل وي څوك چه چا قتل كړې وي ځكه چه داسې مقتول هم ظاهره ده چه دَخپل مرګ دَ وخت نه مخكښې مړشو كه چرې قاتل دَ قتل اقدام نه كولې نويقيناً هغه به ژوندې وې.

دَ دې اشكال جواب دادې چه په حديث كښې دكوم مبادرة او تادئي تذكره كړې شوې ده دَهغې نه مراد دادې چه څوك په خپل قصد اواراده سره دَمرګ اسباب اختيار كړي اودَداسې سړي دَپاره دغه پوره ته ذكرشوې سزا اوعقوبت ځكه دې چه دَ الله تعالى دَ طرف نه هغه ته داخبر نه وو چه دَهغه دَ مرګ وخت رانيزدې شوې دې. ((دَكوم په بنياد چه مونږ دا اووايو چه كله دَده دَمرګ وخت پوره وو نوبيا دَده په اقدام باندې راګيرول هم نه دي پكار)) بلكه دې سړي په خپله مرضئي او خپل قصد او اراده سره دَ مرګ اسباب اختيار كړل دكوم په وجه چه دَ سزا او عقوبت مستحق هم اوګرځيدو.[4]

② دويم اشكال دادې چه دَالله تعالى دَارشاد ((وحرمت عليه الجنة)) نه دا متبادر كيږي چه موحد به هم دَهميشه دَپاره جهنم كښې اچولې شي. دَدې اشكال مختلف جوابونه وركړې شوي دي. (١) چونكه دې سړي دا حرام فعل حلال ګنړلو سره انجام كړې وو دكوم په وجه چه هغه كافرشوې وو په دې وجه مخلد في النار اوګرځولې شو. (٢) دَ جنت نه خاص جنت لكه جنت الفردوس وغيره مراد دى. (٣) او يا بيا دا وعيد په دې باندې محمول دې چه كه چرې زما رضا جنت هميشه دَحرام ساتلو اوشوه نو هم داسې به كيږي ګني نه به كيږي. (٤) چه وعيد په تخريف اوتغليظ باندې محمول وي دَحديث ظاهري مفهوم مرادنه وي. (٥) امام نووي رحمه الله فرمائيلي چه پخوانو شريعتونو كښې به مرتكب دكبائر كافر كيدلو اوچونكه دا سړې هم دَ پخوانو امتونو نه وو اوده دَ كبيره ګناه ارتكاب كړې وو په دې وجه جنت دَده دَپاره حرام كړې شو.[5]

**مستفاد امور:** ① خودكشي كول حرام دى هم دغه شان څوك قتل كول هم حرام دي اوداهم معلومه شوه چه بل څوك قتل كول په طريقه اولى دَ تحريم جنت سبب دې.

② حديث په دې باندې دال دې چه الله تعالى په خپل مخلوق باندې ډير زيات مهربان دې چه هغه په خپل مخلوق باندې خپل ځانونه هلاك كول حرام ګرځولي دى اودَدې خبرې دليل دې چه ټول نفوس دَالله تعالى ملكيت دى.

③ دَ پخوانو امتونو تذكره كول جائز دى.

④ په مصيبت باندې صبر كول دَ فضل سبب دې او دَدې خبرې درس وركړې شوې دې چه په يو تكليف باندې

---

[1] فتح الباري: ٦١٩/٨.

[2] عمدة القاري: ٤٧/١٦ وفتح الباري: ٦١٩/٨.

[3] فتح الباري: ٦١٨/٨.

[4] المصدر السابق.

[5] فتح الباري: ٨/ ٦٢٠-٦١٩ عمدة القاري: ٤٧/١٦.

چغې صورې نه دی ویستل پکار. همې نه چه چرته داسې اوشي چه د دغې نه په لوئی مصیبت او تکلیف کښې راګیرشي
⑤ داسې اسباب اختیارول منع دی چه د خان د پاره خطره وی
⑥ حدیث روایت کولو کښې د احتیاط نه کار اخستل پکار دی
⑦ دغه شان حدیث بیانولو سره د تحدیث مکان ذکر کول او د خپل استاذ د قوت ضبط طرف ته اشاره کول هم مناسب دی دې د پاره چه اوریدونکې هم د دغه صفاتو طرف ته مائل شی. (۱)
**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت د حدیث ټکړه ((کان فیمن کان قبلکم)) کښې دې. ځکه چه په دې کښې عموم دې بنی اسرائیل او غیر بنی اسرائیل دواړو ته شامل دی او په ترجمة الباب کښې د بنو اسرائیل ذکر شوې دې نو داسې په دواړو کښې مناسبت واضح دې (۲)

حَدِيثُ أَبْرَصَ وَأَعْمَى وَأَقْرَعَ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ.

**ماقبل سره ربط:** تیرشوی باب سره ربط بالکل واضح دې هلته هم د بنی اسرائیلو د څه خلقو حال بیان کړې شوې وو او دلته هم د بنی اسرائیلو د دریو خلقو تذکره ده.
**د ترجمة الباب مقصد:** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د بني اسرائیلو د هغه دریو کسانو ذکر کړې دې چا له چه الله تعالی د بیمارئي نه شفا او د فقر نه غنا ورکړه او بیائی د هغوی امتحان واخستو. مګر په دغه امتحان کښې کامیابی صرف د یو په نصیب کښې راغله. ناکام هغه شو چاچه د الله تعالی ورکړې شوو نعمتونو ناقدری او ناشکری اوکړه او کامیاب هغه شو چاچه د الله تعالی احسانات یاد کړل او شکرئی ادا کړو.
**ابرص:** د چا د بدن رنګ چه د فساد مزاج د وجې نه سپین شی.
**اقرع:** داسې سړې چه د هغه د سر ویښته د څه بیمارئی د وجې نه پریوځی.
**اعمی:** نه مراد هغه سړې دې د چا نظر چه ختم شوې وی. (۳)

[۳۲۷۷]- حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي عَمْرَةَ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، حَدَّثَهُ: أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ح وحَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ رَجَاءٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي عَمْرَةَ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حَدَّثَهُ: أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ ثَلاَثَةً فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ: أَبْرَصَ وَأَقْرَعَ وَأَعْمَى، بَدَا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ يَبْتَلِيَهُمْ، فَبَعَثَ إِلَيْهِمْ مَلَكًا، فَأَتَى الأَبْرَصَ، فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ: لَوْنٌ حَسَنٌ، وَجِلْدٌ حَسَنٌ، قَدْ قَذِرَنِي النَّاسُ، قَالَ: فَمَسَحَهُ فَذَهَبَ عَنْهُ، فَأُعْطِيَ لَوْنًا حَسَنًا، وَجِلْدًا حَسَنًا، فَقَالَ: أَيُّ المَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ: الإِبِلُ، - أَوْ قَالَ: البَقَرُ، هُوَ شَكَّ فِي ذَلِكَ: إِنَّ الأَبْرَصَ، وَالأَقْرَعَ، قَالَ أَحَدُهُمَا الإِبِلُ، وَقَالَ الآخَرُ: البَقَرُ -، فَأُعْطِيَ نَاقَةً عُشَرَاءَ، فَقَالَ: يُبَارَكُ لَكَ فِيهَا وَأَتَى الأَقْرَعَ فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ شَعَرٌ حَسَنٌ، وَيَذْهَبُ عَنِّي هَذَا، قَدْ قَذِرَنِي النَّاسُ، قَالَ: فَمَسَحَهُ فَذَهَبَ وَأُعْطِيَ شَعَرًا حَسَنًا،

---

(۱) فتح الباري: ۶۲۰/۸.
(۲) عمدة القاري: ۴۶/۱۶.
(۳) إرشاد الساري: ۱۶/۷ ؛ دار الكتب العلمية.

قَالَ: فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ: الْبَقَرُ، قَالَ: فَأَعْطَاهُ بَقَرَةً حَامِلًا، وَقَالَ: يُبَارَكُ لَكَ فِيهَا، وَأَتَى الْأَعْمَى فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ: يَرُدُّ اللّٰهُ إِلَيَّ بَصَرِي، فَأُبْصِرُ بِهِ النَّاسَ، قَالَ: فَمَسَحَهُ فَرَدَّ اللّٰهُ إِلَيْهِ بَصَرَهُ، قَالَ: فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ الْغَنَمُ: فَأَعْطَاهُ شَاةً وَالِدًا، فَأُنْتِجَ هٰذَانِ وَوَلَّدَ هٰذَا، فَكَانَ لِهٰذَا وَادٍ مِنْ إِبِلٍ، وَلِهٰذَا وَادٍ مِنْ بَقَرٍ، وَلِهٰذَا وَادٍ مِنْ غَنَمٍ، ثُمَّ إِنَّهُ أَتَى الْأَبْرَصَ فِي صُورَتِهِ وَهَيْئَتِهِ، فَقَالَ: رَجُلٌ مِسْكِينٌ، تَقَطَّعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي، فَلَا بَلَاغَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ بِكَ، أَسْأَلُكَ بِالَّذِي أَعْطَاكَ اللَّوْنَ الْحَسَنَ، وَالْجِلْدَ الْحَسَنَ، وَالْمَالَ، بَعِيرًا أَتَبَلَّغُ عَلَيْهِ فِي سَفَرِي، فَقَالَ [ص:١٧٢] لَهُ: إِنَّ الْحُقُوقَ كَثِيرَةٌ، فَقَالَ لَهُ: كَأَنِّي أَعْرِفُكَ، أَلَمْ تَكُنْ أَبْرَصَ يَقْذَرُكَ النَّاسُ، فَقِيرًا فَأَعْطَاكَ اللّٰهُ؟ فَقَالَ: لَقَدْ وَرِثْتُ لِكَابِرٍ عَنْ كَابِرٍ، فَقَالَ: إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللّٰهُ إِلَى مَا كُنْتَ، وَأَتَى الْأَقْرَعَ فِي صُورَتِهِ وَهَيْئَتِهِ، فَقَالَ لَهُ: مِثْلَ مَا قَالَ لِهٰذَا، فَرَدَّ عَلَيْهِ مِثْلَ مَا رَدَّ عَلَيْهِ هٰذَا، فَقَالَ: إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللّٰهُ إِلَى مَا كُنْتَ، وَأَتَى الْأَعْمَى فِي صُورَتِهِ، فَقَالَ: رَجُلٌ مِسْكِينٌ وَابْنُ سَبِيلٍ وَتَقَطَّعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي، فَلَا بَلَاغَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ بِكَ، أَسْأَلُكَ بِالَّذِي رَدَّ عَلَيْكَ بَصَرَكَ شَاةً أَتَبَلَّغُ بِهَا فِي سَفَرِي، فَقَالَ: قَدْ كُنْتُ أَعْمَى فَرَدَّ اللّٰهُ بَصَرِي، وَفَقِيرًا فَقَدْ أَغْنَانِي، فَخُذْ مَا شِئْتَ، فَوَاللّٰهِ لَا أَجْهَدُكَ الْيَوْمَ بِشَيْءٍ أَخَذْتَهُ لِلّٰهِ، فَقَالَ أَمْسِكْ مَالَكَ، فَإِنَّمَا ابْتُلِيتُمْ، فَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْكَ، وَسَخِطَ عَلَى صَاحِبَيْكَ" ص ٧٢٢ - ٧٢٣] [ر: ٦٢٧٧] [١]

**ترجمه:** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي بني اسرائيلو کښي درې سړي وو په کوم کښي چه يو برص په برګي مرض کښي اخته وو، دويم ګنجي وو او دريم ړوند وو. الله تعالى ته دهغوى امتحان اخستل منظور شو نوهغوى له ئې يوه فرښته راوليګله چه د ټولو نه اول دبرګي مرض والاته راغله هغه نه ئې تپوس اوکړو ستا کوم يو شئ خوښ دې هغه اووئيل ښکلې رنګ او ښائسته (بې عيبه) څرمن، خکه چه د دې برګي مرض د وجې نه خلق مانه کرکه کوي نو فرښتې دهغه په بدن باندې لاس راښکلو په کوم سره چه دهغه برګوالي لرې شو او دهغې په ځائې ښکلې رنګ او خرمن راښکاره شوه. فرښتې تپوس اوکړو مال ستا کوم خوښ دې؟ هغه وئيل چه اوښان يا غواګانې نې اووئيل. بهرحال په دې کښې د راوي شک دې په ابرص او اقرع کښې يو اوښان اووئيل او بل غواګانې اووئيل. چنانچه هغه ته د لسو مياشتو حمل دارې اوښې ورکړې شوې. دې نه پس فرښتې دعا کړلوسره اووئيل چه الله تعالى دې اوکړې چه ستا په دې مال کښې برکت پيداشي. بيا هغه فرښته ګنجي له راغله دهغه خوښ څيزونو تپوس ئې اوکړو هغه وئيل چه ښه ويښته وى او د ګنجې توب مې لارشي دکوم د وجې نه چه خلق مانه نفرت کوي. چنانچه فرښتې دهغه په سرباندې لاس راښکلو په کوم سره د چه دهغه ګنجې والې ختم شو او ښکلې ښائسته ويښته ئې راوختل. بيائې دهغه خوښ مال پوښتنه اوکړه هغه غواګانې يادې کړې نوهغه ته حمل دارې غواګانې ورکړې شوې بيا فرښتې دعا اوکړه چه الله تعالى دې ستا په دې مال کښې برکت واچوى بيا فرښته نابينا له راغله دهغه دخوښ څيز تپوس ئې اوکړو په کوم چه هغه اووئيل چه الله تعالى زما نظر راواپس کړى دې دپاره چه زه په نظر سره خلق اوليدلې شم فرښتې دهغه په سترګو لاس راښکلو په کوم سره چه

---

[١] أخرجه البخاري في الأيمان والنذور أيضاً باب لا يقول: ما شاء الله وشئت إلخ رقم الحديث: ٦٦٥٣ والإمام مسلم كتاب الزهد باب: الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر رقم الحديث: ٧٤٣١ جامع الأصول في أحاديث الرسول: ١٠/٣٢١-٣٢٢ رقم الحديث: ٧٨٢٥.

الله تعالیٰ دَهغه نظر راواګرځولو. بیائې تپوس اوکړو کوم مال دې خوښ دې؟ ونې ونیل چیلئی مې خوښې دی. هغه له نې دَ بچې راوړونکې یوه چیلئی ورکړه. نو دَهغه دوارو (اوښانو او غواګانو) هم بچې پیدا شوا دَهغه چیلئی هم بچې راوړو، اوشو مال زیاتیدو په کوم سره چه دَ ابرص دَ اوښانونه وادی ډکه شوه، دَ اقرع دَ غواګانونه وادی ډکه شوه او دَ نابینا دَ چیلونه وادی ډکه شوه.

بیا هغه فرښته ابرص له دَ (ابرص) په حقیقی صورت رهیئت کښې راغله (دې دپاره چه حجت نې پوره وی) ونې ونیل زه یو غریب سړې یم په سفر کښې زما دَ روزې برابر اسباب ووختم شو. اوس زما کفیل دَالله تعالیٰ نه سوا اوستا نه بغیر بل څوك نشته دې. زه تانه دَ هغه الله تعالیٰ په نوم باندې یواوښ غوارم چاچه تاله دا ښائسته بدن او ښکلې رنګ درکړې دې اومال نې هم درکړې دې. اوښ څکه غوارم چه خپل مقام ته اورسیږم. هغه جواب ورکړو ماته نور هم ډیر زیات حقوق اداکول دی. فرښتې ونیل لکه زه چه تا پیژنم ولې ته دَ ابرص په بیمارئی کښې اخته نه وې دکوم په وجه چه به خلقو تانه نفرت کولو اوته تکې تکې ته محتاج وې بیا الله تعالیٰ تاله دومره مال درکړو. هغه سړی اوونیل ماته دَ لوئی شان والاپلار نیکه نه وراثت پاتې دې. فرښتې اوونیل چه که ته دروغ وایئې نو الله تعالیٰ دې تا هم هغه شان کړی څنګه چه ته اول وې. بیا فرښته ګنجې له هم په هغه شکل اوصورت راغله او هم هغه شان نې اوونیل څنګه چه اول تا ونیلې وو. هغه هم هغه جواب ورکړو کوم چه هغه اولنې ورکړې وو. فرښتې اوونیل که چرې ته دروغژن نې نوالله تعالیٰ دې تا هم هغه شان کړی څنګه چه ته اول وې. بیا فرښته هغه ړوند له هم په هغه شکل او صورت راغله ونې ونیل زه یو غریب اومسافر سړې یم. په سفر کښې زما هرقسم وسائل ختم شو نن زما آسرا سوا دَالله تعالیٰ نه اوستا نه بل څوك نشته دې. زه دَهغه الله په نوم باندې تانه دَ یوې چیلئی سوال کوم چاچه تاله بینائی درکړه دې دَ پاره چه زه دَ دغه (چیلئی) په ذریعه خپل منزل ته اورسیدې شم. هغه ونیل واقعی زه نابینا ووم الله تعالیٰ زما بینائی واپس کړه. زه فقیر اومحتاج ووم الله تعالیٰ زه غنی کړم. ستا چه څه مرضی وی واخله. نن چه کوم څیز هم دَ الله تعالیٰ په نوم اوړل غوارې دَهغې په اړه لو تانه دَ شکریه طلب ګار نه یم. فرښتې ونیل خپل مال خپل خان سره اوساته ماته دَمال ضرورت نشته بس ستاسو حلقو امتحان مې اخستې وو په کوم کښې چه (ته کامیاب شوې او) الله تعالیٰ تانه راضی شو اوستا دَ دغه دوو ملګرونه ناراض شو.

وحدثنی محمد، حدثنا عبدالله بن رجاء.....الخ: دا روایت امام بخاری رحمه الله په دوو سندونو سره ذکر کړې دې اودا دواړه سندونه په همام رحمه الله باندې یوځائی کیږی. دَ دویم سند په شروع کښې محمد نومې راوی دې اوس دې نه کوم یو راوی مراد دې نو په دې کښې یو قول دادې چه دې نه مراد محمد بن یحیٰی ذهلی رحمه الله دې. او بعض حضرات فرمائی چه دې نه پخپله هم امام بخاری رحمه الله مراد دې (مګر په دې صورت کښې به خانی دَ حدثنی حدث کیدل پکار دی. راقم). دا حضرات فرمائی چه زمونږ دَدې خبرې تائید دې نه کیږی چه امام بخاری رحمه الله په ډیرو مقاماتو باندې دَ عبدالله بن رجاء نه بغیرد واسطې هم روایات نقل کړی دی. لیکن ابوذر په دې خبره باندې جزم کړې دې چه دا روایت دَامام بخاری رحمه الله په نیز هم دغه شان (دَ راوی دَ پلار طرف ته نسبت نه بغیر) محفوظ دې. البته دا کیدې شی چه دَمحمدنه محمد بن یحیٰی ذهلی رحمه الله مراد وی څکه چه دا روایت جوزقی عن مکی بن عبدان په طریق سره دَمحمد بن یحیٰی ذهلی رحمه الله نه نقل دې. هم په دې باندې ابونعیم رحمه الله هم جزم کړې دې.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله کتاب التوحید کښې هم یوحدیث بعینه هم په دوو سندونو سره دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کړې دې.[2] بل دَ امام بخاری رحمه الله په صحیح کښې اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحه دَ عبدالرحمن بن ابی عمرة رحمه الله نه صرف هم دغه دوه روایتونه دی.[3]

---

[1] فتح الباري: ۶/۵۰۲-۵۰۱ عمدة القاري: ۱۶/۶۶

[2] فتح الباري: ۶/۵۰۲.

[3] فتح الباري: ۶/۵۰۲ عمدة القاري: ۱۶/۶۶

## تراجم رجال

**احمدبن اسحاق**: دا ابواسحاق احمد بن اسحاق بن حصین سلمی سرماری رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب الصلاة باب المرأة تطرح عن المصلی شیئا من الأذی» لاندې اوګورئ.

**عمرو بن عاصم**: دا عمرو بن عاصم بن عبیدالله قیسی کلابی بصری رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب مواقیت الصلاة باب وقت الفجر» لاندې اوګورئ.

**محمد**: دامحمد بن یحیی ذهلی رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب العیدین، باب التکبیر أیام منی.....إلخ» لاندې اوګورئ.

**عبدالله بن رجاء**: دا مشهور محدث عبدالله بن رجاء بن مثنی غزالی بصری رحمه الله دی.[1]

**همام بن یحیی**: دا همام بن یحیی دینار العوذی رحمه الله دی.[2]

**اسحاق بن عبدالله بن ابی طلحة**: دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.[3]

**عبدالرحمن بن ابی عمرة**: دا عبدالرحمن بن ابی عمرة انصاری نجاری رحمه الله دی. دَدوی تذکره «کتاب المساقاة باب حلب الإبل علی الماء» لاندې اوګورئ.

**ابوهریرة**: دا صحابی رسول حضرت ابوهریره رضی الله عنه دی.[4]

**شرح حدیث**:

**قوله**: بدالله عزوجل أن یبتلیهم....: دَحدیث دَدې الفاظو متعلق درې قسم اقوال دی: ① اکثر شراح حضرات دا الفاظ «بدالله، بدون الهمزه» روایت کړی دی. لیکن دا حضرات "بدا" دَدې په حقیقی معنی باندې نه محمول کوی ځکه چه «بدا یبدو» معنی دَ یوڅیز دَ پټیدو نه پس رابښکاره کیدلو راځی او ښکاره خبره ده چه دَالله تعالی په نسبت دا معنی مراد اخستل محال دی. په دې وجه دا حضرات فرمائی چه «بدا "أظهر"» معنی کښې دې چه الله تعالی هغه اراده کومه چه «دَ هغه سرو دَ ازمیښت په بابت» دَ ازل نه وه، هغه ظاهره کړه.[5]

② علامه کرمانی رحمه الله دا الفاظ «بدأالله» روایت کړی دی. یعنی دَهمزه سره او لفظ الله دَ رفع سره. په دې صورت کښې به دَحدیث معنی شی الله تعالی دَهغه دواړو سرو دَ امتحان فیصله او اراده اوکړه.[6]

③ علامه خطابی رحمه الله حدیث «بدالله» الفاظوسره روایت کړې دې یعنی بغیردَ همزة او لفظ الله دَ رفع سره. هغه فرمائی چه «بدا» "قضی وبدا" په معنی کښې دې اودَحدیث مفهوم دادې چه الله تعالی دَهغوی ازمیښت شروع اونافذ کړو. دا معنی ځکه ده چه نفس قضاځو دَاول نه ده ضرورت دَهغې دَ نفاذ دې.[7]

علامه خطابی رحمه الله او علامه کرمانی رحمه الله دَدې حضراتو طرف ته چاچه داحدیث «بدالله» الفاظوسره روایت کړې دې دَخطاء نسبت کړې دې.[8] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې الفاظو سره روایت په خطاء باندې محمول

---

[1] کشف الباری کتاب الصلاة ص: ۲۴۱.

[2] کشف الباری کتاب الحیض، ص: ۴۵۱.

[3] کشف الباری: ۲۱۳/۳.

[4] کشف الباری: ۶۵۹/۱.

[5] فتح الباری: ۵۰۲/۶ عمدة القاری: ۶۷/۱۶ إرشادالساری: ۴۱۷/۷.

[6] شرح الکرمانی: ۹۴/۱۴ مؤسسة الرسالة.

[7] الأعلام للخطابی، الجزء الثالث، ص: ۱۵۶۹.

[8] شرح الکرمانی: ۹۴/۱۴ مؤسسة الرسالة، الأعلام للخطابی، الجزء الثالث، ص: ۱۵۶۹.

كول صحيح نه دى څكه چه چا «بدالله» الفاظ سره روايت كړي دي هغوى فعل "بدا" په ظاهر باندې محمول كړې نه دي بلكه ددې توجيه ئي كړې ده دكوم نه پس چه په معنى كښې هيڅ خرابى نه لازم كيږى البته اولى دادى چه "بدا" د "قضى" په معنى باندې محمول كړې شى.(١) لكه څنګه چه علامه كرمانى رحمه الله او علامه خطابى رحمه الله فرمائى.

الحاصل په دې خبره باندې د ټولو اتفاق دې چه د الله تعالى نسبت "بداء" حقيقى معنى چه د خفاء نه پس ظهور ده مراد اخستل ناجائز دى.

قوله: هوشك فى ذلك: د صحيح مسلم په روايت كښې تصريح ده چه دا شك راوى حديث اسحاق بن عبدالله بن ابى طلحه رحمه الله ته پيښ شوې وو.(٢)

قوله: ناقة عشراء: عشراء د جيم فتحه او شين فتحه سره. هغه اوښې د كومې په حمل چه لس مياشتې تيرې شوې وى.(٣)

قوله: فأنتج هذان وولد هذا: لفظ انتاج او لفظ توليد كلام عرب كښې دغه شان استعماليږى. د بعض څناورو د پاره انتاج استعماليږى او د بعض د پاره لفظ توليد.(٤)

تقطعت بى الحبال فى سفرى.....: لفظ حبال د حبل جمع ده مراد دادې چه زما ټول د سفر اسباب د كوم نه چه به ما رزق طلب كولو ختم شوى دى. د صحيح مسلم په روايت كښې په ځائې د حبال حبال نقل دې كوم چه د حيلة جمع ده. په دې صورت كښې به معنى داشى چه اوس ما سره د سفر د پاره (سوا ستانه) نوره څه حيله يا طريقه نشته دې.(٥)

قوله: لقد ورثت لكابر عن كابر: د كشميهنى په روايت كښې «كابرا عن كابر» نقل دې. معنى هم يوه ده چه ما د لوئى لوئى شان والا پلار نيكانو نه دا مال په وراثت كښې حاصل كړې دې.(٦)

قوله: شاة أتبلغ بها فى سفرى.....إلخ: چه چيلئى خرڅولو سره به ټول سفرى ضروريات پوره كولو سره منزل ته اورسيږم. قسطلانى رحمه الله د فرښتې دا ټول كلام په تعريض باندې محمول كړې دې دې د پاره چه دا اشكال نه وى چه فرښتې دروغ ونيلى دى.(٧)

علامه سندهى رحمه الله فرمائى چه د فرښتې كلام په ظاهر حال باندې محمول دې. يعنى فرښتې چه هغه وخت كومه حيله اختيار كړې وه هم د هغې برابر ئې خبره اوكړه لهذا دا كذب نه دې. يا كيدې شى چه د الله تعالى د دغه سرو د ازميښت په غرض سره د فرښتې د پاره داسې كلام كول مباح كړې وى لكه څنګه چه د يو انسان د پاره پخپله د ظلم لرې كولو په غرض سره غير واضح او مبهم كلام چه په ظاهره رښتيا ښكارى يا صريح دروغ ونيل جائز دى.

---

(١) فتح البارى: ٥٠٢/٦.

(٢) فتح البارى: ٥٠٢/٦عمدة القارى:٦٧/١٦صحيح الإمام مسلم كتاب الزهد، باب: الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر. رقم الحديث: ٧٤٣١.

(٣) فتح البارى: ٥٠٢/٦عمدة القارى: ٦٧/١٦

(٤) فتح البارى: ٥٠٢/٦عمدة القارى:٦٧/١٦فيض البارى: ٤١٢/٤.

(٥) فتح البارى:٥٠٢/٦.

(٦) فتح البارى: ٥٠٢/٦عمدة القارى:٦٧/١٦إرشاد السارى: ٤١٩/٧.

(٧) إرشادالسارى: ٤١٨/٧.

الحاصل عين ممكن ده چه الله تعالى دَ بعض مصالح په وجه باندې دَ فرښتې دَپاره داسې كلام كول مباح كړې وى چه په ظاهره باندې دروغ معلومېږى بلكه صريح دروغ وئيلى ئى مباح كړى وى. لهذا چه كله داسې عين ممكن دې نو دَ فرښتې په كلام باندې هيڅ اشكال نشته دې. ځكه چه هغه دَ حكم موافق عمل اوكړو لهذا دَ دې دَ وجې نه دَ فرښتې عصمت په هيڅ قسم باندې مجروح كيږى نه.(١)

په دې حواله سره علامه گنگوهى رحمه الله ډيره بهترين توجيه بيان كړې ده هغوى فرمائى چه په فرښته باندې دااعتراض نه شى كيدې چه هغې پخپله خان مسكين اومسافر ښكاره كولوسره دروغ اووئيل ځكه چه دا هرڅه دَ الله تعالى په حكم سره وو. بلكه كه دغه وخت فرښتې دروغ نه وئيل نو كراهت به لازم راتلو ځكه چه په داسې صورت كښې حكم عدولى لازم راتللو اودَ الله تعالى دَ احكام نه اعراض گناه ده.(٢)

شيخ زكريا رحمه الله فرمائى چه علامه گنگوهى رحمه الله چيلنى خرخولوسره دَ ضرورت پوره كولو دَپاره دَحديث تشريح ځكه اوكړه ځكه چه په اوښه خو سورلى كيدې شى ليكن چيلنى خومتحمل نه ده.(٣)

**قوله: لاأجهدك اليوم بشيء أخذته لله.......إلخ:** لاأجهدك جيم ساكن او هاء سره. هم دغه دَ صحيح بخارى نه علاوه دَكريمه او صحيح مسلم اكثر رواياتو كښې دى او په دې صورت كښې معنى داده چه په الله قسم! زه تاته دَ هغه څيز په راواپس كولو كښې كوم چه ته ئې غواړې په مشقت كښې نه اچته كوم. دَ ابوذر په روايت كښې «لا أحْمَدُكَ» الفاظ نقل دى. په دې صورت كښې به معنى داشى چه زه نن په دې څيز پريخودو باندې كوم چه تاته ضرورت دې ستا تعريف نه كوم.(٤)

قاضى عياض رحمه الله فرمائى چه بعض حضراتو باندې كله «لاأحْمَدُكَ» معنى واضح نه شوه نوهغوى ميم حذف كړو اودال له ئې تشديد وركړو «لا أحُدُّكَ» په معنى دَ «لا أمنعك» جوړ شو. اوس به معنى شى چه كوم څيز تاله پكاردې دَهغې نه به تا نه منع كوم. مگر په صحيح روايت كښې دا شان دَتغيير اقدام هغه سړې كولې شى په چاكښې چه دَ الله تعالى نه ويره نه وى. ځكه چه دَ يوصحيح روايت الفاظ اومعنى كښې داسې تصرف يوعظيم جرم دې.(٥)

بعض حضراتو يو احتمال داهم بيان كړې دې چه «لاأحمدك» دَميم تشديد سره اولوستلې شى اومعنى داده چه كوم څيز هم ته اخلې دَهغې په اخستلو باندې زه دَ تعريف كولو طلب گار نه يم.(٦)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه په دې دريواړوكښې نابينا ښه پاتې شو ځكه چه دَ مزاج سلامتيا سره نيژدې وو. برص يو داسې مرض دې چه دَمزاج خرابئى او ورانيدو سره پيدا كيږى هم دغه شان دَ ويښتو خرابيدل هم دَمزاج دَ خرابيدو دَ وجې نه كيږى. ليكن دړوندوالى دَپاره دَ مزاج فسادى كيدل ضرورى نه دى كله دغه دَ يوبهرنى امر دَ وجې نه هم كيږى.(٧)

علامه رشيد احمد گنگوهى رحمه الله فرمائى په دريواړوكښې دَمال حرص دَهغوى دَ عيبونو موافق وو. دَ نابينا نه دَ خلقو دومره نفرت نه وى څومره چه دَ برگى مرض او گنجى توب نه كيږى. په دې وجه دَهغه مطلوب هم وړوكې

---

(١) حاشية السندهى على صحيح البخارى: ٩٤٤-٩٤٣ الطاف سنز.
(٢) لامع الدرارى مع الكنزالمتوارى: ٤٣٦/١٣.
(٣) الكنز المتوارى: ٤٣٥/١٣.
(٤) فتح البارى: ٥٠٢/٦ عمدة القارى: ٦٨/١٦ إرشادالسارى: ٤١٩/٧.
(٥) إكمال المعلم بفوائد مسلم، كتاب الزهد والرقائق، باب مابين النفختين، رقم الحديث: ٢٩٦٤.
(٦) فتح البارى: ٥٠٢/٦ عمدة القارى: ٦٨/١٦ إرشادالسارى: ٤١٩/٧.
(٧) شرح الكرمانى: ٩٦/١٤.

وروبعنې هغه د چیلئې مطالبه اوکړه اود برص عیب د اقرع نه زیات وو په دې وجه هغه د اوښ غوښتنه اوکړه او اقرع د دې نه کم وو نو هغه د غوا مطالبه اوکړه.[1]

**دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** دحدیث ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې ځکه چه په دواړو کښې د ابرص، اقرع او اعمٰی تذکره ده.[2]

## ۵۲ - باب: ﴿أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ﴾ /الکهف: ۹/.

**د ترجمة الباب مقصد:** د دې باب لاندې د امام بخاری رحمه الله مقصد د اصحاب کهف په حواله سره راغلې آیاتونو سره متعلق یوڅو تفسیری اقوال بیانول دی.[3]

امام بخاری رحمه الله د دې باب لاندې یو حدیث روایت کړې نه دې که څه نې ذکر کړې دی هغه د دې تفسیری اقوال په صورت کښې دی چه په سورت کهف کښې د اصحاب کهف په حواله سره راغلی دی. د مستملی او کشمیهنی په روایت کښې لفظ "باب" ساقط دې خود نسفی په روایت کښې نه باب ذکر دې او نه ترجمه.[4] علامه عینی رحمه الله فرمائی چه هم دغه صحیح دی ځکه چه کتاب هذا د حدیث دپاره مرتب کړې شوې دې نه چه د تفسیر دپاره.[5]

الْكَهْفُ الْفَتْحُ فِي الْجَبَلِ، وَالرَّقِيمُ الْكِتَابُ. ﴿مَرْقُومٌ﴾ /المطففين: ۹/: مَكْتُوبٌ مِنَ الرَّقْمِ. ﴿رَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ﴾ /الكهف: ۱۴/: أَلْهَمْنَاهُمْ صَبْرًا. ﴿شَطَطًا﴾ /الكهف: ۱۴/: إِفْرَاطًا. الْوَصِيدُ: الْفِنَاءُ وَجَمْعُهُ وَصَائِدُ وَوُصُدٌ، وَيُقَالُ: الْوَصِيدُ الْبَابُ. ﴿مُؤْصَدَةٌ﴾ /البلد: ۲۰/ والهمزة: ۸/: مُطْبَقَةٌ، آصَدَ الْبَابَ وَأَوْصَدَ. ﴿بَعَثْنَاهُمْ﴾ /الكهف: ۱۹/: أَحْيَيْنَاهُمْ. ﴿أَزْكَى﴾ /الكهف: ۱۹/: أَكْثَرُ رَيْعًا. فَضَرَبَ اللَّهُ عَلَى آذَانِهِمْ فَنَامُوا. ﴿رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾ /الكهف: ۲۲/: لَمْ يَسْتَبِنْ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿تَقْرِضُهُمْ﴾ /الكهف: ۱۷/: تَتْرُكُهُمْ.

**الْكَهْفُ الْفَتْحُ فِي الْجَبَلِ:** امام بخاری رحمه الله د کهف تفسیر «الفتح فی الجبل» سره کړې دې یعنی کهف په غر کښې جوړ شوی کولاؤ غار ته وائی. امام ضحاک رحمه الله د کهف تفسیر «هو غار فی الوادي» سره کړې دې یعنی کهف د غرونو په مینځ کښې واقع یو غار دې.[6] دا غار چرته واقع دې په دې کښې مختلف اقوال دی. ① زیات روایات د دې غار باره کښې د بلاد روم سره متعلق دی. ② امام طبری رحمه الله په ضعیف سند سره د دې غار محل وقوع ایلة ښار نقل کړې دې. ③ بعض طرسوس سره خاؤشا علاقه ذکر کړې ده. ④ بعض ایلة او فلسطین په مینځ کښې محل وقوع ذکر کړې ده. ⑤ بعض زیزاء بیان کړې دې. ⑥ بعض غرناطه بیان کړې دې.[7]

د ابن عباس رضی الله عنهما نه په ضعیف سند سره نقل دی چه اصحاب کهف به د مهدی علیه السلام اعوان او انصار وی حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی که چرې حدیث صحیح او منلې شی نو دا به په دې باندې محمول وی چه اصحاب کهف اوس هم ژوندی دی. ترکومې چه د امام مهدی علیه السلام ظهور کیږی نو په هغه موقع باندې به هغوی د هغه د انصار په صورت کښې راژوندی کولې شی. دغه شان د بې کاره سند روایت کښې دی چه اصحاب کهف به حضرت عیسٰی علیه السلام

---

[1] لامع الدراری مع کنز المتواری: ۴۳۴/۱۳ مؤسسة الخلیل الإسلامی.

[2] عمدة القاری: ۶۶/۱۶

[3] عمدة القاری: ۶۸/۱۶

[4] فتح الباری: ۵۰۳/۶ عمدة القاری: ۶۸/۱۶

[5] عمدة القاری: ۶۸/۱۶

[6] تفسیر الإمام ضحاک: ۵۴۱/۲ دار السلام.

[7] فتح الباری: ۵۰۳/۶ عمدة القاری: ۶۸/۱۶ تفسیر الطبری سورة الکهف [رقم الآیة: ۹]: ۱۵/۱۵۷ – ۱۶۰ دار هجر.

سره دَ حج فريضه اداكوي.(١)

وَالرَّقِيمُ الْكِتَابُ. (مَرْقُومٌ) مَكْتُوبٌ مِنَ الرَّقْمِ: امام بخاري رحمه الله فرماني چه لفظ «رقيم» او «مرقوم» دواړه دَ رقم نه ماخوذ دي. دكوم معنى چه دَ ليكلو راخي. رقيم دَ كتاب په معنى كښې دې او مرقوم دَ مكتوب په معنى كښې دې. دَ رقيم تفسير دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دې او دَ مرقوم تفسير دَ ابوعبيدة رحمه الله نه نقل دې(٢) دې نه علاوه هم دَ لفظ رقيم په تفسير كښې مختلف اقوال دي:

① ابوعبيدة رحمه الله فرماني چه رقيم دَهغه وادئ نوم دې په كوم كښې چه غار واقع دې.(٣) ② كعب احبار رحمه الله نه نقل دي چه رقيم دَ اصحاب كهف دَ كلي نوم دې. ③ دَحضرت انس بن مالك رضي الله عنه او سعيد بن جبير رحمه الله نه نقل دي چه رقيم دَهغوى دَ سپي نوم دې. ④ رقيم هم دَ هغه غار نوم دې. ⑤ رقيم دَهغه كاڼړي نوم دې چه دَ اصحاب كهف دَ غار دَخلې مخې ته لګيدلې وو. ⑥ دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه كله بادشاه ته دَ دغه خوانانو دَتختيدو خبر ملاؤ شو نوهغه دَ دغه اصحابو نومونه په يو تختئ باندې ليكلو سره په خپله خزانه كښې محفوظ كړې وو. رقيم هم دَ هغه تختئ نوم دې ليكن دَ نورو حضراتو وينا ده چه په دغه تختئ كښې دَهغه خلقو دَوخت شريعت ليكلې وو نه چه دَ اصحاب كهف نومونه. ⑦ رقيم هم دَ يو قوم نوم دې. الله تعالى خو دَ اصحاب كهف قصه بيان كړه ليكن دَ هغه قوم متعلق ئې هيڅ خبر ورنه كړو.(٤) حافظ ابن حجر رحمه الله دَ دې اقوالو دَ بيانولو نه پس فرماني چه صحيح خبره داده چه اصحاب كهف او اصحاب رقيم هم يو دي.(٥)

(رَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ) أَلْهَمْنَاهُمْ صَبْرًا: دَامام بخاري رحمه الله اشاره دَ سورت كهف آيت ﴿وَرَبَطْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [١٤] طرف ته ده. په دې كښې لفظ ربط ذكر دې. دكوم تفسير چه امام بخاري رحمه الله «ألهمناهم صبرا» سره كړې دې. يعنى الله تعالى دَ اصحاب كهف په زړونو كښې صبر واچولو. دا تفسير دَ امام ابوعبيدة رحمه الله نه نقل دې.(٦)

(شَطَطًا): إِفْرَاطًا: دَ سورت كهف دَ پورته ذكرشوي آيت باقى جزء ﴿لَن نَّدْعُوَ مِن دُونِهِ إِلَٰهًا لَّقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ طرف ته اشاره ده. لفظ شططا حالت نصبى كښې دې او دَ مصدر محذوف دَپاره صفت دې. تقديرى عبارت دې «لقدقلنا إذاقولا شططا». امام بخاري رحمه الله لفظ شطط تفسير افراط سره كړې دې. يعنى مونږ به دَالله تعالى نه سوا دَ بل چا عبادت نه كوو ليكن الله تعالى دې نه كړى كه چرې داسې اوشو نو يقيناً مونږ به ډير بې ځايه خبره كونكى شو.(٧)

علامه تهانوى رحمه الله فرماني چه دَالله تعالى په عبادت باندې بې ځايه خبره ګول مرتب كولو وجه داده چه لامحاله عبادت كښې دَعبوديت اعتراف او دَمعبود په مخكښې دَتضرع كلمات پيش كولې شى. اوس كه چرې دا كلمات دَ يو داسې معبود په مخكښې اوونيلې شى چه باطل دې نو ښكاره خبره ده چه دا به سراسر باطل او بې ځايه خبره

(١) فتح الباري: ٦/٥٠٤-٥٠٣ دارالمعرفة.
(٢) مجاز القرآن سورة المطففين: ٢٨٩/٢.
(٣) مجاز القرآن: ٣٩٤/١.
(٤) تفسير القرآن العظيم المعروف بتفسير ابن أبي حاتم سورة الكهف، الجزء الثامن، ص: ٢٣٤٦ رقم الحديث: ١٢٧١١ - ١٢٧١٤، فتح الباري: ٦/٥٠٤ عمدة القاري: ١٦/٦٩.
(٥) فتح الباري: ٦/٥٠٤.
(٦) مجاز القرآن: ٣٩٤/١.
(٧) عمدة القاري: ٦٩/١٦.

شی .[1]

الوَصِیْدُ: الفِنَاءُ وَجَمْعُهُ وَصَائِدُ وَوُصُدٌ، وَیُقَالُ: الوَصِیْدُ البَابُ دَ سورت کهف آیت ﴿وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ﴾ [۱۸] طرف ته اشاره ده امام بخاری رحمه الله دَ وصید تفسیر فناء یعنی درشل سره کړی دی. مطلب دا دی چه دَ اصحاب کهف سپی دَ غار په خله باندې دوارو لاسونه خواره کړی ناست وو. دَ دې جمع وصائد او وصد راځی بعض ونیلی دی چه دَ وصید اطلاق په دروازه باندې هم کیږی.

﴿مُؤْصَدَةٌ﴾: مُطْبَقَةٌ، آصَدَ الْبَابَ وَأَوْصَدَ. دَ سورت بلد آیت ﴿نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ﴾ [۲۰] طرف ته اشاره ده امام بخاری رحمه الله دَ «مؤصدة» تفسیر مطبقة سره کړی دی یعنی پټ شوې. دا امام بخاری رحمه الله تبعاً او استطراداً ذکر کړی دی ځکه چه وصید او مؤصدة دواړو اشتقاق وصد نه دی ګنی سورت کهف کښې دا لفظ ذکر نه دی.[2]

﴿بَعَثْنَاهُمْ﴾: أَحْيَيْنَاهُمْ. دَ سورت کهف آیت ﴿وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَاهُمْ لِيَتَسَاءَلُوا بَيْنَهُمْ﴾ [۱۹] طرف ته اشاره ده. امام بخاری رحمه الله دَ دې تفسیر أحییناهم سره کړی دی اودا تفسیرهم دَ ابوعبیدة رحمه الله نه نقل دی.[3]

﴿أَزْكَىٰ﴾: أَكْثَرُ رَيْعًا. دَ سورت کهف آیت ﴿فَلْيَنظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا﴾ [۱۹] طرف ته اشاره ده. امام بخاری رحمه الله دَ دې تفسیر «أكثر ريعا» سره کړی دی. یعنی دَ خوراکونو نه ښکلی خوراك. بعض دَ «ازکی» تفسیر «احلی» په معنی دَ مزیدار او بعض اکثر وارخص په معنی دَ زیات اوکم قیمت سره هم کړی ده.[4]

فَضَرَبَ اللَّهُ عَلَىٰ آذَانِهِمْ فَنَامُوا. دَ سورت کهف آیت ﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰ آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا﴾ [۱۱] طرف ته اشاره ده دَ کوم تفسیر چه امام بخاری رحمه الله «ناموا» سره کړی دی. یعنی هغه نی اوده کړه او هغه پریوتل. داتفسیر دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی.[5] علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ابن عباس رضی الله عنهما تفسیر باللازم کړی دی ځکه چه دا لفظ «ناموا» نه خو په قرآن کښې ذکر دی او نه دَ ﴿فَضَرَبْنَا عَلَىٰ آذَانِهِمْ﴾ معنی ده. البته په غوږونو باندې پرده اچول لازم ضرور دی.[6] بعض دَ دې تفسیر «سددنا عن نفوذ الأصوات إليها» سره کړی. یعنی مونږ آوازونه دَهغوی دَ غوږونو پورې رسیدو نه منع کړل.[7]

﴿رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾: لَمْ يَسْتَبِنْ. دَ سورت کهف آیت ﴿سَيَقُولُونَ ثَلَاثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ﴾ [۲۲] طرف ته اشاره ده. امام بخاری رحمه الله دَ «رجما بالغیب» تفسیر «لم یستبن» سره کړی دی په معنی دَ غیر یقینی خبره کول یا اټکل سره خبره کول.

وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ﴿تَقْرِضُهُمْ﴾: تَتْرُكُهُمْ. دَ سورت کهف آیت ﴿وَتَرَى الشَّمْسَ إِذَا طَلَعَت تَّزَاوَرُ عَن كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِينِ وَإِذَا غَرَبَت تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ ۚ ذَٰلِكَ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ﴾ [۱۷] طرف ته اشاره ده. دَ آیت ترجمه داده. «ای مخاطب! هغه غار په داسې ځائې کښې دی چه، کله نمر راوخي نو هغه به وینې چه هغه دَ غار دَ کښی طرف نه بچ پاتې کیږی، یعنی هغه وخت هم په دروازه باندې نه پریوځی، دې دپاره چه دَ ګرمئی نه ورته تکلیف نه وی،

---

[1] بیان القرآن: ۴۰۵/۲ إدارة التالیفات الأشرفیة.
[2] عمدة القاري: ۶۹/۱۶ فتح الباري: ۵۰۴/۶.
[3] مجاز القرآن: ۳۹۷/۱.
[4] عمدة القاري: ۷۰/۱۶ فتح الباري: ۵۰۴/۶.
[5] فتح الباري: ۵۰۴/۶ فتح الباري: ۷۰/۱۶.
[6] عمدة القاري: ۷۰/۱۶.
[7] فتح الباري: ۵۰۴/۶ عمدة القاري: ۷۰/۱۶.

اوهغه خلق دَ غار په يو ارت خائى كښې وو (يعنى په داسې غارونو كښې چه ترلرې پورې به تلل، چرته ارت چرته تنګ خايونه كوم چه وى نو دَ هغې نه په ارت خائى كښې وو دې دَپاره چه زړه ئې نه ويريږي او هواهم لګى). دَ (دې خلقو باوجود دَ ضعف اوقلت او مخالفينو دَ قوت اوكثرت نه هدايت موندل) دَالله تعالى دَ نښانونه دى.

امام بخارى رحمه الله ((تقرضهم)) تفسير ((تتركهم)) سره كړې دې. دا تفسير دَامام مجاهد رحمه الله نه نقل دې (1) دَ قرض حقيقى معنى قطع ده، يعنى پرې كول، ليكن دلته آيت كښې دَ قرض معنى دَ پرې كولونه ده بلكه دَعدول ده يعنى نمر به دَهغوى نه ډډه كوله اوهغوى به ئې يو طرف ته پريخودل. (2) نورتفصيلات ((كتاب التفسير،تفسيرسورة الكهف)) لاندې اوګورئى. (3)

(حَدِيثُ الْغَارِ)

**ماقبل سره ربط:** شراح كرام رحمهم الله ليكلى دى چه حديث ابرص واقرع... او اصحاب كهف سره متعلق اقوال دَمفسرينو ذكركولونه پس حديث الغار راوړلو كښې دَ مناسبت وجه داده چه په دې دواړو ابواب كښې ذكركړې شوې آيت دَ قرآن پاك ﴿ أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ ﴾ كښې چه دَ اصحاب كهف دَ كوم غار ذكرشوې دې هم په دغه غار كښې دَدې دريواړو كسانو واقعه هم پيښه شوې ده دَچا تذكره چه په حديث الغاركښې شوې ده. دَدې دليل دا پيش كولې شى چه امام طبرى رحمه الله په سند حسن سره دَنعمان بن بشير رضي الله عنه حديث نقل كړې دې په كوم كښې چه دى: ((عن النعمان بن بشير الأنصاري أنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يحدث عن الرَّقيم: إن ثلاثة نفر دخلوا في كهف......)) چه هغوى دَ حضوراكرم نه دَ رقيم تذكره كول واوريدل حضورپاك فرمائيل چه يو خل درې كسان يو غار ته لاړل دَهغوى دننه تلونه پس يو كاڼړې دَ غار مخې ته راغلو په كوم سره چه دَغار خله بنده شوه. نوچونكه دَ نعمان بن بشير رضي الله عنه په حديث كښې دَ رقيم او كهف تذكره ده لكه چه دَ اصحاب كهف په واقعه كښې دى نودَدې نه دا پته لګى چه حديث الغار او اصحاب كهف دواړو قصه هم په دې رقيم او كهف كښې پيښه شوې ده. او كيدې شى هم په دې مناسبت سره امام بخارى رحمه الله دَاصحاب كهف نه پس حديث الغار بيان كړو. (4)

علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دَ مناسبت وجه داهم كيدې شى چه په حديث الغاركښې دَكومو كسانو قصه ذكركړې شوې ده دَهغوى تعلق هم دَ ابرص اقرع او اعمى په شان بنو اسرائيل سره وو. دَ كوم دليل چه دَ عقبه بن عامر نه نقل دَ امام طبرى رحمه الله روايت دې خكه چه په دې روايت كښې دى ((إن ثلاثة نفر من بنى إسرائيل......الحديث)). (5)

[۳۲۷۸]-حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ خَلِيلٍ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "بَيْنَمَا ثَلاَثَةُ نَفَرٍ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ يَمْشُونَ، إِذْ أَصَابَهُمْ مَطَرٌ، فَأَوَوْا إِلَى غَارٍ فَانْطَبَقَ عَلَيْهِمْ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ: إِنَّهُ وَاللَّهِ يَا هَؤُلاَءِ، لاَ يُنْجِيكُمْ إِلَّا الصِّدْقُ، فَلْيَدْعُ كُلُّ رَجُلٍ مِنْكُمْ بِمَا يَعْلَمُ أَنَّهُ قَدْ صَدَقَ فِيهِ، فَقَالَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ: اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّهُ كَانَ لِي أَجِيرٌ عَمِلَ لِي عَلَى فَرَقٍ مِنْ أَرُزٍّ، فَذَهَبَ وَتَرَكَهُ، وَأَنِّي عَمَدْتُ إِلَى ذَلِكَ الْفَرَقِ فَزَرَعْتُهُ، فَصَارَ مِنْ أَمْرِهِ أَنِّي

(1) تفسير الإمام مجاهد، ص: ۱٤٤ دار الكتب العلمية.

(2) عمدة القارى: ۷۰/۱٦.

(3) ص: ۳۹٤ – ٤۰٤.

(4) عمدة القارى: ۷۰/۱٦ المعجم الأوسط: ۹/۳-۸ رقم الحديث: ۲۳۰۷ دار الحرمين.

(5) عمدة القارى: ۷۰/۱٦ الدعاء للطبرانى، ص: ۸۰-۷۹. رقم الحديث: ۱۹۵ دار الكتب العلمية.

اشْتَرَيْتُ مِنْهُ بَقَرًا، وَأَنَّهُ أَتَانِي يَطْلُبُ أَجْرَهُ، فَقُلْتُ لَهُ: اعْمِدْ إِلَى تِلْكَ الْبَقَرِ فَسُقْهَا، فَقَالَ لِي: إِنَّمَا لِي عِنْدَكَ فَرَقٌ مِنْ أَرُزٍّ، فَقُلْتُ لَهُ: اعْمِدْ إِلَى تِلْكَ الْبَقَرِ، فَإِنَّهَا مِنْ ذَلِكَ الْفَرَقِ فَسَاقَهَا، فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي [ص: ۱۷۳] فَعَلْتُ ذَلِكَ مِنْ خَشْيَتِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا، فَانْسَاحَتْ عَنْهُمُ الصَّخْرَةُ، فَقَالَ الآخَرُ: اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّهُ كَانَ لِي أَبَوَانِ شَيْخَانِ كَبِيرَانِ، فَكُنْتُ آتِيهِمَا كُلَّ لَيْلَةٍ بِلَبَنِ غَنَمٍ لِي، فَأَبْطَأْتُ عَلَيْهِمَا لَيْلَةً، فَجِئْتُ وَقَدْ رَقَدَا وَأَهْلِي وَعِيَالِي يَتَضَاغَوْنَ مِنَ الْجُوعِ، فَكُنْتُ لاَ أَسْقِيهِمْ حَتَّى يَشْرَبَ أَبَوَايَ فَكَرِهْتُ أَنْ أُوقِظَهُمَا، وَكَرِهْتُ أَنْ أَدَعَهُمَا، فَيَسْتَكِنَّا لِشَرْبَتِهِمَا، فَلَمْ أَزَلْ أَنْتَظِرُ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ، فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ مِنْ خَشْيَتِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا، فَانْسَاحَتْ عَنْهُمُ الصَّخْرَةُ حَتَّى نَظَرُوا إِلَى السَّمَاءِ، فَقَالَ الآخَرُ: اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّهُ كَانَ لِي ابْنَةُ عَمٍّ، مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ، وَأَنِّي رَاوَدْتُهَا عَنْ نَفْسِهَا فَأَبَتْ، إِلَّا أَنْ آتِيَهَا بِمِائَةِ دِينَارٍ، فَطَلَبْتُهَا حَتَّى قَدَرْتُ، فَأَتَيْتُهَا بِهَا فَدَفَعْتُهَا إِلَيْهَا، فَأَمْكَنَتْنِي مِنْ نَفْسِهَا، فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا، فَقَالَتْ: اتَّقِ اللَّهَ وَلاَ تَفُضَّ الْخَاتَمَ إِلَّا بِحَقِّهِ، فَقُمْتُ وَتَرَكْتُ الْمِائَةَ دِينَارٍ، فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ مِنْ خَشْيَتِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا، فَفَرَّجَ اللَّهُ عَنْهُمْ فَخَرَجُوا"
ص ۷۳۹] [ر: ۲۱۰۲] ([1])

## تراجم رجال

**اسماعيل بن خليل:** دا ابوعبدالله اسماعيل بن الخليل الخزاز كوفى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الحيض باب مباشرة الحائض» لاندې تيره شوې ده. ([2])

**علي بن مسهر:** دامشهور محدث على بن مسهر القرشى الكوفى رحمه الله دي. دَدوى تذكره هم په مذكوره بالا كتاب اوباب كښې تيره شوې ده. ([3])

**عبيدالله:** دا عبيدالله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب العمرى رحمه الله دي. دَدوى تذكره «كتاب الوضوء باب التبرز فى البيوت» لاندې تيره شوې ده. ([4])

**نافع مولى ابن عمر:** دَدوى تذكره «كتاب العلم باب ذكر العلم والفتيا فى المسجد» لاندې تيره شوې ده. ([5])

**ترجمه مع تشريح:** رسول الله ﷺ اوفرمائيل تاسو نه وړاندې امتونونه درې كسان (چرته روان وو چه هغوى) باران راګير كړل. هغوى په يو غار كښې دننه پناه واخستله. دَ غار په خله باندې يو لوئى كاڼړې راپريوتلو نوهغوى خپل مينځ كښې يو بل ته اووئيل چه والله اوس خو به صرف صداقت سره خلاصيدې شو. موږ كښې دې هر يو كس هغه عمل بيان كړى اودَ الله تعالى نه دې دعا اوكړى كوم چه هغه په صداقت او اخلاص سره كړې وى.

دوى كښې يو دعا اوكړه چه اې الله تاته خو پته ده چه ما په يو فرق (پيمانه) چاول مزدورئى باندې يو مزدور ساتلې وو. هغه ما سره كار اوكړو مګر مزدورى نى پريخوده او لاړو. فرق يوه پيمانه ده چه دَ دريو صاع برابروى. ([6])

---

[1]) مرتخريجه فى البيوع، باب: إذا اشترى شيئًا لغيره بغير أمره، رقم الحديث: ۲۲۱۵.

[2]) كشف البارى كتاب الحيض، ص: ۲۴۷.

[3]) كشف البارى كتاب الحيض ص: ۲۴۸.

[4]) كشف البارى: ۳۶۰/۵.

[5]) كشف البارى: ۶۵۱/۴.

[6]) غريب الحديث لابن قتيبة: ۱۶۴/۱ مطبعة العانى، بغداد، ۱۳۹۷هجرى.

سند احمد كښې د نعمان بن بشير رضي الله عنه روايت دې «كان لي أجراء يعملون، فاستأجرتُ كلَّ رجل منهم بأجر منهم فجاء رجل ذات يوم في نصف النهار، فاستأجرته بشطر أصحابه فعمل في نصف نهاره كما عمل رجل منهم في نهاره كله. فرأيت علي في الزمان أن لا انقصه مما استأجرت به أصحابه لما جهد في عمله. فقال رجل منهم: تعطى هذا مثل ما أعطيتني. فقلت: يا عبد الله لم أبخسك شيئا من شرطك وإنما هو مالي أحكم فيه ما شئتُ. قال: فغضب وذهب وترك أجره» [1]

يعنى زما ډير مزدوران وو ماهغوى كښې هريو په متعين معاوضه باندې د مزدورنى په توګه ساتلي وو. يوه ورځ يو سړي د غرمې راغلو چه هغه ما د نورو مزدورانو په نيمه ديارنى په مزدورنى اولګولو ليكن هغه په غرمه كښې دومره كار اوكړو لكه نورو مزدورانوچه به په پوره ورځ كښې كولو. نوما دا فيصله اوكړه چه دد غه مزدورانو ملګرو نه به ورته كمه مزدورى هيڅ كله نه وركوم خكه چه هغه محنت اومشقت زيات كړي وو. نو په هغوى كښې يو مزدور اووئيل ته به ده له زما د مزدورنى برابر وركوې؟ ما جواب وركړو د خدائى بنده ماخوتاله د معاهده مطابق پوره حق دركړي دې. زما ذاتى مال دې چه په خپله رضا باندې چاله غواړم وركولې شم. په دې باندې هغه غصه شو او خپله مزدورى پريخوده لاړو.

وړاندې قصه په روايت باب كښې ده. ما د هغه د حصې چاول په زمكه كښې اوكرلې يعنى د هغه مزدور ملكيت ګرځولو سره. بيا چه كوم پيداوار اوشو په هغې كښې دومره ګټه اوشوه چه په هغې باندې ما غواګانې او غويان واخستل بيا هغه د خپلې مزدورنى غوښتلو د پاره ماله راغلو. ما هغه ته اووئيل چه د غواګانو غويانو دا رمه واخله اوځه. هغه وئيل چه زما خوستاسره يو فرق وو. ما وئيل چه دا هم په هغه يو فرق سره اخستې شوې دى نو هغه د غه ټولو سره بوتلل.

د غه نيك او امانت دار سړي د هغه مزدورى او اجرت امانت ګرځولو سره هغه نه صرف محفوظ اوساتلو بلكه په هغې كښې نې په خپل محنت سره اضافه اوكړه او دومره نې زيات كړل چه د څناورو يوه رمه ترې جوړه شوه دا دومره ډير دولت هغه امانت ګرځولو سره هغه مزدور ته وركړو. كه هغه غوښتل نو ګټه به نې خان سره ساتلې وه او اصل اجرت به نې مزدور ته وركړي وو او چاته به پته هم نه وه. په داسې موقع باندې د راسخ الايمان خلقو نفس هم دهوكه خورى مګر هغه د الله تعالى د رضا د پاره ټول دولت هغه غريب مزدور ته پيش كړو. چنانچه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې «فأعطيتهُ ذلك كله، ولوشئت لم أعطه إلا الأجر الأول» [2]

ما ټول دولت هغه ته پيش كړو كه چرې غوښتل مې نو هغه ته به مې د روميى اجرت نه سوا هيڅ هم نه وركول د خپل دې نيك عمل او اخلاص په حواله هغه د الله تعالى نه دعا اوكړه «فإن كنت تعلم أني فعلت ذلك من خشيتك ففرج عنا» كه چرې تاته معلومه وى چه دا عمل ما ستا د ويرې او خوف د وجې نه كړي دې نوزمونږ دا مصيبت اخواكړې نو د دې دعا په بركت سره كاڼړې اخوا شو.

**قوله: فانساحت: أي انشقت** يعنى كاڼړې اوشليدو. علامه خطابى رحمه الله فرمائى چه د سين او خاء په خائى «فانصاحت» صاد او حاء سره صحيح دې يعنى د كاڼړې په خوزيدو سره د غار خله كولاؤ شوه ليكن حافظ ابن

---

[1] مسند أحمد بن حنبل، مسند الكوفيين: ٣٠/٣٩٧ رقم: ١٨٤١٧ مؤسسة الرسالة: ١٤٢١ هجرى.

[2] أما رواية أنس رضى الله عنه. فأخرجه أحمد في مسنده برقم: ١٢٤٥٤ أبويعلى الموصلى رقم: ٢٩٣٨ دار المأمون للتراث، دمشق: ١٤٠٤ بسند صحيح ، انظر إتحاف الخيرة بزوائد المسانيد العشرة: ٧/٤١٢ رقم: ٧٢١١ دار الوطن، الرياض، ١٤٢٠ هجرى، ومجمع الفوائد للهيثمى كتاب البر والصلة باب ماجاء فى البر وحق الوالدين: ٨/١٤٠ رقم: ١٣٤١٢ غاية المقصد فى زوائد المسند: ٣/٨٨ باب فى بر الوالدين دار المعرفة بيروت، ١٤٢١ هجرى، أخرجه البزار فى مسنده برقم: ٥٥٦. ١٧/٣٩ مكتب العلوم والحكم، المدينة المنورة: ١٩٨٨، وأما حديث أبى هريرة فأخرجه الطبرانى فى المعجم الأوسط: ٣/٥٤ برقم: ٢٤٥٤ دار الحرمين القاهرة.

حجر رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی: «فانساحت» (سين اوخاء سره) والاروايت صحيح دي. په دې كښې صاد په سين سره بدل كړې شوې دې. د عربو په كلام كښې چه كله صاد او خاء جمع كيدو سره راشي نو صاد په سين سره بدلولې شي.[1]

په حديث د سالم بن عبدالله رضي الله عنه كښې په دې مقام دا الفاظ نقل دي: «فانفرجت شيئا لا يستطيعون الخروج»[2] يعني چتان يا كاڼړې دخپل خائې نه دومره اوخوزيدو په كوم سره چه هغوى راوتلې نه شو. او دنعمان بن بشير رضي الله عنه په روايت كښې دي: «فانصدع الجبل حتى رأوا الضوء»[3] يعني غر اوشليدو او تردې چه هغوى ته رنړا ښكاره شوه. او د حضرت علي رضي الله عنه د روايت الفاظ دادي: «فانصدع الجبل حتى طمعوا في الخروج ولم يستطيعوا»[4] يعني په غر كښې چاودې كيدو سره دهغوى د بهر وتلو اميد پيدا شو ليكن هغوى راوتې نه شو. خو دحضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت انس رضي الله عنه په روايت كښې دي: «فزال ثلث الحجر» يعني دكاڼړې دريمه حصه اوخوزيدو.[5]

**قوله: فانطبق عليهم** «أي: فانطبق عليه باب الغار» يعني د غار خله بنده شوه. د موسى بن عقبه عن نافع په طريق سره نقل روايت دي: «فانحط على فم غارهم صخرة من الجبل فانطبقت عليهم»[6] يعني د غر نه د غار په خله باندې يو كاڼړې راپريوتلو او دهغوى لارې بنده كړه. دنعمان بن بشير د روايت په يو طريق كښې دي: «إذ وقع حجر من الجبل مما يهبط من خشية الله، حتى سدّ الغار»[7] يعني د غر نه يو كاڼړې راپريوتلو چه د الله تعالى د ويرې نه راپريوخى تردې چه د غار خله ئې بنده كړه.

**قوله: فليدع كل واحد** دموسى بن عقبه په روايت كښې دي: «انظروا أعمالا عملتموها صالحة لله»[8] په يو بل طريق كښې دي: «ادعوا الله بأفضل عمل عملتموه»[9] د سالم په روايت كښې دي: «إنه لا ينجيكم إلا أن تدعوا الله بصالح أعمالكم»[1]

---

[1] فتح الباري: ۶۳۰/۸، إرشادالساري: ۴۲۲/۷.

[2] رواه الطبراني في سندالشاميين: ۳۲۸/۴، رقم: ۱۴۹، ۴ مؤسسة الرسالة، بيروت: ۱۴۰۵ هجرى وروى البخارى فى باب الإجارة باب من استأجر أجيرا فترك أجره، برقم: ۲۲۷۲.

[3] أخرجه أحمد فى مسنده: ۳۶۸/۳، برقم: ۱۸۴۱۷، وأخرجه البزار فى مسنده: ۲۳۰/۸، بلفظ 'فانقض الحجر حتى رأواالضوء' رقم: ۳۲۸۷، وأبوداؤد فى البيوع باب الرجل يتجر فى مال الرجل بغير إذنه، برقم: ۳۳۸۷.

[4] أخرجه البزار فى مسنده: ۱۱۹/۳، برقم: ۹۰۶، مكتبة العلوم والحكم المدينة المنورة: ۱۹۸۸م، والهيثمى فى كشف الأستار عن زوائد البزار: ۳۶۸/۲، برقم: ۱۸۶۷، مؤسسة الرسالة بيروت، ۱۳۹۹ هجرى.

[5] مرتخريجه.

[6] أخرجه مسلم فى صحيحه كتاب الذكر باب قصة أصحاب الغار الثلاثة والتوسل بصالح الأعمال، برقم: ۶۹۴۹، وأبوعوانة فى مستخرجه: ۴۲۱/۳، برقم: ۵۵۴۹، دارالمعرفة بيروت، ۱۴۱۹ هجرى والنسائى فى السنن الكبرى: ۲۹۷/۱۰، برقم: ۱۱۸۲۶، مؤسسة الرسالة بيروت، ۱۴۲۱ هجرى، والبغوى فى شرح السنة: ۸/۱۳، برقم: ۳۴۲۰، المكتب الإسلامى دمشق: ۱۴۰۳ هجرى، واللفظ له.

[7] مجمع الفوائد للهيثمى: ۱۴۲/۸، كتاب البروالصلة رقم: ۱۳۴۱۳.

[8] أخرجه البخارى فى كتاب المزارعة باب إذا زرع بمال قوم بغير إذنهم وكان فى ذلك صلاح لهم، رقم: ۲۳۳۳، وفى كتاب الأدب باب إجابة دعاء من برّ والديه، رقم: ۵۹۷۴، ومسلم فى صحيحه كتاب الذكر باب قصة أصحاب الغار الثلاثة والتوسل بصالح الأعمال، رقم: ۶۹۴۹.

[9] أخرجه البخارى فى البيوع باب إذا اشترى شيئا لغيره بغير إذنه فرَضيَ، رقم: 2215.

دَحضرت علي ﷺ روایت کوم چه بزار رحمه الله نقل کړي دې هغې کښې دی: ((تفكروا في أحسن أعمالكم فادعوا الله بها، لعل الله يفرج عنكم)) [٢]

**یواشکال اوهغې جواب: اللهم إن كنت تعلم......:** دلته دا اشکال پیدا کیږي چه مؤمن ته دَالله تعالی په علم محیط کښې تردد نه شي کیدې اوهغه په سینو کښې پټ رازونو او پټو خبرو باندې هم پوهیږي نو بیا دغه بنده دَتردد اظهار ولې اوکړو؟

دَدې جواب دادې چه دَ هغه دَالله تعالی په نیز دَ خپل عمل قبلیدو اونه قبلیدو کښې تردد وو اوهم دَ دغه تردد اظهار لکه چه په دې الفاظو کښې هغه اوکړو: ((إن كان عملي ذلك مقبولا فأجب دعائي)) [٣]

**قوله: فذهب وتركه:** دَ موسی بن عقبه ﷺ دَ روایت الفاظ دی: ((فأعطيته فأبى ذاك أن يأخذ)) [٤] یعنی ما هغه ته مزدوري پیش کړه نوهغه دَ اخستلو نه انکار اوکړو. هم دَدوی نه نقل دویم روایت کښې دی: ((فلما قضى عمله قال: أعطني حقي، فعرضت عليه حقه فرغب عنه)) [٥] یعنی خپل کار پوره کولو نه پس هغه اووئیل ما ته حق راکړه، ما دَهغه حق هغه ته پیش کړو نوهغه دَ اخستلو نه انکار اوکړو. اودَ حضرت ابوهریره ﷺ په روایت کښې دی: ((فعمل لي نصف النهار فأعطيته أجرا فسخطه ولم يأخذه)) [٦] یعنی هغه په غرمه کښې زما دَ پاره کار اوکړو ما هغه ته مزدوري ورکړه نوهغه له غصه ورغله او مزدوري ئې وانخستله.

دَمزدورئې نه اخستلو دَ انکار وجه څه وه؟ ماقبل کښې دَ نعمان بن بشیر ﷺ روایت تیرشوې دې په کوم کښې چه دَ ترک اجرت سبب دا ذکر دې چه یو مستاجر نیمه ورځ کار کونکې مزدور او پوره ورځ کار کونکې مزدور له یو شان اجرت ورکړې وو دکوم په وجه چه پوره ورځ کارکونکې مزدور دَ خپلې مزدورئې اخستلو نه انکار اوکړو. خودَ حضرت انس ﷺ په روایت کښې دی: ((فأتاني يطلب أجره، وأنا غضبان، فزبرته، فانطلق وترك أجره)) [٧] یعنی هغه ماله دَ خپل اجرت اخستلو دَپاره راغلو خو زه دَ غصې په حالت کښې ووم ما هغه اورټلو نوهغه خپله مزدوري پریخودله اولاړو. په دې روایت کښې دَ ترک اجرت سبب دَ مستاجر غصه کیدل معلومیږي. داسې په ظاهره دَ نعمان بن بشیر ﷺ اوحضرت انس ﷺ په روایت کښې تعارض دې.

دواړو کښې تطبیق ورکولو سره شراح حدیث فرمائي چه تَرک اجرت سبب هم هغه دې دکوم تصریح چه دَ نعمان بن بشیر ﷺ په روایت کښې دې. خوچه کله دې مزدوري ته دَ بل مزدور سره حسد پیدا شو چه هغه صرف دَ غرمې پورې کار اوکړو او اجرت ئې دَ پوره ورځې دکار کولو واخستو او مستاجر ته ئې هم غصه اوکړه نو په دې باندې

---

[١] أخرجه البيهقي في شعب الإيمان: ٣١٥/٩ برقم: ٦٧٠٤ باب معالجة كل ذنب بالتوبة وأخرجه البخاري في كتاب الإجارة باب من استأجر أجيرا فترك أجره فعمل فيه المستأجر فزاد رقم: ٢٢٧٢.

[٢] انظر مسندالبزار: ١١٩/٣ رقم: ٩٠٦ مكتبة العلوم والحكم، المدينة المنورة: ١٩٨٨م.

[٣] فتح الباري: ٦٢٨/٨.

[٤] السنن الكبرى للبيهقي: ٣٩٧/١٠ رقم ١١٨٢٦ كتاب الرقائق، مؤسسة الرسالة بيروت، ١٤٢١ هجري.

[٥] انظر صحيح البخاري كتاب الزارعة باب إذا زرع بمال قوم بغير إذنهم وكان في ذلك صلاح لهم، برقم: ٢٣٣٣ وكتاب الأدب باب إجابة دعاء من برّ والديه، رقم: ٥٩٧٤ وصحيح مسلم كتاب الذكر باب قصة أصحاب الغار الثلاثة رقم: ٦٩٤٩ والسنن الكبرى للبيهقي باب جواز الإجارة: ١٩٤/٦ رقم: ١١٦٤.

[٦] أخرجه ابن حبان في صحيحه: ٢٥١/٣ ذكر الخصال التي يرتجى للمرء باستعمالها زوال الكرب في الدنيا عنه، برقم: ٩٧١ والطبراني في المعجم الوسيط: ٥٤/٣ برقم: ٢٤٥٤.

[٧] مسندأحمدبن حنبل: ٤٣٩/١٩ برقم: ١٢٥٤.

مستاجر هم غصه شو. د حضرت انس رضی الله عنه په روایت کښې هم د دې خبرې ذکر شوې دې لهذا په دوارو کښې هیڅ تعارض نشته دې (۱)

**قوله: اشتریت منه بقرا** روایت باب کښې صرف د بقر ذکر دې. د موسٰی بن عقبه رضی الله عنه په روایت کښې د څرونکی هم تصریح ده. د روایت الفاظ دی: «فزرعته حتی اشتریت منه بقرا وراعیها» یعنی د هغه د حصې چاول نې اوکرلې بیانی په هغې باندې غواګانې او څرلو والا واخستو. د حضرت سالم رضی الله عنه په روایت کښې دی «فثمرت أجره حتی کثرت منه الأموال» یعنی د هغه اجرت دومره زیاته فائده اوکړه چه د هغې نه ډیر زیات مالونه جوړ شو اوهم په دې روایت کښې دی چه مزدور راغلو د خپلې مزدورئی مطالبه کولوسره ئې اوونیل «أد إلیَّ أجري» ماله زما هغه مزدوری راکړه. نو مستاجر ورته اوونیل: «فقلت له کل ما تری من الإبل والبقر والغنم والرقیق» (۲) یعنی دا اوښان غواګانې غویان ګډو چیلو دا رمې چه ته وینې ټول ستاد اجرت حاصلات دی.

دلته دا اشکال دې چه کله بقر نه علاوه د دولت نور قسمونه هم وو نو په روایت کښې صرف په بقر باندې ولې اکتفاء اوکړې شوه؟ شراح فرمائی چه په روایت باب کښې «اشتریت بقرا» نه دا خودل مقصود نه دی چه مستاجر د بقر نه علاوه نور څه نه وی اخستلې. چونکه غالب مال په څاروو باندې مشتمل وو او هم هغه قابل ذکر وو په دې وجه راوی د دې په تصریح باندې اکتفاء اوکړه. (۳)

چه کله د دومره ډیر زیات مال حال طرف ته مستاجر اشاره کولوسره مزدور ته اوخودل چه دا ستا ملکیت دې نو هغه ته یقین رانغلو اوونی ګنړل چه کیدې شی دا مستاجر راپورې توقې کوی. چنانچه د موسٰی بن عقبه رضی الله عنه په روایت کښې دی: «أتستهزئ بي؟ فقلت: لا» (۴) مزدور ونیل ته ماپورې توقې کوې؟ نو مستاجر ونیل نه. او د نعمان بن بشیر رضی الله عنه په روایت کښې «تظلمني وتسخرني» الفاظ راغلی دی. (۵)

**قوله: فقال الآخر: اللهم إن کنت تعلم أنه کان لي أبوان شیخان کبیران** یا الله تاته معلومه ده چه زما بوډاګان مور پلاررو. ما به هره شپه د هغوی د څکلو د پاره د خپلو چیلو پیئې راوړل یوه شپه ما په راتلو کښې ناوخته کړو ما چه کله (پیئې راوړه) راغلم نو هغوی اوده شوی وو. زما بال بچ د اولږې نه ترقیدل زما عادت وو چه کله به مور پلار پیئې اوڅکل نو بیابه مې خپلو بچوته ورکول ماته د هغوی راپاسول بد لګیدل اوداهم راته ښه نه لګیدل چه لاړشم او هغوی د پیئونه څکلو د وجې نه (د اولږې د وجې نه) کمزورې شی. نو زه د سحر پورې (د هغوی سر ته ولاړ) یو شان انتظار کولو. یا الله تاته معلومه ده چه ما داعمل ستا د ویرې نه کړې وی نو زمونږ دا مصیبت لرې کړه. نو هغه کانړې نور اوښلیدو تردې چه هغوی ته آسمان ښکاره شو

**د دویمې واقعې سره متعلق د حدیث د الفاظو تشریح:**

**أبوان:** په مور پلار باندې تغلیبًا د أبوان اطلاق اوکړې شو.

**شیخان کبیران:** په روایت باب کښې اختصار دې. د حضرت علی رضی الله عنه په روایت کښې دی: «أبوان ضعیفان فقیران لیس لهما خادم ولا راع ولا والي غیري فکنت أرعی لهما بالنهار وآوي إلیهما باللیل» (۶) یعنی زما مور پلار ضعیف او فقیران وو.

---

(۱) فتح الباری: ۶۲۹/۸ انظر صحیح البخاری کتاب البیوع باب إذا اشتری شیئًا لغیره بغیر إذنه فرضی. رقم: ۲۲۱۵.
(۲) انظر أبی داؤد رقم: ۳۳۸۷ کتاب البیوع باب فی الرجل یتجر مال الرجل بغیر إذنه.
(۳) انظر أبی داؤد رقم: ۳۳۸۷ کتاب البیوع باب فی الرجل یتجر مال الرجل بغیر إذنه.
(۴) السنن النسائی الکبر: ۳۹۷/۱۰ رقم: ۱۱۸۲۶.
(۵) المعجم الکبیر للطبرانی: ۱۶۳/۲۱ رقم: ۲۰۸ ومجمع الزوائد للبیهقی: ۱۴۲/۸ رقم: ۱۳۴۱۳.
(۶) مسند البزار: ۱۱۹/۳ رقم: ۹۰۶.

زما نه علاوه دهغوی څوك خادم خاروی څرونکې نه وو. ما به توله ورځ دهغوی دپاره چيلنی څرولې او د شپې به هغوی له راتلم

**قوله: فأبطأت عنهما ليلة:** دلته دباب په روايت کښې دتاخير سره راتللو وجه نه ده خودلې شوې. د سالم رضی الله عنه روايت کښې دی: «فنأى بي طلب شيء يوما فلم أرح عليهما حتى ناما»[1] يعنی يو ورځ د يو څيز په طلب کښې زه لرې لاړم او ماښام په ډېر وخت باندې مورپلار ته راونه رسيدم تردې چه دواړه اوده شو. په دې روايت کښې هم ابهام دی. د تاخير سبب څو ئی اوخودلو د دې تصريح ئی اونه کړه. په صحيح مسلم کښې د ابوضمرة په طريق سره چه کوم روايت نقل دی په هغې کښې ددې تصريح شته. د روايت الفاظ دی: «وإني نأى بي ذات يوم الشجر»[2] يوه ورځ ونو زه لرې بوتلم مطلب دا چه د چيلو په څرولو کښې خلاف عادت لرې لاړم.[3]

**قوله: وأهلي وعيالي يتضاغون من الجوع:** يعنی بال بچ مې د اولږې نه چغې صورې وهلې. داؤدی رحمه الله فرمائی چه داهل وعيال نه بنځه بچې غلام او خاروی ټول مراد دی. په دې باندې ابن التين رحمه الله اشکال کړې دې چه اهل وعيال کښې دواب (خاروی) شامل کول هيڅ معنی نه لری. د اهل وعيال سره ددې هيڅ مناسبت نشته.[4] حافظ ابن حجر رحمه الله د داؤدی رحمه الله قول ته ترجيح ورکولو سره د سالم د روايت نه استدلال کړې دې. په هغې کښې دی: «وكنت لا أغبق قبلهما أهلا ومالا»[5] يعنی ما به د مور پلار نه اول بال بچ او خاروو له اوبه نه ورکولې. کله چه به هغه په مور پلار باندې اولاد نه مقدم کولو نو خاروی خو به ئی په طريقه اولی باندې نه مقدم کول.[6]

**قوله: فكرهت أن أوقظهما:** يعنی ما بد اوګڼرل چه هغوی راپاسوم. شراح حديث فرمائيلی چه انسان د خوب په حالت کښې نه غواړی چه هغه دې پاسوی. په دې وجه هغه هم مورپلار پاسول مناسب اونه ګڼرل.[7] دحضرت علی رضی الله عنه په روايت کښې دی: «ثم جلست عند رؤوسهما بالإناء كراهية أن أوذيهما»[8] يعنی ددې اندېښنې نه چه زما د طرف نه مورپلار (پاسولو وجې نه) هغوی ته تکليف اونه رسی، په لاس کښې مې لوښې نيولې دهغوی سرته نيزدې کيناستم. اوبخيله مې دهغوی د سترګو کولاويدو انتظار کولو. دغه شان د ابن ابی اوفی رضی الله عنه رايت دې «كرهت أن أوقظهما من نومهما فيشق ذلك عليهما»[9] يعنی که چرې ما هغوی راپاسول نودا خبره به په هغوی باندې سخته لګيده. په دې وجه مادهغوی راپاسول بد اوګڼرل

**قوله: وكرهت أن أدعهما فيستكنا لشربتهما:** يعنی د څکلو بغير پريخودل راته هم بد ښکاره کيدل چه د څه نه

---

[1] انظر صحيح البخاری كتاب الإجارة باب من استأجر أجيرا فترك أجره..... رقم: ٢٢٧٢.

[2] انظر صحيح مسلم كتاب الذكر باب قصة أصحاب الغار الثلاث، والتوسّل بصالح الأعمال. رقم: ٦٩٤٩

[3] فتح البارى: ٨/٦٣١-٦٣٠

[4] فتح البارى: ٨/٦٣١

[5] انظر صحيح البخاری كتاب الإجارة باب من استأجر أجيرا فترك أجره..... رقم: ٢٢٧٢.

[6] فتح البارى: ٨/٦٣١

[7] فتح البارى: ٨/٦٣١.

[8] مسندالبزار: ٣/١١٩رقم:٩٠٦.

[9] أخرجه الطبرانی فی الدعاء: ١/٨٠برقم: ١٩٦باب تقرب العبد ربه عزوجل عندالدعاء، دار الكتب العلمية، بيروت ١٤١٣هجری.

خکلو په وجه به هغوی کمزوري او بې طاقت پاتې شي. خکه چه پېښې د هغوی د شپې خوراك وو او د شپې خوراك پرېخودلو سره ضعف او بې‌وداوالي شروع کیږي (۱)

لفظ بسنکنا، د استکانة نه مشتق دې یعنی عاجزي او خواري او «لشربتها» نه اول عدم مضاف محذوف دې تقدیر عبارت دې «لعدم شربتها» (۲)

**قوله: یتضاغون** ضُغاء نه دې اهل لغت وائي «ضُغاء» پیشو، لیوه، لومبړ، ګیدړه، سپي او مار نه د خه تکلیف د وجې نه چغو او شور کولو ته وائي. نو د دې استعمال د انسان د پاره هم کولې شي کله چه هغه د خه درد او تکلیف د وجې نه چاته فریاد او کړي (۳)

د بعض حضراتو رائې ده چه د بال بچ وغیره د چغو وهلو د اولږې نه علاوه بل سبب هم کیدې شي. په روایت باب سره د دې رائې تردید کیږي په دې کښې د لفظ «جوع» تصریح ده هغوی د اولږې نه چغې وهلې (۴)

**د دریم ملګري واقعه:** فقال الآخر.....أنه کانت ابنة عم من أحب الناس الیَّ.....: دریم سړي او وئیل یا الله تاته معلومه ده چه زما یوه د تره لور وه هغه زما د ټولو نه خوښه وه. ما د هغې د دهوکه کولو کوشش اوکړو (دې نه جماع مراد ده) مګر هغې انکار اوکړو او په دې شرط چه زه هغې له سل دینار راوړم ورکړم (نو هغه به راضي شي. ما سل دینار په کوشش سره حاصل کړل او هغې له مې ورکړل نو هغې ماله د صحبت اختیار راکړو. بیاچه کله د جماع د پاره زه د هغې د دواړو خپو په مینځ کښې کیناستم نو هغې او وئیل «اتق الله ولا تفض الخاتم الا بحقه» یعني د الله تعالی نه او وېرېږه او په حق طریقه باندې (د نکاح نه بغیر) مهر مه ماتوه. زه او دریدم او سل دینار مې هم پرېخودل تاته معلومه ده چه ما ستا د وېرې نه داسې اوکړه نو ته زمونږ دا مصیبت لرې کړې نو الله تعالی د هغوی مشکل آسان کړو او دریواړه د غار نه بهر راووتل

**قوله: الا أن آتیها بمائة دینار:** یعني جینئ د جماع نه انکار کولو سره د سلو دینارو شرط اولګولو چه د دې په اخستلو به هغه راضي کیږي په دې روایت کښې د سلو دینارو ذکر دې. دغه شان د نعمان بن بشیر رضی الله عنه او عقبه بن عامر رضی الله عنه په روایت کښې هم د سلو دینارو ذکر دې. خو د سالم رحمه الله په روایت کښې «عشرین ومائة دینار» الفاظ راغلي دي. شراح تطبیق ورکولو سره فرمائیلي چه د جینئ د طرف نه به د سلو دینارو مطالبه شوې وي او د شلو دینارو اضافه به هلك د خپل طرف نه کړې وي. یا به بیا د سالم رحمه الله نه علاوه نورو راویانو د کسر لحاظ نه وي کړې (۵)

**قوله: فلما قعدت بین رجلیها:** یعني کله چه هغه د دې د دواړو خپو په مینځ کښې کیناستو. د ابن ابي اوفی رضی الله عنه د روایت الفاظ دي: «وجلست منها مجلس الرجل من المرأة» (۶)

زه په هغې باندې داسې کیناستم لکه چه یو سړې په ښځه باندې د جماع په غرض سره کیني. خو د نعمان بن بشیر رضی الله عنه په حدیث کښې «فلما کشفتها» (۷) کله چه ما هغه بربنډه کړه

---

[۱] فتح الباري: ۶۳۱/۸

[۲] فتح الباري: ۶۳۱/۸

[۳] المعجم الوسیط، ص: ۵۴۱ مکتبة الشروق الدولیة.

[۴] فتح الباري: ۶۳۱/۸

[۵] المصدر السابق.

[۶] انظر الدعاء للطبراني: ۸۰/۱ رقم: ۱۹۶.

[۷] مسند الإمام أحمد: ۳۶۸/۳۰

**قوله: ولا تفُضّ:** فضّ فضاً الخاتم او عُذرَةَ البرءَة معنی ده مُهر ماتول یا دَ ښځې بکارت ختمول په ظاهره دَ روایت دَ الفاظ نه معلومیږی چه هغه باکره یعنی پیغله وه ځکه چه فض خاتم دَ بکارت دَ ختمولو نه کنایه وی. مګر دَ نعمان بن بشیر رضی الله عنه په روایت کښې تصریح ده چه ښځې دغه سړی سره دَ جماع اجازت دَ خپل خاوند نه اخستې وو. دې نه دا ثابته شوه چه هغه باکره نه وه. په دې وجه شراح په دواړو روایتونو کښې تطبیق ورکولو سره فرمائیلی چه روایت باب کښې دَ خاتم نه مراد فرج دې نه چه پرده دبکارت.[۱]

حدیث الغار ډیرو صحابه کرامو روایت کړې دې امام بخاری رحمه الله او امام مسلم رحمه الله صرف دَ ابن عمر رضی الله عنهما روایت نقل کړې دې. امام طبرانی رحمه الله دا واقعه دَ انس رضی الله عنه نه په سند صحیح او حضرت ابوهریره رضی الله عنه په سند حسن روایت کړې دې. دَ ابوهریره رضی الله عنه روایت ابن حبان رحمه الله هم په خپل صحیح کښې نقل کړې دې. دا حدیث دَحضرت ابوهریره رضی الله عنه انس او ابن عمر رضی الله عنهم نه علاوه صحابه کرامو نه حضرت علی، عقبه بن عامر، نعمان بن بشیر، عبدالله بن عمرو بن عاص او ابن ابی اوفی رضی الله عنهم نه هم نقل دې. دَدې روایاتو ټول طرق ابوعوانه رحمه الله خپل صحیح کښې او امام طبری رحمه الله کتاب الدعاء کښې جمع کړی دی.

دَ ابن عمر رضی الله عنهما په روایت کښې چه کوم درې واقعات بیان کړې شوې دی دَعقبه بن عامر رضی الله عنه نه سوا باقی صحابه کرامو هم دغه واقعات نقل کړی دی. عقبه رضی الله عنه دَ اجیر په ځائی دَ بل یو سړی تذکره کړې ده. روایت کښې دی. «کنت فی غنم أرعاها، فحضرت الصلاة، فقمت أصلی، فجاء الذئب، فدخل الغنم، فکرهت أقطع صلاتی فصبرت حتی فرغت» یعنی ما به چیلئی څرولې چه دَمانځه وخت شو نو زه دَ مونځ دَپاره اودریدم، هم هغه وخت یو لیوه راغلو دَ چیلو په رمه کښې ورننوتلو، ما مونځ ماتول بد اوګڼل او دَمانځه نه فارغیدو پورې مې دَ صبر نه کار واخستو.

ښکاره خبره ده چه دا مذکوره دریواړه واقعاتونه جدا یو مستقل واقعه ده. شراح حدیث فرمائی چه که دَدې روایت سند قوی وی نو مطلب به داشي چه دا واقعه هم ثابته ده اودا روایت په تعدد قصه باندې محمول دې.[۲]

دویمه خبره داده چه صحابه کرامو دَ دریواړو واقعاتو ترتیب دَ یو بل نه مختلف بیان کړې دې. په روایت باب کښې اول اجیر بیا ابوین او آخرکښې دَ ښځې واقعه ده. سالم رضی الله عنه دَدې موافقت کړې دې. دَ ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې اول دَ ښځې بیا دَ ابوین او آخرکښې دَ اجیر او په حدیث دَانس رضی الله عنه کښې اول دَ ابوین بیا دَ اجیر او آخر کښې دَ ښځې واقعه نقل کړې شوې ده. دَ نعمان بن بشیر رضی الله عنه په روایت کښې اول دَاجیر بیا دَ ابوین او آخرکښې دَ ښځې واقعه ده. خود علی بن ابی طالب رضی الله عنه او ابن ابی اوفی رضی الله عنه دواړو روایتونو کښې اول دَ ښځې بیا دَ اجیر او آخر کښې دَابوین واقعه ذکر ده.[۳]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: «وفی اختلافهم دلالة علی أن الروایة بالمعنی عندهم سائغة شائعة، وأن لا أثر للتقدیم والتأخیر فی مثل ذلك، وأرجحها فی نظری روایة موسی بن عقبة لموافقة سالم لها، فهی أصح طرق هذا الحدیث».[۴]

مطلب دادې چه دَ واقعاتو ترتیب کښې دَصحابه کرامو دَ اختلاف نه دا ثابتیږی چه دَدې حضراتو په نیز دَ روایت بالمعنی عام معمول وو او دا چه په دې قسم مضامینو کښې تقدیم او تاخیر سره دَمضمون په صحت باندې څه اثر نه پریوځی. خو زما په نظر کښې دَ سالم رضی الله عنه دَ موافقت په بناء باندې دَموسی بن عقبه روایت راجح دې چه دَاحادیث الغار په طرق کښې دَ ټولو نه اصح روایت دې.

---

[۱] عمدة القاری: ۷۳/۱۶فتح الباری: ۶۳۲/۸إرشادالساری: ۴۲۳/۶.

[۲] عمدة القاری: ۷۳/۱۶فتح الباری:۶۳۲/۸إرشادالساری:۴۲۳/۶.

[۳] فتح الباری: ۶۳۴/۸

[۴] المصدرالسابق.

**په دې دريواړو كښې د چا عمل افضل وو؟** : دريواړه ملګرى په مصيبت كښې راګير وو او د هريو عمل د بل ملګرى د تكليف نه د ويستلو سبب جوړشو. اوس سوال دا دې چه په دوى كښې كوم يو سړى د خپلو ملګرو دپاره زيات فائده مند وو؟

په ظاهره دريم سړى «انفع لاصحابه» معلوميږى چه هم د هغه د دعا د بركت نه ټول ملګرى د غار نه اووتل. د اول سړى د دعا په بركت سره صرف دومره اوشو چه د غار تياره ختمه شوه او د كاڼړى په شليدو باندې غار روښانه شو. د دويم سړى په دعا سره په هغه رڼړاكښې نوره اضافه اوشوه. دريم هغه سړى دې دكوم په دعا سره چه د ټولو د راوتلو لاره هواره شوه. په دې وجه هم هغه انفع لاصحابه دې او د هغه عمل به د نورو نه افضل وى. د دې ثابتولو دپاره د دريواړو د اعمالو جائزه اخلو.

صاحب الابوين، يعنى د مور پلار خدمت كونكى فضليت د خپل ذات پورې محدود وو ځكه چه هغه صرف مور پلار سره ښه سلوك كولو. نور خلق په مزدورنى باندې لګونكې سړې د ير امين سړې وو او د هغه نفع متعدى وه او دريم سړې ځوك چه په جماع باندې قادر شو او خپل نفس ئى رامنع كړو په دوى كښې د ټولو نه غوره وو ځكه چه د هغه د بيان نه دا نتيجه راوځى چه د هغه په زړه كښې د الله تعالى ويره وه. او د قرآنى نص نه ثابته خبره ده چه په زړه كښې د الله تعالى ويره ساتونكى به د جنت مستحق وى. چنانچه په قرآن مجيد كښې دى. ﴿وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ﴾ نفس د ګناه كبيره نه د بندولو نه علاوه هغه دريم نيك كار دا اوكړو چه كوم ديرمال هغه جينئى ته وركړې وو هغه ئى هم جينئى ته هبه كړو. دا دويمه نيكى ده. هغه جينئى د هغه د تره لور وه نو دا صله رحمى هم شوه. د سالم په روايت كښې تصريح ده چه هغه جينئى د قحط د وجې نه غريبه وه. دې نه ثابته شوه چه هغه وخت جينئى ته د امداد ضرورت وو. مختصر دا چه د دې دريم سړى عمل په مختلف حوالو سره افضل دې. چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: «أي الثلاثة كان أنفع لأصحابه؟ والذي يظهر أنه الثالث، لأنه هو الذي أمكنهم أن يخرجوا بدعائه، وإلا فالأول أفاد إخراجهم من الظلمة، والثاني أفاد الزيادة في ذلك وإمكان التوسل إلى الخروج بأن يمر مثلا هناك من يعالج لهم، والثالث هو الذي هيأ الخروج بسببه فهو أنفعهم لهم، فينبغي أن يكون عمل الثالث أكثر فضلا من عمل الأخيرين. ويظهر ذلك من الأعمال الثلاثة: فصاحب الأبوين فضيلته مقصورة على نفسه، لأنه أفاد أنه كان بارا بأبويه، وصاحب الأجير نفعه متعد، وأفاد بأنه كان عظيم الأمانة، وصاحب المرأة أفضلهم، لأنه أفاد أنه كان في قلبه خشية ربه، وقد شهد الله لمن كان كذلك بأن له الجنة، حيث قال: ﴿وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ﴾ وقد أضاف هذا الرجل إلى ذلك ترك الذهب الذي أعطاه للمرأة، فأضاف إلى النفع القاصر النفع المتعدي، ولا سيما وقد قال إنها كانت بنت عمه، فتكون فيه صلة رحم أيضا، وإن ذلك كان في سنة قحط، فتكون الحاجة إلى ذلك أحرى». [1]

## باب

د اكثرو نسخو نه لفظ باب ساقط دې. ثابت تسليم كولو په صورت كښې دا باب د سابقه باب تتمه به ګرځولې شى ځكه چه په دې كښې هم د بنى اسرائيل سره متعلق مختلف اخبار او واقعات بيان كړې شوى دى.

[۳۲۷۹]- حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَهُ أَنَّهُ، سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "بَيْنَا امْرَأَةٌ تُرْضِعُ ابْنَهَا إِذْ مَرَّ بِهَا رَاكِبٌ وَهِيَ تُرْضِعُهُ، فَقَالَتِ: اللَّهُمَّ لاَ تُمِتِ ابْنِي حَتَّى يَكُونَ مِثْلَ هَذَا، فَقَالَ: اللَّهُمَّ لاَ تَجْعَلْنِي مِثْلَهُ، ثُمَّ رَجَعَ فِي الثَّدْيِ، وَمُرَّ بِامْرَأَةٍ تُجَرَّرُ وَيُلْعَبُ بِهَا، فَقَالَتْ: اللَّهُمَّ لاَ تَجْعَلِ ابْنِي مِثْلَهَا، فَقَالَ: اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِثْلَهَا، فَقَالَ: أَمَّا الرَّاكِبُ فَإِنَّهُ كَافِرٌ، وَأَمَّا الْمَرْأَةُ فَإِنَّهُمْ يَقُولُونَ

---

[1] فتح البارى: ۸/ ۶۳۴

هَا تَزْنِي، وَتَقُولُ حَسْبِيَ اللَّهُ، وَيَقُولُونَ تَسْرِقُ، وَتَقُولُ حَسْبِيَ اللَّهُ" ص ٧٥٤ ـ ١٧٥٥ر: ١١٤٨]([1])

**ترجمه** دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې رسول الله ﷺ فرمانيلى دى په داسې وخت كښې چه يوې ښځې ماشوم ته پينى وركول چه ناڅاپى هغې سره د پيښوور كولو په حالت كښې يو سور سړې تيرشو. ښځې ونيل يا الله زما خوني له تر هغه وخته پورې مرګ مه وركوې تر كومې پورې چه زما خوني د دغه سور سړي په شان جوړ نه كړې. په دې باندې ماشوم پيني ځكل پريخودل ونې ونيل اې الله ماد ده په شان مه جوړوني بيانې دسينې نه پينې ځكل شروع كړل. بيا يوه ښځه تيره شوه كومه چه راښكلي شوه او هغې له نې لتې وركولې. هغه ښځې ونيل اې الله زما خوني د دې ښځې په شان مه جوړوني. ماشوم ونيل اې الله ماد دې ښځې په شان جوړ كړې ځكه چه شغه سورسړي خو يو كافر سړي وو او ښځې حال دا وو چه خلقو په هغې باندې «د دروغو الزام لګولو سره» ونيل چه تا زنا كړې ده هغې ونيل ماله بس الله تعالى كافي دې اوچه هغوى به دې ته ونيل تا غلا كړې ده نو هغې به ونيل ماله بس الله تعالى كافى دې.

## تراجم رجال

**ابواليمان:** دا ابواليمان حكم بن نافع بهرانى حمصى رحمه الله دې.([2])

**شعيب:** دا ابوبشر شعيب بن مولى حمزه قرشى رحمه الله دې. ددوى تذكره «بدءالوحى» لاندې تيره شوې ده.([3])

**ابوالزناد.** دا عبدالله بن ذكوان مدنى قرشى رحمه الله دې.

**عبدالرحمن:** دا عبدالرحمن بن هرمز اعرج رحمه الله دې. ددې دوارو حضراتو تذكره «كتاب الايمان باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الايمان» لاندې تيره شوې ده.([4])

**ابوهريرة:** دا صحابى رسول حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې ([5])

دا روايت «باب واذكر فى الكتاب مريم» لاندې تفصيل سره تير شوې دې.

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت:** په دې حديث كښې چه كوم واقعات بيان كړې شوى دى هغه بنى اسرائيل سره تعلق لرى په دې وجه دحديث ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې.([6])

[٣٢٨٠]- حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ تَلِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «بَيْنَمَا كَلْبٌ يُطِيفُ بِرَكِيَّةٍ، كَادَ يَقْتُلُهُ العَطَشُ، إِذْ رَأَتْهُ بَغِيٌّ مِنْ بَغَايَا بَنِي إِسْرَائِيلَ، فَنَزَعَتْ مُوقَهَا فَسَقَتْهُ فَغُفِرَ لَهَا بِهِ» ص ٧٥٦ ١ر ٣١٤٣]([7])

---

[1]) مر تخريجه فى بدء الخلق برقم: ٣٤٦٧.

[2]) كشف البارى: ٤٧٩/١.

[3]) كشف البارى: ٤٨٠/١.

[4]) كشف البارى: ١١/٢-١٠.

[5]) كشف البارى: ٦٥٩/١

[6]) عمدة القارى: ٧٤/١٦دار الكتب العلمية.

[7]) مر تخريجه فى بدء الوحى. تحت باب: إذا وقع الذباب فى شراب أحدكم. رقم الحديث: ٣٣٢١.

## تراجم رجال

**سعید بن تلید** دَدوی تذکره هم په دې کتاب کښې «باب قول الله: واتخذ الله ابراهیم خلیلا» لاندې تیره شوې ده.

**ابن وهب** دا مشهور امام حدیث وفقه ابو محمد عبدالله بن وهب بن سلیم قرشی مصری رحمه الله دې دَ دوی تذکره «کتاب العلم باب متی یصح سماع الصغیر» کښې تیره شوې ده. (۱)

**جریر:** دا جریر بن حازم بن زید الازدی البصری رحمه الله دې (۲)

**ایوب** دا ابوبکر ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی بصری رحمه الله دې. دَدوی تذکره «کتاب الایمان باب حلاوة الایمان» لاندې تیره شوې ده. (۳)

**محمد بن سیرین:** دا مشهور تابعی ابوبکر محمد بن سیرین انصاری بصری رحمه الله دې. دَ دوی تذکره «کتاب الایمان باب اتباع الجنائز من الایمان» لاندې تیره شوې ده. (۴)

**قوله: بینما کلب یطیف برکیة:** دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمانیلي یو سپي کوهي سره تاویدلو نیزدې وه چه تنده هغه مړکړي. دَ بني اسرائیل یو فاحشه ښځې هغه اولیدلو. هغې خپله موزه کوزه کړه او اوهغه ئې راوکه کړه او سپي باندې اوبه اوڅکلې دَدې عمل دَ وجې نه دَهغې مغفرت اوشو.

دا قصه کتاب الطهارة کښې (۵) او کتاب الشرب (۶) کښې هم نقل ده او په دواړو کښې دَ ښځې په ځائې دَ سړي تصریح ده. شراح په دې کښې تطبیق ورکولو سره فرمانیلي چه دا تعارض نه دې بلکه په تعدد دَ واقعه باندې محمول دې چه روایت باب کښې چه کومه واقعه ده هغه دَ ښځې بیان کړې شوې ده هم داسې به سړي سره هم پیښه شوې وي. (۷)

**دَ حدیث باب نه مستنبط فائده:** شراح حدیث وائي چه دَ روایت نه معلومه شوه چه هر یو ځناور باندې اوبه څکولو کښې اجر دې مګر په دې کښې دا خبره یاد ساتل پکاردي چه په احادیثو کښې دَ کومو موذي ځناورو دَ وژلو حکم ورکړې شوې دې هغه دَدې نه مستثنٰی دي. هغوی باندې څکولو کښې اجر نه بلکه په قتل کښې اجر دې (۸)

[۳۲۸۱]- حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ عَامَ حَجَّ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَتَنَاوَلَ قُصَّةً مِنْ شَعَرٍ، وَكَانَتْ فِي يَدَيْ حَرَسِيٍّ، فَقَالَ: يَا أَهْلَ الْمَدِينَةِ، أَيْنَ عُلَمَاؤُكُمْ؟ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ

---

(۱) کشف الباری: ۲۷۷/۳.

(۲) کتاب الصلاة باب الخوخة والممر فی المسجد رقم: ۴۶۷.

(۳) کشف الباری: ۲۶/۲.

(۴) کشف الباری: ۵۲۵/۲، ۶۳۴/۸

(۵) صحیح بخاری کتاب الوضوء، باب إذا اشرب الکلب فی إناء أحدکم إلخ، رقم الحدیث: ۵۱۷۳، صحیح بخاری کتاب الوضوء، باب إذا اشرب الکلب فی إناء أحدکم إلخ، رقم الحدیث: ۵۱۷۳

(۶) إرشادالساری: ۴۲۵/۷.

(۷) صحیح بخاری کتاب المساقاة باب فضل سقی لماء رقم الحدیث: ۲۳۶۳.

(۸) إرشادالساری: ۴۲۵/۷.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى [ص: ٤٧٣] عَنْ مِثْلِ هَذِهِ؟ وَيَقُولُ: «إِنَّمَا هَلَكَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ حِينَ اتَّخَذَهَا نِسَاؤُهُمْ» ص ٧٥٨][٣٢٩٩، ٥٥٨٨، ٥٥٩٢][1]

## تراجم رجال

**عبدالله بن مسلمة:** دا عبدالله بن مسلمه قعنبی حارثی رحمه الله دي

**مالک.** دا مالك بن انس رحمه الله دي. دَدې دواړو حضراتو تذکره اول تيره شوې ده.[2]

**ابن شهاب:** دَدوی تذکره «بدءالوحی» لاندې تيره شوې ده.[3]

**حميد بن عبدالرحمن:** داحميد بن عبدالرحمن بن عوف زهری رحمه الله دي. دَدوی تذکره «كتاب الايمان باب تطوع قيام رمضان من الايمان» لاندې تيره شوې ده.[4]

**معاوية بن ابي سفيان:** دَدوی تذکره «كتاب العلم» لاندې تيره شوې ده.[5]

**انه سمع معاوية بن ابي سفيان علي المنبر عام حج:** روايت كښې دي چه حميد بن عبدالرحمن رحمه الله دَحج په كال دَحضرت معاويه رضي الله عنه نه په منبر باندې واورېده. معاويه رضي الله عنه دَ يوسپاهی دَ لاس نه دَ ويښتو يوموټی واخستو وئی فرمائيل: «يا أهل المدينة، أين علماؤكم....؟» اې دَمدينې خلقو ستاسو علماء چرته لاړل ما دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم نه دا قسم كارونه منع كول اوريدلی دی. حضورپاك به فرمائيل بنو اسرائيل هلاك شوې وو كله چه دَهغوی ښځو دا اختيار كړل

يعنی كله چه دَهغوی ښځو به خپلو ويښتو كښې نور ويښته يوځائی كول. دَدې روايت نه ثابته شوه چه دَبنواسرائيل په ښځوباندې داحرام كړې شوې وو اوكله چه هغوی دَحرمت نه باوجود په ويښتو كښې جوړ لګولو عادت اوساتلو نوهغوی هلاك كړې شو.[6]

**قوله: قصة:** دَ ويښتو موټی يا كومسټی. حراسی حفاظت كونكې. دَدې لفظ اطلاق په سپاهی او فوجی باندې كيږی خو څوكيدار يا پهره دار ته حارس وئيلې شی.[7]

**قوله: عام حج:** دَدې باب په آخری روايت كښې حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله نه نقل دی چه حضرت امير معاويه رضي الله عنه دا خطبه په مدينه منوره كښې دَخپل آخری ځل راتلو په موقع وركړې وه. په دې وجه شراح كرام فرمائی چه داخطبه امير معاويه رضي الله عنه دَخپل خلافت په آخری حج كښې وركړې وه كوم چه هغه په ٥١ هجری كښې كړې وو اودلته په روايت كښې هم دَ هغه كال حج مراد دې.[8]

---

[1] رواه البخاری أيضاً فی اللباس باب الوصل فی الشعر، رقم:٥٩٣٢ومسلم فی اللباس، باب تحريم فعل الواصلة والمستوصلة، رقم: ٣١٢٧وأبوداؤد فی الترجل، باب فی صلة الشعر، رقم:٤١٦٧والترمذی فی الأدب باب ماجاء فی كراهية اتخاذ القُصة، رقم: ٢٧٨٢.

[2] كشف الباری:٢/٨٠

[3] كشف الباری: ٣٢٦/١.

[4] كشف الباری: ٣١٢/٢.

[5] كشف الباری: ٢٨٥/٣.

[6] عمدة القاری: ٧٥/١٦.

[7] عمدة القاری: ٧٥/١٦.

[8] عمدة القاری: ١٥/١٦فتح الباری: ٦٧٠/٨

**قوله: علی المنبر:** دا لفظ دَ معاویه نه حال واقع دې او منبر نه دَ رسول الله ﷺ منبر مراد دې.(۱)

**قوله: أین علماؤکم؟:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې جمله کښې دې خبرې ته اشاره ده چه هغه وخت بوخو علماء پاتې شوي وو ځکه چه اکثر صحابه کرام وفات شوي وواو په معاشره کښې دا رسم او رواج پیداشوي وو. په دې امر باندې نکیر کونکی اوډَعوام اصلاح کونکی ډیر کم خلق پاتې شوي وو. هم هغوی ته حضرت امیر معاویه رضی الله عنه خطاب اوکړو چه تاسو اهل علم عوام دَدې خراب رسمونو او عادتونو نه دَمنع کولو فریضه ولې ترک کړې ده؟(۲)

**په وینتو کښې دَ جوړ لګولو دَ رسم باندې صحابه ز ولې نکیر نه کولو؟:** دلته دا اشکال پیداکیږی چه کله رسول الله ﷺ په وینتو کښې دَ جوړ لګولو نه منع فرمائیلې وه اوعوامو دا رسم اختیار کړو نو صحابه کرامو په دې باندې رد ولې اونه فرمائیلو؟

① دَدې یو جواب دا ورکړې شوې دې چه ممکن ده صحابه کرامو اوتابعینو ته داحدیث معلوم وی، خو په دې رسم باندې نکیر کول ځکه ترک کړې وی چه دَهغوی په خیال کښې دا ممانعت په کراهیت تنزیهی باندې محمول وو نه چه په کراهت تحریمی باندې.(۳)

② دَهغه وخت اهل علم ته دَ امراء او سلاطین دَ عتاب ویره وه چه دَ عوامو په منع کولوسره به امراء او سلاطین دا اوګڼړې چه داعلماء مطلق العنان او خپل اختیاره کیږی او به خپل امراء او سلاطین باندې دَ غالب کیدو کوشش کوی.(۴)

③ داهم احتمال دې چه صحابه کرام او تابعین ته دا روایت رسیدلې نه وی او یاکه بیا رسیدلې وی مګر هغوی ته یاد نه وی اومعاویه رضی الله عنه هغوی ته دا روایت رایاد کړې وی.(۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَاهل علم نه چه کوم حضرات هغه وخت موجود وو دَهغوی دَ طرف نه دا اعذار ممکن نه وو. خو دَ حضرت معاویه رضی الله عنه الفاظ «أین علماؤکم» نه اندازه کیږی چه داخطبه دَ جمعه دَخطبه نه علاوه چرته په عام ورځ ورکړې شوې وه او په دې کښې اتفاقاً دَ اهل علم نه څوك شریك شوي نه وو.(۶)

**دحافظ ابن حجر رحمه الله په رائې باندې دعلامه عینی رحمه الله رد:** علامه عینی رحمه الله دَ حافظ ابن حجر رحمه الله په رائې باندې رد کولوسره اوفرمائیل چه «أین علماؤکم» نه هیڅ کله دَ امیر معاویه رضی الله عنه ارشاد دې خبرې طرف ته نه وو چه دَ اکثر صحابه کرامو دَ انتقال سره دَاهل علم تعداد کم شوې وو اوکوم یو څو علماء، چه وو هم هغوی نې متنبه کړې وو.

حقیقت دادې چه سره دَدې چه اکثر صحابه کرامو دَدنیا نه تشریف اوړلې وو مګر کوم کبار او صغار تابعین چه دَهغوی په ځائې جوړ شو هغه دَ صحابه کرامو نه هم په تعداد کښې زیات وو دَاهل علم کمې نه وو اونه دې طرف ته دَ معاویه رضی الله عنه اشاره وه بلکه «أین علماؤکم» ونیلوسره دَهغه مقصد دا وو چه اهل علم له بیداریدلو سره دَدې رسم اصلاح او په دې کښې اخته عوام منع کولوباندې توجه ورکول پکار دی اودې نه غفلت نه دی کول پکار لکه

---

(۱) عمدة القاری: ۱۶/۵).
(۲) فتح الباری: ۸/۶۴۰.
(۳) فتح الباری: ۸/۶۷۰.
(۴) فتح الباری: ۸/۶۴۰.
(۵) فتح الباری: ۸/۶۷۰.
(۶) فتح الباری: ۸/۶۷۰.

چه هغه اهل علم د هغوی په بې توجهی باندې اوړتل (١)

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** روايت کښې دی: «إنما هلكت بنو إسرائيل» په کوم سره چه د ترجمة الباب د روايت مذکره سره مناسبت ښکاره دی. (٢)

[٣٢٨٢]- حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «إِنَّهُ قَدْ كَانَ فِيمَا مَضَى قَبْلَكُمْ مِنَ الأُمَمِ مُحَدَّثُونَ، وَإِنَّهُ إِنْ كَانَ فِي أُمَّتِي هَذِهِ مِنْهُمْ فَإِنَّهُ عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ» ص ٧٦١ [٣٢٤٨٦] (٣)

## تراجم رجال

**عبدالعزيز بن عبدالله:** دا عبد العزيز بن عبد الله بن يحيى اويسى رحمه الله دې. د دوی تذکره «كتاب العلم باب الحرص على الحديث» لاندې تیره شوې ده. (٤)

**ابراهيم بن سعد:** دا ابواسحاق ابراهيم بن سعد بن ابراهيم بن عبد الرحمن بن عوف رحمه الله دې د دوی تذکره «كتاب العلم باب ما يذكر فى ذهاب موسى عليه السلام فى البحر إلى الخضر» لاندې تیره شوې ده. (٥)

**عن ابيه:** د ابراهيم بن سعد د پلار تذکره اول تیره شوې ده. (٦)

**ابي سلمة:** دا ابوسلمه بن عبد الرحمن بن عوف رحمه الله دې. د دوی تذکره «كتاب الإيمان باب صوم رمضان احتسابا من الإيمان» لاندې تیره شوې ده. (٧)

د ابراهيم بن سعد ټولو شاګردانو دا روايت «عن أبي سلمة عن أبي هريرة» په طريق سره روايت کړې دې البته ابن وهب رحمه الله دوی سره اختلاف کړې دې او هغه دا روايت «عن أبي سلمة عن عائشة» په طريق سره روايت کړې دې لکه څنګه چه د صحيح مسلم په روايت کښې موجود دی ابومسعود رحمه الله فرمائی «لا أعلم أحدا تابع ابن وهب على هذا والمعروف عن إبراهيم بن سعد عن أبيه عن أبي هريرة لا عن عائشة إلخ» يعنی «عن أبي سلمة عن عائشة» په سند سره د دې روايت په نقل کولو کښې چا هم د ابن وهب رحمه الله مطابقت نه دې کړې. هم دغه شان زکريا بن ابی زائده رحمه الله هم دا روايت «سعد بن إبراهيم عن أبي سلمة عن أبي هريرة» په طريق سره روايت کړې دې کوم چه امام بخاری رحمه الله تعليقاً د مناقب

---

(١) عمدة القاري: ٧٥/١٦.

(٢) عمدة القاري: ٧٥/١٦.

(٣) أخرجه أيضاً فى كتاب فضائل أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم باب مناقب عمر بن أبي حفص القرشى رقم: ٣٦٨٩ ومسلم فى صحيحه فى فضائل الصحابة باب من فضائل عمر بن الخطاب رضى الله عنه، والترمذى فى جامعه فى المناقب باب مناقب عمر بن الخطاب رضى الله عنه. رقم: ٣٤٦٧ وباب قد كان يكون فى الأمم محدثون، رقم الحديث: ٣٦٩٣ وكذا أخرجه الإمام النسائى فى سننه الكبرى فى مناقب أبى بكر وعمر رضى الله عنهما، رقم الحديث: ٨٠٦٥ مؤسسة الرسالة.

(٤) كشف الباري: ٤٨/٤.

(٥) كشف الباري: ٢٨٧/٣.

(٦) اوګورئ: كتاب الوضوء باب الرجل يوضئ صاحبه رقم: ١٧٢.

(٧) كشف الباري: ٣٢٣/٢.

عمر رضي الله عنه په باب كښې ذكر كړې دې. د ابن وهب رحمه الله نه علاوه دا روايت ابن عجلان رحمه الله هم «عن أبي سلمة عن عائشة» په سند سره نقل كړې دې.
ابومسعود رحمه الله فرمائي چه كيدې شي حضرت ابوسلمه رضي الله عنه دا روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت عائشه رضي الله عنها دواړو نه اوريدلې وي. په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه د دې خبرې هم اصل او دليل موجود دې چه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه د حضرت عمر رضي الله عنه باره كښې د دې معنې منقبت نقل دې كوم چه ابن سعد رحمه الله «أبوعتيق عن عائشة» په طريق سره روايت كړې دې. د روايت الفاظ دا دې: «مامن نبي إلا في أمته معلّم أومعلّمان وإن يكن في أمتي أحدٌ فابن الخطاب! إن الحق على لسان عمر وقلبه».([1])

**قوله: إنه قدكان فيمامضى قبلكم من الأمم محدثون**...... رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه تاسو نه مخكښې امتونو كښې داسې خلق وو چاته چه به الهام كيدلو كه چرې زما په امت كښې څوك داسې وي نوهغه به عمر وي.

**قوله: محدثون:** دا جمع ده د محدث او محدث د مُلهَم په معنى كښې دې يعنې داسې سړې چه نبي نه وي مګر دهغه په زړه كښې خبره القاء كولې شي. كه چرې هغه دغه خبره په ژبه سره اداكړي يا د دې تصور اوكړي نوهم هغه شان به شي، داسې خلق د ولايت په ډير اوچت مقام باندې وي.([2]) دويم قول دا دې چه محدث هغه سړې ته وائي د چاژبه چه صرف په حق اوصواب باندې ګوياكيږي.([3]) يوقول دا دې چه محدث هغه سړې ته ونيلې شي چاسره چه فرښتې خبرې كوي.([4]) دا درېواړه بيول ته نيزدې معاني دي. بنواسرائيل كښې د ولايت په دې مرتبه باندې فائز خلق هم تيرشوي دي چه هغوي سره به فرښتو كلام كولو او دهغوي د ژبې نه چه به كومه خبره صادر كيدله هغه به حق اوصواب وه. رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت عمر رضي الله عنه فضيلت بيانولو سره اوفرمائيل كه د بنواسرائيلو په شان په دې امت كښې هغه شان سړې پيداكيدو نوهغه به حضرت عمر رضي الله عنه وو. حضرت عمر رضي الله عنه يقيناً دا مقام حاصل كړې وو. دهغه د رائې كلام الله تائيد كړې دې دغه شان د سارية الجبل واقعه هم په دې باندې شاهد عدل ده. خو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته خبر نه وو وركړې شوې چه محدث ستاسو په امت كښې هم پيداكيدې شي.([5])
د دې حديث لاندې شارحينو فرمائيلې دي چه د اولياء كرامات حق دي او د كراماتو سلسله به ترقيامته پورې نه منقطع كيږي.([6])

**دحديث ترجمة الباب سره مناسبت** روايت كښې دي «فيمامضى قبلكم من الأمم» دې نه بنواسرائيل مراد دي اودغه شان ترجمة الباب سره د روايت مناسبت ښكاره دې.([7]) د دې روايت سره نور تفصيلات د مناقب عمر رضي الله عنه د باب لاندې تير شوي دي.([8])

---

[1] فتح الباري: ۶۲-۶۱/۹؛ الطبقات الكبرى لابن سعد ذكر من كان يفتي بالمدينة ويقتدى به من أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم: ۲۹۰/۲ مكتبة الخانجي بالقاهرة.
[2] عمدة القاري: ۷۶/۱۶.
[3] عمدة القاري: ۷۶/۱۶.
[4] المصدر السابق.
[5] عمدة القاري: ۷۶/۱۶ وإرشاد الساري: ۴۲۷/۷.
[6] عمدة القاري: ۱۶/۷۶.
[7] المصدر السابق.
[8] كشف الباري فضائل الصحابة، ص: ۴۱۱.

[۳۲۸۳]- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ رَجُلٌ قَتَلَ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ إِنْسَانًا، ثُمَّ خَرَجَ يَسْأَلُ، فَأَتَى رَاهِبًا فَسَأَلَهُ فَقَالَ لَهُ: هَلْ مِنْ تَوْبَةٍ؟ قَالَ: لَا، فَقَتَلَهُ، فَجَعَلَ يَسْأَلُ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: ائْتِ قَرْيَةَ كَذَا وَكَذَا، فَأَدْرَكَهُ الْمَوْتُ، فَنَاءَ بِصَدْرِهِ نَحْوَهَا، فَاخْتَصَمَتْ فِيهِ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ وَمَلَائِكَةُ الْعَذَابِ، فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَى هَذِهِ أَنْ تَقَرَّبِي، وَأَوْحَى اللَّهُ إِلَى هَذِهِ أَنْ تَبَاعَدِي، وَقَالَ: قِيسُوا مَا بَيْنَهُمَا، فَوُجِدَ إِلَى هَذِهِ أَقْرَبَ بِشِبْرٍ، فَغُفِرَ لَهُ" ص ۴۶۴ - ۴۶۵ ][1]

## تراجم رجال

**محمدبن بشار:** دَدوی تذکره «كتاب العلم باب ماكان النبى صلى الله عليه وسلم يتخولهم بالموعظة» لاندې تیره شوې ده.[2]

**محمدبن ابي عدي:** دامحمدبن ابراهيم بن ابی عدی البصری رحمه الله دې. [3]

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج بن الورد العتکی الواسطی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب الإيمان باب من سلم المسلمون من لسانه ويده» لاندې تیره شوې ده.[4]

**قتادة:** داقتاده بن دعامه سدوسی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه» لاندې تیره شوې ده.[5]

**أبوالصديق الناجي:** دا ابوالصديق بكر بن عمرو، یابکر بن قیس ناجی بصری رحمه الله دې. دَتابعین نه دې.[6]
هغوی دَ ابوسعید سعدبن مالك خدری، عبدالله بن عمر بن خطاب او ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنهم نه حدیث روایت کړې دې اودَدوی نه أبان بن عیاش، جعفر بن ثور عبدی، خالد بن زیاد، سلیمان بن عبید سلمی، عاصم احول، قتادة بن دعامه وغیره رحمهم الله دَ حدیث روایت کړې دې.[7]
ابن معین، ابوزرعه او امام نسائی رحمهم الله دَدوی باره کښې فرمائیلی ثقة.[8] اصحاب سته دَدوی نه روایات اخستې دی اودَ تولو په نیز قابل احتجاج دې. ابن حبان رحمه الله دَهغوی ذکر ثقات کښې کړې دې اوفرمائیلی دی چه ۱۰۸ هجری کښې دَهغوی انتقال شوې دې.[9]

**قوله: كان في إسرائيل رجل قتل تسعا وتسعين إنسانا......** دَ ابوسعید خدری رضي الله عنه روایت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل بنواسرائیل کښې یو سړې وو هغه یو کم سل قتلونه کړی وو. دَمعاویه بن ابی سفیان

---

[1] أخرجه الإمام مسلم فى التوبة باب قول توبة القاتل رقم الحديث:۷۰۰۸ والإمام ابن ماجه فى الديات، باب هل لقاتل مؤمن توبة، رقم الحديث: ۲۶۲۲ جامع الأصول فى أحاديث الرسول: ۵۱۳/۲ رقم الحديث: ۹۸۷.
[2] كشف البارى: ۲۵۸/۳.
[3] اوګورئ: كتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد، ومن دار على نساءه فى غسل واحد، رقم: ۲۶۷.
[4] كشف البارى: ۶۷۸/۱.
[5] كشف البارى: ۳/۲.
[6] ميزان الاعتدال: ۵۴۹/۴ دارالمعرفة ۱۳۸۲ هجرى.
[7] تاريخ الإسلام للذهبى: ۱۹۱/۳ دارالمعرفة الإسلامى وتهذيب الكمال: ۲۲۳/۴ مؤسسة الرسالة.
[8] لسان الميزان: ۴۷۰/۷ تهذيب التهذيب: ۴۸۲/۱ دائرة المعارف، الهند.
[9] ثقات ابن حبان: ۷۴/۴ دارالفكر وتهذيب التهذيب: ۴۶۶/۱ دارالفكر للطباعة والنشر.

رضي الله عنه په روايت كښې «كلهم ظلما» اضافه هم نقل ده. يعنې ټول هغه ظلماً قتل كړي و. دا روايت طبراني رحمه الله نقل كړې دې.

بيا هغه دَ مسئلې معلومولو دَپاره لاړو. په دغه بې رحمانه قتلونو باندې هغه خپيمانه وو او غوښتل ئې چه دَ توبه او بخشش څه صورت راؤخي. دَ صحيح مسلم په روايت كښې دي: «فسأل أعلم أهل الأرض» يعنې په مخ دَ زمكې چه دَ شريعت څوك غټ عالم وې دَ هغه نه دَ تپوس دَپاره اووتلو. هغه يو راهب له راغلو اودَ هغه نه ئې تپوس اوكړو چه آيا زما توبه به قبوله شي؟ راهب ونيل نه. نوهغه راهب هم قتل كړو اودغه شان سل ئې پوره كړل.

شراح حديث وائي چه دَ قاتل او راهب دواړو نومونه معلوم نه شو. دا راهب دَ نصارى نه وو. دَدې روايت نه معلوميږي چه دا واقعه دَ عيسى عليه السلام دَ اسمان طرف ته دَ اوچتيدلو نه پس پيښه شوې خكه چه دَ رهبانيت بدعت دَعيسى عليه السلام متبعينو شروع كړې وو.[1] دغه شان هغه دَ علماؤ نه پوښتنې كولې نو يو سړي هغه ته اوونيل دَ فلانكى كلي طرف ته لاړشه دَهغه كلي نوم نصره دې. دَ هشام رحمه الله په روايت كښې دي: «فإن بها أناسا يعبدون الله فاعبدالله معهم» يعنې هغه دا اوخودل چه په نصره كښې به دَ الله تعالى عبادت كونكى خلق وي ته دَهغوى صحبت اختيار كړه اوهغوى سره دَ الله تعالى عبادت كوه.

كله چه هغه دَ دغه كلي طرف ته سفر كولوسره نيم سفر اوكړو نوهغه له مرګ راغلو هغه خپله سينه دَ دغه كلي طرف ته وركړه كړه. دغه وخت دَ رحمت ملائكه اودَ عذاب ملائكه خپل مينځ كښې اونختې. الله تعالى نصره كلي ته حكم وركړو چه هغه دې «دې سړي ته» نيزدې شي اودَ كوم كلي نه چه هغه وتلې ووهغې ته ئې دَ لرې كيدو حكم وركړو. بيائې فرښتو ته حكم وركړو «چه دَ مړي دَ خائي نه» دواړه كلي ناپ كړئ نوهغه دَنصره كلي ته يو ليشت زيات نيزدې وونودَ هغه مغفرت اوكړې شو.

طبراني كښې دَحضرت معاويه رضي الله عنه دَ روايت الفاظ دي: «فوجدوه أقرب إلى دير التوابين بأنملة» يعنې فرښتو هغه يو څو ګوتو فرق سره هغه دَ توابين دَخانقاهانو طرف ته زيات نيزدې اوكتلو.[2]

**قوله: فاختصمت فيه:** دَ هشام رحمه الله په روايت كښې دا اضافه هم ده: «فقالت ملائكة الرحمة: جاء تائبا مقبلا بقلبه إلى الله وقالت ملائكة العذاب: إن يعمل خيرا قط، فأتاه ملك في صورة آدمي، فجعلوه حكما بينهم فقال: قيسوا ما بين الأرضين فإلى أيهما كان أدنى فهولها».[3]

يعنې دَ رحمت اوعذاب ملائكې خپل مينځ كښې اونختې. دَرحمت ملائكې اوونيل چه دا سړې دَتوبې كولو او خپل زړه دَالله تعالى طرف ته متوجه كولوسره راغلي دې او دَعذاب ملائكې اوونيل ده كله هم څه نيك كار نه دې كړې. دې دوران كښې يوه دريمه فرښته دَ انسان په شكل كښې راغله. فريقين هغه حكم فيصله كونكې جوړ كړو نو دغه فرښتې اوونيل دواړه كلي ناپ كړئ «دَكوم كلي نه چه دا سړې وتلې وو هغه دَ ګناهګارانو كلې وو او دَكوم كلي طرف ته چه په سفر اراده كړې وه هغه دَ نيكانو كلې وو» دې چه كوم كلي ته نيزدې وي هم دَهغې په اوسيدونكو كښې به شميرلې كيږي. دَ ناپ كولو نه پس معلومه شوه چه دَ نيكانو كلي ته نيزدې دې نو دمعاذ عن شعبة په طريق سره نقل روايت كښې دي: «فجعل من أهلها» حكم فيصله وركړه چه دَده شمير دې دَ دې كلي په عبادت ګذارو اوسيدونكو كښې وي. اودَ هشام رحمه الله په روايت كښې دي: «فقبضته ملائكة الرحمة» دَ رحمت ملائكې دَهغه روح قبض كړو.[4]

---

[1] عمدة القاري: ۱۶/۷۷-۷۶ وإرشاد الساري: ۷/۴۲۷.

[2] المعجم الكبير للطبراني: ۱۹/۳۶۸ رقم الحديث: ۱۶۵۳۷ مكتبة ابن تيمية.

[3] فتح الباري: ۸/۶۴۱ وعمدة القاري: ۱۶/۷۹.

[4] المصدر السابق.

[٣٢٨٤]- حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، صَلاَةَ الصُّبْحِ، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، فَقَالَ: "بَيْنَا رَجُلٌ يَسُوقُ بَقَرَةً إِذْ رَكِبَهَا فَضَرَبَهَا، فَقَالَتْ: إِنَّا لَمْ نُخْلَقْ لِهَذَا، إِنَّمَا خُلِقْنَا لِلْحَرْثِ" فَقَالَ النَّاسُ: سُبْحَانَ اللَّهِ بَقَرَةٌ تَكَلَّمُ، فَقَالَ: "فَإِنِّي أُومِنُ بِهَذَا، أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، - وَمَا هُمَا ثَمَّ - وَبَيْنَمَا رَجُلٌ فِي غَنَمِهِ إِذْ عَدَا الذِّئْبُ، فَذَهَبَ مِنْهَا بِشَاةٍ، فَطَلَبَ حَتَّى كَأَنَّهُ اسْتَنْقَذَهَا مِنْهُ، فَقَالَ لَهُ الذِّئْبُ هَذَا: اسْتَنْقَذْتَهَا مِنِّي، فَمَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ، يَوْمَ لاَ رَاعِيَ لَهَا غَيْرِي" فَقَالَ النَّاسُ: سُبْحَانَ اللَّهِ ذِئْبٌ يَتَكَلَّمُ، قَالَ: «فَإِنِّي أُومِنُ بِهَذَا أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، - وَمَا هُمَا ثَمَّ -» وَحَدَّثَنَا عَلِيٌّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِمِثْلِهِ ص ٧٦٨ [ر: ٢١٩٩] [1]

## تراجم رجال

**علي بن عبدالله:** دا ابوالحسن علي بن عبد الله بن جعفر بصري رحمه الله دې. او دَ ابن المديني په نوم سره مشهور دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم، باب الفهم في العلم» لاندې تيره شوې ده. [2]

**سفيان:** دا سفيان بن عيينه رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم، باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا» لاندې تيره شوې ده. [3]

**ابوالزناد:** دا عبدالله بن ذکوان مدني قرشي رحمه الله دې.

**اعرج:** دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدني قرشي رحمه الله دې. دَدې دواړو حضراتو تذکره «كتاب الإيمان، باب حب الرسول صلى الله عليه وسلم من الإيمان» لاندې تيره شوې ده. [4]

**قوله: صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم صلاة الصبح......:** دَحضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې دي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ سحر مونځ ورکړو. بیا خلقو طرف ته متوجه شو وئې فرمائیل: (بنواسرائیل کښې) یو سړی غوا شړله هغه په دې باندې سور شو او هغه ئې اووهله نو هغه غوا اووئیل چه مونږ خاروی دَ سوریدو دَپاره نه یو جوړکړې شوې دَ زمیندارئی دَپاره جوړ شوې یو.

غوا ته دَ الله تعالی په قدرت باندې دَ گویا کیدو طاقت ورکړې شوې وو. «إنا لم نخلق» الفاظ نه جنس بقر مراد دې. او مطلب دا وو چه مونږ غواګانې دَ سورلئی دَپاره نه یو بلکه دَ زمیندارئی دَ کار دَپاره جوړ کړې شوې یو. خلقو ووئیل سبحان الله، غوا هم خبرې کوی؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل زه خو په دې باندې یقین لرم او ابوبکر او عمر هم، حالانکه هغه دواړه دالته موجود نه وو. حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما ته ممکن دی چه حضورپاك دا واقعه اول خودلې وه او هغوی دَدې تصدیق کړې وو. په دې وجه حضورپاك دَهغوی دَ یقین تذکره اوکړه یا بیا په دې وجه حضورپاك ته یقین وو که چرې دا دواړه واقعه واورې نو یقیناً به دَدې تصدیق کوی تردد به نه کوی. [5]

---

[1] مر تخريجه في كتاب الحرث والمزارع، باب استعمال البقر للحراثة، رقم: ٢٣٢٤.

[2] كشف الباري: ٢٩٧/٣.

[3] كشف الباري: ١٠٢/٣.

[4] كشف الباري: ١١/٢-١٠.

[5] فتح الباري: ٦٤٢/٨.

**قوله: وبينما رجل في غنمه**...... دا عبارت په اولنۍ واقعه باندې عطف دې او دَدې خاني نه دويمه واقعه بيان کړې شوې ده. دا هم بنواسرائيل سره متعلق ده. په روايت کښې دي چه يوسړي د خپلو چيلو د رمې په مينځ کښې وو. په دې کښې يوه شرمخ حمله اوکړه اود رمې نه ئې يوه چيلئ يوړه اوتختيدو. دا سړي هغه پسې شاته اولګيدو او چيلئ داسې راخلاصه کړه لکه چه د شرمخ د خلې نه ئې خلاصه کړې وي. په دې باندې شرمخ د چيلو مالك ته اووئيل «هذا، استنقذتها مني، فمن لها يوم السبع يوم لا راعي لها غيري» يعني نن ورخ تا چيلئ خلاصه کړه، مګر د ماتونکو خناورو په ورځ به ئې څوك خلاصه وي کوم وخت چه زما نه سوا د چيلو څوك څرونکې نه وي. دې نه قرب قيامت طرف ته اشاره ده. کله چه فتنې خورې شي خلق ويريدونکي اوغلي شوې وي. دَهغوي سره به د خپلو خانونو نه علاوه د بل څيز پرواه نه وي. دهغوی څاروی به د څرن والانه بغيرآزاد ګرځي او ماتونکي خناور به هغوي په آسانتيا سره خپل خوراك جوړوي.(١)

خلقو وئيل سبحان الله شرمخ خبرې کوي؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل زه په دې واقعه باندې يقين لرم او حضرت ابوبکر او عمر هم، حالانکه حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما دواړه حضرات په هغه مجلس کښې موجود نه وو. «وماهماثم» د راوی الفاظ دی.(٢)

دا روايت «کتاب المزارعة، باب استعمال البقر للحراثة» لاندې تفصيل سره تيرشوې دې.

**ترجمة الباب سره دَحديث مناسبت:** د روايت په دواړو واقعاتو کښې دی: «بينما رجل» دَدواړو سرو تعلق بنواسرائيل سره وو او داسې باب سره دَدواړو احاديثو مناسبت ښکاره دې.(٣)

**دَحديث نه مستنبط فوائد:** شراح دَدې حديث په ذيل کښې مختلف آداب او فوائد ذکرکړی دی:

① په مذکوره روايت کښې تصريح ده چه د ١٠٠ انسانانو ظلماً قتل کونکی سړی توبه به قبليږي. دې نه استدلال کولوسره محدثينو حضراتو فرمائيلي چه دکبائر مرتکب، ترد دې چه د ناحق قتل کونکي توبه هم قبليږی او کله چه الله تعالى دَهغه توبه قبوله کړی نو دَهغه دَخصم يعني مقتول د راضي کولو ذمه به هم اخلي.(٤)

**دَجمهور اهل سنت رائې:** قاضي عياض رحمه الله فرمائی چه د جمهور اهل سنت په نيزتوبې سره دَنورو ګناهونو په شان د قتل ګناه هم معاف کيږی.(٥)

د بعض اهل علم نه نقل دی چه قتل ناقابل معافی جرم دې ځکه چه دَدې تعلق حقوق العباد سره دې. علامه عيني رحمه الله فرمائی چه دې حضراتو دَقتل نفس باره کښې دا سخت موقف حکماً اختيارکړې دې. که چرې خلقو ته اوخودلې شی چه د قاتل توبه قبليږی نوهغه به نور هم سرکش شی اود ناحق وينه توئيدو دروازه به کولاؤ شی. (٦)

د سورت نساء آيت دې: ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ [۴۸ و ۱۱۶] په دې کښې تصريح ده چه الله تعالى په خپله رضا سره دَشرك نه علاوه ګناه معاف کوی البته هم د سورت نساء يوبل آيت دې: ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ﴾ [رقم: ۹۳] يعنی دَقتل عمد سزا جهنم دې. دې نه دا استدلال صحيح نه دې چه

---

(١) إرشادالساري: ٤٢٩/٧ عمدة القاري: ٧٨/١٦.
(٢) فتح الباري: ٦٤٣/٨ إرشادالساري: ٤٢٩/٧.
(٣) عمدة القاري: ٧٨/١٦.
(٤) فتح الباري: ٦٤١/٨.
(٥) عمدة القاري: ٧٧/١٦.
(٦) المصدر السابق.

قتل عمد ناقابل معافي جرم دي او دَ دي سزا جهنم دي بلكه دَآيت مطلب دي: «جزاءه إن جازاه وقد لا يجازي بل يعفو عنه»
يعني كه الله تعالى قاتل متعمد ته سزا ورکړه نو په دغه صورت کښې به جهنم دَهغه سزا وي او کله داسې هم کيږي چه هغه سزا نه ورکوي بلکه معاف کوي.[1] البته دَ څه توجيه او تاويل نه بغير دَ چا ناحق قتل حلال گنړلو والا بالاجماع کافر او مخلد في النار دي.[2]

③ دې روايت سره په عابد باندې دَعالم فضيلت ثابتيږي. دَدې سړي ملاقات اول راهب سره اوشو نو هغه دا حکم ورکړو چه دَ قاتل توبه نه قبليږي. په اصل کښې په دغه راهب باندې دَ عبادت غلبه وه او دَعلم کمې وو. هغه دَ قاتل اقدام قتل عظيم جرم خيال کړې وو چه دې انسان ډيرو انسانانو ناحق قتل آخر څنگه کړې؟ په دويم راهب باندې دَ علم غلبه وه او هم په دې وجه هغه دَ مسئلې صحيح حکم ورکولو سره دَخلاصي لار هم اوخودله.[3]

④ مفتي کله غلطه فتوى هم ورکوي. بعض حضراتو فرمائيلي چه دې سړي راهب ځکه قتل کړو چه هغه دَ علم نه بغير فتوى ورکړې وه. حافظ ابن حجر رحمه الله په دې باندې رد کولو سره فرمائيلي چه دَ سياق قصه نه معلوميږي چه قاتل ته خودا هډو معلومه نه وه چه دَ قتل ناحق څه حکم دي ځکه چه هغه دَ راهب نه بار بار تپوس کولو چه دَ توبه څه لار راواښايه. کله چه هغه دَ مسئلې دَحکم نه خبر نه وو نو نتيجتاً دَ راهب دَ فتوى دَ صحت او خطا نه هم خبر نه وو. او بيا هغه راهب هم دَهغه په فتوى باندې عمل کولو سره قتل کړو. دَهغه فتوى سره دَ الله تعالى دَ رحمت نه نااميده شو او دا خيال کولو سره چه اوس دَ خلاصي څه لار نشته راشه دا راهب هم برابر کړه. خو دې نه پس الله تعالى هغه له بيا تسلي ورکړه او هغه په خپل عمل باندې خپيمانه کيدو سره دَ خلاصي لار معلومولو دَپاره دَعلماء حق په لټون کښې اووتلو.[4]

⑤ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه په روايت کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه اول په راهب کښې فطانت او دَعقل کمې وو هغه له دلته دَ احتياط او حکمت نه کار اخستل پکار وو چه کوم سړي دَ ناحق قتل عادت دې هغه ته دَهغه دَ سوچ نه خلاف خبره هم نه دې کول پکار. په داسې موقع باندې دَ خپل ځان بچ کولو په غرض سره دَ توريه او تعريض نه کار اخستل پکار دي. سره دَدې چه دَ مسئلې څه صريح حکم موجود وي او دلته خو دَ قاتل دَ توبه صريح حکم وو نه بلکه مظنون وو.[5]

**دَ فرښتو اجتهاد او اختلاف:** ⑥ شراح حديث دَدې باب دَ دې روايت نه استدلال کولو سره فرمائيلي چه فرښتې هم اجتهاد کوي او دَ يو انسان باره کښې دَ هغوي په اجتهاد کښې اختلاف هم پيدا کيدې شي چه دې په گناهگارانو کښې شمير کړو که په نيکانو کښې. او په دې اختلاف کښې دَ فريقين يو بل سره دَاختلو نوبت هم راځي. تردې چه الله تعالى دَهغوي دَ اجتهاد او اختلاف فيصله کوي.[6]

⑦ دَ روايت سره دَداسې ځائي نه دَ هجرت فضيلت ثابتيږي چرته چه انسان دَ گناهونو په ارتکاب کښې اخته کيږي. عام چلن هغه پخپله دَ گناهونو نه په بچ کيدو کښې بنديز جوړيږي. که هغه دَ صحيح کيدو کوشش کوي هم نو عام ماحول او پخپله دَهغه مخکيني دَ گناه اعمال دَهغه لار بنده وي. دَداسې علاقې نه هجرت کول پکار دي.

---

[1] عمدة القاري: ٧٧/١٦.
[2] المصدر السابق.
[3] عمدةُ القاري: ٧٨/١٦.
[4] فتح الباري: ٦٤٢/٦.
[5] المرجع السابق
[6] المرجع السابق.

په دې وجه دويم راهب مذکوره قاتل ته مشوره ورکولو سره ونيلي وو: «ولاترجع إلى أرضك، فإنها أرض سوء»[1] په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه توبه کونکي سړي چه دګناه په کوم ماحول کښې موجود وو دهغه ماحول نه هميشه دپاره لرې وی.[2]

حدثنا علي حدثنا سفيان عن مسعر عن سعد بن إبراهيم عن أبي سلمة......: په دې جمله سره امام بخاري رحمه الله ددې روايت يو بل طريق طرف ته اشاره کړې ده چه ما دا روايت دخپل شيخ نه په دوو طريقو سره اوريدلې دې. دا حديث روايت کولو کښې دسفيان ثوري رحمه الله دوه شيوخ دی. يو په تير سند کښې ابوالزناد رحمه الله او يو مسعر بن کدام رحمه الله دی دچا ذکر چه په دې طريق کښې دې. بيا ابوالزناد رحمه الله داعرج رحمه الله نه او مسعر بن کدام رحمه الله دسعد بن ابراهيم رحمه الله نه روايت کوی اوهغوی دواړه دابوسلمة بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله نه روايت کوی. دواړو طرق کښې رواية القرين عن قرينه دې. هغه داسې چه امام اعرج رحمه الله دابوسلمة رحمه الله معاصر دې. خکه چه دواړه حضرات په اکثر شيوخ کښې مشترک دی. هم دغه شان دويم طريق کښې سفيان رحمه الله او مسعر بن کدام رحمه الله معاصر دی سره ددې چه مسعر رحمه الله په عمر کښې دسفيان ثوری رحمه الله نه مشر وومګر په اکثر شيوخ کښې دواړه حضرات مشترک دی.[3]

[۳۲۸۵]- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اشْتَرَى رَجُلٌ مِنْ رَجُلٍ عَقَارًا لَهُ، فَوَجَدَ الرَّجُلُ الَّذِي اشْتَرَى العَقَارَ فِي عَقَارِهِ جَرَّةً فِيهَا ذَهَبٌ، فَقَالَ لَهُ الَّذِي اشْتَرَى العَقَارَ: خُذْ ذَهَبَكَ مِنِّي، إِنَّمَا اشْتَرَيْتُ مِنْكَ الأَرْضَ، وَلَمْ أَبْتَعْ مِنْكَ الذَّهَبَ، وَقَالَ الَّذِي لَهُ الأَرْضُ: إِنَّمَا بِعْتُكَ الأَرْضَ وَمَا فِيهَا، فَتَحَاكَمَا إِلَى رَجُلٍ، فَقَالَ: الَّذِي تَحَاكَمَا إِلَيْهِ: أَلَكُمَا وَلَدٌ؟ قَالَ أَحَدُهُمَا: لِي غُلاَمٌ، وَقَالَ الآخَرُ: لِي جَارِيَةٌ، قَالَ: أَنْكِحُوا الغُلاَمَ الجَارِيَةَ وَأَنْفِقُوا عَلَى أَنْفُسِهِمَا مِنْهُ [ص:۱۷۵] وَتَصَدَّقَا" ص ۷۷۴[4]

## تراجم رجال

**اسحاق بن نصر:** دا اسحاق بن ابراهيم بن نصر مروزی رحمه الله دې. ددوی تذکره مخکښې تيره شوې ده.[5]

**عبدالرزاق:** دا عبدالرزاق بن همام صنعانی رحمه الله دې.[6]

**معمر:** دا معمر بن راشد ازدی رحمه الله دې.[7]

**همام:** دا همام بن منبه يمانی صنعانی رحمه الله دې.[8]

**قوله: قال النبي صلى الله عليه وسلم اشترى رجل من رجل عقارا له فوجد......:** دحضرت ابوهريره

---

[1] المصدر السابق.

[2] المصدر السابق.

[3] عمدة القاري: ۱۶/۷۹-۷۸.

[4] مر تخريجه في كتاب المساقاة، باب فضل سقي الماء، رقم: ۲۳۶۵.

[5] اګورئ: كتاب الوضوء باب من اغتسل عريانا وحده في الخلوة رقم: ۲۷۸

[6] كشف الباري: ۲/۴۲۱.

[7] كشف الباري: ۴/۳۲۱.

[8] كشف الباري: ۴/۳۱۷.

رحمه الله روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي يو سړي د بل سړي نه دَهغه جائيداد واخستلو.
کوم سړي چه جائيداد اخستې وو هغه په دغه جائيداد کښې د سرو زرو نه ډك منګې اوموندلو او بائع ته ئې
اووئيل زما نه خپل سره زر واخله. ما تاته زمکه اخستې وه سره زر مې نه وو اخستې. بائع اووئيل چه ما کور او په
هغې کښې چه څه وو هغه هم په تاباندې خرڅ کړي دي. دواړه په جګړه شو يو بل سړي له لاړل.
شراح وائي چه دَدې دواړو نومونه معلوم نه شو. دَ وهب بن منبه رحمه الله په المبتدأ کښې. دي چه دا دواړه دَ فيصلې
کولودَپاره چه کوم سړي له تللي وو هغه حضرت داؤد عليه السلام وو. خودَ اسحاق رحمه الله په المبتدأ کښې دي چه دا واقعه دَ
ذوالقرنين په زمانه کښې پيښه شوې. والله اعلم.(١)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه امام بخاري رحمه الله دَ خپل صنيع نه دَ وهب بن منبه رحمه الله قول ته ترجيح ورکړې ده.
ځکه چه امام بخاري رحمه الله دا واقعه دَ بنواسرائيل په تذکره کښې نقل کړې ده. نو راجح هم دغه معلوميږي چه دې
دواړو بنواسرائيل سره تعلق لرلو اودَ فيصلې کولودَپاره حضرت داؤد عليه السلام له تللي وو (٢) کوم سړي له چه دواړه دَ
فيصلې اخستلودَپاره تللي وو هغه دواړو ته اووئيل آيا ستاسو اولاد شته؟ يو اووئيل زما يو ځوئې دې. دَ اسحاق
بن بشر رحمه الله په روايت کښې دي چه دا وينا کونکې مشتري وو.(٣) دويم اووئيل چه زما يوه لور ده. نوهغه اووئيل
«أنكحوا الغلام الجارية وأنفقوا على أنفسهما وتصدقا» يعني دَدواړو نکاح اوکړئې سره زر په دواړو باندې خرچه کړئې او صدقه
هم ورکړئې.(٤)
**دَ حديث مطالب:** دلته په دې خبره اول خان پوهه کول پکاردي چه بائع او مشتري په مينځ کښې کيدونکې بيع
خاص دَ زمکې وه يا په هغې کښې خښ ځيزونه هم شامل وو؟ په حديث باب کښې دَمشتري الفاظ دي: «خذ ذهبك
فإنما اشتريت منك الأرض ولم أبتع الذهب» يعني نه خپل سره زر واخله، ځکه چه ماتاته صرف زمکه اخستې ده سره زر
مې نه دي اخستي. په دې الفاظو کښې تصريح ده چه بيع خاص دَ زمکې شوې وه په دې کښې خښ ځيزونه شامل
نه وو. خودَ بائع خيال وو چه په دې کښې ضمناً خښ ځيزونه هم شامل دي اودَ مشتري رائې دَ دې خلاف وه. لکه
چه دَدواړو په مينځ کښې په سودا کښې اختلاف نه وو بلکه په دعوی کښې اختلاف وو. دَ مسئلې په دې صورت
کښې زمونږ په شريعت کښې به دَ مشتري دَ قول اعتبار کيږي او سره زر يا خښ ځيزونه به دَ بائع ملکيت وي.(٥)
اودا هم ممکن دي چه دَ دواړو دَ بيع صورت کښې اختلاف شوې وي. دَمشتري دعوی وي چه بيع دَ زمکې او په
دې کښې شامل خښوځيزونو نه بلکه خاص دَ زمکې شوې وه او دَبائع دعوی وي چه په فيصله کښې دَ دواړو
تصريح شوې وه. که چرې دا صورت دَ سودا پيښ شوې وي نو دَ داسې صورت دَ اثبات دعوی دَپاره قسم ضروری
دي.
دَدې ټول تفصيل بنياد دَحديث په ظاهري الفاظو باندې دي. ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلي دي چه دَ
اسحاق بن بشر رحمه الله په روايت کښې دي: «قال المشتري: إنه اشتري دارا فعمرها فوجد فيها كنزا وأن البائع قال له لما دعاه إلى أخذه:
ما دفنت ولا علمت» يعني مشتري کور واخستو اوجوړئې کړو نودَ جوړولو وخت کښې هغه ته خزانه ملاؤشوه اوکله
چه هغه دَبائع نه دَ خزانې اخستلو خبره اوکړه نوهغه وئيل چه ما نه خزانه خښه کړې اونه ماته دَدې علم دي.

---

(١) فتح الباري: ٦/٦٤٣.
(٢) المصدر السابق.
(٣) فتح الباري: ٦/٦٤٤.
(٤) الحديث أخرجه مسلم في الأقضية باب استحباب إصلاح الحاكم بين الخصمين، رقم الحديث: ٤٤٩٧.
(٥) فتح الباري: ٦/٦٤٢.

د اسحاق رحمه الله په روایت کښې دا تصریح هم ده چه دوارو قاضی ته اوویل چه ته د خزانې اوچتولو د پاره خوک راولیګه اوچرته چه مناسب ګڼړې هلته ئې استعمال کړه مګر قاضی داسې اونه کړل (۱)
ممکن ده چه د هغه وخت په شریعت کښې د خښو و شوخیزونو متعلق تفصیلي احکام نه وو چه هغه د رکاز په حکم کښې دي یا د لقطه په حکم کښې دي. یا په د مال ضائع په شان په بیت المال کښې جمع کولې شی. په دې وجه قاضی په خپل اختیار سره داسې فیصله اوکړه دکوم چه په روایت باب کښې تصریح ده (۲)
**د امام غزالي رحمه الله او علامه انورشاه کشمیری رحمه الله رائې:** د اکثر شراح حدیث رائې ده چه دا واقعه د بني اسرائیلو په زمانه کښې پیښه شوې وه او قاضي داؤد علیه السلام وو د بخاري رحمه الله د صنیع نه د دې تائید هم کیږي لکه څنګه چه شاته مونږ خودلی دی. خو امام غزالي رحمه الله په نصیحت الملوك کښې فرمائیلي چه دواړه د فیصلې اخستلو د پاره کسری له تلی وو. د علامه کشمیری رحمه الله د تقریر فیض الباري کښې تصریح ده چه دا واقعه د انوشروان په زمانه کښې پیښه شوې وه. لکه چه شاه صاحب رحمه الله د امام غزالي رحمه الله قول ته ترجیح ورکړې ده (۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي که چرې د امام غزالي رحمه الله قول صحیح وی نو بیا د قاضی د تحکیم سره متعلق دا ټول تفصیلات فضول کیږی چه دا مال د لقطه په حکم کښې یا د اموال ضائعه وغیره په حکم کښې دې. ځکه چه کله فیصله ورکونکې کافر دې نو هغه په حکم ورکولو کښې په هیڅ یو حجت شرعیه بنیاد نه جوړوی (۴)
**ألکما ولد؟:** ولد د لام او واو فتحه سره دې او دې نه جنس ولد مراد دې او معنی ده: «ألكل واحد منكما ولد؟» (۵) یا بیا دا د واو ضمه او لام سکون سره د جمع صیغه ده او معنی «ألكل واحد منكما أولاد» آیا ستاسو دواړو اولاد شته؟ (۶)
**د حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** په حدیث کښې ذکر شوې دواړو سړو تعلق بنی اسرائیل سره وو لهذا مناسبت واضح دې. (۷)

[۳۲۸۶] - حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، وَعَنْ أَبِي النَّضْرِ، مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَهُ يَسْأَلُ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ، مَاذَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الطَّاعُونِ؟ فَقَالَ أُسَامَةُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الطَّاعُونُ رِجْسٌ أُرْسِلَ عَلَى طَائِفَةٍ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ، أَوْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ، فَإِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ، فَلَا تَقْدَمُوا عَلَيْهِ، وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ، وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا، فِرَارًا مِنْهُ» قَالَ أَبُو النَّضْرِ: «لَا يُخْرِجْكُمْ إِلَّا فِرَارًا مِنْهُ» ص ۷۷۸ [۵۳۹۶، ۶۵۷۳] (۸)

(۱) فتح الباري: ۶/۶۴۲
(۲) فتح الباري: ۶/۶۴۴
(۳) فیض الباري: ۴/۴۲۰ دارالکتب العلمیة.
(۴) فتح الباري: ۶/۶۴۴.
(۵) فتح الباري: ۶/۶۴۴ عمدة القاري: ۱۶/۷۹ إرشاد الساري: ۷/۴۳.
(۶) فتح الباري: ۶/۶۴۴ عمدة القاري: ۱۶/۷۹ دارالکتب العلمیة.
(۷) عمدة القاري: ۱۶/۷۹ دارالکتب العلمیة.
(۸) الحدیث أخرجه البخاري أیضاً في کتاب الطب باب ما یذکر في الطاعون: ۵۷۲۸ وفي کتاب الحیل باب ما یکره من الاحتیال في الفرار من الطاعون رقم: ۶۹۷۳ ومسلم في کتاب السلام باب الطاعون والطیرة والکهانة ونحوها رقم: ۵۷۷۲

## تراجم رجال

**عبدالعزیز:** داعبدالعزیز بن عبدالله اویسی رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب الوصی علی الحدیث» لاندې تیره شوې ده.(١)

**مالک:** دا امام دارالهجرة مالک بن انس اصبحی رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن» لاندې تیره شوې ده.(٢)

**محمدبن المنکدر:** دا محمد بن المنکدر بن عبدالله رحمه الله دي. دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.(٣)

**ابي النضر:** دا سالم بن ابی امیه التیمی رحمه الله دي. دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.(٤)

**عامر بن سعد عن ابیه:** دَدې دوارو حضراتو تذکره «کتاب الایمان باب إذا لم یکن الإسلام علی الحقیقة وکان علی الاستسلام» لاندې تیره شوې ده.(٥)

**قوله: أنه سمعه یسأل أسامة بن زید: ماذا سمعت:** یعنی عامر بن سعد دَخپل پلار حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د اسامه بن زید رضی الله عنه نه تپوس کولوسره اوریدلي چه تا دَ رسول الله ﷺ نه دَ طاعون باره کښې څه اوریدلي دي؟ نواسامه رضی الله عنه اووئیل رسول الله ﷺ فرمائیلي طاعون یو عذاب دي چه دَ بنواسرائیل په یوه ډله باندې اولیګلې شو. دلته دَ راوی شک دي چه یا حضورپاک دا فرمائیلي: چه تاسو نه مخکښې تیرو شو خلقو باندې اولیګلو. کله چه تاسو په یوه علاقه کښې دَ طاعون باره کښې واؤرئی نوهغې ته مه ورځئی او کله چه تاسو په یوه علاقه کښې یئی اوهلته طاعون خورشی نودَهغه ځائې نه مه اوځئی.

**قوله: قال أبوالنضر:** یعنی ابوالنضر سالم بن ابی امیه تیمی رحمه الله دَ «فلا تخرجوا فرارامنه» مطلب بیان کړې دي چه که غرض صرف دَتښتیدلو وی نو مه تښتئی.

په روایت کښې چه دَ بنواسرائیل دکومې ډلې ذکر دي علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دې نه دَبنواسرائیل هغه خلق مراد دی چاته چه الله تعالی حکم ورکړې وو ﴿وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا﴾ [الأعراف: ١٦١] یعنی هغوی په حکم باندې عمل اونه کړو اوخلاف ورزي ئې اوکړه نو الله تعالی په هغوی باندې طاعون مرض مسلط کړو لکه چه ارشاد دي: ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَظْلِمُونَ﴾ [الأعراف: ١٦٢] دَ طاعون په دې وباسره په یو وخت دَهغوی څلورویشت زره کسان مړه شوې وو.(٦)

روایت سره متعلق تفصیلي ابحاث کتاب الطب کښې اوګورئی.(٧)

---

– ٥٧٨٣والترمذی فی الجنائز باب ماجاء فی کراهیة الفرار من الطاعون، رقم: ١٠٦٥جامع الأصول فی أحادیث الرسول: ٥٧٩/٧رقم الحدیث: ٥٧٣٢.

١) کشف الباری: ٤٨/٤.

٢) کشف الباری: ٨٠/٢.

٣) اوګورئی: کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوءه علی المغمی علیه.

٤) اوګورئی: کتاب الوضوء باب المسح علی الخفین رقم: ٢٠٢.

٥) کشف الباری: ٧٣/٢-٧٢.

٦) تحفة الأحوذی: ١٦٠/٢ودرس ترمذی: ٣٣٥/٣.

٧) کشف الباری، کتاب الطب، ص: ٤٠ – ٥٧.

[۳۲۸۷] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي الْفُرَاتِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّاعُونِ، فَأَخْبَرَنِي «أَنَّهُ عَذَابٌ يَبْعَثُهُ اللَّهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ، وَأَنَّ اللَّهَ جَعَلَهُ رَحْمَةً لِلْمُؤْمِنِينَ، لَيْسَ مِنْ أَحَدٍ يَقَعُ الطَّاعُونُ، فَيَمْكُثُ فِي بَلَدِهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا، يَعْلَمُ أَنَّهُ لاَ يُصِيبُهُ إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ، إِلَّا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ شَهِيدٍ» ص ۴۸۰ [۵۷۳۴، ۶۶۱۹] [۱]

## تراجم رجال

**موسى بن اسماعيل:** دا موسى بن اسماعيل تبوذکی بصری رحمه الله دي. [۲]

**داؤد بن ابي الفرات:** د دوی تذکره هم تیره شوې ده. [۳]

**عبدالله بن بريدة:** د دوی تذکره هم تیره شوې ده. [۴]

**يحيى بن يعمر:** دا جلیل القدر تابعی ابوسلیمان یحیی بن یعمر البصری القیسی الجدلی رحمه الله دي. دوی د عثمان بن عفان، علی بن ابی طالب، عمار، ابوذر غفاری، ابوهریره، ابوموسی اشعری، ابوسعید، عائشه، سلیمان بن صرد، ابن عباس، ابن عمر، جابربن عبدالله، او ابواسود رضي الله عنهم ورحمهم الله نه د حدیث روایت کړې دی. اودوی نه یحیی بن عقیل، سلیمان تیمی، قتاده، عکرمه، عبدالله بن بریده، اسحاق بن سوید غوندې اعلام حدیث د حدیث روایت کړې دي. [۵]

تولو ائمه جرح والتعدیل د دوی توثیق کړې دې. په ورع او تقوی کښې بې مثال کیدو سره لغت او علم نحو کښې هم دهغوی څوک جوګه نه وو. د خپلې زمانې د فصیح خلقو نه وو. ابن حبان رحمه الله وائي: «كان من فصحاء أهل زمانه وأكثرهم علما باللغة مع الورع الشديد وكان على قضاء مرو، ولاه قتيبة بن مسلم» یعنې د خپل دور د فصیح خلقو نه وواو د بیر زیات متورع کیدو سره علم لغت کښې په ټولو باندې فوقیت لرلو. د مرو قاضي وو او دا منصب هغوی ته قتیبه بن مسلم رحمه الله ورکړې وو. علم لغت او نحو هغوی د ابواسود رحمه الله نه حاصل کړې وو. [۶]

دهغوی د مرو په منصب د قضاء باندې فائز کیدو واقعه هم زړه راښکونکې ده. علامه شمس الدین ذهبی رحمه الله تاریخ اسلام کښې لیکلي دي. چه حجاج بن یوسف ثقفی په یومجلس کښې د حضرت حسین رضي الله عنه متعلق اووئیل چه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ذریت نه نه دي. یحیی بن یعمر رحمه الله په مجلس کښې موجود وو هغه اووئیل «كذبت أيها الأمير» یعنې تا دروغ اووئیل. حجاج تاؤ راتاؤ شو او وئې وئیل: «لتأتيني على ما قلت ببينة من كتاب الله أو لأقتلنك» یعنې د خپلې دعوی ثابت کولو د پاره د کتاب الله نه څه دلیل پیش کړه ګنې زه به تا قتل کړم. یحیی بن یعمر رحمه الله د قرآن

---

[۱] أخرجه أيضاً في كتاب الطب، باب أجر الصابر في الطاعون رقم: ۵۷۳۴ وكتاب القدر قبل باب وما كنا لنهتدي لو لا أن هدانا الله، رقم: ۶۶۱۹

[۲] کشف الباری: ۴۱۳/۳.

[۳] اوګورئی: کتاب الجنائز باب مایذکر من الصلاة على المنافقين والاستغفار للمشركين، رقم: ۱۳۶۸.

[۴] اوګورئی: کتاب الحیض باب الصلاة على النفساء وسنتها، رقم: ۳۳۲، ص: ۶۳۰

[۵] د شیوخ او تلامذه د تفصیل د پاره اوګورئی: تهذيب الكمال: ۵۳/۳۲ تهذيب التهذيب: ۲۶۶٬۳۸۹/۵ دارالفكر.

[۶] تهذيب التهذيب: ۲۶۷٬۴۸۹/۱۱ دارالفكر، كتاب الثقات لابن حبان: ۴۲۳-۴۲۴/۵ دارالفكر، سير أعلام النبلاء: ۴۴۲/۴ رقم الترجمة: ۱۷۰ مؤسسة الرسالة.

پاك ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ﴾ لوستلو سره اوونيل «فأخبرالله أن عيسى من ذرية آدم بأمه» په آيت كښي الله تصريح فرمائيلې ده چه عيسى عليه السلام د مور د طرف نه د حضرت آدم عليه السلام د ذريت نه دې يعنى ثابته شوه چه د فاطمه رضي الله عنها اولاد د كلام الله په رو سره ذريت محمد صلى الله عليه وسلم كښې شامل دې.

حجاج اوونيل تا صحيح اوونيل مګر زما په دې مجلس كښې تازما تكذيب په كوم بنياد باندې اوكړو؟ يحيى بن يعمر رحمه الله په خپل جواب كښې اوفرمائيل «لما أخذ الله على الأنبياء: لتبيننه للناس ولا تكتمونه» يعنى الله تعالى د انبياء نه عهد اخستې وو چه هغوى به خلقو ته حق خبره بيانوى اوهغه به پټوى نه. هم دغه عهد د تكذيب سبب وو. د دې واقعه نه پس حجاج بن يوسف هغه خراسان ته جلاوطن كړو. هلته په رسيدو باندې مسلم بن قتيبه رحمه الله هغه د مرو قاضي جوړ كړو. (١)

تاريخ قضاء كښې د يحيى بن يعمر رحمه الله په شان د الله تعالى نه ويريدونكې او عدل كونكې قاضى به ډير كم تيرشوې وى. د احتياط او انصاف خوښولونې دا حال وو چه ټولې فيصلې به ئې د ګواه په موجود ګئې كښې اوحلف اخستلو سره كولې. ابن سعد رحمه الله د ابوالطيب موسى بن يسار رحمه الله يو روايت نقل كړې دې چه يحيى بن يعمر رحمه الله د مرو د قضاء په منصب باندې و نوهغوى هغه پخپله كله به كوځو كښې اوكله بازارونو كښې د خلقو مسائل حل كولوسره ليدلې. كله به هغه په خرپاندې سور وو نو دوه كسان به په جګړه هغوى له راتلل نو سورلى به ئې اودرولوسره د هغوى مسئله حل كوله. (٢)

د هغوى تاريخ وفات كښې اختلاف دې. ابوالحسن على بن اثير جزرى رحمه الله فرمائى چه وفات ئې په ١٢٩ هجرى كښې شوې. حافظ ابن حجر رحمه الله په هغوى باندې رد كولوسره فرمائى چه دا قول محل نظر دې. دويم قول دادې چه د هغوى وفات د دويمې صدئى هجرئى په اولو دوو برخو كښې شوې. دريم قول د حافظ ابن جوزى رحمه الله دې هغوى د وفات كال ٨٩ هجرى تصريح كړې ده. (٣)

**قوله: سألتُ رسولَ الله صلى الله عليه وسلم عن الطـاعون فـأخبرني** ....... د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت دې چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د طاعون باره كښې سوال اوكړو نوحضورپاك اوفرمائيل طاعون يو عذاب دې الله تعالى چه په چاباندې غواړى راليګى. مګر الله تعالى هغه د مؤمنانو د پاره رحمت جوړ كړې دې. كه د يومؤمن په علاقه كښې طاعون خور شى اوهغه د ثواب اميد كولوسره په دې صبر اوكړى يعنى ثابت قدم پاتې كيدو سره علاقه پرينږدى اودا عقيده اولرى چه دغه سره به هم هغه معامله كيږى كومه چه الله تعالى د هغه په تقدير كښې ليكلې ده نو د ده ته به د شهيد برابر اجرملاويږى.

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت.** علامه عينى رحمه الله فرمائى: «هذا الحديث من جنس الحديث السابق، فلذلك ذكره عقيبه فتعلم المطابقة بينه وبين الترجمة من حيث أنه مطابق للمطابق والمطابق للمطابق للشيء مطابق لذلك الشيء» (٤)

چونكه مذكوره حديث د سابقه حديث د جنس نه دې اوهم په دې وجه امام بخارى رحمه الله دا حديث د حديث سابق سره متصل ذكر كړې دې نو د حديث ترجمة الباب سره مطابقت «مطابق مطابق الشيء مطابق لذلك الشيء» په پيش نظر وى.

[٣٢٨٨]- حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ شَأْنُ الْمَرْأَةِ الْمَخْزُومِيَّةِ الَّتِي سَرَقَتْ، فَقَالُوا: وَمَنْ يُكَلِّمُ فِيهَا

---

(١) تاريخ الإسلام للذهبي: ١٠٧١/٢ دار الغرب الإسلامي.

(٢) طبقات ابن سعد: ٢٦١/٧ دار الكتب العلمية بيروت ١٤١٠ هجرى.

(٣) تهذيب التهذيب: ٣٠٦/١١.

(٤) عمدة القارى: ٨٦/١٦.

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالُوا: وَمَنْ يَجْتَرِئُ عَلَيْهِ إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، حِبُّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَشْفَعُ فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللّٰهِ، ثُمَّ قَامَ فَاخْتَطَبَ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّمَا أَهْلَكَ الَّذِينَ قَبْلَكُمْ، أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ، وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ، وَايْمُ اللّٰهِ لَوْ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا" ص ٧٨٣ [ر: ٢٥٠٥] [1]

## تراجم رجال

**قتيبة بن سعيد:** دَ دوی تذکره «کتاب الایمان باب إفشاء السلام من الإسلام» لاندې تیره شوې ده. [2]

**لیث:** دا ابوالحارث لیث بن سعد بن عبدالرحمن فهمی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره بدء الوحی کښې تیره شوې ده. [3]

**ابن شهاب:** دَ محمد بن شهاب زهری رحمه الله تذکره هم بدء الوحی لاندې تیره شوې ده. [4]

**عروة:** عروه بن زبیر رحمه الله دې. دَ دوی تذکره «کتاب الایمان باب الدین یسر» لاندې تیره شوې ده. [5]

**قوله: أن قريشا أهمهم شأن المرأة المخزومية التي سرقت:** حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه قریش دَ هغه مخزومی ښځې په معامله کښې ډیر فکرمند کړې وو. چاچه دَ فتح مکه په موقع کالې پټ کړې وو نو دَ قریشو خلقو اووئیل په دې معامله کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دَ حضورپاک نازیبن اسامه بن زید رضی الله عنه نه سوا څوک دَ عرض کولو جرات نه شی کولې. چنانچه اسامه بن زید رضی الله عنه حضورپاک سره خبره اوکړه نو حضورپاک اوفرمائیل اسامه ته دَ الله تعالی په مقررشوی حدود کښې سفارش کوې؟ بیا حضورپاک اودریدو خطبه ئې ورکړه او ونې فرمائیل: تاسو نه وړاندې خلق یعنی بنواسرائیل خکه هلاک شو چه کله به په هغوی کښې یو صاحب حیثیت سړی غلا کوله نو هغه به ئې پریخودو او کله چه به یو کمزوری غلا کوله نو په هغه باندې به ئې حد قائم کولو. په الله قسم! که فاطمه بنت محمد هم غلا اوکړی نو زه به دَ هغې هم لاس پرې کوم. دا روایت وړاندې دَ حدود او مناقب لاندې راځی.

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** حدیث باب کښې دی «إنما هلك الذين قبلكم». علامه عینی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: دې نه بنواسرائیل مراد دې. دَ روایت په دویم طرق کښې دَ بنو اسرائیل تصریح کړې شوې ده، لهذا ترجمة الباب سره دَ حدیث مطابقت ښکاره دې. [6]

[٣٢٨٩]- حَدَّثَنَا آدَمُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّزَّالَ بْنَ سَبْرَةَ الْهِلَالِيَّ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَجُلًا قَرَأَ آيَةً، وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ خِلَافَهَا، فَجِئْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ، وَقَالَ: «كِلَاكُمَا مُحْسِنٌ، وَلَا تَخْتَلِفُوا، فَإِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمُ اخْتَلَفُوا فَهَلَكُوا» ص ٧٨٥ [ر: ٢٢٧٩] [1]

---

[1] مر تخريجه في كتاب الشهادات، باب القاذف والسارق الزاني، رقم: ٢٦٤٨.

[2] كشف الباري: ٢/١٨٩.

[3] كشف الباري: ١/٣٢٤.

[4] كشف الباري: ١/٣٢٦.

[5] كشف الباري: ٢/٤٣٦.

[6] عمدة القاري: ١٦/٨٢ و فتح الباري: ٦/٤٤٦.

## تراجم رجال

**ادم:** دا آدم بن ابی ایاس رحمہ اللہ دي.

**شعبة:** دا شعبه بن الحجاج بن الورد العسکی الواسطی رحمہ اللہ دي. دَدوی دواړو حضراتو تذکره «کتاب الإیمان باب من سلم المسلمون من لسانه ویده» لاندې تیره شوې ده.(٢)

**عبدالملک بن میسرة:** دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.(٣)

**نزال بن میسرة:** دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده. (٤)

**قوله: سمعت رجلا قرأ وسمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقرأ خلافها**...... دَحضرت عبدالله بن مسعود رضی اللہ عنہ روایت دې ما یوسړي دَ قرآن تلاوت کولوسره واوریدو حالانکه هغه چه څنګه تلاوت کولو. ما دَ رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم نه دَ دې برخلاف (بله طریقه باندې) لوستلو سره اوریدلې وو. زه دَحضورپاک خدمت کښې حاضر شوم دَواقعه خبر مې ورکړو نو ما دَ حضورپاک په مخ مبارک باندې دَخفګان اثار اولیدل. حضورپاک اوفرمائیل تاسو دواړه ښې بنه لولئ او خپل مینځ کښې جګړه مه کوئ. تاسو نه مخکښې خلق یعنی بنواسرائیل دَخپل مینځ جګړو د وجې نه هلاک شو.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** «فإن من كان قبلكم» نه دَ بنواسرائیل طرف ته اشاره ده. ترجمة الباب سره دَ دې مناسبت واضح دې.

[٣٢٩٠] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، قَالَ: حَدَّثَنِي شَقِيقٌ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَحْكِي نَبِيًّا مِنَ الأَنْبِيَاءِ [ص: ٤٧٦]، ضَرَبَهُ قَوْمُهُ فَأَدْمَوْهُ، وَهُوَ يَمْسَحُ الدَّمَ عَنْ وَجْهِهِ وَيَقُولُ: «اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِقَوْمِي فَإِنَّهُمْ لاَ يَعْلَمُونَ» ص ٧٨٦] [ر: ٦٥٣٠] (٥)

## تراجم رجال

**عمر بن حفص:** دا عمر بن حفص بن غیاث النخعی رحمہ اللہ دي.

**ابي:** دا دَ عمر بن حفص پلار حفص بن غیاث النخعی رحمہ اللہ دي. دَدوی دواړو حضراتو تذکره «کتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة» لاندې تیره شوې ده.(٦)

**الاعمش:** دا سلیمان بن مهران کوفی رحمہ اللہ دي. أعمش په لقب سره مشهور دي. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب ظلم دون ظلم» لاندې تیره شوې ده. (٧)

---

(١) مرتخریجه فی کتاب الخصومات باب مایذکر فی الأشخاص والخصومة بین المسلم والیهودی، رقم: ٢٤١٠.

(٢) کشف الباری: ٦٧٨/١

(٣) اوګورئ: کتاب الخصومات باب مایذکر فی الأشخاص والخصومة بین المسلم والیهودی، رقم: ٢٤١٠.

(٤) أیضاً.

(٥) أخرجه أیضاً فی کتاب استتابة المرتدین والمعاندین وقتالهم قبل باب قتل الخوارج والملحدین بعد إقامته الحجة علیهم رقم: ٦٩٢٩وأخرجه مسلم فی الجهاد باب غزوة أحد، رقم الحدیث: ٤٦٤٦وابن ماجه فی سننه فی کتاب الفتن باب الصبر علی البلاء، رقم: ٤٠٢٥.

(٦) کتاب الغسل باب المضمضة والاستنشاق فی الجنابة، ص: ٢٥٩.

(٧) کشف الباری: ٢٥١/٢.

**شقيق:** دا ابووائل شقيق بن سلمه رحمه الله دي. دَدوی تذکره بدء الوحي لاندې تيره شوې ده [١]
**عبدالله:** دا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دی [٢]

**قوله: قال عبدالله: كأني أنظر إلى النبي صلى الله عليه وسلم يحكي نبيا من الأنبياء:** حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه واني لکه چه زه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ګورم، چه هغوی د يو نبي حال بيانولو دهغوی قوم هغه وهلو سره په وينو باندې رنګ کړو او هم په دې حال کښې هغه خپله وينه پاکوله او ګذارونو په شدت سره به بې هوشه کيدو اوکله چه به نې ګذاره کيدله نو فرمائيل به نې: «اللهم اغفر لقومي، فإنهم لا يعلمون» اې الله زما قوم خلق اوبخښې دوی نه پوهيږی.

**په روايت کښې دَ کوم يو نبي تذکره ده؟:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه روايت باب کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم د کوم نبي تذکره کوی ماته دهغه نوم صراحتًا ملاؤ نه شو. ممکن ده چه نوح عليه السلام مراد وی. علامه سيوطی رحمه الله الديباج کښې په دې باندې جزم کړې دې[٣] ابن اسحاق رحمه الله المبتدأ کښې يو روايت نقل کړې دې دهغې الفاظ دادی: «أن قوم نوح كانوا يبطشون به فيخنقونه حتى يغشى عليه فإذا أفاق قال: اللهم اغفر لقومي فإنهم لا يعلمون»[٤] يعنی دَ نوح عليه السلام قوم به حضرت نوح عليه السلام وهلوسره دَ هغه مرئي خفه کوله، تردې چه هغه به بې هوشه شو او چه کله به هوش کښې راتللونو فرمائيل به نې اې الله! زما قوم ناپوهه دې دا اوبخښې. که چرې دا روايت ثابت وی نو بيادا دَ نوح عليه السلام دَ خپل قوم نه دَ ملاويدونکو تکليفونو دشروع واقعه به وی. په آخره کښې چه کله دَقوم دَ هدايت نه نااميده شو نودَهغوی دَپاره نې دا دعا اوکړه: ﴿رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا﴾[٥]

**دعلامه قرطبي رحمه الله رائې:** دَباب مذکوره روايت امام مسلم رحمه الله هم په خپل صحيح کښې نقل کړې دې او دَدې دَنقل کولونه وړاندې هغه دَ احد قصې سره متعلق روايت درج کړې دې په کوم کښې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی. «كيف يفلح قوم شجوا نبيهم وكسروا رباعيته» داسې قوم چرته کامياب کيدې شي چاچه دَخپل نبي مخ زخمي کړې وی او دَ هغه غاښونه نې مات کړې وی؟ کيدې شي دَ امام مسلم رحمه الله په دې صنيع سره علامه قرطبي رحمه الله دا ګمان کړې وی چه «يحكي نبيا من الأنبياء» کښې په حقيقت کښې نبي کريم صلى الله عليه وسلم خپل حال بيان کړې دې. په دې وجه هغوی تصريح کړې چه په روايت کښې حاکی اومحکی عنه پخپله رسول الله صلى الله عليه وسلم دې. دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت باب په وخت دَ احد واقعه نه وه پيښه شوې. نوعلامه قرطبي رحمه الله واني غزوه احد کښې چه دَ نبي کريم صلى الله عليه وسلم دزخمي کيدو کومه واقعه پيښه شوې هم داسې واقعه دَ غزوه احد نه وړاندې حضورپاک ته دَ وحي په ذريعه خودلې شوې وه مګر دَ نبي نوم نې اونه خودلو. بيا چه کله په غزوه احد کښې هم دغه شان واقعه پيښه شوه نومعلومه شوه چه دې نه حضورپاک پخپله مراد دې.[٦]

حقيقت دادې چه دَعلامه قرطبي رحمه الله دا تاويل صحيح نه دې. دا صحيح منلوکښې په حديث اوترجمه کښې

---

[١] کشف الباري: ١/٤٨٠.
[٢] کشف الباري: ٢/٢٥٧.
[٣] الديباج على صحيح مسلم بن الحجاج: ٢/٧٣٧.
[٤] فتح الباري: ٦/٦٤٦عمدة القاري:١٦/٨٣إدارة الطباعة المنيرية.
[٥] فتح الباري: ٦/٦٤٦
[٦] المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم كتاب الجهاد باب في اقتحام الواحد على جمع العدو، رقم الحديث:١٣١، ٣/٦٥١دار ابن كثير، دارالكلم الطيب، تفسيرالقرطبي، سورة آل عمران رقم الآية: ١٢٨، ٥/٣٠٧ مؤسسة الرسالة، فتح الباري: ٦/٦٤٦

مناسبت نه پاتې کيږي ځکه چه ظاهره ده چه باب بنواسرائيل سره متعلق دې او دَدې تاويل ترديد دَ مسند احمد په يو روايت سره هم کيږي. دا روايت عاصم عن أبي وائل په طريق سره نقل دې په دې کښې دي: «قسم رسول الله صلى الله عليه وسلم غنائم حنين بالجعرانة قال: فازدحموا عليه فقال: إن عبدا من عباد الله بعثه الله إلى قومه فضربوه وشجوه، فجعل يمسح الدم عن جبهته ويقول: رب اغفر لقومي، فإنهم لا يعلمون. قال عبد الله: فكأني أنظر إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم يمسح الدم عن جبهته يحكي الرجل».[1]

يعنې رسول الله جعرانه کښې دَ حنين نه راتلونکې دَ غنيمت مال تقسيم کړو. راوى وائي چه خلق دَ رسول الله ﷺ نه چاپيره راتاؤشو نو په دې موقع حضورپاك اوفرمائيل الله تعالى يو بنده خپل قوم ته نبى جوړولوسره اوليګلو نو دَ قوم خلقو دَهغه تکذيب اوکړو او دَهغه مخ ئې زخمى کړو نوهغه نبى به دَخپل مخ نه وينه اوچوله او دا دعائى به ئې فرمائيله: «رب اغفر لقومي، فإنهم لا يعلمون» عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وائي لکه چه زه رسول الله ﷺ وينم چه هغوى به دَمذکوره سړي حال بيانولوسره خپل تندې مبارك اوچولو.

خلاصه دا چه روايت کښې رسول الله ﷺ خپل حکايت نه دې بيان کړې او په قول دَ ابن حجر رحمه الله که چرې دَ قرطبى رحمه الله تاويل اومنلې شي نو په باب او روايت کښې به مناسبت پاتې نه شي. اوکه چرې نوح عليه السلام مراد وي نو په دې صورت کښې هم علامه عينى رحمه الله فرمائيلي چه په باب او روايت کښې به مناسبت نه وي ځکه چه دَ نوح عليه السلام زمانه دَ بنو اسرائيل نه وړاندې ده خو باب دَ بنو اسرائيل اخبار او واقعات سره متعلق دې.[2] هم دغه رائې دَعلامه قسطلانى هم ده هغوى فرمائيلي چه په ظاهره واقعه دَ بنو اسرائيل سره متعلق ده او باب سره مناسبت هم په دې صورت کښې دې.[3]

[٣٢٩١]- حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَبْدِ الْغَافِرِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ رَجُلًا كَانَ قَبْلَكُمْ، رَغَسَهُ اللَّهُ مَالًا، فَقَالَ لِبَنِيهِ لَمَّا حُضِرَ: أَيَّ أَبٍ كُنْتُ لَكُمْ؟ قَالُوا: خَيْرَ أَبٍ، قَالَ: فَإِنِّي لَمْ أَعْمَلْ خَيْرًا قَطُّ، فَإِذَا مُتُّ فَأَحْرِقُونِي، ثُمَّ اسْحَقُونِي، ثُمَّ ذَرُّونِي فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ، فَفَعَلُوا، فَجَمَعَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ، فَقَالَ: مَا حَمَلَكَ؟ قَالَ: مَخَافَتُكَ، فَتَلَقَّاهُ بِرَحْمَتِهِ "وَقَالَ مُعَاذٌ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَبْدِ الْغَافِرِ، سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ص ٧٨٩[4]

## تراجم رجال

ابوالوليد: دا ابوالوليد هشام بن عبد الملك طيالسى رحمه الله دې. دَدوى تذکره «كتاب العلم باب إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم» لاندې تيره شوې ده.[5]

ابوعوانه: دا وضاح بن عبد الله يشكرى رحمه الله دې.[1]

---

[1] مسند الإمام أحمد: ٣٧٦/٧، رقم الحديث: ٤٣٦٦.

[2] عمدة القاري: ٨٣/١٦.

[3] إرشاد الساري: ٨٣/٧.

[4] أخرجه أيضاً في كتاب الرقاق باب الخوف من الله عزوجل رقم: ٦٤٨١ وكتاب التوحيد باب قول الله تعالى: ﴿يُرِيدُونَ أَنْ يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللَّهِ﴾ رقم: ٧٥٠٨ ومسلم في صحيحه في كتاب التوحيد باب سعة رحمة الله تعالى. رقم الحديث: ٦٢٨٤.

[5] كشف الباري: ١٥٩/٤.

قتادة: دا قتاده بن دعامه رحمه الله دي. دَدوی تذکره «كتاب الإيمان باب من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه» لاندې تيره شوې ده.[2]

عقبة بن عبدالغافر: دَدوی کنیت ابونهاد دی. دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده.[3]

دَ عقبه بن عبد الغافر رحمه الله په صحيح بخاری کښې صرف دوه روایتونه دی. یو روایت مذکره او دویم روایت «كتاب الوكالة باب إذا باع الوكيل شيئا فاسدا فبيعه مردود، رقم الحديث: ۲۱۸۸» لاندې ذکر دې.

قوله: أن رجلا كان قبلكم رغسه الله مالا...... دَحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمانیلی چه تاسو نه مخکښې یو سړې وو. الله تعالی هغه ته (ډیر مال) ورکړې وو. هغه دَمرګ په وخت خپلو خامنوته اوونیل زه ستاسو څنګه پلار ووم؟ هغوی اوونیل چه ته یو ښه پلار وې. هغه سړی اوونیل چه ما ټول ژوند کښې کله نیک عمل نه دې کړې. کله چه زه مړ شم نو ما اوسیزئی ما بیا اوره کړئی بیا دَ سیلئی په ورځو کښې کله چه په زوره سیلئی چلیږی ما یعنی زما ایرې په هواکښې اوشیندئی نو خامنو هم داسې اوکړه. الله تعالی دهغه ټول بدن راجمع کړو وئی فرمائیل په داسې کولو باندې ته چا مجبوره کړې؟ هغه وئیل ستا ویرې، نو الله تعالی هغه سره دَ رحم معامله اوکړه.

دا سړې دبنو اسرائیل نه و. دا عاجز دَ الله تعالی دَ صفاتو اوقدرت کامله نه ناخبره وو. نیک عمل نی نه وو مګر دَ مرګ نه مخکښې دَ الله تعالی ویره پرې دومره غالبه شوه چه خپلو خامنوته ئې داسې جاهلانه وصیت اوکړو. دا بالکل غلط عمل وو چونکه دَ الله تعالی دَ ویرې تقاضا خو دا وه چه دَهغه دَ عذاب نه ویریدلو. په دې وجه الله تعالی دَ هغه نادان مغفرت اوکړو.

وَقَالَ مُعَاذٌ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ: سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ عَبْدِ الْغَافِرِ: سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم. [۶۱۱۶، ۷۰۶۹، ۷۰۷۰]

دا تعلیق امام مسلم رحمه الله په خپل صحیح کښې «عن عبدالله بن معاذ العنبري عن أبيه» په طریق سره موصولاً نقل کړې دې او دَدې تعلیق نه دَ امام بخاری رحمه الله مقصد داخودل دی چه عقبه بن عبد الغافر رحمه الله دَ قتاده رحمه الله نه سماع ثابته ده.[4]

دَحديث ترجمة الباب سره مناسبت: روایت کښې دی: «أن رجلا كان قبلكم» دا جمله دَ باب موافق ده.

[۳۲۹۲]- حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، قَالَ: قَالَ عُقْبَةُ لِحُذَيْفَةَ: أَلَا تُحَدِّثُنَا مَا سَمِعْتَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ "إِنَّ رَجُلًا حَضَرَهُ الْمَوْتُ، لَمَّا أَيِسَ مِنَ الْحَيَاةِ أَوْصَى أَهْلَهُ: إِذَا مُتُّ فَاجْمَعُوا لِي حَطَبًا كَثِيرًا، ثُمَّ أَوْرُوا نَارًا، حَتَّى إِذَا أَكَلَتْ لَحْمِي، وَخَلَصَتْ إِلَى عَظْمِي، فَخُذُوهَا فَاطْحَنُوهَا فَذَرُّونِي فِي الْيَمِّ فِي يَوْمٍ حَارٍّ، أَوْ رَاحٍ، فَجَمَعَهُ اللَّهُ فَقَالَ: لِمَ فَعَلْتَ؟ قَالَ: خَشْيَتَكَ، فَغَفَرَ لَهُ" قَالَ عُقْبَةُ: وَأَنَا سَمِعْتُهُ يَقُولُ: حَدَّثَنَا مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ، وَقَالَ: «فِي يَوْمٍ رَاحٍ» [ص ۷۹۱][5]

---

[1] كشف الباري: ۱/٤٣٤.

[2] كشف الباري: ۲/۳.

[3] اوګورئی: كتاب الوكالة باب إذا باع الوكيل شيئا فاسدا فبيعه مردود: ۲۳۱۲.

[4] فتح الباري: ۶/٦٤٧ وإرشاد الساري: ٧/٤٣٧.

[5] مر تخريجه في نفس الباب برقم: ٣٤٥٢.

## تراجم رجال

**مسدد**: دا مسدد بن مسرهد اسدي بصري رحمه الله دي. دَدوی تذکره «کتاب العلم باب من خص بالعلم قوما دون قوم کراهية أن لایفهموا» لاندې تیره شوې ده. [1]

**ابوعوانة**: دا وضاح بن عبدالله یشکري رحمه الله دي. [2]

**عبدالملك بن عمير**: دا عبدالملك بن عمیر بن سوید الفرسي رحمه الله دي. [3]

**ربعي بن حراش**: دَدوی تذکره «کتاب العلم باب إثم من كذب على النبي صلى الله عليه وسلم» لاندې تیره شوې ده. [4]

**عقبة**: دا صحابي رسول ابومسعود عقبه بن عمرو انصاري رضي الله عنه دي. دَدوی تذکره «کتاب الإیمان باب ماجاء أن الأعمال بالنية والحسبة» لاندې تیره شوې ده. [5]

**حذيفة**: دا حذيفه بن یمان رضي الله عنه دي. «کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا أو أنبأنا» لاندې دَدوی حالات تیر شوي دي. [6]

**قوله: قال عقبة لحذيفة: ألا تحدثنا ما سمعت من النبي صلى الله عليه وسلم؟......**: عقبه بن عمرو انصاري رضي الله عنه حذيفه بن یمان رضي الله عنه ته اوونیل: آیا ته مونږ ته دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوریدلې څه حدیث نه بیانوې؟ حذيفه رضي الله عنه اوفرمائیل ما رسول الله صلى الله عليه وسلم په دې ارشاد فرمائیلو سره اوریدلې چه دَ یوسړي دَ مرګ وخت نیزدې راغلو. کله چه هغه دَ ژوند نه ناامیده شو نوهغه خپل بال بچ ته دا وصیت اوکړو: کله چه زه مړ شم نو زما دپاره ډیر لرګي راجمع کړنې بیا اور بل کړنې تردې چه کله اور زما دبدن غوښه اوخوري او هډوکو پورې اورسیږي نو دغه هډوکي واخلئې اوره ئې کړنې بیا دَ سختې ګرمئې په ورځ یا ئې اوفرمائیل: په کومه ورځ چه تیزې هواګانې چلیږي ما په هوا کښې اوشیندئې. کله چه دَهغه دَ اوره کړې شوو هډوکو ایره په هوا کښې والوزولې شوه نو الله تعالى دَهغه بدن راغونډ کړو او تپوس ئې ترې اوکړو تا داسې ولې اوکړه؟ هغه ونیل ستادَ ویرې، نو الله تعالى دَهغه مغفرت اوکړو. په دې روایت کښې هم دَ بنواسرائیل دَ یوسړي واقعه بیان کړې شوې ده. دا نباش ګورکن وو او کفنونه به ئې پټول. [7]

**قوله: ألا تحدثنا**: ألا حرف تخصیض دي. [8]

**قوله: خشيتك**: علامه قسطلاني رحمه الله وائي چه شرف الدین یونیني دَخپل شیخ جمال الدین ابن مالك رحمه الله قول نقل کړې دې چه خشيتك دَتاء فتحه اوکسره دواړه شان لوستلې کیدې شي. البته فتح اولى ده. دَ نصب دَ وجې نه

---

[1] کشف الباري: ٥٨٨/٤.

[2] کشف الباري: ٤٣٤/١.

[3] اوګورئې: کتاب الأذان باب أهل العلم والفضل أحق بالإمامة، رقم: ٦٧٨

[4] کشف الباري: ١٤٧/٤.

[5] کشف الباري: ٧٤٨/٢.

[6] کشف الباري: ١٠٩/٣.

[7] إرشاد الساري: ٤٣٥/٧.

[8] عمدة القاري: ٨٥/١٦

علامه كرمانى رحمه الله دا فرمائيلى دى چه دانزع دخافض د وجې نه ده يعنى: «من خشيتك» او د كسره د وجې نه علامه زركشى رحمه الله دا فرمائى چه «خشيتك» نه وړاندې "من" مقدر دې.(١)

**حدثنا موسى: حدثنا ابوعوانه..... الخ:** دا سند ذكركولوسره د امام بخارى رحمه الله مقصد دې خبرې طرف ته اشاره كول دى چه موسى بن اسماعيل تبوذكى رحمه الله د دې حديث په يو وړوكى شان جزء كښې د مسدد رحمه الله مخالفت كړې دې ځكه چه د مسدد رحمه الله په روايت كښې «فى يوم حار» دې خود موسى بن اسماعيل تبوذكى رحمه الله په روايت كښې «فى يوم راح» دې.(٢)

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** روايت باب كښې دى. «أن رجلاً حضره الموت» په دې كښې د بنى اسرائيل د يو سړى ذكر دې د باب سره د دې مناسبت ښكاره دې.(٣)

**[٣٢٩٣]- حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ الرَّجُلُ يُدَايِنُ النَّاسَ، فَكَانَ يَقُولُ لِفَتَاهُ: إِذَا أَتَيْتَ مُعْسِرًا فَتَجَاوَزْ عَنْهُ، لَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يَتَجَاوَزَ عَنَّا، قَالَ: فَلَقِيَ اللَّهَ فَتَجَاوَزَ عَنْهُ" ص ٧٩٤]** [ر: ١٩٧٢](٤)

## تراجم رجال

**عبدالعزيز بن عبدالله:** دا عبدالعزيز بن عبدالله اويسى رحمه الله دى. د دوى تذكره «كتاب العلم باب الحرص على العلم» لاندې تيره شوې ده.(٥)

**ابراهيم بن سعد:** دا ابراهيم بن سعد بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. د دوى تذكره «كتاب العلم باب ما ذكر فى ذهاب موسى عليه السلام فى البحر إلى الخضر» لاندې تيره شوې ده.(٦)

**ابن شهاب:** دا محمد بن مسلم بن شهاب زهرى رحمه الله دې.(٧)

**عبيدالله بن عبدالله:** د دوى حالات «كتاب العلم باب: متى يصح سماع الصغير» لاندې تيرشوى دى.(٨)

**قوله: كان رجل يداين الناس، فكان يقول لفتاه: إذا أتيت معسرا.......:** د حضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى يو سړى به خلقو ته قرض وركولو اوهغه به خپل نوكرته ونيل كله چه يو تنګدست (قرض دارى) له ورشې نوهغه ته معافى كوه كيدې شى (چه د دې نيكنى په صله كښې) الله تعالى زمونږ خطاګانې معاف كړى كله چه هغه الله تعالى سره ملاقى شو نوالله تعالى هغه معاف كړو. د نسائى رحمه الله د روايت الفاظ دادى: «يقول لرسوله: خذ ما تيسر واترك ما عسر وتجاوز»(٩)

---

(١) إرشادالسارى: ٤٣٥/٧.
(٢) عمدة القارى: ٨٦/١٦
(٣) عمدة القارى: ٨٥/١٦
(٤) مرتخريجه فى كتاب البيوع باب من أنظر معسراً، رقم: ٢٠٧٨.
(٥) كشف البارى: ٤٨/٤.
(٦) كشف البارى: ٢٨٧/٣.
(٧) كشف البارى: ٣٢٦/١.
(٨) كشف البارى: ٢٨/٣.
(٩) سنن النسائى كتاب البيوع باب حسن المعاملة والرفق فى المطالبة، رقم الحديث: ٤٦٩٨.

یعني هغه سړی به خپل پیغام رسونکی نوکر ته دا وئیل چه کوم په آسانئی سره درکوی هم هغه اخله ګنی پرېږده او دمعافئی نه کار اخله. او صحیح مسلم کښې دَ ربعی عن حذیفه په طریق سره نقل روایت الفاظ دادی: «فقال الله تعالی: أنا أحق بذا منك تجاوزوا من عبدي» [1]

یعني الله تبارك وتعالی فرمائی چه دا دَ عفو او معافئی عمل تاسو نه زیات زماشان سره لائق دې او بیائی فرښتې ته حکم ورکړو چه زما دې بنده سره دَ معافئی معامله اوکړئی دې جنت ته داخل کړئی.

دا روایت «کتاب البیوع باب: من أنظر معسراً» کښې تیرشوې دې.

**دَحدیث ترجمة الباب سره مناسبت:** ښکاره خبره ده چه دا واقعه بنواسرائیل سره متعلق ده او باب سره ددې مناسبت هم ښکاره دې.

[۳۲۹۴]- حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ رَجُلٌ يُسْرِفُ عَلَى نَفْسِهِ فَلَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ قَالَ لِبَنِيهِ: إِذَا أَنَا مُتُّ فَأَحْرِقُونِي، ثُمَّ اطْحَنُونِي، ثُمَّ ذَرُّونِي فِي الرِّيحِ، فَوَاللَّهِ لَئِنْ قَدَرَ عَلَيَّ رَبِّي لَيُعَذِّبَنِّي عَذَابًا مَا عَذَّبَهُ أَحَدًا، فَلَمَّا مَاتَ فُعِلَ بِهِ ذَلِكَ، فَأَمَرَ اللَّهُ الْأَرْضَ فَقَالَ: اجْمَعِي مَا فِيكِ مِنْهُ، فَفَعَلَتْ، فَإِذَا هُوَ قَائِمٌ، فَقَالَ: مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا صَنَعْتَ؟ قَالَ: يَا رَبِّ خَشْيَتُكَ، فَغَفَرَ لَهُ" وَقَالَ غَيْرُهُ: «مَخَافَتُكَ يَا رَبِّ» ص ۷۹۵ - ۷۹۶][۷۰۶۷] [2]

## تراجم رجال

**عبدالله بن محمد:** دا ابوجعفر عبدالله بن محمد مسندی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب الإيمان باب أمور الإيمان» لاندې تیره شوې ده. [3]

**هشام:** دا مشهور محدث هشام بن یوسف الصنعانی رحمه الله دې. دَدوی تذکره مخکښې تیره شوې ده. [4]

**معمر:** دا معمر بن راشد ازدی رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب العلم باب كتابة العلم» لاندې تیره شوې ده. [5]

**الزهري:** دا محمد بن شهاب زهری رحمه الله دې. [6]

**حمید بن عبدالرحمن:** داحمید بن عبدالرحمن بن عوف رحمه الله دې. دَدوی تذکره «كتاب الإيمان باب تطوع قيام رمضان من الإيمان» لاندې تیره شوې ده. [7]

**کان رجل یسرف علی نفسه.....:** دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی یو

---

[1] صحيح مسلم كتاب المساقاة باب فضل إنظار المعسر إلخ رقم الحديث: ۳۹۹۶.

[2] أخرجه أيضاً في كتاب التوحيد باب: ﴿يُرِيدُونَ أَن يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللَّهِ﴾ رقم: ۷۵۰۶ ومسلم في كتاب التوحيد باب سعة رحمة الله تعالى وأنها تغلب غضبه، رقم الحديث: ۶۹۸۱ والنسائي في كتاب الجنائز باب أرواح المؤمنين رقم الحديث: ۲۰۸۱.

[3] كشف الباري: ۶۵۷/۱.

[4] كتاب الغسل باب من سمّى النفاس حيضا، رقم: ۲۹۸.

[5] كشف الباري: ۳۲۱/۴.

[6] كشف الباري: ۳۲۶/۱.

[7] كشف الباري ۳۱۶/۲.

